# الحق الصريح

## شرح

# مشكوة المصابيح

فضیلۃ الشیخ ابو محمد امین اللہ البشاوری حفظہ اللہ

مکتبہ محمدیہ
بیرون کنج گیٹ پشاور، پاکستان

www.deenulhaq.net

بسم الله الرحمن الرحیم

# باب الجماعة وفضلها

## جماعت او دَ هغې دَ فضیلت بیان

د جماعت نه مراد احکام او آداب دی او د فضیلت نه مراد زیاتی ثواب دے۔
مناسبت: مخکښې کیفیت د مانځه بیان شو، اُوس وائی چه دا مونځ به د جماعت سره کوے۔
د جماعت مقصد: د جُمعے سره مونځ کولو کښې څه مقصد دے؟ نو ددے یو څو مقاصد دی ۱ – یو دا چه د مسلمانانو د یو بل سره محبت او مینه پیدا شی۔ ۲ – او د یو بل تپوس پوښتنه اُوکړی، د هغوی د حال نه ځان خبر کړی، که جماعت ته نهٔ وی نو د یو بل نه به ډیره موده کښې خبریدل نه کیدے لکه ددے ښار خلقو ته اُوګوره، څوك د یو بل د حال نه ډیره موده کښې نه خبریږی ځکه چه عام خلق مونځونو له نهٔ راځی۔
۳ – دریم پدے کښې اِشاره ده اتفاق ته۔ ددے وجه نه شریعت یو څو جماعتونه مقرر کړیدی دپاره د اتفاق د مسلمانانو او اظهار د وحدت۔ ۱ – یو جماعة عظیمه دے دا په حج کښې وی چه د ټولے دنیا مسلمانان هغے ته راجمع کیږی۔ ۲ – دویم ددے نه لږه وړه جَمعَه ده دا په یو کال کښې راځی چه د اختر په ورځ عیدګاه ته د لرے کلو خلق راجمع کیږی، لیکن مصیبت دا دے چه نن صبا خلق خپلو جماعتونو کښې مونځونه کوی، یو عیدګاه ته نهٔ راجمع کیږی د اَختر د مانځه فائده ئے د دنیا پرستئ د وجه نه ضائع کړیده۔ ۳ – او دریمه جَمعه په هفته کښې د جُمعے په ورځ وی، پدے کښې د نزدے علاقو خلق راجمع کیږی۔
٤ – او څلورمه جَمعه هرمانځه ته راجمع کیدل دی۔ او پدے کښې د یوے علاقے خلق راجمع کیږی۔ او پدے ټولو کښې غرض د مسلمانانو د کلمے یو والی ته اِشاره ده۔
امام ولی الله الدهلویؒ په حجة الله (۲/ ۱۹) کښې د جماعت ډیر مزیدار حکمتونه او فائدے بیان کړیدی، چه بعض دا دی: "په اِسلام کښې هر قسم خلق وی، جاهل هم وی او عالم هم، لهذا دا ډیر د مصلحت خبره ده چه ټول خلق په جَمع د یو بل مخے ته دا عبادت ادا

کړي چه که د چا نه کومه غلطي سرزد شي نو بل به يې ورته اُوښائي کړيا که د الله عبادت يو زيرږ شو چه څوك ديته ګوري نو کومه خرابي چه پدې کښې وي هغه به بيانوي او چه کومه عمدګي وي هغه به پسند کوي، نو دا جماعت د مانځه د تکميل دپاره يوه ښه ذريعه شوه"۔

٢– کوم خلق چه بې نمازه وي د هغوي به هم ددې نه حال کولاؤ شي او د هغوي د وعظ او نصيحت موقع به ملاويږي"۔ ٣– "څو مسلمانان چه په يو ځائې د الله عبادت کوي او د هغه نه دعا غواړي دا د الله د رحمت د نزول او قبوليت دپاره يو عجيب خاصيت لري"۔

٤– "ددې اُمت دپاره الله دا غواړي چه د دوي کلمه بلنده شي او کلمه د کفر ښکته شي او په مېځ د زمکه باندې هيڅ مذهب په اسلام غالب رانشي او دا خبره هله کيدې شي چه دا طريقه مقرر کړې شي چه تمام مسلمانان برابره ده که د هرې درجې او هرې طبقې وي، عام او خاص، مسافر او مقيم، واړه او غټ ټول د خپل يو مشهور عبادت دپاره جمع شي او د اسلام شان وشوکت او د هغه عظمت لره په خپل اجتماعيت سره ظاهر کړي، ددې ټولو مصالحو د وجه نه د شريعت پوره توجه جماعت طرفته مصروف شوه او هغې ته ترغيب ورکړې شو او د هغې د پريخودو ممانعت اُوکړې شو"۔ (حجة الله)

## د جماعة د مشروعيت تاريخ :

پدې کښې اختلاف دې چه جماعت کله مشروع شويدې؟۔ ابن حجر المکيّ په «تحفة المحتاج في شرح المنهاج» للنوويّ کښې پدې جزم کړيدې چه دا په مدينه کښې مشروع شويدې۔ ٢– قول ثاني دا دې چه اصل مشروعيت يې په مکه کښې شويدې (کما في روضة المحتاجين للشيخ رضوان العدل و صلاة الجماعة ص (٢٦) للدکتور غانم السدلان) دليل دا دې چه جبريل عليه السلام نبي عليه السلام او صحابه کرامؓ ته د لَيْلَةُ الإِسْراء په صبا مونځ ورکړو او نبي عليه السلام خديجه رضي الله عنها او علي ﷺ ته مونځ ورکړو۔ صرف دومره وه چه په هغه زمانه کښې په ښکاره طريقه نۀ وو شوې او هميشه والې يې پرې په مدينه کښې اُوکړو۔ پدې وجه دا وئيلې شي چه دا په مدينه کښې مشروع شويدې۔ يعني اظهار يې په مدينه کښې شويدې۔ او صحابه کرامؓ به په مکه کښې په خپلو کورونو کښې پټ مونځونه کول ځکه د مشرکانو تسَلط او غلبه وه"۔ انتهىٰ و کذا في المرعاة (٤٧٩/٢)

حکم الجماعة : د جماعة په حکم کښې اختلاف دې : ١– د داود ظاهريّ رأيه دا ده چه جماعت فرضِ عين دې او د صحت د مانځه دپاره شرط دې، او مونځ بغير د جماعت نۀ

صحیح نۀ دے لکه د أوداسه په شان۔ او دا یو روایت د امام أحمدؒ نه هم نقل دے)۔ او دا ډیر سخت حکم دے۔ ۲- قول ثاني دا دے چه دا فرض عین دے، او شرط د صحت د مانځه دپاره نۀ دے، بلکه که پاتے شوه نو مونځ کیږي لیکن د فرضو په درجه کښې به ګناهګار وي (لکه د سُترے نه بغیر مونځ کیږي خو فرض درنه پاتے شو) او دا قول د عطاءؒ، اوزاعیؒ او امام احمدؒ، او یو جماعت د محدثینو شوافعوؒ لکه ابوثورؒ او ابن خزیمهؒ او ابن المنذرؒ دے۔ (او دا رأیه د امام بخاریؒ هم ده)۔ ۳- د امام شافعیؒ رأیه دا ده چه دا فرض کفائي دے او دا د جمهور متقدمین شوافعو رایه هم ده۔ او ډیر احناف او مالکیه هم ددے قائل دي۔ (فتح الباری)

٤- احناف وائي: جماعت سنت مؤکد دے یا واجب دے، دوه قوله کوي۔ لکه په هدایه کښې وائي: (عامة مشائخنا علی انها واجبة) ۔عام مشائخ وائي دا واجب ده)۔ او کرخیؒ او طحاویؒ وغیره دا راجح کړیده چه دا فرض کفائي دے۔ مګر راجح قول ثاني دے، چه جماعت فرضِ عین دے مګر که عذر شرعي وي نو بیا ئے ترك جائز دے او هغه أعذارِ شرعیَه به روستو ذکر شي او پدے کښې جمع د ټولو دلائلو ده۔

ددے قول دلائل ډیر دي بعض د هغے نه دا دي:

۱- دلیل: روستو حدیث راځي (بخاری ۸۹/۱) ومسلم (۲۳۲/۱): نبی علیه السلام إراده کړیده چه زۀ د جماعت نه د پاتے کیدونکو خلقو کورونه سیزم، نو که دا فرض کفائي وے نو کورونه ئے ولے سیزل، او دا کورونه سیزل پدے وجه کیږي چه دۀ ګناه کبیره کړیده۔

۲- دلیل: په حدیث د ابو هریرهؓ کښې پدے باندے أمر راغلے دے (فَأَجِبْ) روستو راځي۔ (مُسلم ۲۳۲/۱) او أمر د فرضیت دپاره وي۔ ۳- دلیل: څوك چه جماعت ته نۀ راځي هغه ته منافق وئیلے شویدے، روستو راځي: (وما يتخلف عنها الامنافق معلوم النفاق) (مسلم) او منافقت نه ځان ساتل فرض دي، او د منافقت حکم په ترك د فرضو سره کیږي۔

٤- دلیل: د أذان نه پس چه څوك أوځي او جماعت پریږدي هغه ته د نبی علیه السلام مخالف وئیل شویدے روستو فصل ثالث کښې راځي ابو هریرهؓ أوفرمایل: (اما هذا فقد عصی ابا القاسم ﷺ) (دے سړي د ابو القاسم ﷺ مخالفت أوکړو)

۵- امام بخاریؒ (۸۹/۱) باب تړي باب وجوب الجماعة ۔ او په هغے کښې د حسن بصریؒ قول نقل کوي: (ان مَنَعَتْهُ أُمُّه عن العشاء في الجماعة لم يُطِعْهَا) (یعنی که مُور د ماسخُوتن مانځه نه د شفقت په وجه منع کولو نو د هغے تابعداری به نۀ کوي) او د مُور إطاعت کول خو فرض دي او فرض پریښودل هله جائز وي چه د هغے نه بل أهم فرض مخے ته راشي۔ معلومه شوه چه جماعت ډیر أهم فرض دے۔ او بیا ئے دغه حدیث د ابو هریرهؓ ذکر کړیدے

چه نبي عليه السلام إراده د سيزلو كړيده. ٦- روستو حديث د ابوالدرداءؓ كښ دي : چه
كه په يو كلي يا بانډه كښ درے كسان وي او جماعت نۀ كوي نو شيطان به په هغوي باندے
ضرور مسلط كيږي (ابوداود ٨٧/١) او د شيطان د تسلط نه ځان بچ كول فرض دي.
جمهورو چه جماعت ته فرض عين نه دے وئيلے نو هغوي د يو مُجْمَل روايت نه
استدلال كوي او هغه دا آولنے راروان حديث دے چه د جماعت نه بغير يواځې مونځ كښ يو
درجه ثواب شته نو كه جماعت فرض عين وے نو په ترك سره به ورته بالكل ثواب نۀ
ملاويدے. مگر ددے جواب دا دے چه دا حديث ددے خبرے دپاره چلولے شويدے چه
جماعت شرط نۀ دے د صحت دمانځه دپاره او بعينهٖ دليل دے چه جماعت فرض دے ځكه
كه فرض نۀ وے نو اووه ويشت درجے ثواب به ئے نه بيانولے او هر چه يو درجه ثواب دے نو د
هغے مقصد دا دے چه كه يو انسان نه جماعت سره مونځ فوت شي نو هغه ته يو درجه
ثواب ملاويږي او بغير د جماعت نه د هغۀ مونځ كيږي او دا مقصد نۀ دے چه انسان به
روغ وي او هيڅ شرعي عذر به ئے نه وي، او هغه به جماعت ته نۀ راځي او وائي به چه زما
يوه درجه كافي ده. دا هيڅرے د حديث مقصد نۀ دے، نو دا حديث چلولے شويدے د
جماعت د فضيلت دپاره، نه ددے دپاره چه آيا جماعت فرض دے او كه مستحب ؟ لهذا په
احاديثو كښ هيڅ تعارض نشته.
نور دلائل نشته مگر د هغه مخكنو دلائلو تاويلات كوي خپل ځائے كښ به راشي. بل
دليل دا وائي چه جماعت ځكه فرض نۀ دے چه كه دا فرض وے نو په معمولي اعذارو سره
به ئے پريخودل جائز نه وے چه هغه خوف، مرض وغيره دي چه روستو به راشي . د هغے
جواب دا دے چه خبره زمونږ په عام حالت كښ ده چه انسان روغ وي هيڅ عذر ئے نه وي او
كوم اَعذار چه شريعت ذكر كړيدي نو په هغه وخت كښ بيا جماعت ساقط دے. او دا سِرّ
الشرِيعة (د شريعت راز) دے پدے كښ د چا څۀ كار دے؟
دارنگه وائي : نبي ﷺ وافدينو (د بهر ملكونو نه راغلو ميلمنو) ته د مانځه حكم
كړيدے او د جماعت حكم ئے نۀ دے كړے او تاخير د بيان د وقت د حاجت نه جائز نه دے نو
كه جماعت فرض وے نو هغوي ته به ئے حكم كړے وے. (نيل الاوطار ١٥٧/٣)
مگر ددے نه جواب دا دے چه د جماعت حكم هغوي ته معلوم وو. علاوه لا دا چه
هغوي ته په ډيرو احاديثو كښ په جماعت باندے امر وارد شوے دے لكه حديث د عمر بن
سلمهؓ او حديث د مالك بن الحويرثؓ شو. (وليؤ مكما اكبر كما).

## اسباب ترک الجماعة :

په شریعت کښې د جماعت د پریخودو ډیر اَسباب او ځایونه خودلے شوی دی :۱- د سخت باران په وخت چه په هغې کښې اِنسان مسجد ته نشی تلے۔ دلیل ئے صحیح بخاری (۱/ ۹۲) مسلم (۱/ ۲٤۳) (الا صلوا فی الرحال) (کورونو کښې مونځونه اُوکړئ) والا روایت دے۔

۲- سخته هواء او سخته یخنی ۔ لکه دغه حدیث پرے دلیل دے۔ په هغې کښې دا الفاظ دی : (ان ابن عمر اذّن بالصلاة فی لیلة ذاتِ بردٍ وریحٍ ثُمّ قال: اَلَا صَلُّوا فی الرِّحَالِ) ۔(ابن عمرؓ په یخنی او هواء والا شپه کښې اذان د مانځه اُوکړو او "اَلَا صلوا فی الرحال" ئے پکښې اُووئیل)

۳- یو اِنسان ړوند وی او نظر کښې ئے کمے وی نو هغه دپاره کور کښې مونځ کول جواز لری۔ لکه بخاری (۱/ ۹۲) کښې د عتبان بن مالکؓ قصه ذکر ده چه هغه به خپل قوم ته امامتی کوله او هغه ړوند وو او نبی علیه السلام ته ئے اُوفرمایل : یارسول الله کله تیاره وی او سیلابونه راشی او زه ړوند سړے یم نو زمونږ کور کښې په یو مکان کښې مونځ اُوکړه چه بیا زهٔ هلته ځانله مونځ کوم نو رسول الله ﷺ ورته راغلو او ورته ئے اُوفرمایل : کوم ځائے غواړے چه مونځ اُوکړم؟ نو هغه د کور یو مکان ته اِشاره اُوکړه، رسول الله ﷺ هلته مونځ اُوکړو۔

٤- کله چه خوراک حاضر شی او د اِنسان زړهٔ هغې ته بے صبره وی۔ (بخاری ۱/ ۹۲)

٥- سخت مرض چه د هغې سره مسجد ته نشی حاضریدے۔ (بخاری ۱/ ۹۱) باب حد المریض ان یشهد الجماعة۔

٦- مدافعة الاخبثین : واړه او غټ بَولو په وخت جماعت پریخودل جواز لری۔ (مسلم ۱/ ۲۰۸)

۷- د هغه مریض په خدمت کښې لګیا وی چه د هغه خدمت ته ضرورت وی او بل خوک نه وی۔ دلیل ئے عام حدیث دے (وما العذر یارسول الله ؟ قال خوف او مرض) (ابوداود : ۱/ ۸۸) وابن حبان رقم (۲۰٦٤) ۔ دارنګه بخاری (۱/ ۹۱) راوړیدی چه عباس، علی او اُسامه رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ په خدمت کښې لګیا وو او جُمعې ته نهٔ وو تلی۔

۸- خوف وی برابره ده که په نفس وی یا په مال وی او برابره ده که د دشمن نه وی او که د سیلاب او درنده نه وی۔ ۹- بدبویه شے خوړلو نه پس مسجد ته نهٔ تلل۔ اګرکه پدے کار ګناهګار دے۔ چه مسجد ته د تلو وخت کښې ئے خوری۔

۱۰- امام مونځ دومره اُوګد کړی چه مقتدیانو ته تکلیف اُورسی نو مقتدیانو له جماعت پریخودل جواز لری۔ لکه یو سړے د معاذ بن جبلؓ د جماعت نه روستو پاتے کیدو

ځکه چه معاذ به مونځ ډیر اُوګد کولو۔

۱۱ – یو مسلمان سره نورو مسلمانانو تعزیراً خبرے بندے کړی وی ځکه هغه یو نافرمانی کړی وی نو هغه له جماعت ته نهٔ راتلل جواز لری لکه دا کار هلال بن امیهؓ او مُرَارهٔ بن ربیعؓ کړیدے کله چه د غزوهٔ تبوك نه پاتے شوی وو۔

۱۲ – یا اِمام مبتدع وی په بدعتِ مکفره سره۔

۱۳ – یا اِمام قصداً اَرکان د مانځه خراب کوی چه مقتدی د هغه سره دا طاقت نه لری چه په خشوع سره هغه اَرکان اَداء کړی۔

۱٤ – امام د اَوقاتِ مستحبهٔ نه مونځ مؤخر کوی نو مقتدی له جائز دی چه یواځے مونځ اُوکړی بیائے که د هغه سره مونځ اُوموندلو نو ورسره کوی به ئے۔ او که موقعه ورته ملاؤ نشوه نو جماعت ترے ساقط دے۔ لکه دا خبره مخکښ په باب المواقیت کښ تیره شویده۔ ۱۵ – جیل ته انسان واچولے شو۔

۱٦ – زیات چاق انسان وی چه مزل نشی کولے۔ حدیث د عتبان بن مالكؓ پرے دلیل دے۔

۱۷ – دواړه خپے یا یوه خپه او لاس ئے پریکړے شوے وی چه د مزل طاقت نه لری مګر که مصنوعی خپه ئے جوړه کړی وی نو ځی به۔

۱۸ – یا فالج وهلے وی۔ ۱۹ – یو انسان د قرضوړی نه یریږی۔ لکه معاذ باندے قرض وو هغه دوه ورځے مانځه له رانغلو۔

۲۰ – د مړی خخولو ته انسان حاضر شی او هلته د مانځه وخت شی نو د هغه نه جماعت ساقط دے۔ راجع فتاوی الدین الخالص (١٦٢/٥) بالتفصیل۔ نور عذرونه روستو راځی۔

## الفصل الاول

۱ – عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ دَرَجَةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : ابن عمرؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : د جَمعے سره مونځ د یواځے مانځهٔ نه (په ثواب کښ) اُوه ویشت (۲۷) درجے زیاتیږی۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ نه مراد د اِنسان مونځ دے د جماعت سره یعنی د یوتن مونځ چه د جَمعے سره اُوشی نو دا د اُووه ویشت درجے نه زیات دے د مونځ د یو تن نه چه یواځے ئے اُوکړی۔

الْفَذِّ : په معنیٰ د فرد یعنی منفرد سره یعنی یواځے مونځ کونکے۔

سوال : په بل روايت د بخاريؒ کښې پنځه ويشت درجے ثواب خودلے شويدے او دلته اُووه ويشت درجے نو ددے اِختلاف تطبيق څه دے؟ نو علماؤ ددے مختلف توجيهات ذکر کړيدي ۱- يو جواب : دا چه د پنځه ويشت درجے ثواب والا روايت راجح دے ځکه د هغے راويان زيات دي نو دا په درجه د محفوظ کښې شو او اُوه ويشت درجے ثواب صرف په دے يو حديث کښې راغلے دے نو دا په درجه د شاذ کښې شو۔ لکه دے خبرے ته د امام ترمذيؒ کلام اِشاره کوي۔ ليکن دا خبره ضعيفه ده، وجه دا ده چه دواړو روايتونه بالکل صحيح دي، او دا زيادت د ثقه راوي دے او دا مقبول وي نو د شذوذ خبره کول بے ځايه دي ځکه چه شذوذ کښې مخالفت وي او دلته مخالفت نشته۔

۲- دويم جواب دا دے چه دا اختلاف د وحي دے اول (۲۵) درجے او بيا (۲۷) درجے ثواب شو، د الله رحم زيات شو او داسے په آحاديثو کښې ډير کيږي لکه دے اُمت سره الله دا کار ډير کرت کړيدے چه اول کښې ئے يوه حصه جنتيان کړل بيا وحي اُوشوه نو نيمائي بيا دوه حصے شو۔ نو قليل نفي د کثير نۀ کوي۔ اقل داخل دي په اکثر کښې۔ دا هم ښۀ جواب دے علامه شوکانيؒ راجح کړيدے۔ (نيل الاوطار ۳/۱۵۶)۔

۳- دريم دا چه دا فرق د هغه چا دپاره دے چه عظيم جماعت کښې حاضر شي نو اُووه ويشت درجے او که وړوکي جماعت کښې حاضر شي نو پنځه ويشت درجے۔

٤- يا دا چه مسجد ته نزدے وي نو د هغه به پنځه ويشت درجے وي او که وړاندے وي نو اُووه ويشت درجے۔ ٥- يا په انتظار د مانځه او غير اِنتظار باندے حمل دے څوک چه مخکښې راشي هغه ته (۲۷) او چه ناوخته راشي نو (۲۵) حاصليږي۔

٦- او که په شوق او رغبت سره راشي نو هغه ته (۲۷) او که په شوق سره رانشي، سست پست وي نو کيدے شي چه يوه درجه ثواب ئے هم اُونشي۔ او چه معمولي شوق وي نو پنځه ويشت درجے به وي۔ ۷- بعض وائي : که چا د ابتداء نه تولہ جَمعه لاندے کړه نو هغه (۲۷) درجے او که بعض لاندے کړي نو (۲۵) درجے ثواب به ملاويږي۔

۸- يا اُووه ويشت د فجر او عشاء پورے خاص دي۔

۹- يا فجر او عصر پورے ځکه پدے کښې ملائك راجمع کيږي۔

۱۰- يا (۲۷) د جهري مونځونو پورے خاص دي او پنځه ويشت د سري پورے او دا حافظ په فتح الباري کښې راجح کړيدے۔

فائده : چا د (۲۵) او (۲۷) عدد د تخصيص حکمتونه ذکر کړيدي مګر صحيح دا ده چه دا د آسرارُو د نبوت نه دي چه عقل ددے د اِجمالي حقيقت معلومولو نه عاجز دے نو

پاتې لا د تفصيل نه او مقصود پکښې ترغيب دے مسلمانانو ته چه په اجتماعي طريقه شعار د اِسلام راښکاره کړي چه هغه مونځ دے. (توربشتیؒ) (نيل).

تَفْضُلُ : دے الفاظو کښې دوه اِحتماله دي يو دا چه د جماعت سره د مونځ کونکي (۲۸) درجه ثواب وي يو ثواب خو د يواځې مونځ کونکي سره برابر دے او ۲۷) درجے پرے دپاسه واخله. او دا ظاهر احتمال دے ځکه دلته ئې « تَفْضُلُ » وئيلے دے او بل روايت کښې «تَزِيدُ» لفظ راغلے يعني په هغې باندے په (۲۷) زيات دے او يوه درجه کښې ورسره برابر دے.

۲– دويم اِحتمال دا دے دا چه د جماعت والا مونځ اُووه ويشت درجے او يواځې مونځ کونکي يوه درجه ثواب دے.

دَرَجَةً : ابن سيد الناسؒ فرمائي : آيا دا درجات او اَجْزَاء په معنیٰ د مونځونو دي او که نه ؟ نو که درجه په معنیٰ د مونځ شي نو معنیٰ به دا شي چه د جماعت والا اُووه ويشت مونځونه شو او د يواځې مونځ کونکي يو مونځ شو. او که درجه په معنیٰ د جُزء سره وانخلے او ثواب مراد شي نو بيا به د جماعت والا اُووه ويشت ثوابه وي او د يواځې به يو ثواب وي. مګر ظاهر دا ده چه دلته مونځونه مراد دي ځکه په روايت ابو هريرةؓ کښې د درجة په ځائې «صلاة » لفظ راغلے دے (رواه مسلم والسراج) که درجه په معنیٰ د مانځه شي نو ددے نه دا فائده معلومېږي چه که څوك يواځې مونځ اُوکړي نو غاړه ئې آزادېږي اګر که ګناهګار دے او ثواب ئې نشته.

☆– دارنګه آيا دا ثواب مسجد کښې جَمعې کيدلو پورے مختص دے او که نه ؟ ظاهر اول دے، حافظؒ وائي دا زما په نظر کښې راجح دے. انتهیٰ.

مګر زۀ وايم : په مسجد کښې مونځ واجب دے نۀ په بل ځائے کښې او صحيح خبره د اقوالو د علماؤ نه دا ده چه که په کور يا بازار کښې مونځ اُوکړے شي نو پدے سره په مسجد کښې جماعت نۀ ساقطيږي کله چه انسان مسجد ته په حاضريدو باندے قادر وي. خو ددے نه معذور او مسافر مستثنیٰ دي. لکه دا خبره فتاوی الدين الخالص (۱۸٤/٥) او کتاب الصلاة لابن القيم ص (٤٦١) کښې اُوکوره.

څوك چه به سره د قدرت نه مسجد ته نۀ حاضريدل نو صحابه کرامو به په خپل دور حکومت کښې هغوی ته د څټونو وهلو دهمکي ورکوله لکه عتاب بن اسيدؓ د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو مکے والو ته داسے وئيلي وو، چه زۀ ستاسو څټونه وَهم او صحابه کرامو د هغۀ پدے کار باندے ډيره شکريه اَدا کړه او هغۀ ته ئې په درنو سترګو اُوکتل.

فتح القدير د ابن الهمام (۳٤٥/۱) کښې دي : د حلوانیؒ نه د هغۀ چا متعلق تپوس

اُوشو چه کله نا کله خپل کور والا ته د جَمعې مونځ کوی (او مسجد ته نۀ ځی) آیا پدے سره د جماعت ثواب حاصلیږی ؟ نو هغۀ اُوفرمایل : "بغیر د عذر نه دا کار بدعت او مکروه عمل دے، بلکه د حنابلو نه ابوالبرکاتؒ وئیلی دی : ددۀ دا مونځ دُرست نۀ دے"۔ کما فی الانصاف للمرداوی (۲/۲۲۱)

حافظ ابن تیمیهؒ فرمائی : «څوك چه جماعت سره په کور کښې مونځ کوی آیا د هغۀ نه مسجد ته حاضریدل ساقطیږی ؟ پدے کښې اختلاف دے مگر مناسب دا ده چه مسجد ته حاضریدل به بغیر د عذر نه نۀ پریدی۔» آه ۔ الفتاوی المصریة ص (۵۲)

پدے کښې شوافع او مالکیه ؤ اختلاف کړیدے او دا یو روایت د امام احمدؒ هم دے کما فی الام (۱۳٦/۱) والمدونة الکبریٰ (۸٦/۱) هغوی د عموماتو نه استدلال کوی او په مرض الوفات کښې نبی ﷺ په کور کښې مونځ کړیدے۔ لیکن دا دلائل د هغوی ضعیف دی۔ ځکه دا په عذر باندے محمول دی او خبره په عدم عذر کښې ده چه کله عذر نۀ وی۔

دا حدیث د هغه علماؤ دلیل دے چه جماعت ته سنت وائی او فرض ئے نه گڼړی، وائی که دیواځے مونځ کونکی مونځ جائز نۀ وے نو بیا به هغه ته یو درجه فضیلت نه حاصلیدے ځکه کوم شے چه مونځ اُونۀ گرځی، هسے خکته پورته کیدل وی نو هغه کښې فضیلت نۀ وی۔او بل روایت د مسلم کښې اَفضل لفظ راغلے دے او دا صیغه د اسم تفضیل ده په نفس فضیلت کښې د اشتراك تقاضا کوی۔ (علامه باجیؒ)

نو معلومه شوه چه دیواځے مونځ کونکی هم فضیلت شته ؟ مگر علامه سندیؒ ددے دا جواب ورکړیدے، چه کوم علماء چه د فرضیت د جماعت قائل دی نو د هغوی مقصد دا دے چه په حالت د صحت کښې په مونځ کونکی باندے جماعت واجب دے که هغه ئے بغیر د عذر نه پریدی نو گناهگار به وی او دا مقصد نۀ دے چه جماعت شرط دے د صحت د مانځه دپاره۔او دے حدیث کښې دا راغلل چه یواځے هم مونځ کیږی (نفس فضیلت پکښې شته) مگر انسان به گناهگار وی په ترک د جماعت سره۔ او هغه نورو حدیثونو نه د هغے فرض عین کیدل معلومیږی۔ نو ټول حدیثونه راجمع شو۔

۲- دویم جواب دا دے چه دا حدیث چلولے شویدے دپاره د بیان د زیات ثواب د جماعت او هر چه فرضیت دے نو هغه د نورو دلائلو نه معلوم دے۔

۳- دارنگه بعض علماؤ صلوٰة الفذ محمول کړیدے په معذور باندے چه یو انسان د جماعت په پریخودو کښې معذور وی نو هغه دپاره په یواځے مونځ کښې یو اَجر شته۔ مگر پدے تخصیص دلیل نشته۔ ٭- بله دا چه معذور ته د جماعت پوره اَجر ملاویږی لکه د

نورو احادیثو نه معلومه ده. اولنئ جواب اصح (ډیر صحیح) دے.

---

۲- وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ، لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ آمُرَ بِحَطَبٍ، فَیُحْطَبَ، ثُمَّ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَیُؤَذَّنَ لَهَا، ثُمَّ آمُرَ رَجُلاً فَیَؤُمَّ النَّاسَ، ثُمَّ اُخَالِفَ اِلٰی رِجَالٍ». وَفِیْ رِوَایَةٍ : «لَایَشْهَدُوْنَ الصَّلٰوةَ فَأُحَرِّقَ عَلَیْهِمْ بُیُوْتَهُمْ، وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ، لَوْ یَعْلَمُ اَحَدُهُمْ اَنَّهٗ یَجِدُ عَرْقاً سَمِیْناً، اَوْ مِرْمَاتَیْنِ حَسَنَتَیْنِ، لَشَهِدَ الْعِشَاءَ». رَوَاهُ الْبُخَارِیُّ وَلِمُسْلِمٍ نَحْوَهٗ.

---

ترجمه: ابو هریره رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« قسم دے په هغۀ ذات چه د هغه په لاس کښې زما نفس دے، ما إراده کړے ده چه زۀ په لرګو (راجمع کولو ځۀ کسانو ته) حکم اُوکړم چه لرګی راجمع کړي، بیا حکم په مانځۀ اُوکړم نو د هغې دپاره اذان اُوکړے شي، بیا حکم اُوکړم یو سړي ته چه هغۀ خلقو ته إمامت اُوکړي بیا لاړ شم هغۀ کسانو پسے (چه بغیر د ځۀ عذر نه جَمعے ته نۀ راځي) او په یو روایت کښې دي : « (هغه کسانو پسے) چه مانځۀ ته نۀ حاضریږي او په هغوي باندے کورونه اُوسیزم، او قسم دے په هغه ذات چه زما نفس د هغۀ په لاس کښې دے، (دا کوم خلق چه جَمعے له نۀ راځي په دوي کښې) کۀ یو تن ته دا معلومه شي چه دا غُوړ هډوکے یا دوه ښائسته پانچے مُومي نو ضرور به ماسخوتن مانځه ته حاضریدلے». (بخاريؒ، مسلمؒ)

تشريح : امام بخاريؒ او امام احمدؒ ددے حدیث نه استدلال کړیدے چه جماعت واجب دے. او هغه مخکښې بیان شو. فوائد الحدیث : ۱- هَمّ (إراده) د نبي ﷺ هم دین دے، هغه اګر کۀ دا کار عملًا نۀ دے کړے، مګر إراده ئې کړیده، معلومه شوه چه د جَمعے په پریښودو نبي علیه السلام دومره خفه دے چه د تارك الجماعة کور سیزي. ۲- تعزیر بالمال جائز دے، چه کله انسان لوئي مُجرم وي او د هغه نه په مال اخستو زور ورزي.

سوال : دا حدیث خو د جمهورو دلیل کیدے شي ځکه چه نبي ﷺ دلته پخپله جماعت پریخے دے ؟ الجواب : دلته د نبي ﷺ عذر دے او هغه دا چه کۀ نبي ﷺ د جماعت اُودریدو نه مخکښې لاړ شي نو منافقان به وائي مونږ اُوس درتلو نو ددے عذر په وجه جماعت ترك شو او زمونږ خبره په هغه صورت کښې ده چه عذر نۀ وي، دویم دا چه د نبي ﷺ پدے ځائے کښې جماعت پریښودل دلیل نۀ دے چه مطلقاً ئې پریخے دے ځکه کیدے شي چه هغه جماعت سره مونځ اُوکړي مخکښې د تلو یا روستو د راتلو نه. نو ددے

نه دا فائده معلومه شوه چه که یو مقام کښې څه کسان څو کیداری ته ولاړ وی یا یو مهم کار باندې اِسلامی حکومت مصروف کړی وی نو هغوی له جماعت ترك كول جواز لری روستو به ځانله جماعت اُوکړی یا به یواځې مونځ اُوکړی. دا هُم یَو عُذر دے۔

جمهور ددے حدیث نه جوابونه کوی او هغه دا چه دا حدیث حمل دے په زجر او زورنه باندے او حقیقت ئے مراد نهٔ دے بلکه مقصود پکښې مبالغه ده او دلیل پدے باندے دا دے چه پدے کښې هغهٔ عذاب ذکر شویدے چه هغهٔ د کفارو پورے خاص دے او په اجماع د امت سره دا قسم عذاب د مسلمانانو دپاره حرام دے۔

**الجواب** : دا حدیث واقع شویدے په هغه زمانه کښې چه په اُور باندے عذاب ورکول لا حرام نه وو، نو دا وعید په خپل حقیقت بناء دے۔بله دا چه که دا پس د تحریم نه واقع شی نو دا به مخصص وی د هغه حکم دپاره لهذا نور چا له په اُور عذاب حرام دے مګر تارك الجماعة دپاره جائز دے۔ ۲- صحیح دا ده چه نبی ﷺ دکورونو د سیزلو اراده کړے ده، نهٔ د خلقو سیزلو۔ لهذا هیڅ تعارض نشته۔

۲- بل جواب دا کوی چه نبی ﷺ خو د دوی کورونه ندی سیزلی نو که دا تهدید په خپل حقیقت وے نو ضرور به ئے سیزلی وے؟ **الجواب** : ددے نهٔ سیزلو علت په بل حدیث د احمدؒ کښې ذکر دے (لولا ما في البيوت من النساء والذرية)

(یعنی که پدے کورونو کښې زنانه او ماشومان نهٔ وے نو ما به سیزلی وے) او نبی ﷺ د هغه شی اِراده کوی چه هغه دپاره ئے کول جائز وی۔ ۲- یا دا چه اِحتمال شته چه هغوی د جماعت د پریخودو نه منع شوی وی نو ځکه ئے کورونه ندی سیزلی۔

۳-بل جواب کوی چه دا وعید د هغه چا په باره کښې دے چه هغوی بالکل مونځ نهٔ کوی، نو د جماعت د پریخودلو متعلق نهٔ دے۔

**الجواب** : په روایت د ابوداود کښې داسے الفاظ راځی (ثم آتي قوماً يصلون في بيوتهم ليست بهم علة) (بیا زهٔ راشم هغه خلقو ته چه په کورونو کښې بغیر د څهٔ عذر نه مونځونه کوی او کورونه پرے اُوسیزم) او «لَا يَشْهَدُوْنَ الصَّلَاةَ» لفظ پرے هم دلیل دے چه مونځ ته نهٔ حاضریږی یعنی جماعت له نهٔ راځی۔ «لَا يُصَلُّوْنَ» لفظ ئے نهٔ دے وئیلے (چه مونځ نهٔ کوی) ۔او الفاظ د ابن ماجه مرفوعاً دا دی : (لينتهين رجال عن تركهم الجماعات او لاحرقن بيوتهم) (څهٔ خلق به د جماعت د پریخودلو نه منع شی ګنې کورونه به ئے اُوسیزم)۔

٤- بل جواب کوی چه جماعة په ابتداء د اسلام کښې فرض وو دے دپاره چه د مانځه نه پاتے کیدل په منافقانو باندے بند کړی بیا منسوخ شو (قاضی عیاضؒ) حافظ وائی : ددے

تائيد ممكن دے پدے چه دغه وعيد په اُور باندے منسوخ دے ۔ نو دا حکم هم منسوخ شو۔انتهیٰ۔ مگر دا خبرے گماني دي او حديث نص صريح دے پدے چه ترك د جماعت سبب د سيزلو د کور دے۔ يعني دا دومره غټ مُجرم دے چه مستحق ددے دے چه کورئے اُوسوزلے شي۔ او دلته د خلقو سيزل نهٔ دي مراد بلکه د کور سيزل مراد او هغهٔ منسوخ نهٔ دی۔

عَرْقًا : په فتحه د عين او سکون راء سره هغه هډوکے چه اکثره غوښه ئے خوړلے شوے وي او لږه غوښه پرے پاتے شوی وی جمع ئے عِرَاقٌ ده۔او اَلْعَرَقُ : خوَلے ته وائي چه د بدن د مساماتو نه د حرارت (گرمائش) په وخت بهيږي۔ او العِرْقُ : رګ ته وائي، او د هر شي اصل او بنياد ته وائي جمع ئے عُرُوْقٌ، اَعْرَاقٌ او عِرَاقٌ راځي۔ دارنګه عِرق معمولي شي ته هم وائي۔ يقال : فِيْهِ عِرْقٌ مِنْ مَاءٍ۔ (پدے کښې معمولي شان اُوبه دی)

اَوْ مِرْمَاتَيْنِ : تثنيه د « مِرْمَاة » ده په کسره د ميم او کله فتحه هم جائز ده۔ پانچے او ښنګری ته وائي يا هغهٔ غوښه چه د دوه ښنګرو په مينځ کښې ده۔ بعض وائي "مرماة" يو غشي ته وائي چه دا به عربو د لوبو په صورت کښې استعمالولو او د خاورو په ډيرکو به ئے گوزارونه کول چا چه به غشے په هغے کښې نال کړو هغه به غالب حسابيدو۔ نو مخکښې خوراك بيان شو اُوس د غفلت شے بيانوی۔ مگر اول قول راجح دے۔ځکه عَرْق لفظ ئے ورسره يو ځائے کړيدے۔ او پدے کښې د منافقانو لالچ او حرص دنيوی ذکر دے چه منافقان داسے دنيا پرست خلق دي چه که په مشکل مانځه (عشاء) کښې ورته معمولي شان فائده معلوميدے، خوړوا، او پانچه ورله ورکولے شوے نو بيا هغے ته په منډه راتلل۔د خيټے خلق دي۔ او د منافقانو په هر عمل کښې دا خوئي دے چه که فائده ورته ملاويږي نو هلته ځان حاضروی که په جنازه کښې ورته صابون اواسقاط ملاويږي نو په اول صف کښې ولاړ وی او که اسقاط پکښې نهٔ وی نو بيا جنازے له خوا له نهٔ راځي، که درس تدريس کوی، تعليم تعلم کوی، که بيما پرسی کوی ټول اعمالو کښې د منافق دا کار وی۔

---

٣- وَعَنْهُ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ ﷺ رَجُلٌ أَعْمٰى، فَقَالَ : يَارَسُوْلَ اللهِ! إِنَّهُ لَيْسَ لِيْ قَائِدٌ يَقُوْدُنِيْ اِلَى الْمَسْجِدِ، فَسَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَنْ يُرَخِّصَ لَهُ فَيُصَلِّيَ فِيْ بَيْتِهِ، فَرَخَّصَ لَهُ، فَلَمَّا وَلّٰى دَعَاهُ، فَقَالَ :«هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلٰوةِ؟» قَالَ: نَعَمْ. قَالَ:«فَأَجِبْ».رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : نبی ﷺ ته يو نابينا شخص (ابن ام مکتومؓ) راغلو،

وې فرمايل : اې د الله رسوله ! زما دپاره کوم رهبر نشته چه ما مسجد طرفته بوځي، نو د رسول الله ﷺ نه ئې دا غوختل چه هغهٔ ته رخصت (اجازت) ورکړي چه په کور کښې مونځ اُوکړي، نو رسول الله ﷺ ورله رخصت ورکړو، (دے نه بعد) کله چه هغهٔ (د مجلس نبوي) نه واپس شو نو رسول الله ﷺ هغه له (بيا) راوغوختو، او ورته ئې اُوفرمايل : "آيا تهٔ اذان آورے ؟" هغه اُووئيل: آؤ، رسول الله ﷺ اُوفرمايل : "اِجابت کوه" (ستا دپاره مسجد ته حاضريدل ضروري دي) (مسلمؒ)

تشريح : رَجُلٌ اَعْمٰی : ددے نه مراد ابن اُمِّ مکتوم دے لکه په روايت د ابوداود کښې روستو راځي۔ د جمهورو مسلك دا دے چه د جماعت د ساقطيدو د اَعذارو نه يو عُذر دا هم دے چه انسان روند وي۔ نو بيا سوال دا دے چه دا مسلك خو ددے حديث خلاف معلوميږي ځکه دلته ورته وائي اِجابت به کوے۔

الجواب : جواب دا دے چه دا اِجازه روستو راغلے ده په حديث د بخاريؒ کښې چه د يو انسان په نظر کښې فرق وي او مسجد ته نشي راتلے نو هغه نه جماعت ساقط دے لکه مخکښې حديث د عتبان بن مالك تير شو۔ چه هغه نبي ﷺ ته د نظر شکايت اُوکړو نو هغه ورله په کور کښې مونځ اُوکړو او مسجد ته به نهٔ راتلو۔او هر چه دا حديث دے نو دا يا محمول دے په استحباب باندے نو د « فَاَجِبْ » معنیٰ دا ده چه تا له اِجابت مُستحب دے۔ او که امر د وجوب دپاره شي نو بيا به دا منسوخ وي۔

۲– يا دا چه دا ددهٔ پورے خاص دے ځکه چه ددهٔ کور نزدے دے بغير د لاؤډ سپيکر نه چه اذان آوري نو دا به ډير نزدے وي، نو ددهٔ دپاره کور کښې مونځ کول ندي پکار ځکه ئې ورته اِجازت ورنکړو بلکه دا چه دا سړے بار بار مسجد ته راغلے دے نو لاره ورته معلومه ده، نهٔ خطاء کيږي او نهٔ غورزيږي نو ځکه ئې ورته اِجازه ورنکړه۔ نو حاصل دا دے : کهٔ د سړي وسع کيده په راتلو سره او تکليف ورته نهٔ وو، نو راځي به او کهٔ تکليف ورته وو نو بيا مَعذُور دے۔

## اشکال او د هغے ازاله :

اشکال دا دے چه رسول الله ﷺ څنګه ابن ام مکتوم ته رخصت په ترك د جماعت کښې ورنکړو کله چه هغهٔ ورته عذر پيش کړو لکه هغهٔ عذر روستو راروان دے۔ او عتبان بن مالك ورته عذر پيش کړو او هغهٔ له ئې رخصت ورکړو او د هغهٔ په کور کښې ئې مونځ اُوکړو چه تاته اجازت دے که جُمعے ته نهٔ حاضريږے؟۔

ازاله : ۱– ددے تطبيق کښې بعض علماء وائي: عتبان په عذر کښې سيلابونه ذکر کړل

چه زما او زما د قوم د مسجد ترمينځ حائل کيږي او دا واضح عذر دے ځکه پدے حالت کښې مسجد ته رسيدل مشکل وي او هرچه ابن ام مکتوم دے نو هغهٔ ورته دغه شان عذر پيش نهٔ کړو بلکه هغهٔ ورته د مزل مشقت ذکر کړو۔

ليکن دا تطبيق ضعيف دے ځکه چه سيلابونه خو هميشه نهٔ وي، او حال دا چه هغهٔ دپاره ئے په کور کښې مونځ په هر حال کښې جائز ګرځولے دے او د حالت د سيلابونو پورے ئے نهٔ دے خاص کړے او ابن ام مکتوم ذکر کړل چه مدينه ډير موذي حيواناتو او حشراتو والا ده او دا د يرونکو سيلابونو قائم مقام عذر دے۔

٢- بعض وائي : د ابن ام مکتوم ځائے نزدے وو ځکه هغهٔ به اذان اوريدو په خلاف د عتبان بن مالک چه هغهٔ وړاندے وو۔ وهو الراجح کما مر۔

٣- علامه جوزجانيؒ وائي : حديث د ابن مکتومؓ منسوخ دے په حديث د عتبان باندے ځکه کوم عذرونه چه ابن ام مکتوم ذکرکړي دي نو بعضے د هغے کافي دي په سقوط د حضور د مسجد کښې۔ يعني د چا حال چه د ابن ام مکتوم په شان وي نو په هغهٔ باندے حضور مسجد ته واجب نهٔ دے۔

٤- علامه بيهقيؒ فرمائي : د نبي ﷺ مراد دا دے چه د ابن مکتوم دپاره په کور کښې مونځ کولو سره او د جماعت نه پاتے کيدو سره د جماعت د فضيلت لاندے کولو رخصت درله نهٔ مومم۔ يعني که کور کښې پاتے کيږي جائز به وي ليکن د جماعت فضيلت به ترے فوت وي۔ د جماعت د فضيلت حاصلولو رخصت ورته نهٔ شته۔ او ددے تائيد علامه بيهقيؒ په دے سره ذکر کړيدے چه هغهٔ د ماسخوتن او سحر مانځه کښې د قائد نهٔ موندلو شکايت اُوکړو نو نبي ﷺ ورته اُوفرمايل : که ددے دوه مونځونو د فضيلت نه ناست انسان خبر شي نو په توليدو به ورته راتلے۔ (فتح الباری لابن رجب ١٩٠/٣) عون المعبود (١٨١/٢)

خارجي فائده : بعض احاديث د رسول الله ﷺ وحي ده او بعض اِجتهادات دي، لکه دلته ئے دے سړي ته اَول اِجازت ورکړو او بيا ئے بيرته راؤغوختو او خبره ئے ورته بدله کړه، نو دا د نبي ﷺ اِجتهاد وو مګر الله پرے رد اُونکړو نو زمونږ دپاره دين شو۔

پدے تحقيق سره د منکرينِ حديث استدلال باطل شو چه وائي احاديث ټول وحي نهٔ ده۔ او په اول جلد کښې ددے تفصيل تير شويدے۔

---

٤- وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ، اَنَّهٗ اَذَّنَ بِالصَّلٰوةِ فِيْ لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَرِيْحٍ، ثُمَّ قَالَ: «اَلَا صَلُّوْا فِيْ

الرِّحَالِ»، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ ذَاتُ بَرْدٍ وَمَطَرٍ يَقُوْلُ: «أَلَا صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: او ابن عمر ﷺ نه روایت دے چه دهٔ په یوه یَخه او هوا والا شپه کښې د مانځه آذان اُوکړو، بیا (د اذان نه پس ئے خلقو ته) اُوفرمایل: خبردار! په خپلو خپلو کورونو کښې مونځونه اُوکړئ، بیا ئے اُوفرمایل: رسول الله ﷺ به مؤذن ته حکم کولو کله چه به یَخه او بارانی شپه وه چه داسے اُووائی: «خبردار! په خپلو خپلو کورونو کښې مونځ اُوکړئ» (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح: ثُمَّ قَالَ: ۱- دا یا د اذان نه پس لوستل دی لکه دا په حدیث د بخاریؒ کښې دی (ثم یقول علی اثره (یعنی اثر الاذان). دا صریح دے چه روستو د آذان نه به ئے وائی.

۲- او یا دا چه په اذان کښې به ئے دننه وائی، او دا خبره ظاهر د حدیث دے او بعض وائی د «حی علی الصلاة او حی علی الفلاح» په ځائے به ئے وائی لکه په روایت د ابن عباسؓ کښې په صحیحینو کښې راغلی دی. نو دواړه طریقے جائز دی. او په روایت د عبد الرزاق کښې باسناد صحیح د دواړو جمع راغلے ده چه د «حی علی الفلاح» نه روستو ئے «أَلَا صَلُّوْا فِي الرِّحَالِ» وئیلے دے نو پدے کښې هم څهٔ منافات نشته. وجه دا ده چه د «الصلاة فی الرحال» معنیٰ به دا وی چه څوك نهٔ راځی نو دهغه دپاره رُخصت دے او د «حی علی الصلاة» معنیٰ به دا وی چه راتلل درله مستحب دی چه څوك اِراده لری چه کامل فضیلت حاصل کړی او مشقت پورته کړی. او ددے تائید د حدیث د جابرؓ نه کیږی چه هغه په مسلم کښې راغلے دے. چه نبی ﷺ په سفر کښې داسے اُوفرمایل: (لِيُصَلِّ مَنْ شَاءَ مِنْكُمْ فِيْ رَحْلِهِ)

معلومیږی چه دا اَمر د رُخصت دپاره دے او عزیمت نهٔ دے چه خامخا نهٔ راتلل به فرض وی.

حدیث ئے ددے دپاره راوړو چه د جماعت د ترك دپاره یو عُذر سخته یخنی، یا هواء او باران دے، بیا ددے څهٔ خاص مقدار نشته چه څومره به وی؟ خو تکلیف ته به ګوری که تکلیف ورته ملاویدو، چقړے زیاتے وے نو نهٔ دے ځی. او کهٔ لاړ شی هم څه حرج نشته. دا څهٔ فرض او واجب حکم نهٔ دے بلکه یو رخصت دے.

بیا بعض علماؤ وئیلی دی چه دا باران او هواء او سخته یخنی به هله عذر وی چه درے واړه راجمع شی او شپه هم وی. لیکن دا خبره ضعیفه ده، وجه دا ده چه په اَحادیثو کښې جُدا جُدا هم ذکر دی. او دا د جُمهورو مَسلك دے.

الرِّحَالِ: جمع د رَحل ده، د سړی کور او هغه ځائے ته وائی چه په هغے کښې ئے سامان وی.

بعض وائی : دا حکم په سفر کښې دے ځکه چه حدیث کښې ورسره د سفر قید راغلے دے نو مطلق به حمل وی په مقید باندے لهذا په حضر کښې به داسے نهٔ وائی، او که په حضر کښې هم داسے مشقت وی نو هم وئیل ئے جائز دی۔ مګر راجح دا ده چه دلته عام حکم ذکر شویدے چه نبی ﷺ به داسے حکم مؤذن ته کولو په یخه او بارانی شپه کښې او د سفر قید ئے ورسره نهٔ دے لګولے او د سفر دپاره جُدا مستقل حکم دے۔ او دا د «وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ» سره ډیره موافقه خبره ده۔ او پدے باندے دلیل حدیث د بیهقیؒ دے : یو صحابی نعیم بن نحام (د بنی عدی بن کعب نه) فرمائی: ( یو ځل) زهٔ په یخه بارانی شپه کښې د ښځے په بستره کښې وم، د سحر مانځه دپاره اذان شروع شو نو ما (زړهٔ کښې بطورِ اَرمان) اُووئیل : اَرمان چه مؤذن داسے اُووائی « وَمَنْ قَعَدَ فَلَاحَرَجَ » (څوك چه په کور کښې کیناستو(او جماعت له رانغلو) په هغهٔ څهٔ ګناه نشته)۔ نو (همدغه شان اُوشو) مؤذن همداسے د اذان په آخر کښې اُووئیل۔ (بیهقی السنن الکبری ۱/۳۹۸) وعبد الرزاق باسناد صحیح۔فتح الباری (۷۸/۲) نو اُوګوره دا کار په حضر کښې شویدے۔

---

٥- وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ، فَابْدَءُوْا بِالْعَشَاءِ وَلَا يَعْجَلْ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ »، وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُوْضَعُ لَهُ الطَّعَامُ، وَتُقَامُ الصَّلٰوةُ، فَلَا يَأْتِيْهَا حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ، وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْإِمَامِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : کله چه ستاسو نه د یو تن مخے ته د ماښامی خوراك کیخودے شی او (په دغه وخت) د مانځه تکبیر اُووئیلے شی نو خوراك شروع کړئ، او جلتی دِے نهٔ کوی تردے چه د هغے نه فارغ شی"۔ او ابن عمرﷺ ته به (چه کله) طعام کیخودے شو او (بل طرفته به) مونځ به اُودرولے شو نو هغهٔ به مانځه ته نهٔ راتلو تردے چه د خوراك نه به فارغ شو او هغهٔ به (پدے حال کښې) د اِمام قرائت آوریدلو"۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : د عربو عادت دا وو چه هغوی به د ماښام مانځه نه مخکښې روټئ خوړله او دا ډیره مفیده وی ځکه د اُوده کیدو نه مخکښې هضم شوی وی او چه ناوخته روټئ اُوخوری نو ددے د وجه نه ګیس په خیټه کښې پیدا کیږی۔ مقامات حریری کښې هم راځی : «خَيْرُ الْعَشَاءِ سَوَافِرُهُ» (بهترین ماښامے هغه دے چه وختی اُوکړے شی)۔

بيا دا حکم په هغه وخت کښ دے چه روټئ په دسترخوان باندے کيخودے شي او سمدست مونځ تيار شي نو بيا به مونځ ساقط وي او روټئ به مقدمه کوي خو پدے شرط باندے چه انسان به ښۀ وږے وي او د روټئ د نۀ خوړلو په وجه به ئے توجه او خشوع په مانځه کښ خرابيږي او امام غزالیؒ پکښ لا دا هم زياتی کړيدی چه هغه طعام به په تاخير سره خرابيږي هم نۀ۔ که خرابيدو نو بيا به طعام مخکښ کولے شي۔ او د عبد الله بن عمرؓ او ثوریؒ او احمدؒ او اسحاقؒ په نيز هيڅ قيد نشته بلکه ظاهر د حديث باندے عمل کوی۔ او دا خبره علامه عبيد الله مبارکفوریؒ راجح ګنړلے ده۔

بيا دا خبره ياد ساتل پکار دی چه دا کار به کله کله وی او هر ځل به د مانځه وخت ته طعام نۀ تياروی۔ او پدے تولو کښ مقصود د خشوع رعايت دے۔

ددے وجه نه امام ابوحنيفه رحمه الله څه ښۀ خبره کړيده : (لأن يكون أكلي كلّه صلاة أحبّ إليّ من ان يكون صلاتي كلّها أكلاً) (که زما خوراك تول مونځ شي دا ماته بهتره ده ددے نه چه زما تول مونځ خوراك شي)

فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ : پدے أمر کښ اختلاف دے ١- اهل ظواهر وائي : دا حکم د فرضيت دپاره دے، تردے چه ابن حزمؒ پکښ دا إفراط کړيدے چه د چا مخے ته طعام حاضر شو او هغه مونځ أوکړی نو مونځ ئے باطل دے ځکه د أمر خلاف ئے أوکړو۔

٢- د جمهور علماؤ په نيز دا أمر د اِستحباب دپاره دے که روټئ ته ئے شوق نۀ کيدو نو مونځ دِے أوکړی لکه نبی ﷺ داسے هم کړيدی چه په دسترخوان ورته د ګډ غوښه پرته وه په مينځ د خوراك کښ اقامت اوشو نو هغه ئے پريخوده او مونځ ته پاڅيدو۔

(بخاری برواية عمرو بن امية)

بعض شوافعو او حنابلو د « فابدأوا » نه اِستدلال کړيدے چه دا حکم خاص دے په هغه چا پورے چه لا شروع ئے په خوراك نۀ وی کړی او که چا شروع کړی وی بيا اِقامت أوشي نو بيا به خوراك پريدی او مونځ ته به پاڅي، ليکن دا خبره د ابن عمرؓ د عمل مخالف ده۔ اګرکه د عقل موافق ده ځکه چه دومره خوراك ئے کړيدے چه په هغے سره ددۀ ګوزاره شوے ده، مګر پدے باب کښ اِنسان له پکار دی چه خپل حالت ته أوګوری که روټئ نه پاڅيدو سره ئے په مانځه کښ خشوع خرابيده نو نه دِ پاڅي۔ او که ګوزاره ئے شوے وه نو بيا دِے پاڅيږي۔

وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ : دا مقوله د نافع ده او پدے کښ پدے حديث مرفوع باندے د ابن عمرؓ عمل بيانوی چه هغه پدے باندے عمل کړيدے او بيا دا حکم په هغه صورت کښ دے چه په وخت کښ فراخي وی ولے که د مانځه وخت تنګ وی نو بيا تاخير کول حرام دی۔

او بعض علماؤ پکښې لا دا هم وئیلی دي چه که وخت تنګ وي او په خوراك باندې هغه اُوځي نو هم خوراك به مخکښې کوي دې دپاره چه خشوع فوت نشي. او پدې حدیث کښې دلیل دې چه فضیلت د خشوع مقدم دې په فضیلت د وقت باندې ځکه دلته شارع وَسِیله د خشوع مقدم کړیده په اداء د مانځه باندې په اول وقت کښې.

٦- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «لَاصَلٰوةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا هُوَ يُدَافِعُهُ الْاَخْبَثَانِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او عائشه رضی الله عنها فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دي چه فرمایل ئې: "مونځ نشته په وخت د حاضریدو د طعام کښې او نۀ په هغۀ وخت کښې چه دۀ له دیکه ورکوي دوه پلیت څیزونه (یعنی واړه اوغټ بول) (مسلمؒ)

تشریح: لَاصَلٰوةَ: دا نفی ده په معنیٰ د نهی ده لکه په روایت د ابوداود کښې «لا یصلی الرجل بحضرة الطعام» لفظ راغلی دې. او دلته ئې د طعام لفظ راوړو په دې کښې اِشاره ده چه مخکښې حدیث کښې چه عَشَاء ذکر وه نو هغه صرف یو فرد دې ددې عام نه او تخصیص د عَشَاء پورې نشته بلکه هر وخت چه طعام حاضر شي او مونځ دپاره اِقامت اُوشي نو طعام به مخکښې کوي.

يُدَافِعُهُ الْاَخْبَثَان: مدافعه باب مفاعله ده خاصیة ئې مشارکت دې. د «اَخْبَثَان» نه مراد بول وبَراز دی مطلب دا چه بول وبراز تا دَفعَه کوي او تۀ هغه دَفعَه کوې هغۀ ښکته زور کوي او تۀ بره زور کوې. او ددې مقدار دا دې چه ستا توجه خرابوي نو مونځ مۀ کوه او ځان فارغه کړه بیا مونځ اُوکړه او که داسې معمولي وي چه توجه کښې ئې فرق نه راوستو نو بیا جواز لري. که یو انسان بول وبراز ټینګ کړې وي او پدې حال کښې مونځ اُوکړي نو د جمهورو په نیز باندې مونځ صحیح دې خو مکروه دې او که وخت باقي وي نو اِعاده ئې مستحب ده. (امام نوویؒ) او اهل ظواهرؒ وائي مونځ باطل شو. او د ظاهر د اَحادیثو په بناء همدا قول ظاهر دې.

٧- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا أُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَلَا صَلٰوةَ إِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او ابوهریره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمائیلی دي: کله چه اِقامت د

مانځه اُوشي نو هيڅ قسمه مونځ نۀ کيږي سِوا د دغه فرضي مونځ نه (کوم دپاره چه اِقامت شوے دے) (مسلمؒ)

تشريح : اِذَا أُقِيمَتِ الصَّلٰوةُ : يعني د کوم مانځه دپاره چه اِقامت شويدے نو بس همدغه مونځ به اداء کولے شي نور مونځونه نۀ کيږي لکه په بل روايت د احمدؒ او طحاويؒ کښې دي : (الا التي اقيمت لها) نو ددے فائده دا ده چه د دغه فرض مانځه نه علاوه په بل مانځه باندے مشغوليدل حرام دي برابره ده که قضائي وي او که سنت او نفل وي۔ هر چه هغه مونځ دے چه انسان يواځے کړے وي او بيا د اِمام سره شامليږي نو دا نهي هغے ته نۀ ده شامله۔ ځکه دے باره کښې روستو حديث راغلے دے۔

نو دا حديث دليل دے چه د اِقامت د مانځه په وخت نفل مانځه کښې شروع کول ندي جائز، برابره ده که عام نوافل وي او که د سحر دوه رکعاته سنت وي۔(نيل الاوطار ۲/۳۴۰)

امام نوويؒ فرمائي : ددے حکمت دا دے چه د فرض مانځه دپاره د اَول نه فارغ شي نو د امام سره به په تکبير تحريمه کښې شامل شي او کله چه په نفل شروع وي نو تکبير تحريمه به ترے فوت شي۔ او بعض مکملات د فرضو به ترے فوت شي، نو فرض باندے په طريقه د کمال سره شروع بهتره ده د نوافل او سننو نه۔

بله وجه دا ده چه جماعت فرض دے او هغۀ نور نفل دي او د نفلو دپاره تاخير د فرضو خلافِ شرع دي۔ بله وجه دا ده چه دا اجتماعي عمل دے او هغۀ انفرادي او کله چه تعارض راشي د انفرادي او اجتماعي عمل نو اجتماعي عمل به مقدم کولے شي۔

## د سحر سنت د اقامت په وخت حرام دي :

اُوس که څوک بعد الاقامة سنن او نوافل کوي نو څه حکم به وي؟ نو پدے کښې اختلاف دے۔ ۱ – اهل ظواهر وائي کله چه اقامت وَاوري نو د سحر په سنتو کښې داخليدل دارنګه په نورو نوافلو کښې داخليدل برابره ده که مسجد کښې وي او که بهر د مسجد نه وي باطل دي او که دا کارئے اُوکړو، ګناهګار دے۔

علامه شوکانيؒ فرمائي : دا قول ابن حزمؒ د امام شافعيؒ نه او د جمهورو سلفو نه نقل کړيدے۔ او قرطبيؒ په "مُفهم" کښې د ابو هريرهؓ نه او خطابيؒ فرمائي : د عمر فاروقؓ نه نقل دي چه هغه به پدے دوه رکعاتو باندے خلق وهل کله چه به امام په مانځه کښې وو، او دا قول علامه عبد الرحمن مبارکفوريؒ په "تحفة الاحوذي" کښې راجح کړيدے۔ ۲ – شافعيؒ احمدؒ فرمائي : دا کار مکروه دے، علامه خطابيؒ د ابن عمرؓ، ابو هريرهؓ، او د سعيد بن جبيرؒ

ابن سیرینؒ، عروه بن الزبیرؒ، ابراهیم نخعیؒ او عطاءؒ نه نقل کړیدي او دا مذهب د شافعيؒ او احمدؒ دی۔ ظاهر دا ده چه شافعيؒ او احمدؒ د اهل ظواهرو په شان قول کوی۔

۳- احناف وائي : نور سنن به نهٔ کوی په غیر د سحر سنتو نه اګرکه یو رکعت لاندے کولے شی نو دا دوه رکعاته به کوی، دا هله چه مسجد کښ وی او که د مسجد نه بهر وی بیا دوه رکعاته کولے شی بغیر د څه شرط نه روستو به د امام سره شامل شی۔

٤- امام مالك وائي : که مسجد ته داخل شی د سنتو دپاره او اقامت اُوشی نو د امام سره به شامل شی او دا دوه رکعاته به په مسجد کښ نهٔ کوی او که مسجد ته نهٔ وی داخل نو که د یو رکعت فوت کیدو خطره نه وه نو دا به بهر اُوکړی او که د اول رکعت فوت کیدو خطره وه نو بیا به امام سره مانځه کښ شاملیږی۔

دلائل د احنافو : ۱- حدیث کښ دی : (لاتترکوهما وان طردتکم الخیل۔ رواه ابوداود رقم (۱۲۵۸) ۔ یعنی که آسونه دربانده خپی کیدی (د جهاد میدان وی) نو هم دا دوه رکعاته مهٔ پریدئ) استدلال داسے کوی چه دا په هیڅ وخت کښ پریخودل نشته تردے چه په جهاد کښ هم ددے پریخودل نشته۔

الجواب : دا روایت ضعیف دے په سند کښ ئے ابن سیلان لین الحدیث دے۔ ذهبيؒ فرمائي: مجهول راوی دے۔ بعض وائي نوم ئے عبد ربه دے۔ حافظ ابن حجر د ابن القطان الفاسی نه نقل کړیدی چه (حاله جهالة) مجهول راوی دے۔

شیخ البانيؒ په إرواء الغلیل (۱۸٤/۲) کښ فرمائي : (وله طرق اخری واهیة جداً) وضعفه عبد الحق الاشبیلی ایضاً ۔ او بعض احنافو ورته حسن وئیلے دے نو که ثابت شی نو بیا دا معارض نهٔ دے د هغه احادیثو سره چه روستو ذکر کیږی۔ وجه دا ده چه دلته اهمیت ددے سنت ذکر کوی، چه دا به په جهاد کښ هم نهٔ پریدے او مونږ خو بالکلیه دا نهٔ پریږدو بلکه قضائي راوړو نو تعارض نشته۔ او ددے د اهمیت نه خو دا نهٔ لازمیږی چه د فرض د مانځه د اُودریدو په وخت کښ به ئے هم کوے۔ نو مخکښ ورته باڅه او په سفر کښ ئے هم مهٔ پریږده۔ اوکه هر وخت درنه پاتے شو د مانځه نه روستو ئے قضاء راوړه یا د نمر خاته په وخت کښ ئے قضاء راوړه لهذا تعارض نشته والحمد لله۔

۲- دلیل : آثار د صحابه کرامو پیش کوی لکه ابن مسعودؓ راغلو او امام د سحر په مانځه ولاړ وو نو هغه دوه رکعاته یو ستنے ته اُوکړل (مجمع الزوائد (۱۷۲/۱) ورجاله موثقون)۔ او دغه شان عمل د ابودرداءؓ امام طحاوی (۲۵٦/۱) نقل کړیدے۔

ددے جواب کښ علامه عظیم آباديؒ په «إعلام اهل العصر فی احکام رکعتی الفجر»

کښې فرمائي : «ان في طبقة الصحابة ان كان ابن مسعود وابوالدرداء يريان جواز فعلهما فعمر بن الخطاب وعبد الله بن عمر وابوهريرة وابوموسى الاشعري وحذيفة لا يرون ذلك. اما عمر فيضرب الناس لاجلهاء وابنه عبد الله يحصب على من يصلي، وابوهريرة ينكر على ذلك، وابوموسى وحذيفة دخلا في الصف ولم يركعا كما ركع ابن مسعود، واما ابن عباس، فقد تعارض بين روايته وفعله، والحجة في روايته دون فعله، واما في طبقة التابعين ومن بعدهم من الائمة فان كان مسروق والحسن ومجاهد ومكحول وحماد بن ابي سليمان وابوحنيفة النعمان يرون ذلك، فسعيد بن جبير وابن سيرين وعروة بن الزبير وابراهيم النخعي وعطاء، والشافعي واحمد وابن المبارك واسحاق وجمهور المحدثين لايرون ذلك ، ولنعم ما قال ابن عبد البر : والحجة عند التنازع السنة فمن ادلى بها فقد افلح الخ » (المرعاة ۳/۱ ۰ ۵).

(يعنې که په صحابه کرامو کښې ابن مسعودؓ او ابودرداءؓ ددې رکعتينو د فعل قائل دی نو بل طرفته عمر فاروق او عبد الله بن عمر، ابو هريره، ابو موسى اشعري او حذيفه ﷺ دا جائز نهٔ ګڼړي. هرچه عمرؓ دې نو هغه به (د فرض مانځه د اُودريدوپه وخت) پدې دوه رکعاتو باندې خلق وهل، او د هغه ځوی عبد الله به په کانړو ويشتو هغه څوک چه دا دوه رکعاته پداسې وخت کښې کوي. او ابو هريرهؓ به پدې کار باندې اِنکار کولو او ابوموسیٰؓ او حذيفهؓ دواړه صف کښې داخل شو او دا دوه رکعاته ئې اُونکړل لکه څنګه چه ابن مسعودؓ اُوکړل.او هر چه ابن عباسؓ دې نو د هغه روايت او فعل متعارض راغلي دي او حجت د هغه په روايت کښې دې نهٔ په فعل کښې. او هرچه تابعين او نور امامان دي نو که مسروق، حسن، مجاهد، مکحول، حماد بن ابي سليمان او ابوحنيفه رحمهم الله – ددې د جواز قائل دي نو بل طرفته سعيد بن جبير، ابن سيرين، عروة بن الزبير، ابراهيم النخعي، عطاء، شافعي، احمد، ابن المبارك، اسحاق او جمهور محدثين (رحمهم الله) ددې په نهٔ کولو قائل دي.او ابن عبد البرّ ډيره ښهٔ خبره کړيده چه کله تنازع (او اختلاف) راشي نو ترجيح به سنت (مرفوع حديث) ته وي نو چا چه په حديثو دليل اُونيولو او هغهٔ ئې په دليل کښې پيش کړل نو هغه کامياب دې.“ اِنتهىٰ.

لهذا کله چه د صحابه کرامو د اقوالو اختلاف راغلو نو مرفوع حديث ته رجوع کول لازم دي. او ددغه صحابه کرامو دا عمل مخالف دې د مرفوع احاديثو او کله چه د يو صحابي عمل د مرفوع حديث خلاف ثابت شي نو هغې له به اعتبار نهٔ وي او هغه به پدې کار کښې معذور ګڼړلې شي او يا به د هغهٔ اجتهاد وي يا به ورته مرفوع حديث نه وي رسيدلې، يا به ورله بل صحيح محمل طلب کړې شي.لکه دا مذهب د اهل السنة

والجماعة دي۔ اُوس ددې آثارو كوم ځائې تعارض دې ؟ نو د ديارلس احاديثو سره ددې تعارض دې بعض دا دي :

١- يو دا حديث الباب دې (اذا اقيمت الصلاة فلا صلاة الا المكتوبة)۔

٢- دويم : حديث د مسلم (١/٢٤٧) كښ عبد الله بن سرجس ﷺ فرمائي : «يو سړے مسجد ته راداخل شو او رسول الله ﷺ په سحر مانځه ولاړ وو نو دهٔ دوه ركعاته په جانب د مسجد كښ اُوكړل بيا د رسول الله ﷺ سره په مانځه كښ شريك شو كله چه رسول الله ﷺ سلام واړولو، وے فرمايل : (يا فلان! بأي الصلاتين اعتددت ابصلاتك وحدك ام بصلاتك معنا؟) ۔(اے فلانيه ! كوم مانځه ته تا اعتبار وركړو آيا هغه مونځ چه ځانله دې اُوكړو او كه هغه مونځ چه مونږ سره دې اُوكړو؟)۔

امام نوويؒ فرمائي : پدے حديث كښ رد دے د هغه چاچه وائي كه انسان ته معلومه وه چه اول ركعت يا دويم ركعت لاندے كولے شي نو سنت به كوي۔

٣- دليل : بخاري (١/٩١) او مسلم (١/٢٤٧) كښ عبد الله بن مالك بن بحينه ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ يو سړے اُوليدو (يعني مالك بن بحينه) او اقامت شوے وو چه دوه ركعاته ئے كول كله چه رسول الله ﷺ سلام واړولو خلق په هغه (سړي) راجمع شو نو هغه ته رسول الله ﷺ فرمايلي وو (آالصبح أربعاً) (آيا د سحر څلور ركعاته فرض دي) معنیٰ ددے حديث دا ده چه نبي ﷺ په مالك باندے تيريدو نو او اقامت شوے وو نو د هغه په غوږ كښ ئے دا خبره اُوكړه چه آيا سحر څلور ركعاته فرض دي چه هلته اقامت شوے دے او ته دلته په سنتو ولاړ ئے نو تا خو سنت د فرضو په شان اُوكنړل۔

نو صحابه كرامو د مالك نه تپوس كولو چه تا ته رسول الله ﷺ په غوږ كښ څهٔ اوويئيل : هغهٔ ورته دغه الفاظ ذكر كړل۔ دا حديث هم صريح دليل دے پدے چه كه جماعت لاندے كولے شي هم دا دوه ركعاته به د اقامت نه پس نهٔ كوي۔

پدے حديث او د عبد الله بن سرجسؓ په حديث كښ امام طحاويؒ يو غلط تاويل كريدے چه نبي ﷺ پدے صحابو رد ځكه اُوكړو چه دوي دا دوه ركعاته د خلقو نه روستو متصل صف كښ كول نو مشابهت راتلو د اتصال د سنتو د فرضو سره په يو مكان كښ او دا خو زمونږ په نيز هم مكروه دي خو كه چرته سنت د مسجد په آخر طرف كښ اُوكړي او بيا د هغه ځائے نه نقل شي اول طرف د مسجد ته راشي نو دا جائز دي»۔

نو وجه د غلطئ دا ده چه پدے خبره باندے هيڅ دليل نشته چه د مسجد د روستو جانب نه مخكښ جانب ته نقل شي نو سنت جائز دي پدے انتقال باندے هيڅ دليل نشته ځكه

چه دا انتقال په يو قدم اخستو سره هم كيدے شي او دارنګه دا فصل په خبرو كولو سره هم كيدے شي۔نو بيا دے هغۀ هم ددۀ په نيز جائز شي۔ دارنګه پكار ده چه دا خبره په سنت د ظُهر (ماسپښين) كښې هم اُوشي، او حال دا چه د سنتو په ځائے كښې فرض اداء كول جواز لرى بغير د فصل نه۔ ظاهر دا ده چه د فصل نه مراد فصل بالزمان دے چه د اقامت او د سنتو ترمينځ به فاصله وركولے شي او متصل د اقامت په وخت به نشي اداء كولے۔

دارنګه په حديث د عبد الله بن سرجسؓ كښې په روايت د مسلم كښې صراحةً (فصلى فى جانب المسجد) الفاظ راغلى دى : يعنى د مسجد په يو جانب كښې ئے سنت اُوكړل) نو پدے سره تاويل د طحاويؒ باطل شوځكه چه پدے كښې فصل بالمكان راغلے دے، او بيا هم نبى ﷺ هغه منع كړو) او دغسے رد په طحاويؒ باندے علامه عبد الحى اللكهنويؒ په التعليق الممجد ص (٨٦) كښې كړيدے : « چه د طحاويؒ دا خبره يو خو بے دليله ده او بله دا چه د بعض رواياتو خلاف ده »۔ كما مر۔

٤- دليل : ابن عباس ﷺ فرمائى : « د مانځه دپاره اِقامت اُوشو نو يو سړے سنتو ته پاڅيدو، رسول الله ﷺ هغۀ د جامو نه راخكلو او دا ئے ورته اُوفرمايل : (أَتُصَلِّي الصُّبْحَ اَرْبَعًا؟)۔ ( آيا تۀ د سحر مونځ څلور ركعاته (فرض) كوے) اخرجه احمد قال الهيثمي ورجاله رجال الصحيح مجمع الزوائد (٥/٢) ۔

٥- دليل : رسول الله ﷺ اُوفرمايل : كله چه اقامت د مانځه اُوشي نو هيڅ مونځ نۀ كيږي سوئ د فرض مانځه نه نو صحابه كرامؓ عرض اوكړو قيل : يارسول الله ا ولا ركعتى الفجر ؟ قال : ولا ركعتى الفجر۔ (يارسول الله! آيا د سحر سنت هم (د اِقامت نه پس) نۀ كيږي، نبى ﷺ اُوفرمايل : د سحر سنت هم نه كيږي۔)

اخرجه البيهقى (٤٨٣/٢) واسناده حسن ـ فتح البارى (١١٨/٢) وتحفة الاحوذى (٣٩٨/٢) وقال الزرقانى والحافظ ابن حجر اسناده حسن وصححه السيوطى فى التوشيح على البخارى۔ دا صريح نص دے فكر پكښې اُوكړه۔

٦- ابوموسىٰ اَشعرى ﷺ فرمائى : رسول الله ﷺ يو سړے اُوليدو چه د سحر دوه ركعاته ئے كول په هغه وخت چه مؤذن په اِقامت كښې شروع شوے وو نو رسول الله ﷺ د هغه په اُوګو باندے چونډاره اُولګوله او دا ئے ورته اوفرمايل : (الا كان هذا قبل ذا ؟) ۔(دا سنت تا ددے اقامت نه مخكښې ولے نۀ كول؟)۔

اخرجه الطبرانى فى الكبير ورجاله موثقون كما فى المجمع (٧٥/٢)

٧- طبرانىؒ او ابويَعلىٰ ( باسناد رجالهُ ثِقات) سره د ابن عباسؓ نه نقل كوى : «چه د سحر

مانځه اِقامت أوشو نو زهٔ پاڅیدم دا دوه رکعاته مې کول مخکښې د فرضو نه نو رسول الله ﷺ زما لاس أونیولو او رائې خکلم او وې فرمایل : (أَتُصَلِّي الصُّبْحَ أَرْبَعًا ؟)۔
(آیا تهٔ سحر څلور رکعاته فرض کوې) (یعنې تا خو سنت د فرضو نه ډیر آهم أوګرځول څکه پرې فرض خرابوې) مجمع الزوائد (٧٥/٢) والمحلی (١٥٠/٢)

٨- عمر فاروق ﷺ به پرې خلق وهل۔ (بیهقی ٤٨٣/٢) مصنف عبد الرزاق (٤٣٦/٢) ۔

٩- نافعؒ فرمائي : عبد الله بن عمر ﷺ یو سړې أولیدو چه د مؤذن د إقامت په وخت ئې دوه رکعاته کول نو هغهٔ په کانړو أوویشتو او دا ئې ورته أوفرمایل : (أَتُصَلِّي الصُّبْحَ أَرْبَعًا)۔(آیا تهٔ د سحر مونځ څلور رکعاته کوې) مصنف عبد الرزاق (٤٣٦/٢) والبیهقی (٤٨٣/٢)

١٠- بیهقی (٤٨١/٢) د جعفر بن محمد عن أَبِيهِ نه نقل کړیدی : چه نبی ﷺ راداخل شو په هغه وخت چه د سحر مانځه دپاره اقامت شوې وو نو په ابن القشبؓ باندې راتیر شو چه هغه په مانځه ولاړ وو۔ ورته ئې اوفرمایل : اې ابن القشب ! (أَتُصَلِّي الصُّبْحَ أَرْبَعًا؟) (آیا تهٔ د سحر څلور رکعاته فرض کوې) دا حدیث مُرسل دې خو د ابن مالك بن بحینهٔ نه ئې متصل هُم راوړې دې۔

١١- ابو هریرهؓ به دا فتویٰ ورکوله چه د إقامت نه بعد هیڅ قسم مونځ نهٔ کیږی۔
محلی (١٥٣/٢)۔

١٢- ابن عمر ﷺ به دا کار پخپله کولو چه د إقامت په وخت به ئې سنت پریخودل۔ (محلی ١٥٤/٢) د ایوب سختیانی، طاووس، ابراهیم نخعی، مسلم بن عقیل، هشام بن عروه، سعید بن جبیر، میمون، سعید بن المسیب او عطاء رحمهم الله- نه آثار موجود دی چه هغهٔ په محلیٰ د ابن حزمؒ (١٥٢/٢) او ابن ابی شیبه (٧٧/٢) کښې کتلې شی۔

١٣- دلیل : انس بن مالك ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ پداسې حالت کښې رااُووتو چه إقامت د مانځه شوې وو، (فرأى ناساً يُصَلُّونَ بِالعَاجلَةِ فَقَالَ : أَصَلَاتَانِ مَعًا؟ فَنَهَى أَنْ تُصَلِّيَا فِي الْمَسْجِدِ اذا أُقِيمتُ الصلاة)۔(نو څه خلق ئې أولیدل چه په جلتئ جلتئ ئې دا دوه رکعاته کول۔ ورته ئې أوفرمایل : « آیا دوه مونځونه یو ځائې کوئ » نو په مسجد کښې ئې ددې دوه رکعاتو نه منع أوکړه کله چه إقامت أوشی) ابن خزیمة (١٧٠/٢) مسند البزار (مرعاة) عمدة القاری (٧١١/١٢) نو دا صریح نص دې چه د اقامت په وخت په مسجد کښې دوه رکعاته سنت کول حرام دی او په احنافو صریح رد دې چه په مسجد کښې دا دوه رکعاته د إقامت په وخت جائز ګنړی۔

نو حاصل دا شو چه دا دوه رکعاته د إقامت په وخت کښې کول سُوچه حرام دی او ددې

نصوصو خلاف کول دی برابره ده چه مسجد کښ وی او که بهر وی، قرائت اُوری یا نهٔ اَورِی، یا د رکعت موندلو گمان وی یا نهٔ وی۔ او د مسجد په ابتداء کښ وی او که د ستنې شاته وی۔ پدے ټولو صورتونو کښ د دغه نصوصو مخالفت راځی۔ بلکه محققین احنافو هم دیته مکروه او بَد وئیلی دی۔

علامه عبد الحی اللکهنویؒ په التعلیق الممجد ص (۸٦) کښ فرمائی : لکن یخفی علی الماهر ان ظاهر الاخبار المرفوعة المنع۔ انتهیٰ (ماهر سړی باندے دا خبره نهٔ پټیږی چه د مرفوع اَحادیثو په ظاهر کښ منع راغلې ده ددغه دوه رکعاتو نه په وخت د اِقامت کښ)

۲- په محیط کښ دی : یکره هذا کله یعنی الصلاة فی داخل المسجد سواء خلف الاسطوانة، اوعند باب المسجد خلف الصف لانه بمنزلة المسجد الواحد، مخلصاً عین الهدایة (۷۳۰/۱) (پدے ټولو صورتونو کښ دا دوه رکعاته مکروه دی که په مسجد کښ د ستنې شاته وی یا د صف نه روستو د مسجد په دروازه کښ وی ځکه دا په منزله د یو مسجد دی) (عین الهدایه)

نو پدے تحقیق سره د ابن الملك او عینیؒ خبره باطله شوه چه هغوی وائی : « اذا اقیمت الصلاة فلا صلاة الا المکتوبة » ددے د عموم نه سنت د فجر خاص شویدی پدے قول د نبی ﷺ چه «لاتدعوهما وان طردتکم الخیل» ځکه پدے کښ جمع د دواړو فضیلتونو ده، جَمع به هم رالاندے شی او سُنت به هم پاتے نشی۔ دا خبره ځکه غلطه ده چه ددے عموم نه تخصیص صحیح نهٔ دے ځکه چه صراحةً نهی راغلې ده د سنت د سحر نه په وخت د اقامت کښ چه هیڅ قسم تاویل او احتمال نهٔ قبلوی لکه حدیث د ابن سرجسؓ او ابو موسی الاشعریؓ او ابن عباسؓ او انس بن مالكؓ تیر شو۔

او که ددے صریح نهی نه روستو ئے څوك خاص كوی نو دا معاند دے د سنت او متعصب او مُفرط دے، د خپل مذهب مدافعت کوی او په اَحادیثو راخیژی، او هر چه د دواړو فضیلتونو موندلو خبره ده نو هغه ممکن ده ځکه چه اول دِے جَمعه کښ شامل شی او بیا دِ د سلام نه روستو قضائی راوړی ځکه د قضاء دپاره همدا وخت هم مستحق دے۔ بله دا چه دغه روایت ضعیف دے او په ضعیف حدیث تخصیص کول صحیح نهٔ دی۔ ددے مسئلې تفصیل په المرعاة (۵۰۰/۳) او فتاوی الدین الخالص (۱٦۷/۵) کښ د تفصیلی دلائلو سره اُوکوره۔

---

۸- وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: « إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ أَحَدِكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا

يَمْنَعُهَا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائي : نبي ﷺ فرمائي : «کله چه تاسو نه د يو تن نه ښځه مسجد ته د تلو اجازت غواړي نو نهٔ دې ئې منع کوي». (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : دا حکم هم باقي دے نهٔ دے منسوخ شوے. صرف فقه حنفي کښې ليکي : ځوانه ښځه دې نهارې مونځونو لره نهٔ راځي ځکه زمانه خرابه شويده، فتنه ولاړيږي.

دليل پيش کوي چه عائشهٔ فرمائي : (لو ان رسول الله ﷺ رأى من النساء ما اَحدَثْنَ لَمَنَعَهُنَّ من المسجد کما مُنِعَتْ نِسَاءُ بني اِسرائيل) (بخاري ومسلم) (که رسول الله ﷺ د زنانو حالت ليدلے وے نو د مسجد نه به ئې منع کړي وے لکه څنګه چه د بني اسرائيلو ښځې منع شوے وے) نو ددې نه معلوميږي چه د زمانې په تبدل سره تبدل په أحکامو کښې راځي.

الجواب : دا د عائشې رأيه ده او رسول الله ﷺ نهٔ ددے ښځو حالت ليدلے دے او نهٔ ئې منع کړيده لهذا په خپل اصل حالت باندے حکم پاتے شو او بدل نشو. دارنګه عائشې صراحت په منع باندے ندے کړے. دارنګه نبي ﷺ ته خو دا پته وه چه روستو زمانه کښې به فسادات ډيريږي لکه هغهٔ فرمائيلي هم دي: (ما ترکت بعدي فتنة أضرَّ على الرجال من النساء) (په سړو باندے د زنانو نه لويه فتنه بله نشته) او دے باره کښې ئې ډير ارشادات بيان کړيدي او سره ددينه ئې زنانه د مسجد نه ندي منع کړي، او که نبي ﷺ ته پته نه وه نو الله ته خو پته وه هغه به خپل نبي ته خبر ورکړے وے چه روستو زمانه کښې به فساد پيدا کيږي دا زنانه د مساجدو نه منع کړه (وما کان ربك نسياً) دين خود الله دے.

★ – دارنګه فساد خو د بعض زنانو نه واقع کيږي نهٔ د ټولو نه نو که چا کښې فساد وي پکار ده چه هغهٔ منع شي نو صحيح خبره دا را اُووتله چه فساد ته کتل پکار دي که په يوه زنانه کښې فساد وي نو هغه منع کول پکار دي دا وجه ده چه زنانه مساجدو ته راتلے شي خو په يو څو شرطونو سره چه هغه ورته بيان شي نو فساد ګره ښځه به پخپله منع شي.

او صحابه کرامو به ددے حديث خلاف نهٔ کولو او دا هم بعض صحابه کرامو ته بد ښکاره کيده چه ښځه مسجد ته لاړه شي پدے وجه د عمر فاروق ﷺ ښځه مسجد ته تله هغه به بده ګڼړله ليکن منع کولے ئې نشوه نو په يو ماسخوتن کښې ورته په لاره کښې کيناستو او شکل ئې ورته بدل کړو او لاس ئې ورله يوړو او بيا پټ شو، نو ښځه ئې اُوديريده او منع شوه. چا ورته اُووئيل : اُوس مسجد ته ولے نه ځې؟ هغې اُووئيل : زمانه خرابه شوے ده.

## د زنانو مسجد ته د تلو شرطونه

هغه شرطونه دا دي : ۱ – زنانه به دا یقین لري چه کور کښې مونځ بهتر دے د مسجد نه لکه په حدیث کښې راغلي دي : (وبیوتهن خیر لهن)

۲ – عطر او خوشبوئي به نهٔ استعمالوي، نرئ او ښائسته براقه جامه به نه اَغوندي چه د خلقو زړونه راکاږي ورنه بیا به زانیه (زناکاره) حسابه شي لکه روستو حدیثونو کښې به راشي۔

۳ – د خاوند نه به اِجازه طلب کوي او خاوند به اِجازه ورکوي او خاوند خو همیشه کور کښې نهٔ وي نو پدے وجه به نشي تلے او دا شرط پدے حدیث کښې راغلے دے (اذا استأذنت)

٤ – پرده کښې به ځي ډول او سنګار به نهٔ ښکاره کوي۔

۵ – سړو سره به یو ځائے صف نهٔ تړي۔

٦ – د امام د سلام نه روستو به سمدستي د مسجد نه اُوځي چه د سړو سره په لاره شریکے نهٔ شي۔ ۷ – د سړو سره به په لارو کښې اختلاط (ګډون) نهٔ کوي۔

۸ – د لارے په مینځ به نهٔ ځي۔ ۹ – دا عقیده به ساتي چه روستني صفونه افضل دي۔

۱۰ – پرده کښې به ځي، چه د خلقو د فتنے سبب نهٔ شي۔ دا ټول شرطونه حدیثو کښې راغلي دي کوم چه ددے شرطونو پابندي نه وه نو نهٔ به ځي او حکمت په اجازه کښې دا دے چه دین به زده کړي، اخلاق به ئې ښه شي د نورو زنانو به نصیحت واخلي نو دا مصالح معارض دي د فتنے سره نو پدے وجه شریعت دے مصالحو ته اُوکتل او منع ئې اُونکړه او دا مصالح په فتنه باندے غالب دي۔

او پدے کښې د ځوانو او بوډئ ګانو فرق نهٔ شته بلکه ټولے زنانه په دغه شروطو وتلے شي۔ او کوم علماء چه فرق کوي د هغوی سره صحیح معتمد دلیل نشته۔ راجع فتاوی الدین الخالص (۱۸۱/۵)

الی المسجد قید ئې اولګولو اشاره ده چه بازار ته ئې منع کولے شي۔

---

۹ – وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَتْ : قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ فَلَا تَمَسَّ طِيْباً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او د عبد الله بن مسعودؓ بی بی زینب رضی الله عنها فرمائي: رسول الله ﷺ مونږ ته اُوفرمایل : «کله چه یو ستاسو نه مسجد ته حاضریږي نو خوشبوئي دے نهٔ لګوي»۔ (مسلمؒ)

تعارف د زینب امرأة عبد الله : دا زینب بنت معاویه یا بنت ابی معاویه یا بنت عبد الله بن معاویه بن عتاب بن الاسود ده، د ثقیف قبیلے نه ده او د ابن مسعود زوجه بی بی ده، صحابیه ده د نبی ﷺ نه، او ابن مسعود او عمر بن الخطاب نه ئے روایتونه نقل کړی دی۔ علامه کلاباذیؒ فرمائی: ددے نوم رائطه دے او په زینب باندے مشهوره ده۔

تشریح : پدے حدیث کښ یو شرط دے، چه زنانه مسجد ته ځی نو عطر او خوشبوئی به نهٔ لګوی ځکه خوشبوئی شهوات راپورته کوی، نو خلق به فتنه کښ واقع کړی او یا به خپله په فتنه کښ واقع شی ۔او المسجد لفظ نه دا معلومیږی چه کور کښ ورله خوشبوئی لګول جائز دی۔ او دلیل دے چه زنانه مسجد ته تلے شی خو په شروطو۔

ابن دقیق العیدؒ فرمائی: د خوشبوئی په حکم کښ هرهغهٔ شے دے چه هغهٔ سبب د شهوت راپورته کولو وی لکه ښائسته جامے، برقع، او ښائسته هیئت جوړول او هغهٔ ګاڼړهٔ اچول چه د هغے آثر ښکاره کیږی۔ او طیباً ئے نکره راوړه دے دپاره چه هر قسم خوشبوئی ته شامل شی۔ (تحفة الاحوذی ۳/ ۱۳۱)

---

۱۰ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« اَیُّمَا امْرَأَةٍ اَصَابَتْ بُخُوْرًا، فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَآءَ الْآخِرَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« کومه زنانه چه بُخور (یعنی خوشبوئی) اُولګوی نو هغهٔ دے زمونږ سره ماسخوتن مانځه ته نهٔ حاضریږی»۔ (مسلمؒ)

تشریح : الْعِشَآءَ الْآخِرَةَ : نه مراد د ماسخوتن مونځ دے یعنی کله چه زنانه مسجد ته ماسخوتن کښ راځی نو خوشبوئی به نهٔ لګوی، هر قسم خوشبوئی ته شامل ده، عطر وی او که لونګ وی یا خوشبویه تیل وی ځکه دا ډیر د فتنے وخت دے تیاره ده، لاره خالی ده او زنانه خوشبوئی هم لګولے ده نو کیدے شی چه منافقان او فاسقان به ګوتے ووړی۔

پدے حدیث کښ دا قید د عشاء احترازی نه دے بلکه عام اوقاتو کښ زنانه که بهر اوځی نو هغے له خوشبوئی لګول حرام دی خو دلته د عشاء قید اتفاقی دے، او دا قید ئے د زیات قباحت دپاره لګولے دے چه پدے کښ فتنه ډیره ده۔ مطلق هم راغلے دے نو مطلق به په خپل اطلاق جاری وی۔ لکه مخکښ تیر شو۔

بخور: د یو شی د سیزلو نه لوګے اخستلو ته وائی۔ دلته ترے مراد مزیداره خوشبوئی ده چه د یو شی د سیزلو په وجه راپورته کیږی۔ مراد ترے نه هر قسم خوشبوئی ده۔ اګرکه د

بُخور نه بَره درجه کښې وي هغهٔ به هم پکښې داخل وي بلکه هر هغهٔ شے چه د شهوات راپورته کولو سبب وي هغه هم پدے کښې داخل دي۔

## الفصل الثاني

١١ – عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَاتَمْنَعُوْا نِسَاءَ كُمُ الْمَسَاجِدَ، وَبُيُوْتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: ابن عمر رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « مهٔ منع کوئ ښځے خپلے د مساجدو نه او د هغوي کورونه د هغوي دپاره بهتر دي»۔ (ابوداودؒ)

تشریح : کله چه زنانه ته اُووئيل شي چه ستا دپاره په کور کښې مونځ بهتر دے نو هغه بيا مسجد ته په هله آسانه نهٔ ځي مگر که د دين زدهٔ کولو او بيان او وعظ اَوريدو دپاره ځي نو بيا بهتره ده۔او په کور کښې ورله مونځ ځکه بهتر دے چه پدے کښې دا د فتنے نه پخپله هم محفوظ وي او بل هم په کښې نهٔ اَچوي۔ او پدے کښې بل شرط ذکر دے۔ چه کور کښې مونځ به بهتر گنړي۔

امام ابن جريرؒ فرمائي: « زنانو دپاره جماعت ته حاضريدل مستحب دي هرکله چه شارع دوي ته د مستحب په حاصلولو کښې اجازت ورکړو نو کوم کار چه فرض وي لکه گواهي اَداء کول يا دين زده کول، يا مؤکد مستحب کار وي لکه د يو د مور او پلار جنازے ته حاضريدل شو نو دا به په طريق اولیٰ جائز وي »۔ (فيض القدير ١/٩٣) للمناويؒ۔

درجة الحديث: اسناده صحيح : اخرجه احمد (٧٧،٧٢/٢) وابوداود (٥٦٧) والحاكم في المستدرك (٢٠٩/١) وقال صحيح على شرطهما۔

---

١٢ – وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «صَلٰوةُ الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا، وَصَلٰوتُهَا فِيْ مِخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ بَيْتِهَا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي: نبي ﷺ فرمايلي دي :« د زنانه مونځ په کوټه کښې ډير بهتر دے دے د مانځه نه په صحن کښې او د زنانه مونځ وړوکي کوټه کښې ډير بهتر دے د مانځه دے نه په کولاوه کوټه کښې» ۔ (مسلمؒ)۔

تشریح : بيت هغهٔ کوټے ته وائي چه د خوب دپاره تياره شوي وي او حجره منلو (صحن) ته وائي او مُخدع (په ميم باندے ضمه، فتحه، کسره درے واړه اعرابه وئيل جائز

دي) هغه وړوکې کوټې ته وائي چه په لويه کوټه کښې دننه وي لکه د باورچي خانې پشان، چه هغې کښې قيمتي سامانونه ساتلې شي د "خَدَعَ" نه ماخوذ دے په معنی د پټولو د يو شي سره۔ يعنې خزانه د کوټې ۔ مخدع اصل کښې د دوکې کوټې ته وائي چه غل رانوځي بهر سامان ويسي او هغه کوټه ترے پټه وي۔

حاصل د حديث دا دے چه مونځ د زنانه د بهر منډو نه په غټه کوټه کښې بهتر دے او د غټې کوټې نه دننه په وړه تنګه کوټه کښې بهتر دے ځکه چه پرده د زنانه په دوه قسمه ده يو د خلقو نه او بله پرده لِحَقِ الصلاة ده دا د الله حق دے چه زنانه به پرده کوی اګرکه هيڅوك موجود نهٔ وي، او پدے کار سره زنانه د فتنے نه هم بچه په امن کښې وي۔

درجة الحديث : اسناده علي شرط مسلم اخرجه ابوداود (۵۷۰) والحاكم في المستدرك (۲۰۹/۱) وقال : هذا حديث صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه ووافقه الذهبي۔

---

۱۳- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: اِنِّيْ سَمِعْتُ حِبِّيْ اَبَا الْقَاسِمِ ﷺ يَقُوْلُ: «لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ امْرَأَةٍ تَطَيَّبَتْ لِلْمَسْجِدِ حَتّٰى تَغْتَسِلَ غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ » . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَرَوٰى اَحْمَدُ والنسائيُّ نَحْوَهٗ۔

---

ترجمه : او ابوهريره ﷺ فرمائي، ما د خپل محبوب ابوالقاسم ﷺ نه آوريدلی چه فرمايل ئے : « دهغهٔ زنانه مونځ نهٔ قبليږي چه د مسجد د تلو دپاره خوشبوئي لګوی تردے چه غسل اُوکړي لکه څنګه چه د جنابت نه غسل کيږي» ۔ (ابوداودؒ) او احمدؒ او نسائيؒ ددے په شان روايت نقل کړے دے۔

تشريح : حِب په معنی د محبوب دے، د حديث مطلب دا دے چه زنانه که بهر مسجد وغيره دپاره ځي نو داسے خوشبوئي به نهٔ لګوی چه بوئي لري او په خلقو لګي ځکه دے کښې فساد دے او کهٔ رنګ والا خوشبوئي اُولګوی چه په چا نه لګي او هسے رنګ وي نو دا خير دے، لکه دويم جلد کښې به حديث راشي (طيب الرجال ما خفي لونه وظهر ريحه وطيب النساء ما ظهر لونه وخفي ريحه) (د سړو خوشبوئي کښې به رنګ نه وي او بوئي به لري او د زنانو خوشبوئي به برعکس وي) (ترمذي، نسائي باسناد صحيح)

غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ : ددے مطلب دا دے چه زنانه دپاره دا زجر دے چه کله ئے خوشبوئي اُولګوله نو هغه به لامبي او د جنابت په شان غسل به کوی چه ټول آثار د خوشبوئي ختم کړي ځکه چه دے ډير نقصان کريدے، ددے خوشبوئي به په داسے خلقو ورغلي وي چه

هغـه بـه بې واده وي نو د هغوي فكرونه به ئې خراب كړي وي. او د ټول بدن د وينځلو امر ځكه شوې دې چه په هغهٔ زمانه كښې به خوشبوئي په بدن كښې لړول كيده.

او ترڅو چه هغې باندې خوشبوئي پرته وي نو ددې مونځ نهٔ قبليږي، يعني ثواب به ورته په مانځه نهٔ وركولې كيږي اګركه فرض ئې ساقط شو او قضاء پرې نشته ليكن د زجر دپاره ئې د نفـي د ثـواب نـهٔ تـعبير اُوكړو په نفي د قبول سره دې دپاره چه زنانه اُويريږي. (فيض القدير شرح الجامع الصغير ۳/ ۲۰۰) للمناوي.

درجة الحديث : اسـنـاده صـحـيـح : اخرجه احمد (۲/ ۲٤٦) (۲۹۷) (۳٦٥) (٤٤٤) وابـو داود (٤١٧٤) (۸/ ۱۵۳) وابـن مـاجـه (٤٠٠٢) اخرجه البيهقي في الكبرى (۳/ ۱۳۳) باسنادين احدهما صحيح، يصح به الحديث لان رواية ابي داود فيها عاصم بن عبيد الله و به يضعّف الحديث لكن الطريق الذي عند البيهقي يصح به الحديث.

---

١٤ – وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ، وَاِنَّ الْمَرْأَةَ اِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ، فَهِيَ كَذَا وَكَذَا يَعْنِيْ زَانِيَةٌ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَلِاَبِيْ دَاوٗدَ وَالنَّسَائِيِّ نَحْوَهٗ.

ترجمه : ابو موسیٰ ؓ فـرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « هره ستركه زنا كونكې ده (كـلـه چـه هغـهٔ پردئ زنـانـه تـه پـه بد نظر ګوري) او يقيناً زنانه چه كله عطر اُولګوي او په يو مجلس (د سړو) ورتيره شي نو دا داسې داسې ده يعني زنا كاره ده ». (ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ)

تشريح : كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ :هـره سـتـركـه زنـاكـاره ده كله چه پردي عورتونو ته ګوري، پردو زنـانـو تـه ګوري يعني هره ستركه چه پردئ زنانه ته د شهوت په طور اُوګوري نو دا زنا كاره شـوه او پـدې كـښې عـام خـلـق مبتـلا دي. والـعـيـاذ بالله. د عبادتونو خوندونه ددې وجه نه ختـميږي. او كله چه زنانه عطر اُولګول او په يو مجلس تيره شوه دا زناكاره ځكه شوه چه دا اګركه د زنا نه خبره نهٔ ده، ښهٔ ښځه ده، زړهٔ كښې ئې هيڅ شهوت نشته.

ليـكـن دا د بل چا د زنا دپاره سبب اُوګرځيده هغهٔ ستركه به دې ته ګوري نو هغهٔ ستركه ددې پـه وجـه زنـاكاره شوه. ځكه په مجلس كښې به بد عمله، بې وادهٔ خلق وي هغوي ته به غـلـط سُـوچـونه راشي او بيا به ددې زنانه يا د نورو زنانو په طلب كښې اُوځي نو هغه ئې په زنا كښې مبتـلا كړو كه دا نهٔ وې راښكاره شوې نو د هغه خلقو توجه به دې طرفته نه وې.

نو دې حـديث نه عموم معلوم شو چه جمات ځه كې چه زنانه به هسې هم د خوشبوئي

په حالت نه اُووځي۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٤/٤٠٠) والدارمي (٢/٢٧٩) والترمذي (٢٧٨٦) وقال حديث حسن صحيح وابوداود (٤١٧٣) والنسائي (٨/١٥٣) لكن دون قوله كل عين زانية واخرجه الحاكم (٢/٣٩٦) وقال صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبي۔

---

١٥ – وَعَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَوْمًا الصُّبْحَ، فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ: « أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟ ». قَالُوْا: لَا. قَالَ: «أَشَاهِدٌ فُلَانٌ؟» قَالُوْا: لَا. قَالَ: «إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ، وَلَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا لَأَتَيْتُمُوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الرُّكَبِ، وَإِنَّ الصَّفَّ الْأَوَّلَ عَلٰى مِثْلِ صَفِّ الْمَلَائِكَةِ، وَلَوْ عَلِمْتُمْ مَا فَضِيْلَتُهُ لَابْتَدَرْتُمُوْهُ، وَإِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ، وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ، وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

ترجمه: او اُبي بن كعب ﷺ فرمائي : مونږ ته يوه ورځ رسول الله ﷺ د سحر مونځ اُوكړو، كله ئې چه سلام واړولو وې فرمايل : « آيا فلانے شخص حاضر دے؟ » صحابه كرامو اُوفرمايل : نۀ، وې فرمايل: آيا فلانے شخص حاضر دے، صحابه كرامو اُووئيل : نۀ، نبي ﷺ اُوفرمايل : « دا دواړه مونځونه په منافقانو باندے د ټولو نه زيات دَرانه دي، او كه تاسو ته معلومه شي هغه ثواب چه پدے دواړو مونځونو كښې دي، نو تاسو به دے ته راغلي وے اګركه د زنګونو په خپوړو سره وے، او يقيناً اول صف د ملائكو د صف په شان دے او كه تاسو ته معلوم شي هغۀ غوره والے چه پدے كښې دے نو تاسو به ورته په جلتئ سره راتللے۔ او د سړي مونځ د يو سړي سره ډير ثواب والا دے د ځانله مانځه د هغۀ نه۔ او د سړي مونځ د دوه سړو سره ډير ثواب والا دے د يو سړي سره د مانځه نه او څومره چه (مقتديان) زيات وي نو هومره الله ته زيات محبوب وي »۔ (ابوداود، نسائيؒ) ۔

تشريح : أَشَاهِدٌ فُلَانٌ ؟ : د يو منافق سړي باره كښې ئې تپوس اُوكړو بيا ئې د بل منافق باره كښې تپوس اُوكړو۔ هركله چه ورته جواب په نفي ملاؤ شو نو دغه ارشاد ئې اوفرمايلو چه دا دوه مونځونه يعنې ماسخوتن او سحر مونځ په منافقانو درانه دي۔
او هاتين الصلاتين كښې اشاره ده د ماسخوتن او سحر مانځه ته سحر خو حاضر دے او هرچه ماسخوتن دے نو هغۀ ددے سره په ابتداء كښې متصل دے۔ يا دا چه د سحر د وجه نه

د ماسخوتن مونځ یادیږي ځکه چه ماسخوتن مونځ آخر دے او سحر مونځ اول دے۔ یا ځکه چه ماسخوتن د سحر مقابل دے ځکه چه ماسخوتن مونځ اِبتداء د خوب دے او سحر مونځ اِختتام د خوب دے۔

او حدیث نه دا فائده حاصلیږي چه امام له پکار دي چه د خپلو مقتدیانو د احوالو تپوس اوکړي او د هغوی د حال نه ځان خبر کړي۔ او بیا هغوی ته ترغیب ورکړي۔ او د هغوی د بد فعل نه نور خلق متنبه (خبردار) کړي۔

«أثقل» ئې اُووئیل اشاره ده چه مومنانو ته هم دا عمل مشکل وي ځکه دے ته راپاڅیدل ګران دي مګر په طبیعت ئې ګران نه وي۔ بد ئې نهٔ ګنړي۔ ځکه یو ثقل دے بل مشقت دے، مؤمن باندے مشقت وي لیکن ثقل نهٔ وي لهذا اعتراض به نهٔ کیږي چه دا مونځ خو مومن ته هم ګران وي۔

وَلَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا فِيْهِمَا : سوال : مونږ ته خو دا فضیلت معلوم دے او بیا هم عام انسانان سحر جَمعے له نه راځي؟۔ الجواب : «لو تعلمون »نه مراد تفصیلي علم دے یعنی که تاسو ته ددے تفصیلي خیرونه معلوم شي نو بیا به ورته ضرور راتلے او مونږ ته اِجمالاً علم دے ۲ – یا «لوتعلمون» نه مراد (لوتعلمون علماً یقینیاً) یعنی که تاسو ته په علم یقیني سره معلومه شي او پدے خبره مو یقین پیدا شي نو ضرور به راځئ او هر کله چه مونږ عمل نه کوو معلومیږي چه یقین نشته۔ او پدے کښې کامل ترغیب دے چه منافقان پدے خبره یقین او تصدیق نهٔ کوي ځکه دے مونځونو ته نهٔ راځي نو مومنانو له پکار دي چه پدے باندے یقین اُوکړي او دے مونځونو ته په هره طریقه حاضري ورکړي چه د منافقانو د طور او طریقے نه محفوظ شي۔ او دا دوه مونځونه خاصکر منافقانو ته ځکه مشکل وي چه دا په مشکل وخت کښې ادا کیږي د خوب وخت وي او د هغوی په زړه کښې دیني جوش او داعي نه وي موجود او د هغوی مقصد (ریاء) په کښې نه حاصلیږي ځکه تیاره وي خلق ئې نهٔ ویني او زړهٔ کښې ئې خو ایمان نه وي نو ځکه ئې طبیعت باندے بد لګي۔

عَلٰى مِثْلِ صَفِّ الْمَلَائِكَةِ : یعنی اول صف الله ته داسے قریب دے او د شیطان نه وړاندے دے لکه څنګه چه د ملائکو صفِ اول ته نزدے وي۔ علامه طیبیؒ لیکي: صفِ اول چه امام ته نزدے وي دا ئې مشابه کړو د صف د ملائکو سره چه الله ته نزدے وي۔

لَابْتَدَرْتُمُوْهُ : یعنی که تاسو ته د صف اول فضیلت تفصیلاً معلوم شي نو تاسو به ورته د یو بل نه په جلتئ سره راتلے او د یو بل نه به مو مخکښې والے کولے۔

وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى الله : ۱ – ما موصوله ده په معنی د مانځه سره او ضمیر لفظ د ما

ته راجع دے یعنی هغهٔ مونځ چه خلق پکښې ډیر شامل وی هغهٔ الله ته زیات محبوب دے۔
۲ – یا (ما) په معنیٰ د موضع (ځائے) سره دے۔ یعنی هر هغهٔ ځائے د مساجدو نه چه په هغے کښې مونځ کونکی زیات وی هغهٔ ډیر اَفضل دے۔
دا حدیث دلیل دے چه اَقل د جماعت دوه کسان دی یو مقتدی او بل امام۔ او کومه جَمعه چه غټه وی په هغے کښې اَجر زیات دے۔
پدے حدیث کښې مسئله دا ده چه یو غټ مسجد دے خو لرے دے بل قریب مسجد دے خو وړوکے دے نو پدے کښې حق د خپلے محلے مسجد دے اگرچه وړوکے وی جَمعه کښې خلق کم وی۔ او ددے په باره کښې یو حدیث په سلسلة الاحادیث الصحیحة کښې شیخ البانیؒ راوړیدے۔ ځکه که هر سړے غټ مسجد ته ځی نو وړوکے مسجد به شاړ شی، او که دواړه مسجدونه یو شان مسافت کښې وی نو بیا ډیر نفری والا مسجد ته تلل بهتر دی۔ او که قریب مسجد کښې بدعات کیږی او مونځ پکښې په سنت طریقه نهٔ کیږی نو بیا بعید مسجد ته تلل پکار دی۔ د بدعاتو د وجه نه د خپلے محلے جومات پریخودے شی۔ اگر که عملی بدعتی پسے مونځ جائز دے۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه ابوداود (٥٥٤) واحمد (١٤٠/٥) وعبد بن حمید فی المتنخب (١٩٦/١ رقم : ١٧٣) والنسائی (١٠٤/٢) وابن خزیمة فی صحیحه (١٤٧٦) وابن حبان (٢٠٥) والحاکم فی المستدرك (٢٤٧/١ ـ ٢٤٨) وله شاهد قوی فی الطبرانی قاله الحافظ۔

---

١٦ – وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : « مَا مِنْ ثَلَاثَةٍ فِيْ قَرْيَةٍ وَلَا بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيْهِمُ الصَّلَاةُ، إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ، فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ، فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ ». رواهُ اَحْمَدُ وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او ابودرداء ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « نشته درے کسان په یو کلی یا په یو بانډه کښې چه په هغوی کښې مونځ (د جماعت) سره نهٔ قائمیږی، مگر په هغوی باندے به شیطان غلبه کوی، نو په تا باندے جماعت (رانیول) لازم دی ځکه چه شرمخ هغه ګډه خوری چه (د رَمے نه) وړاندے وی »۔ (اَحمدؒ، ابوداوٗدؒ، نسائیؒ)۔
سبب ورود الحدیث : دا حدیث ابودرداء ﷺ په یوه موقعه کښې معدان بن ابی طلحة ته اُوویلو چه د هغهٔ نه ئے تپوس اُوکړو چه ستا کور چرته دے ؟ نو معدانؒ ورته اُوویل: د حمص نه مخکښې په یو کلی کښې نو ابودرداء ﷺ ورته اُوفرمایل : (خبردار) ما د رسول الله

ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمایل ئې : او دغه ارشاد ئې ورته ذکر کړو۔او په روایت د احمد کښې ورسره دا الفاظ زیات دی : (فعلیك بالمدائن ویحك یا معدان) (ښاریو کښې اُوسیږه چه مونځونه درنه خراب نۀ شي) مقصد ئې هغۀ ته ترغیب او تیزي ورکول وو چه جماعت درنه فوت نۀ شي۔ ورنه شیطان به دریاندې مسلط شي۔

او مطلب د حدیث دا دې چه کوم ځائې چه درې کسان وي او جماعت نۀ قائموي نو شیطان به په هغوی مسلط شي او د هغوی نه به د الله ذکر هیر کړي۔ نو جماعت لازم نیول پکار دی۔دا دلیل دې چه شیطان به په یواځې مونځ کونکی باندې زیات مسلط کیږي۔خاصکر کوم کس چه عادت وي په یواځې مانځه باندې۔ د جماعت نه مراد د مونځونو جماعت هم دې او جماعت د مسلمانانو او خلافت اسلامی هم دې۔ نو کله چه انسان د مسلمانانو د جماعت خوا له ځي راځي نو شیطان ورته وسوسې نشي اَچولې او کله چه یواځې شي نو بیا د وسوسو او غلطو دعوتونو ښکار شي۔ دا وجه ده سفر کښې اِنسان ته وسوسې زیاتې وي ځکه یواځې شوې وي۔ او دغه شان که څوك د مسلمانانو د عقیدې نه علاوه نورې عقیدې او اَعمال ایجاد کړي نو په دۀ باندې به هم شیطان ضرور تسلط کیږي۔د اولې معنیٰ دلته مناسبت ډیر دې۔ دا حدیث دلیل دې چه جماعت قائمول فرض دی ځکه د شیطان د تسلط نه ځان ساتل فرض دی۔

« قَرْيَةٍ » نه پس ئې « بدو » ذکر کړو ځکه، قَریه کښې خلق زیات وي جامع وي او بَدْو کښې خلق کم وي او مصر کښې د قریه نه زیات وي۔ بَدْو، بَادِیَة، بَادَاة، او بَدَاوَة خلاف د ښاریه ته وائي۔

فَعَلَيْكَ : دا خطاب هر مخاطب ته دې او تخصیص د یو مخاطب ئې اُونۀ کړو دپاره د تفخیم او تعظیم۔

اَلْقَاصِیَةَ : قاصیه هغه ګډې ته وائي چه د رَمې نه وراندې شوې وي، یا روستو ترې پاتې شوې د وجه د حرص نه نو شرمخ دا ماته کړي ځکه د شپونکي د سترګو نه غافله شوې وي۔ نو څوك چه یواځې مونځونه کوي او جماعت پریدي نو دغه باندې به شیطان دغه شان مسلط کیږي۔

او « ثلاثة » ئې ذکر کړل ځکه دا په عام حالاتو کښې بغیر د جُمعې نه اَقله کامله درجه د جماعت ده ۔ اِشاره ده که دومره کم خلق وي نو هم جماعت به قائموي او نن صبا اُوګورئ لوئې لوئې کلې وي په سوونو خلق په کښې راجمع وي او بیا هم جماعتونه نۀ کوي او هر سړې ځانله ځانله مونځ کوي دا ډیر غټ جرم دې او د شیطان په تسلط کښې اَخته شوې دی۔

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (١٢٦/٥) وابوداود (٥٤٧) والنسائی (١٠٦/٢-١٠٧) وابن خزيمة (١٤٨٦) وابن حبان (٢٠٩٨) والحاكم فی المستدرك (٢٤٦/١) وقال النووی : اسناده صحيح۔

١٧ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ سَمِعَ الْمُنَادِیَ فَلَمْ يَمْنَعْ مِنِ اتِّبَاعِهٖ عُذْرٌ». قَالُوْا: وَمَا الْعُذْرُ؟ قَالَ:«خَوْفٌ اَوْ مَرَضٌ، لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلاةُ الَّتِیْ صَلّٰی» . رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ، وَالدَّارِقُطْنِیُّ.

ترجمه: او ابن عباس ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « څوك چه د آذان كونكى نه (اذان واورى) او د هغهٔ د تابعدارى (يعني مسجد ته د تلو نه او جماعت كښ د شريك كيدو نه) ئے څهٔ عذر منع نهٔ كړى، خلقو تپوس اُوكړو : عذر څهٔ شے دے؟ نبى ﷺ اُوفرمايل : « يَره او مرض ـ نو ددهٔ نه به قبول نهٔ شى هغه مونځ چه كوم دهٔ اُوكړو »۔ (ابوداودؒ، دارقطنیؒ)

تشريح : مِنِ اتِّبَاعِهٖ : يعني د اذان كونكى اتباع اُونكړى د هغه دعوت عملاً قبول نكړى، او اَوريدل د اذان دا په طريقه د غالب دے ځكه چه غالباً اذان اوريدلے شى كه چا نهٔ وى اوريدلے هم راځى به۔ خوف نه مراد په ځان باندے يره، يا په عزت، يا په مال وغيره باندے يا د ظالم د ظلم نه هيريږى نو دا عذر دے په ترك د جماعت كښ او مرض نه مراد دومره مرض دے چه د هغے سره مسجد ته حاضريدل ورته تكليف وركوى، طاقت نهٔ لرى۔

لَمْ تُقْبَلْ : دلته قبول نه مراد په نزد د جمهورو دا دے چه ثواب به ورته نهٔ ملاويږى اگركه ذمه ئے فارغه كيږى، او امام ترمذیؒ فرمائي: بعض اهل علم فرمائي: دا حكم بناء دے په تغليظ او تشديد باندے۔ او د داود ظاهریؒ او ابن حزمؒ په نيز معنیٰ دا ده چه مونځ ئے بالكل باطل دے، او په هغه باندے پاتے دے۔نو عدم قبول په معنیٰ د عدم صحت سره دے۔والاول اَرجح۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٥٥١) وابن ماجه (٧٩٣) والدارقطنی (٤٢٠/١رقم ٤) والحاكم فی المستدرك (٢٤٦/١) قال الالبانی الحديث صحيح بدون زيادة السؤال والجواب ای (من سمع النداء فلم يجبه فلا صلاة له الا من عذر) اخرجه ابن ماجه والحاكم وقال صحيح على شرط الشيخين ووافقه الذهبی وهما كما قالا۔ (ضعيف الترغيب والترهيب رقم (٢٣٠) وتمام المنة (ص ٣٢٧) وله شواهد كثيرة۔

١٨ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَرْقَمَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اِذَا اُقِيْمَتِ الصَّلاةُ

وَوَجَدَ اَحَدُكُمُ الْخَلاءَ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلاءِ ». رواهُ التِّرمِذِيُّ، وَرَوىٰ مَالِكٌ، وَاَبُوْدَاوٗدَ وَالنَّسائِيُّ نَحْوَهٗ.

ترجمه : او عبد الله بن ارقم ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چه فرمايل ئې : « كله چه د مانځه إقامت اُوشي او يو تن په تاسو كښې د قضاءِ حاجت ضرورت مومي نو هغه دِې اَول قضاءِ حاجت باندې شروع اُوكړي » (اگركه ددهٔ نه جَمعَه ترك شي) (ترمذيؒ، مالك، ابو داودؒ، نسائيؒ)

تعارف د عبد الله بن ارقم رضي الله عنه :

بن عبد يغوث بن وهب بن عبد مناف القرشي الزهري مشهور صحابي دے د نبي ﷺ د ماما نمسے دے ځكه عبد يغوث د آمنې وُرور دے، او دهٔ د فتح مكې په ورځ ايمان راوړے دے او د نبي ﷺ بيا د ابوبكرؓ او عمرؓ كاتب پاتے شويدے او دا د عمر فاروقؓ او عثمانؓ په خلافت كښې په بيت المال مقرر وو بيا ئې د عثمانؓ نه إستعفاء طلب كړه نو هغه ورله استعفاء قبوله كړه، سائب بن يزيد او عبد الله بن عتبه فرمائي : ما د عبد الله بن اَرقم نه د الله نه زيات يريدونكے څوك نهٔ دے ليدلے۔ او عبد الله بن زبيرؓ فرمايلي دي : نبي ﷺ د عبد الله بن اَرقم نه د ليكلو مطالبه اُوكړه نو هغه به د نبي ﷺ د طرفنه بادشاهانو ته د خطونو جوابونه وركول او د نبي ﷺ سره دومره امانتدارئ ته اُورسيدو چه هغه به ورته حكم اُوكړو چه بعض بادشاهانو ته خطونه اُوليكي نو هغه به ليكل او مهر به ئې پرې وهلو او د نبي ﷺ په هغه دومره اِعتماد وو چه هغه به ئې نهٔ لوستل۔ حافظ منذريؒ په «مختصر السنن» كښې فرمائي : ددهٔ نه صرف دا يو حديث نقل دے۔ او د عثمانؓ په دور خلافت كښې وفات شويدے۔ او ابن حبانؒ په «ثقات» كښې ليكي : د ربيع الاول په مياشت كښې په سنه (٦٤ هـ) كښې وفات دے۔ مگر دا غلطي ده۔

تشريح : فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلاءِ : دا په هغه وخت كښې دے چه انسان دے ته حاجت لري او ددے په پريخودو سره ئې په مانځه كښې توجه خرابيږي او كه معمولي شان گيس وغيره وي نو دا خو د انسان هميشه وي نو بيا به جماعت نه پريدي۔

او دا حديث دليل دے چه د جماعت د پريخودو يو عذر دا هم دے چه انسان ته قضاء حاجت تقاضئ رامينځ ته شي۔ او كه په همدے حالت كښې مونځ اُوكړي نو اكثر ائمه كرامؒ فرمائي : مونځ ئې اُوشو سره د كراهت نه۔ علامه ابن حزمؒ فرمائي: مونځ ئې باطل دے ځكه د نص خلاف ئې اُوكړو۔ امام مالك فرمائي : مستحب دا ده چه اعاده ئې اوكړي كه

وخت باقي وي او كه وتلې وي. (التمهيد ٢٢/٢٠٤)
درجة الحديث :اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (٤٩) واحمد (٤٨٣/٣) والدارمي (٣٣٢/١) وابوداود (٨٨) والترمذي (٢٤٢) وقال : حديث حسن صحيح، والنسائي (١١٠/٢) وابن ماجه (٦١٦)

١٩ - وَعَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:« ثَلَاثٌ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ اَنْ يَّفْعَلَهُنَّ: لَا يَؤُمَّنَّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ دُوْنَهُمْ، فَاِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ، وَلَا يَنْظُرُ فِيْ قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ اَنْ يَّسْتَأْذِنَ، فَاِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ خَانَهُمْ، وَلَا يُصَلِّ وَهُوَ حَقِنٌ حَتّٰى يَتَخَفَّفَ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوَهٗ.

ترجمه: او د ثوبان ﷺ نه روايت دے فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: « درے خيزونه دي، حلال نهٔ دي هيچا له چه هغهٔ اُوکړي. ١-امامتي نهٔ کوي يو شخص يو قوم ته چه ځان په دعاء سره خاص کړي بغير د هغوی نه (يعنی صرف ځان ته دعاء کوي او مقتديانو ته ئے نهٔ کوي) کهٔ دا کارئے اُوکړو نو يقيناً د هغوی سره ئے خيانت اُوکړو. ٢- دويم : نهٔ کوري مينځ د يو کور ته مخکښ د اِجازت طلب کولو د هغوی نه نو کهٔ دا کار اُوکړي نو يقيناً د هغوی سره ئے خيانت اُوکړو. ٣- او مونځ نهٔ کوي په داسے حال کښ چه متيازو له بندونکے وي تردے چه سپك شي». (په بول براز کولو سره) (ابوداودؒ، ترمذيؒ)

تشريح : دلته اِشکال دے چه امام بانـدے دا فرض دي چه مقتديانو ته به په دعاء کښ نومونه اَخلي نو دا څنګه خبره ده، مونږ خپل ځان ته دعا اُونکړه نو مقتديان خو لا په ځائے پريده ؟. الجواب : حافظ ابن خزيمهٌ په خپل صحيح کښ فرمائي : د نبي ﷺ نه دعاء په لفظ د اِفراد ثابته ده په (اللهم اهدني فيمن هديت- او اللهم باعد بيني وبين خطاياي) سره ددے نه معلوميږي چه ددے حديث دا اَوله جُمله موضوع ده. ليکن دا جواب ضعيف دے.

٢- حافظ ابن قيمٌ په « زاد المعاد» کښ ليکي چه ما د شيخ الاسلام ابن تيميهٌ نه اَوريدلي دي چه دا خاص دے په دعاء د قنوت نازله پورے چه په هغے کښ به امام ځان او مقتديانو او ټولو خلقو ته دعاء کوي. انتهیٰ . او علامه عزيزيؒ هم وئيلي دي : « دا خاص دے په دعاء د قنوت پورے په خلاف د دعاء د اِفتتاح او رکوع او سجده او جلوس بين السجدتين او تشهد کښ چه هغے کښ تخصيص جائز دے». اِنتهیٰ.

٣- دريم دا چه ددے نه مراد هغه دعاګانے دي چه په مانځه کښ دي لکه (اهدنا الصراط المستقيم) وغيره چه پدے کښ به امام د مقتديانو نيت هم کوي او دا بعض دعاګانے

اګرکه په صیغه د مُفرد دی لیکن نیت د جمع به کوی او لفظ د جمع به د ځان نه نهٔ استعمالوی سنت به نهٔ بدلوی۔ (تحفة الاحوذی)۔

٤- یا مطلب دا دے چه صرف ځان ته دعاء اُوکړی او د نورو خلقو نه نفی اُوکړی لکه « اِرْحَمْنِیْ وَمُحَمداً وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا اَحَداً » پشان، نو بیا داسے دعاء منع ده، مثلًا داسے اُووائی چه اے الله ! ما ته بخنه اُوکړه او مقتدیان به خپل کار کوی یا ئے هغوی ته مهٔ کوه، ځکه دلته « دُوْنَهُمْ» راغلی دے نو تخصیص منع دے۔

وَلَا یَنْظُرُ فِیْ قَعْرِ بَیْتٍ : یعنی د چا د کور مینځ ته به بے اِجازته نهٔ ګوری یعنی هغه مکان ته به نهٔ ګوری چه هغه ئے د خلقو نه پټ کړے وی ځکه دا خیانت دے، هغوی ئے ددهٔ نه پټ ساتی او دا پکښې په سوړو کښې ګوری او دا داسے دے لکه چه د هغهٔ کور ته بے اِجازے داخل شی۔ د یو بل روایت نه معلومیږی چه جلد ثانی کښې به راشی چه که چا بے اِجازته یو کور ته په سوړو او چاودونو کښې اُوکتل نو هغه خلقو له پکار دی چه ددهٔ نه سترګه اُوباسی او په دهٔ باندے دیت هم نشته۔ مګر که دروازه کولاوه وه نو بیا که وے کتل څهٔ حرج به پرے نهٔ وی بلکه کور والا له پکار دی چه خپله پرده زوَرنده کړی او دروازه بنده اُوساتی۔ ځکه په کولاوُ ځائے به نظر بے اِختیاره لګی۔

وَهُوَ حَقِنٌ : د فَعِلٌ وزن دے صفت مشبه ده،حَاقِن او حَقِنٌ هغه اِنسان ته وائی چه بولو زور ورکړے وی او دهٔ په تکلیف سره بندے کړی وی، او حَاقِب هغه ته وائی چه غټ بول ئے بند کړی وی۔ او دلته حَاقِن دواړو بندولو ته شامل دے۔

طیبیؒ لیکی چه مونځ د الله سره د مناجات او د تقرب ذریعه ده او د غیر نه مشغول کیدل دی او حاقن (بولو تینګ کړے) انسان د مانځه متعلق د ځان سره خیانت کوی، او د مانځه دواړو حالتونو مینځ کښې ئے د اِجازت مسئله راوړه ځکه چه په دے کښې د حق الله او د حق العباد رعایت دے، او په حقوق العباد کښې ئے د اِستیذان مسئله خاص ذکر کړه ځکه چه ځوك ددے باریکے خبرے لحاظ ساتی نو ددے نه دبره مسئلے لحاظ به په طریقه اولیٰ ساتی۔اِنتهیٰ۔

حدیث دلیل دے د هغه چا چه وائی : چه ځوك د بول وبراز د شدت په حالت کښې مونځ اُوکړی، مونځ ئے باطل دے، ځکه نهی دلالت په فساد کوی۔ او جمهور وائی : نهی په فساد د منهی عنه دلالت نهٔ کوی بلکه صرف ګناهګار دے۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٢٨٠/٥) ابوداود (٩٠) والترمذی (٣٥٧) وقال حدیث حسن واخرج ابن ماجه القسم الاول المتعلق بتخصیص الامام نفسه بالدعاء (٩٢٣) وضعفه الالبانی لاضطرابه وجهالته (ومدار الحدیث یزید بن شریح وهو ثقة)

ولـكـن قال العلامة المباركفوری فی المرعاة (٥١٧/٣) وسكوت ابی داود عن حديثی ثوبان وابـی هـريـرة بـعد روايتهما يدل علی ان هذين الطريقين محفوظان صالحان للاحتجاج عنده واليه يميل قلبی انتهیٰ۔ بل قال الالبانی صحيح الا جملة الدعوة، (صحيح ابی داود)۔

---

٢٠ – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا تُؤَخِّرُوْا الصَّلٰوةَ لِطَعَامٍ وَلَا لِغَيْرِهٖ». رواهُ فِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ».

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائی، رسول الله ﷺ فرمايلی دی : «تاسو د طعام يا د بل څه وجه نه مونځ (د خپل وخت نه) مهٔ روستو کوئ»۔ (شرح السنة)۔

تشريح : دا حديث په ظاهر کښ مُعارض دے د مخکنی حديث (٦) چه هغه روايت کښ دی چه د روټئ د حاضريدو يا د بول د شدت په وخت کښ جَمعه پريده۔ او دلته وائی چه د روټئ او بولو په وجه مونځ مهٔ روستو کوئ۔ نو ددے درے جوابونه دی :

(١) اول جواب سندی دے چه دا روايت دومره قوی نهٔ دے او مخکنی روايتونه صحيح دی۔ (٢) دويم جواب دا چه ددوارو حديثونو تعارض نشته څکه د مونځ روستو کول دوه قسمه دی يو هغه دی چه د روټئ په وجه ئے د خپل وخت نه اُوباسی نو دا کار صحيح نهٔ دے او دويم دا چه صرف جماعت فوت شی او وخت باقی پاتے وی نو دا کار جائز دے۔ نو دلته د تاخير نه مراد د وخت نه ويستل دی۔

(٣) دريم جواب دا دے چه د انسان دوه حالته دی کله ډير تائق (شوقين) وی چه که روټئ اُونه خوری نو مونځ کښ ئے خشوع خرابيږی نو په دغه وخت کښ به روټئ مخکښ کوی او دويم هغه دے چه څه نا څه ګوزاره ئے کيږی لکه نن صبا خلق په مړه خيټه خوراکونه کوی، د تـلـذذ دپاره ئے خوری دومره وږے نه وی چه مونځ کښ ئے توجه خرابه شی نو بيا به مونځ نهٔ روستو کوی بلکه جَمعه به کوی۔(قاله الخطابی فی معالم السنن ٤/ ٢٤١)

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (٣٧٥٨) والدارقطنی (٢٦٠/١) وشرح السنة وعزو المؤلف للبغوی فی شرح السنة قصور منه رحمه اللّٰه۔ وقال المنذری فی اسناده محمد بن ميمون ابو النضر الكوفی الزعفرانی المفلوج، قال ابو حاتم الرازی والدارقطنی: لابأس به وقال ابن معين ثقة، وقال البخاری : منكر الحديث وقال ابوزرعة : كوفی لين۔ وقال الحافظ فی التقريب : صدوق له اوهام، فالظاهر ان حديثه هذا ليس مما لا يعتبر به، فيبلغ درجة الحسن۔

## الفصل الثالث

٢١ – عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنِ الصَّلَاةِ إِلَّا مُنَافِقٌ قَدْ عَلِمَ نِفَاقُهُ، أَوْ مَرِيْضٌ، إِنْ كَانَ الْمَرِيْضُ لَيَمْشِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ حَتّٰى يَأْتِيَ الصَّلَاةَ، وَقَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَلَّمَنَا سُنَنَ الْهُدٰى، وَإِنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى الصَّلٰوةَ فِي الْمَسْجِدِ الَّذِيْ يُؤَذَّنُ فِيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَلْقَى اللهَ غَدًا مُسْلِمًا، فَلْيُحَافِظْ عَلٰى هٰذِهِ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ، فَإِنَّ اللهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ سُنَنَ الْهُدٰى، وَإِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى، وَلَوْ أَنَّكُمْ صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوْتِكُمْ كَمَا يُصَلِّيْ هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ فِيْ بَيْتِهِ لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ، وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ، وَمَا مِنْ رَجُلٍ يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُوْرَ، ثُمَّ يَعْمِدُ إِلٰى مَسْجِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ، إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ بِكُلِّ خَطْوَةٍ يَخْطُوْهَا حَسَنَةً، وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً، وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً، وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ مَعْلُوْمُ النِّفَاقِ، وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتٰى بِهِ يُهَادٰى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتّٰى يُقَامَ فِي الصَّفِّ. رواهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : مونږ به خپل ځانونه لیدل چه د مانځه (د جماعت) نه به نهٔ پاتے کیدو مګر منافق چه د هغهٔ نفاق به معلوم وو او یا مریض (به پاتے کیدو) او یقیناً مریض به د دوه سړو په مینځ کښ (د هغوی په مدد) راروان وو تردے چه مانځه ته به راغلو۔ (دے نه بعد) عبد الله بن مسعود اُوفرمایل : رسول الله ﷺ مونږ ته د هدایت طریقے خودلی دی او د هدایت د هغهٔ طریقو نه مونځ کول دی په هغهٔ مسجد کښ چه په هغے کښ اذان کولے شی۔ او په یو روایت کښ دی : ابن مسعودؓ اُوفرمایل : چا لره چه دا خبره خوشحالوی چه صبا له (د قیامت په ورځ) الله سره په داسے حال کښ ملاؤ شی چه مسلمان وی نو هغهٔ دے محافظت کوی پدے پنځو مونځونو باندے په هغهٔ ځائے کښ چه ددے مونځونو دپاره اذان کولے شی (یعنی مساجدو کښ دے دا مونځونه د جماعت سره په پابندئ سره اداکوی) ځکه الله تعالیٰ ستاسو د نبی دپاره د هدایت طریقے مقرر کړی دی او دا پنځه مونځونه د جماعت سره کول هم د هدایت د طریقو نه یوه طریقه ده، او کهٔ چرے تاسو مونځونه په کورونو کښ کوئ (اګرکه جماعت سره وی) لکه څنګه چه دا روستو پاتے کیدونکے (منافق) په کور کښ مونځ کوی نو تاسو به د خپل نبی طریقه پریخی وی او کهٔ چرته تاسو طریقه د خپل نبی پریخوده نو ضرور به ګمراه شئ او نشته یو سړے چه پاکی (اَودس) اُوکړی او ښائسته پاکی اُوکړی بیا ددے مساجدو نه یو مسجد طرفته قصد

اُوکړي مګر الله به دهٔ له په هر قدم باندې چه دې ئې اَخلي يوه نيکي ليکي او ددې په وجه به ئې يوه درجه پورته کوي او ددې په وجه به ددهٔ نه يوه ګناه معاف کيږي، او مونږ خپل ځانونه ليدلي دي چه ددې مونځونو نه به صرف منافق پاتې کيدو چه د هغهٔ منافقت به معلوم وو، او يقيناً يو سړې (مريض) به مانځه ته راوستې شو (دومره به ضعيف او کمزورې وو) چه د دوو سړو ترمينځ به راخکلې شو(د هغوي په مدد به راتلو) تردې چه په صف کښې به اُودرولې شو۔(مسلمؒ)

تشريح : رَاَيْتُنَا : دا افعال قلوب دي د فاعل او مفعول ضميرونه پکښې جمع کيدل جائز دي اګرکه يو شي ته راجع وي، مګر بعض علماؤ وئيلي دي چه دلته اتحاد د فاعل او مفعول نشته ځکه چه فاعل نه يو متکلم مراد دې او د دويم ضمير د مفعول نه دا متکلم او غير مراد دي۔يعنې مونږ صحابو به ځانونه ليدل او ځانونه راته معلوم وو او پوهيدو به چه د جماعت نه به صرف منافق پاتې کيدو۔

او ددې حاصل معنیٰ دا کيږي چه (مونږ ليدلي دي)۔ دا دليل دې چه جماعت فرض دې ځکه د منافقت نه ځان ساتل فرض دي۔ او دا اګرکه قول د صحابي دې ليکن حکايت ئې کړيدې د حال د ټولو صحابو نه چه هغوي به ترک د جماعت منافقت ګڼړلو۔

او مريض نه مراد سخت مريض دې چه په راتلو به بالکل قادر نهٔ وو او لږ مريض به راتلو لکه روستو وائي۔ -- اِنْ کَانَ الْمَرِيْضُ : ان مخفف من المثقل دې۔په معنی د (اِنَّهٗ) دې۔معنیٰ ئې ده : شان دا دې يقيناً ضرور۔

لَضَلَلْتُمْ : دا حديث دليل دې په خطائي د قول د خلاصه کيداني چه سنت دې ته وائي چه په ترک ئې عتاب دې او عذاب نشته بلکه دلته وائي چه سنت چا پريخودل نو ګمراه دې، عذاب به خوري، يو مستحبات او نوافل دي چه د هغې په ترک باندې اِنسان نهٔ ګمراه کيږي هان که هغه هم سپك يا بَد اُوګڼړي نو بيا به ګمراه وي لکه د ماښام نه مخکښې دوه رکعاته مستحب دي خو که څوك ئې سپك ګڼړي يا وائي ز مونږ مذهب کښې نشته نو بيا به ضرور ګمراه وي۔ نو حديث دليل دې چه سنت (حديث) سره هم فرضيت ثابتيږي۔ځکه چه پيغمبر يو حکم اُوکړي او څوك هغه قصداً پريدي نو هغه نه به فرض پاتې وي۔

لَيَمْشِیْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ : يعنې دومره بيمار به وو او بدن به ئې کمزورې وو چه په دوه سړو به ئې تکيه لګولې وه او مسجد ته به روان وو۔ صحابه کرامؓ څومره په تکليف کښې هم جماعت نه دې پريخې او ز مونږ معمولي په سر درد وي، بس بهانه مو جوړه وي۔

سُنَنَ الْهُدٰی : (يعنې د هدايت طريقې دي)۔ دلته د فقهاؤ اِصطلاح نه ده مراد چه وائي يو

سنن هُدیٰ (زوائد) دی او بـل سنن مؤکد دی، بلکه د سنن هُدیٰ نه مراد پیغمبری طریقے دی، فرض، سنت او واجب ټولو ته شامل دے، نو شرعی اصطلاح به په خپله اصطلاح باندے نشی حمل کولے۔

یُهَادٰی : مُهَادَاة دیته وائی چه د دوه سړو په مینځ کښې روان وی د دواړو په اُوګو باندے ئے لاسونه اَچولی وی۔ یعنی ګوړ ووړ به راروان شوے وو۔ دا حدیث دلیل دے چه په هغهٔ مرض کښې بـه جماعت ته نهٔ راتلو چه وسع دِ نهٔ کیږی او چه وسع دِے کیده نو ضرور به راتلے اګرکه بیمار ئے۔

۲۲- وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، عَنِ النَّبِیِّ ﷺ قَالَ:«لَوْلَا مَا فِی الْبُیُوْتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالذُّرِّیَّةِ، أَقَمْتُ صَلٰوةَ الْعِشَاءِ وَاَمَرْتُ فِتْیَانِیْ یُحَرِّقُوْنَ مَا فِی الْبُیُوْتِ بِالنَّارِ». رَوَاهُ اَحْمَدُ.

ترجمه : او ابو هریره رضی الله عنه د نبی ﷺ نه نقل کوی چه هغهٔ فرمائی : «کهٔ په کورونو کښې زنانه او ماشومان نهٔ وے نو ما بـه د ماسخوتن مونځ قائم کړے وے او بیا به مے خپلو خادمانو ته حکم کړے وے چه دوی په اُور باندے اُوسوزی هغهٔ څهٔ چه په دے کورونو کښې دی»۔ (احمدؒ)

تشریح : دلته علت د نه سیزلو د کورونو راغلے دے چه د ماشومان او زنانو کیدل دی۔ځکه کـه دا کـور ورلـه اوسیزی اودوی پـکښې وی نـو بیا خو به بے ګناه خلقو ته ضرر اُورسوی او کـه دوی ترے بهر کړی نو بیا هم د دوی کور فوت کیږی۔ او دلیل دے چه تعزیر بالمال جائز دے، او دلیل دے چه جماعت ته حاضریدل فرض دی۔

مِنَ النِّسَآءِ بیـان د (ما) دے، دا دلیـل دے چه ما کلمه د ذوی العقولو او ذی روح دپاره هم استعمالیږی۔ ــــ فِتْیَانِیْ : فتیان خادمان او قوی ملګرو ته وائی۔

او تـخصیص د ماسخوتن مانځه پورے نشته بلکه غالباً منافقان ددے مانځه نه سُستی کوی ځکه ئے دا ذکر کړے دے۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف ومعناه صحیح : اخرجه احمد (٣٦٧/٢)وفی اسناده ابو معشر وهـو ضـعیف اسـمه نجیح بن عبد الرحمن السندی المدنی، وهو ضعیف اسن، واختلط (التقریب) وقـال ابوحـاتم : کـان احـمد یرضاه ویقول کان بصیراً بالمغازی قال : وکنت اهاب حدیثه حتی رأیـت احـمـد یـحـدث عـن رجل عنه فتوسعت بعد فیه، قیل له فهو ثقة، قال : صالح ، لین الحدیث محله الصدق۔ آه ومع ضعفه یکتب حدیثه فی الرقاق والتفسیر والتاریخ والقصص قال احمد اکتب حدیثه اعتبر به ـ وقد تأید حدیثه بما تقدم فی الفصل الاول مرعاة (٥٢١/٣)

۲۳ – وَعَنهُ، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«إِذَا كُنتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ فَلَا يَخْرُجْ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يُصَلِّيَ». رَوَاهُ اَحْمَدُ. ..................................................

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ مونږ ته حکم کړيدے : «کله چه تاسو په مسجد کښې موجود وئ او د مانځه دپاره اَذان اُوکړے شي نو تاسونه دِ يو تن د مونځ کولو نه بغير نهٔ اُووځي»۔ (أحمدٌ)

تشريح : مطلب دا دے چه تهٔ مسجد کښې ئے او اذان اُوشي نو بيا به نه اُوځے ځکه چه تا باندے دا حق شو ددے مسجد چه دلته به مونځ کوے اگرکه ته بل ځائے کښې جَمعه کوے خو بيا به هم نه ځے ځکه يو خو تهٔ حق د مسجد بربادوے او بل په تا باندے تهمت لگيږي په پريخودو د جماعت سره۔

اگرکه ددے نه فقهاؤ دا اِستثناء کړيده چه د عذر د وجه نه خارجيدے شي لکه يو سړے بل مسجد کښې اِمام وي يا مؤذن وي او ددهٔ د نهٔ ورتلو نه هغهٔ جَمعه خرابيږي نو بيا وتل جائز دي۔ دارنګه ددے په حکم کښې حاقن او رَاعِف او جُنب هم دے۔پدے استثناء باندے دليل پدے صورتونو کښې شته مګر د مؤذن او امام استثناء صرف اجتهاد دے۔

۲- دويمه مسئله دا ده چه يو مسجد د بدعتيانو دے، بدعت پکښې اُوشو او اذان پکښې تا واوريدو نو دے نه وتل جائز دي، لکه عبد الله بن عمر ﷺ په يو مسجد کښې وو او اذان شوے وو او تثويب ئے واوريدو نو دا ئے اُووئيل ما ددے بدعتيانو د مسجد نه اُوباسه۔ (بخاري)۔ دارنګه علي ﷺ په تثويب سره سړے د مسجد نه شړلے دے۔ مګر دا حکم په هغه وخت کښې دے چه کله بل سُني مسجد ملاويږي نو وتل پکار دي او که بل سُني مسجد نهٔ وي نو بيا د بدعتي پسے مونځ جائز دے۔

۳- يو اِنسان ځانله مونځ کړے او بيا ورباندے په مسجد کښې اذان اُوشو نو بيا به هم نه اُوځي ځکه چه دا جماعت به ستا دپاره نفل حساب شي لکه حديث د مِحْجَن روستو راروان دے۔ او که مونځ دِے نهٔ وي کړے نو هم حصاريږي به دا حديث پړے دليل دے۔ او اَحناف وائي : په مازيګر، ماښام او صبا کښې وتلے شي ځکه ددے نه روستو نوافل نهٔ کيږي او د هغوي په نيز درے رکعاته نفل نهٔ وي۔ ليکن دا د ظاهر د حديث خلاف دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٥٣٧/٢) واسناده حسن ورجاله ثقات وشريك تابعه المسعودي وقد صححه المنذري في الترغيب والترهيب (١١٥/١)

٢٤ - وَعَنْ اَبِی الشَّعْثَاءِ، قَالَ: خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا اُذِّنَ فِیْهِ، فَقَالَ اَبُوْهُرَیْرَةَ : اَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصٰی اَبَا الْقَاسِمِ ﷺ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او ابو الشعثاءؒ فرمائی : چه (یوه ورځ) د اذان کیدلو نه بعد یو شخص د مسجد نه اُووتلو نو ابو هریره ﷛: اُوفرمایل چه "دے شخص د ابو القاسم (یعنی رسول الله ﷺ) نافرمانی اُوکړه". (مسلم)

ابو الشعثاء ددهٔ نوم سُلیم بن اَسود بن حنظله المحاربی الکوفی دے په اتفاق سره ثقه دے د کبار اَوساط التابعین نه دے په زمانه د حجاج کښې وفات دے په سنه (٨٣ هـ) کښې۔

تشریح : په روایت د احمد کښې ورسره دا زیادت راغلے دے چه بیا ابو هریرهؓ اُوفرمایل : مونږ ته رسول الله ﷺ حکم کړے دے چه کله تاسو په مسجد کښې وئ او اذان اُوشی نو د مانځه کولو نه بغیر مهٔ اُوځئ) دغه مخکښے (٢٣) روایت ئے اُووئیلو۔

دا حدیث هُم دلیل دے چه د مَسجد نه د اَذان نه پس وتل بغیر د ضرورت نه د رسول الله ﷺ مُخالفت دے او سخته گناه ده او سړے پړے بَدی هم ښکاره کیږی، خو دا محمول دے په هغهٔ صورت باندے چه ضرورت نهٔ وی، او که شرعی ضرورت وی نو وتل جواز لری لکه مخکښې تیر شو او ابو هریرهؓ چه دهٔ ته د مخالفت نسبت اُوکړو نو کیدے شی چه هغهٔ ته معلومه وه چه ددهٔ ضرورت نشته او روان دے۔

د سعید بن المسیبؒ باره کښې راځی چه یو سړے مسجد نبوی نه وتلو دهٔ ورتل اُوفرمایل چه مهٔ اُووځه اذان شویدے، او نبی ﷺ ددے نه منع فرمائیلے ده، هغه ورته اُووئیل : ملگری رانه حج ته روان دی، زهٔ هغوی سره یو ځائے کیږم ، سعیدؒ خپلو ملگرو ته اُوفرمایل : اِنتظار کوئ دے سړی ته به ضرور څهٔ تکړ رسی، نودے د هغه په انتظار کښې وو چه خبر ورته راغلو چه هغه سړے په لار روان وو د اُوښ نه پریوتو او خپه ئے ماته شوه۔ نو سعیدؒ اُوفرمایل : ما تاسو ته نه وئیل چه دهٔ ته به د سنت د مخالفت په سبب ضرر رسی، چا چه قصداً مخالفت د سنت کړیدے هغه ته ضرر تکړ رسیدلے دے او په ځان پوهه شویدے۔ او د سنت د مخالفت په وجه ډیر واقعات داسے مشهور دی لکه یو مُلا په بصره کښې ابو هریرهؓ ته غیر فقیه وئیلو او حدیث د (مُصراة) ئے په عقل رد کولو نو مار راغلو په پینځه کښې ورننوتو ټول خلق ئے پریخودل او دهٔ پسے ئے منډے وهلے چا ورته اُووئیل توبه اُوباسه، ده چه توبه ئے اُووستله نو مار غائب شو۔ کما فی تعظیم السنة ص (١٥)

ابراهيم نخعيؒ فرمائي: «تر هغۀ وخت پورے وتلے شي ترڅو چه اقامت نۀ وي شروع شوے» ليکن دا قول د ابراهيمؒ د ظاهر ددے آحاديثو خلاف دے۔ځکه دا احاديث د اذان نه روستو مطلقاً د مسجد نه په وتلو کښې صريح دي، برابره ده مؤذن په اقامت کښې شروع کړي وي او کۀ نۀ مگر که ددۀ قول محمول شي په دے چه د يو سړي حاجت وي، معذور وي او اراده د رجوع لري نو بيا وتل جواز لري۔ (تحفة الاحوذي ٥١٨/١)

مسئله : کله چه صحابيؓ اووائي : « چا چه دا کار اُوکړو هغه د رسول الله ﷺ مخالفت اُوکړو » نو آيا دا به مرفوع حديث وي او که موقوف؟ صحيح او راجح دا ده چه دا مرفوع حکمي حديث دے۔ (کما في شرح النخبة لابن حجر)۔

---

٢٥ – وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«مَنْ أَدْرَكَهُ الْأَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ، ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ، وَهُوَ لَايُرِيْدُ الرَّجْعَةَ، فَهُوَ مُنَافِقٌ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه: او عثمان بن عفان ؓ فرمائي : چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « هغۀ څوك چه اَذان ئے په مسجد کښې رالاندے کړي او بيا هغۀ ( بغير د څۀ ضرورت نه) د مسجد نه اُووځي او څۀ حاجت دپاره نۀ وي وتلے او بيرته د واپس کيدو اراده ئے (هم) نۀ وي نو دا منافق دے»۔ (ابن ماجة)

تشريح : ده ته ئے منافق پدے وجه اُووئيلو چه ده د منافقانو کار اُوکړو چه جماعت پريدي او مخلص مُومن داسے کار نۀ کوي۔ او حاجت نه مراد شرعي ضرورت دے لکه خيته کښې ئے درد شي يا ناڅاپي بيمار شي وغيره وغيره نو په دے صورت کښې په وتلو کښې به گناهگار نۀ وي۔

درجة الحديث : الحديث صحيح واسناده ضعيف : اخرجه ابن ماجه (٧٣٤) وفيه عبد الجبار بن عمر وهو ضعيف عن ابي فروة واسمه اسحاق بن عبد الله وهو ضعيف جداً وقال البوصيري وهو في صحيح مسلم وغيره وله شاهد قوي عند الطبراني في الاوسط ويشهد له مرسل سعيد بن المسيب الخ المرعاة (٥٢٣/٣) وتعليق المشكاة لرمضان (٤٤٦/١)

---

٢٦ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْهُ، فَلَا صَلَاةَ لَهُ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

ترجمه : او ابن عباس ؓ د نبي ﷺ نه روايت کوي چه نبي ﷺ اُوفرمايل : « چا چه

اذان واوريدو او د هغې اِجابت ئې اُونهٔ کړو (مانځه له رانهٔ غلو) نو د هغهٔ مونځ نهٔ کيږي مګر که عذر وي». (دارقطنيّ)

تشريح : د حديث مطلب دا دے چه څوك اذان واوري يا خبر شي چه اذان شويدے او مسجد تـه د مانځـه دپاره رانشي نـو د هغـه دغـه مونځ نـهٔ کيږي کلـه ئې چه عذر نـهٔ وي. حديث دليل دے چه څوك جَمعے ته نهٔ حاضريږي د هغه مونځ باطل دے او نهٔ صحيح کيږي او دا د جمهورو د مذهب خلاف دے نو هغوی پکښ دا تاويل کوی چه کامل مونځ ئې اُونـه شو يا ئې اَجر اُونه شو. بيا د عذر نه شرعي عذر مراد دے، د ځان نه به قصداً عذر نهٔ راپيدا کوی، بعضِ خلق قهوے سکلو دپاره جماعت پريدی او ديته ضرورت وائی. دا کار غلط دے، دين کښې باکي دہ.

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابن ماجه (٧٩٣) والدارقطني (ص١٦١) وقال الحافظ في بلوغ المرام : اسناده على شرط مسلم وكذا قال الحاكم على شرطهما وقال في التلخيص ص (١٢٣) اسناده صحيح.

٢٧- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُمِّ مَكْتُوْمٍ، قَالَ: يَارَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ الْمَدِيْنَةَ كَثِيْرَةُ الْهَوَّامِ وَالسِّبَاعِ، وَأَنَا ضَرِيْرُ الْبَصَرِ، فَهَلْ تَجِدُ لِيْ مِنْ رُخْصَةٍ ؟ قَالَ: «هَلْ تَسْمَعُ : حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ؟» قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: «فَحَيَّهَلَا» . وَلَمْ يُرَخِّصْ (لَهُ) . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

---

ترجمه : عبد الله بن اُم مکتوم ﷺ اُوفرمايل: اے د الله رسولـه ! مدينه کښې مُوْذِيْ (ضرري) حيوانات (حشرات) او درنـده ګـان زيـات دي او زهٔ نـابينـا يم، نو آيا تـهٔ ما دپاره رخصت مـونـدهٔ کوے (چه زهٔ مسجد ته نهٔ راځم) نبي ﷺ ورتـه اُوفرمايل : «آيا تهٔ حي على الصلاة حي على الفلاح اَوريے؟ »هغهٔ اُووئيل : آؤ، وے فرمايل : «جَمعے له راځه !» او هغهٔ ته ئې (د جَمعے په پريخودلو کښې) اِجازت ورنکړو. (ابوداؤد، نسائيّ)

تعارف د ابن مکتوم : عبد الله بن ام مکتوم القرشي العامري روند مشهور صحابي دے د نبي ﷺ مؤذن دے په نوم کښې ئې اختلاف دے، يا عمرو دے يا عبد الله دے يا حصين دے اول پـکښې ډير مشهـور دے، د پلار نوم ئې قيس بن زائده دے. د مور نوم ئې ام مکتوم عـاتـکـه بنت عبد الله د خديجے د ماما څوی دے. ډير پخوانے مسلمان دے د رسول الله ﷺ نـه ئې مـدينے ته مخکښې هجرت کړيدے، رسول الله ﷺ په مدينه باندے او په مانځه کښې پـه مسجد نبوی کښې ديارلس کرته خپل نائب مقرر کړيدے چه خلقو ته به ئې مونځونه

کول۔ او جنگ قادسیه ته حاضر شو او په هغې کښې شهید شو او د هغه سره په دغه ورځ جنډه وه، او بعض وائی د جنگ قادسیه نه واپس مدینې ته راغلو او مدینه کښې وفات شو۔
تشریح : ددې حدیث تشریح مخکښې حدیث نمبر (۳) کښې تیره شوه۔ چه دا حکم په ابتداء کښې وو، یا دې صحابی ته لاره معلومه وه نو دهٔ ته په راتلو کښې تکلیف نهٔ وو۔
اَلْهَوَّامِ : هر مُؤذِی حیوان او حشراتو ته وائی لکه لړمانان، ماران وغیره جمع د هَامَة ده هر هغه حیوان ته وائی چه زهرِ قاتل لری او که زهر لری خو قاتل نهٔ وی نو دیته سامه وائی لکه لړم، مچیٔ وغیره شو او کله هَامه هر حیوان ته وائی چه په زمکه ګرځی اګرکه قاتل نهٔ وی لکه سپږې وغیره شوې په حدیث د کعب بن عجرهٔ کښې دی : (أيؤذيك هوام رأسك) ۔
فَحَيَّهَلاً : دا کلمه د تیزئ او استعجال دپاره استعمالیږی د (اَجِبْ) په ځائې وضع شویده۔ او حی علی الصلاة دا دوه کلمات ئې ذکر کړل اګرکه مراد ترینه اذان دې ځکه پدې کښې معنیٰ د طلب پرته ده۔ او ترغیب دې مانځه ته۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٥٥٣) والنسائی (١٣٧/١) ولكن ليس عندهما قوله وانا ضرير البصر الخ ومعناه عند ابی داود وابن ماجه (٧٩٢) من طريق اخرى عن ابن ام مكتوم واسناده حسن۔

---

٢٨ - وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَهُوَ مُغْضَبٌ، فَقُلْتُ : مَا أَغْضَبَكَ؟ قَالَ: وَاللهِ مَا أَعْرِفُ مِنْ أَمْرِ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ شَيْئًا إِلَّا أَنَّهُمْ يُصَلُّونَ جَمِيعًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او ام الدرداء رضی الله عنها فرمائی : ما ته ابودرداء رضی الله عنه د غصې په حالت کښې راداخل شو، ما ورته اُووئیل : څهٔ شی غصه کړې ئې؟ هغه اُوفرمایل : "قسم په الله زه د دین د محمد ﷺ نه بل هیڅ شې نهٔ پیژنم مګر دا چه دوی په شریکه مونځ کوی" (جمعې کوی لیکن اوس ئې هغهٔ هم پریخی دی او صحیح طریقې سره ئې نهٔ کوی) (بخاریؒ)
تعارف د ام درداء : ددې نه نوم دې هجیمه بنت حیی اوصابیة الدمشقیة دې د ابوالدرداء دوه ښځې وې یوه تابعیه ده او دلته همدا ده دیته ام درداء صغریٰ وائی او بله صحابیه ده هغې ته ام درداء کبریٰ وائی د هغې نوم خیرة بنت ابی حدرد، هغه د ابوالدرداء نه مخکښې وفات ده په شام کښې په خلافت د عثمان کښې ۔د هغې نه هیڅ روایت نه دې نقل۔
د ابو الدرداء داسې خوئې وو لکه د عمر فاروق په شان۔ په دین ډیر خفه کیدونکې وو۔
تشریح : والله ما اعرف : دلته جواب محذوف دې او دا مذکور دلیل د جواب دې مطلب

دا دے چه زۀ د محمد ﷺ په اُمت کښې منکر کارونو او نوی کارونو غصه کړے یم ځکه چه قسم په الله زۀ د دوی په دین کښې هیڅ کار نۀ وینم چه هغه په صحیح طریقه وی مګر صرف دومره ده چه شریك مونځونه کوی یعنی صرف دا یوه جَمعه پاتے ده نور ټول دین خلقو ضائع کړیدے۔ ابودرداء په زمانه د خلافت د عثمان کښې داسے خبره کوی چه هغه ډیر غوره دَور دے نو دهغۀ د دَور نه روستو تر نن زمانے پورے به د خلقو څۀ حال وی ؟۔

محمد بن وضاح القرطبی په ((کتاب البدع والنهی عنها)) کښې لیکی : کۀ صحابه کرامؓ زمونږ دَور کښې راژوندی شی نو زمونږ نیکانو ته به فُجار او زمونږ بدانو ته به کفار اُووائی۔ نو مونږ وایو چه که زمونږ دے آخری دور ته راشی نو بیا به څه وائی؟ والله المستعان ـ دغه شان خبره د انس بن مالكؓ نه هم نقل ده چه هغه اُووئیل : قسم په الله زۀ د محمد ﷺ د دین نه هیڅ صحیح کار نۀ وینم۔ چا ورته اُووئیل : ولے دا مونځونه ندی؟ هغه اُوفرمایل : (والصلوة قد ضَیَّعتُمُوهَا) مونځ هم تاسو برباد کړیدے۔(بخاری) دا د صحابه کرامو په دین باندے خفګان وو۔بیا ابودرداء د مانځه اثبات اُوکړو او انسؓ په مونځونو هم رد اوکړو۔ وجه دا ده چه ابودرداء په زمانه د معاویه کښې وفات دے او په هغۀ زمانه کښې مونځونه په صحیح طریقه وو او انسؓ د بنی امیه ؤ دور لاندے کړیدے او هغوی به د مونځونو اوقات بربادول نو ځکه ئې د مانځه د بربادولو خبره اُوکړه۔

حدیث دلیل دے چه کله دین کښې څوك نوی کارونه پیدا کړی یا ناروا کارونه وینی نو غصه کیدل پکار دی کله چه نور طاقت نۀ وی۔او دا د الله په دین باندے خفګان دے چه په هر مسلمان دا واجب دے۔

۲۹ – وَعَنْ اَبِیْ بَکْرِ بْنِ سُلَیْمَانَ بْنِ اَبِیْ حَثْمَةَ، قَالَ: اِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقَدَ سُلَیْمَانَ بْنَ اَبِیْ حَثْمَةَ فِیْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ، وَاِنَّ عُمَرَ غَدَا اِلَی السُّوْقِ، وَمَسْکَنُ سُلَیْمَانَ بَیْنَ الْمَسْجِدِ وَالسُّوْقِ، فَمَرَّ عَلَی الشِّفَاءِ اُمِّ سُلَیْمَانَ. فَقَالَ لَهَا: لَمْ اَرَ سُلَیْمَانَ فِی الصُّبْحِ، فَقَالَتْ : اِنَّهٗ بَاتَ یُصَلِّیْ فَغَلَبَتْهُ عَیْنَاهُ. فَقَالَ عُمَرُ : لَاَنْ اَشْهَدَ صَلٰوةَ الصُّبْحِ فِیْ جَمَاعَةٍ اَحَبُّ اِلَیَّ مِنْ اَنْ اَقُوْمَ لَیْلَةً. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه: او ابوبکر بن سلیمان بن ابی حثمه رحمه الله فرمائی : (یوه ورځ) عمر فاروق ﷺ سلیمان بن ابی حثمه (زما والد) د سحر په مانځه کښې اُونۀ موندلو۔ نو عمرؓ چه کله بازار ته لاړو نو د سلیمان کور د مسجد او د بازار په مینځ کښې وو۔ پدے وجه هغۀ د سلیمان مور "شفاء" باندے ورتیر شو، ورته ئې اُوفرمایل : ما سلیمان د سحر په مانځۀ کښې اُونۀ لیدلو

(څۀ وجه ده؟) د سليمان والدے أووئيل : (خبره دا ده چه) سليمان نن توله شپه په مونځ کولو کښ تيره کړه نو(د صبا کيدو په وخت) پۀ هغۀ باندے سترګے غالبے شوے (خوب ورغلو او د هغې په وجه د سحر مانځه ته حاضر نۀ شو) نو عمر ﷺ أوفرمايل : "کۀ زۀ سحر مانځه ته د جَمعِي سره حاضر شم دا ماته ډيره محبوب ده ددے نه چه زۀ توله شپه (د عبادت دپاره) په ولاړه تيره کړم"۔ (مالك)

تعارف د ابوبكر بن سليمان بن ابی حثمة : ابی بکر بن سليمان بن ابی حثمه دا د طبقه وُسطیٰ تابعي دے او ثقه عارف بالنسب دے، ددۀ پلار سليمان بن ابی حثمه صحابی دے عمر فاروق په بازار باندے مقرر کړے وو او د رمضان په قيام الليل کښ ئے د خلقو إمام جوړ کړے وو۔ مور د سليمان "الشفاء" ده نوم ئے ليلیٰ دے او په مکه کښ ئے ايمان راوړے دے او بيعت ئے کړيدے۔ د مهاجرات اولياتو نه ده دا ډيره فاضله او عقلمنده زنانه ده او نبی ﷺ به ددے ملاقات ته ورتلو او ددے په کور کښ به ئے قيلُوله کوله چه کور کښ خير راشي او ديته نبی ﷺ أوفرمايل : حفصی ته د دَانو دَم زدۀ کړه لکه څنګه چه تا ورته کتابت خودلے دے۔ او دے له ئے په مدينه کښ يو کور هم ورکړے وو چه دا او ددے ځوی به پکښ اُوسيدل۔

تشريح : فَقَالَ لَهَا : پردو ښځو سره جائزے خبرے کول جائز دی او دا عورت نۀ دے۔

اَحَبُّ اِلَيَّ : عمر دا خبره أوکړه ځکه چه تهجد نفل دی او جماعت فرض دے او چه څوك نفل کوی او فرض پريدی نو دا جاهلان وی، دا وجه ده چه څوك د سحر سنت کوی او جَمعه ولاړه وی نو دا جاهل دے دا فقاهت نۀ دے ځکه چه د فرض او سنتو تعارض راشی نو سنت به پريدے۔ بعض فقهاءِ احناف دعوے د فقاهت کوی او حال دا چه د فقاهت نه وراندے خبرے کوی فقاهت دا دے چه د هر عمل مرتبه أوپيژندے شی لکه دلته عمر فاروق﷛ د فقاهت خبره کړيده۔ ځکه د فرضو مطالبه کيږی او د نفلو مطالبه په جِدِّی طريقه ندہ شوے۔ مثال دا دے چه تۀ يو چا ته أوبه يادے کړے چه دا راوړه او هغه درله داسے شے راوړی چه هغه ستا د متعلقاتو نه نه وی۔ نو ته به ورته په غصه شے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (١٣١/١)

---

٣٠- وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اِثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

ترجمه : او ابو موسی اشعری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ أوفرمايل : «دوه کسان يا د دوو نه زيات جماعت دے»۔ (نو دا په مانځه کښ جماعت جوړيدے شی) (ابن ماجة)

تشریح : اثنـان نـه مـراد دوه کسان دی سَره د اِمام نه یا سِویٰ د اِمام نه لیکن اوله ظاهر او مُتعین دے۔ لکه د نورو اَحادیثو نه معلومیږی مالك بن الحویرثؓ او د هغه د تره ځوی ته ئے اُوفرمایل : (اذا حضرت الصلوة فأذنا وأقیما ثم لیؤمکما اکبر کما (بخاری) چه دوه کسان بـه هـم جَـمـعـه کـوی۔ او ددے هم د جماعت فضیلت دے۔ یعنی که دوه کسان وی نو یواځے یواځے به مونځ نهٔ کوی۔

درجة الحدیث: اسـنـاده ضعیف جداً ومعناه صحیح : اخرجه ابن ماجه (۹۷۲) وفیه الربیع بن بـدر عـن ابیه وهو ضعیف جداً وابوه مجهول ورواه احمد (۲۰٤/۵) عن ابی امامة واسناده کالذی قبله۔ وتدل علی ان الاثنین جماعة احادیث کثیرة کحدیث الا رجل یتصدق علی هذا، وکحدیث مالك بن الحویرث وکحدیث صلاة الرجل مع الرجل ازکی الخ وانظر المرعاة (۵۲۹/۳)

---

۳۱ – وَعَنْ بِلَالِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ اَبِیْهِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«لَاتَمْنَعُوْا النِّسَاءَ حُظُوْظَهُنَّ مِنَ الْمَسَاجِدِ اِذَا اسْتَأْذَنَّكُمْ». فَقَالَ بِلَالٌ: وَاللّٰهِ لَنَمْنَعُهُنَّ، فَقَالَ لَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ : اَقُوْلُ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ، وَتَقُوْلُ اَنْتَ : لَنَمْنَعُهُنَّ. وَفِیْ رِوَایَةِ سَالِمٍ عَنْ اَبِیْهِ، قَالَ: فَاَقْبَلَ عَلَیْهِ عَبْدُ اللّٰهِ فَسَبَّهٗ سَبًّا مَا سَمِعْتُ سَبَّهٗ مِثْلَهٗ قَطُّ، وَقَالَ: اُخْبِرُكَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَتَقُوْلُ: وَاللّٰهِ لَنَمْنَعُهُنَّ !. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او بـلال بـن عبد الله بن عمر د خپل والد محترم (د عبد الله بن عمرؓ) نه روایت کـوی چـه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «کـلـه چـه تـاسـو نه زنانه اِجازت اُوغواړی (مسجد ته د تـلـو دپاره) نو هغوی د مساجدو د حصے نه مهٔ منع کویٔ» (یعنی مسجد ته د تلو کوم ثواب چه هـغـوی تـه مـلاویږی نو تاسو هغوی لره د هغهٔ ثواب نه مهٔ محروم کویٔ) بلالؒ اُووئیل : قسم په الله ! مونږ به ضرور هغوی منع کوو۔ نو عبد الله بن عمرؓ ورته اُوفرمایل : "زه وایم چه دا د رسول الله ﷺ اِرشاد دے او تـهٔ وائے چه زهٔ بـه ئے ضرور منع کوم" په یو بل روایت کښې سالـم د خپل پلار (عبد الله) نه نقل کړیدی چه "بیا (دے نه بعد) عبد الله بلال طرفته متوجه شو او هغهٔ تـه ئے داسے بَد رد اُووئیل چه ما کله هم د هغهٔ نه نهٔ وو اَوریدلی چه داسے بَد رد ئے ورته وئیلی وی۔ او دا ئے ورته اُوفرمایل : "زهٔ تا ته د رسول الله ﷺ نه خبر درکوم او تهٔ (ددے په خلاف خپله رایه پیش کوے او) وائے : "قسم په الله مونږ به ئے منع کوو"۔ (مسلم)

بـلال : دا د عبد الله بن عمرؓ ځوی دے۔ ابوزرعهؒ وائی : مدنی ثقه دے، او حمزه کنانیؒ وائی : صرف دا یو حدیث ترے نقل دے۔

تشریح : وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ ! : دے تابعی نه په خپل ګمان باندے د حدیث مخالفت اُوشو او هغه دا چه د نبی ﷺ په زمانه کښې خو فساد نهٔ وو او اُوس فساد دے لهذا زه خوئے منع کوم لکه بعینهٖ دغه شان خبره فقهاء احنافو هم کړیده۔ لکه چه بعض احناف ځائے په ځائے د احادیثو په مخالفت کښې داسے وائی چه دا فلانے حدیث د صحیح او دُرستو اصولو مخالف دے ځکه مونږ غورزولے دے او دا فلانے خبر واحد دے د قیاس خلاف دے ځکه مو عمل پرے ترك کړیدے۔

فَسَبَّهٗ سَبًّا : یعنی بَد رد ئے ورته اُووئیل چه سپیه، غویه خنزیره زهٔ تا ته حدیث د رسول الله ﷺ وایم او ته خپله رایه پیش کوے۔ دا دلیل دے چه د سنت د رسول الله ﷺ ځوك خلاف کوی هغوی ته بَد رد وئیل جائز دی او په روایت د طبرانیؒ کښې ددے سبّ تفسیر په لعنت سره راغلی دے۔

۳۲- وَعَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: «لَايَمْنَعَنَّ رَجُلٌ اَهْلَهٗ أَنْ يَّأْتُوا الْمَسَاجِدَ»، فَقَالَ ابْنٌ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: فَإِنَّا نَمْنَعُهُنَّ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ : اُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، وَتَقُوْلُ هٰذَا، قَالَ : فَمَا كَلَّمَهٗ عَبْدُ اللهِ حَتّٰى مَاتَ. رَوَاهُ اَحْمَدُ.

---

ترجمه: او مجاهدؒ نه نقل دی چه ابن عمر رضی الله عنه فرمائی : نبی اکرم ﷺ فرمایلی دی: « نهٔ دے منع کوی یو سړے خپل کور والا د مسجد ته راتلو نه» نو د عبد الله بن عمرؓ یو ځوی اُووئیل : مونږ خو به ئے منع کوو، نو عبد الله بن عمرؓ ورته اُوفرمایل :" چه زهٔ تا ته د رسول الله ﷺ نه حدیث بیانوم او تهٔ دا خبره کوے"۔ د راوی بیان دے چه دے نه پس عبد الله خپل ځوی سره (د آخر عمر پورے) خبرے اُونهٔ کړے تردے چه هغه وفات شو۔ (احمدؒ)

تشریح : فَمَا كَلَّمَهٗ عَبْدُ اللهِ حَتّٰى مَاتَ : دهٔ سره ئے خبرے اُونکړے ترمرګه پورے، د کافر سره خبرے کول جائز دی مګر که مسلمان یو ناروا کار اُوکړی یا د سنتو مخالفت اُوکړی نو هغه سره خبرے بندول جائز دی، ځکه پدے کښې یو عجیب حکمت دے چه مسلمان د دین مزهٔ څکلے ده او ځان ئے په حلقه د اسلام کښې داخل کړے دے د اسلام نه فائدے اخلی او بیا هم مخالفت کوی نو دا مستحق د سخت زجر دے او هر چه کافر دے نو هغه خو د مخکښې نه د الله دشمن دے۔ اُورته به ځی، د اسلام مزه ئے نده څکلے۔ لکه د کعب بن مالك او مراره او هلال بن امیه رضی الله عنهم سره نبی ﷺ په یوه ګناه (د جهاد نه پاتے کیدو باندے) پنځوس ورځے خبرے بندے کړے دیته تادیب وائی۔

حافظ ابن حجرؒ فرمائی : د عبد الله بن عمرؓ په خپل ځوی باندے انکار کولو نه دا فائده اخستلے شی چه څوك په سنت طریقو باندے په خپله رائے سره اعتراض کوی یا عالم په خپل خواهش سره مخالفت کوی نو هغه ته تادیب (أدب) ورکول پکار دی۔
او دارنګه خپل ځوی اګرکه مشروی خو کله چه نامناسبه خبره اُوکړی هغه ته أدب ورکول جائز دی او دا تادیب په هجران سره جائز دے، او عبد الله بن عمرؓ چه ترمرګه پورے خبرے ندی کړی نو احتمال شته چه ددے قصے نه پس نزدے زمانه کښ وفات شوے وی۔
علامه طیبیؒ فرمائی : زما تعجب دے په هغه چا چه ځان باندے د سُنی نوم اِږدی کله چه د رسول الله ﷺ د یو سنت نه خبر شی او دده یوه رأیه وی او دا رأیه په هغه سنت باندے راجح کوی (دا پرے دپاسه کوی) نو دده او د مبتدع به څه فرق وی؟ آیا دهٔ دا حدیث نه دے اوریدلے : « نشی مومن کیدے یو تن ستاسو تردے چه د هغه خواهش تابع شی د هغه دین چه ما راوړیدے » اُوګوره حال ابن عمرؓ چه د آکابر او فقهاؤ صحابؓو نه دے ! څنګه د الله او د رسول دپاره غصه شویدے او خپل جګر ګوشه (د زړه ټوټه) ئے پریخے ده د وجه د دغه قبیحے خبرے نه نو ددے نه دے عقلمند خلق عبرت واخلی!!۔
دارنګه د نورو علماؤ سره هم شویدی، امام ابویوسف باره کښ راځی چه هغهٔ یو ورځ داسے اوفرمایل : رسول الله ﷺ به کدو خوښولو، نو یو سړی اوویل : هرچه زهٔ یم نو زهٔ ئے نهٔ خوښوم نو امام ابویوسف د هغهٔ پسے توره راوخکله او دا ئے ورته اُوفرمایل : ایمان تازه کړه ګنے قتلوم دے۔ (مرقاة ۴/۱۹۲) نو اُوګوره سلفو هم د سنت دپاره ډیر غیرت کړیدے۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۳۶/۲) واخرج نحوه في (۳/ص۴۹)

# باب تسوية الصف

## د صف برابرولو بيان

مناسبت واضح دے چه کله جماعت اُودريږی نو صف به برابرولے شی۔

**د تسوية الصفوف** په حکم کښې اختلاف دے ١- امام مالك او ابوحنيفهٌ وائی : دا د سنن الصلاة نه دے که چا پابندی اُوکړه نو مونځ کښې به ئے کمال وی او که وے نکړه نو مونځ کښې به ئے نقصان وی۔ (٢) د امام بخاری د باب ترلو نه معلوميږی چه دا واجب دے او دا قول د امام احمدٌ او ابن حزمٌ دے۔ او دا د عمر، عثمان، بلال اوانس بن مالك رضی الله عنهم) نه منقول دی چه صفونه په مانځه کښې برابرول فرض دی۔ ځکه امر پرے راغلے دے او ورسره سخت وعيد يو ځائے شويدے۔ په کتاب الزواجر (١٤٦/١) د ابن حجر هيثمی کښې ددے پريخودو ته کبيره گناه وئيلے ده۔

**دلائل الوجوب** : ١- اول امر راغلے دے (لَتُسَوُّنَّ) (اِسْتَوُوا) او امر د وجوب او فرضيت دپاره وی۔ ٢- عمر او بلال رضی الله عنهما به د خلقو قدمونه وهل چا چه به صف نه برابرولو۔ ٣- انس بن مالك ﷺ په ترك د تسوية الصف باندے انکار کړيدے اوفرمايلی ئے دی : (ما انکرت شيئاً الا انکم لا تقيمون الصفوف (بخاری ٢٥٦/١ (رقم الباب ٤٦) باب اثم من لم يتم الصفوف) (انس بن مالكؓ مدينے ته راغلو نو چا ورته اُووئيل تا د رسول الله ﷺ نه روستو په مونږ کښې کوم مُنکر ليدلے دے نو هغهٔ اُوفرمايل : ما ستاسو په هيڅ شی اِنکار نهٔ دے کړے مګر دا چه تاسو صفونه نهٔ برابروئ) (بخاری) او انکار مستلزم وی مُنکر لره او مُباح ته مُنکر نشی وئيلے۔

٤- نبی ﷺ فرمائی : د شيطان دپاره مينځ کښې کولاو ځايونه مهٔ پريدئ پدے کښې شيطان راننوځی او زړهٔ ته وسوسے اَچوی۔ نو خلل بندولو باندے امر راغلو او « ولا تذروا فرجات للشيطان » سره نهی راغله۔ ٥- عظيم وعيد راغلے (من وصل صفاً وصله الله ومن قطع صفاً قطعه الله (اخرجه الجماعة) (څوك چه صف يو ځائے کړی نو الله به ئے د ځان سره يو ځائے کړی او څوك چه صف قطع کړی الله به ئے قطع کړی۔) بيا د ابن حزمٌ او نورو علماؤ فرق دے، که چا صف برابر نکړو نو د ابن حزمٌ رايه دا ده چه مونځ ئے باطل دے او جمهور

محدثینؒ وائی : مونځ ئې اُوشو لیکن ناقص اُوشو او سخت ګناهګار دے، او په ګناه سره مونځ نهٔ فاسدیږی او حدیث کښې د بطلان دپاره قرینه نشته. او اصول د ابن حزمؒ دا دی چه مخالفت د نهی سبب د بطلان د عبادت دے. پدے کښې قول د احمدؒ او بخاریؒ راجح دے.

## د تسویة الصف معنی :

بیا صف برابرول څه ته وائی ؟ : په یوه نیغه کرخه باندے خلق اُودرول پداسے شان سره چه په مینځ د صف کښې خَلل او کُشاده ځائے نهٔ وی او خپے د خپو سره او اُوګے د اُوګو سره او قدم د قدم سره اُولګولے شی.

د صف کمال : بیا دا چه کاملیږی نو د یو څو کارونو لحاظ به پکښې کولے شی :

١- یو دا چه اول صف به امام ته قریب وی، ٢- دویم صف به اول صف ته نزدے وی، چه سرئے د هغوی د خپو سره لګی، ٣- اول صف به کاملولے شی که اول صف کښې ځائے وی او دویم جوړ شی نو مونځ ددے صف نهٔ کیږی، روستو حدیث راځی.

٤- د صف کیفیت : صف کښې به جخت جخت اُودریږی بقدر الاستطاعة څو مره ئې چه وسع رسی په غیر د تکلف کولو نه، خپے او اُوګے او قدمونه به اُولګوی او دا خبره اِتفاقی ده د هیچا اختلاف پکښې نشته ترددے چه په فقه حنفی کښې راغلی دی چه د وصل الصفوف په وجوب او سنیت کښې اختلاف دے علامه عینیؒ وائی : حقه دا ده چه تسویة الصفوف واجب دے د وجه د امر نه. یعنی ددے په ترک سره انسان ګناهګار دے.

او په الدر المختار (١/٣٨٢) کښې لیکی : امام له پکار دی چه مقتدیانو ته حکم اُوکړی په جوختولو د صفونو او په خلل بندولو او په اُوګو برابرولو آه.

فتاوی دیوبند (٣/٣٣٨) کښې لیکی : آیا صف قطع کول مکروه تنزیهی دی او که تحریمی ؟ ددویمے خبرے حقانیت ته اشاره کوی دا قول د نبی ﷺ من قطعه قطعه الله. آه.

دلائل وصل الصفوف :١- (رصوا صفوفکم) اَمر راغلے دے. صاحب مرقاة (٣/٦٨) معنیٰ کوی : داسے جوخت اُودریږئ لکه دیوال کښې چه قلائی (سیمنټ) لګیدلے وی.

٢-«سدوا الخلل» (خالی ګاه ډك کړئ) ٣- او ددے حکمت ئې ذکر کړیدے چه هغه د شیطان راتلل دی. ٤- (من وصل صفا وصله الله الخ) او د وصل همدغه معنیٰ ده. دا خو مشکاة کښې راغلی حدیثونه دی.

خارجی دلائل : ٥- انس بن مالك او نعمان بن بشیر (رضی الله عنهما) دواړه فرمائی: رأیت الرجل منا یُلزِقُ کَعبَهٗ بِکَعبِ صَاحِبِهٖ وَقَدَمَهٗ بِقَدَمِهٖ (بخاری ١/١٠٠) باب الزاق المنکب

بالمنکب والقدم بالقدم فی الصف)، والتعلیق المغنی (۲۸۳/۱) حاشیة الدارقطنی)
(یو تن د صحابه کرامؓ نه به خپله ګیتې د خپل ملګری د ګیتې سره او قدم د هغهٔ د قدم سره اِنخلولو)۔ (لزق او الزاق دیته وائی چه دوه شیونه د یو بل سره داسې اُونخلی چه مینځ کښې ئې بالکل جدائی نهٔ وی، «لُزْقَةٌ» په عربۍ کښې پلَسْتَر ته وائی چه په درمند ځائې باندې لګولې شی) علامه ابن حزمؒ فرمائی دا د صحابه کرامؓ اِجماع شوه۔ محلیٰ (۳۷۵/۲)۔
د دارقطني په حاشیه کښې ورسره دا الفاظ مَعْمَرؒ راوی د انسؓ نه زیات نقل کړیدی : (ولو فَعَلْتَ ذلك بِاَحَدِهِمِ الیوم لَنَفَرَ کأنه بَغْلٌ شَمُوْسٌ) (ولَنَفَر کما ینفر الحُمُرُ الوحشیة)
(که نن صبا دا کار د یو تن سره اُوکړې (یعنی خپه ورسره اُوجنګوې) نو داسې به اُوتریږی لکه نفرتی قچر) (یا صحرائی خر) فتح الباری (۱۶۸/۱) وعون المعبود (۲۵۰/۱)
دا خو د انسؓ د زمانې حال دې نو څهٔ خبر دې انسؓ د حال د زمانې زمونږ نه چه ډیر مبتدعین او مقلدین ددې سنت صریحه نه نفرت کوی لکه صحرائی خرهٔ او ددې سنت نه په تختیلو کښې تحریفات کوی لکه شیخ زکریا په (درس بخاری) کښې لیکی : د الزاق نه مراد حقیقی الزاق نه دې لکه چه اهل حدیث ئې کوی بلکه ددې نه مراد محاذات او برابروالې دې او پدې باندې ئې هیڅ قسم دلیل نهٔ دې ورکړې بلکه صرف خپله رایه ئې مخکښې کړې ده د الله او د رسول په خبره۔
صرف د یو بعید ځائې نه استدلال کوی چه حدیث کښې راغلی دی کله چه مسجد ته راغلې نو څپلۍ چپل به چپ طرفته کیدې یا د خپو مینځ کښې او چه چپل یو طرفته کیدې نو پدې کښې خپې نه جنګیږی ؟۔
پدې استدلال باندې تعجب پکار دې، په زوره احادیثو کښې ټکراؤ پیدا کوی او خپل مقصد ترې پوره کوی دا د مبتدعینو کار دې چه د مجملاتو او متشابهاتو نه استدلال کوی او صریح او محکم نصوص پریدی دلته شیخ زکریا حق پرستی پریخې ده د تعصب مذهبی په وجه۔ په هغه حدیث کښې چرې دا مسئله نشته چه خپې مه جنګوه بلکه هغه حدیث او دې حدیث مینځ کښې هیڅ تعارض نشته ځکه هغه حدیث کښې داسې الفاظ دی : (ان لم یکن عن یساره احد) که ګس طرفته څوك نه وی نو بیا به چپل ګس طرفته کیدې نو هغه د یواځې مونځ کونکی خبره ده او دلته خو د صف متعلق حکم دې۔
بلـه دا چه څپلۍ د خپو مینځ کښې کیده نو بس دواړو حدیثو نو باندې به عمل راشی خپې به هم اُوجنګیږی او چپلو ته به ځائې هم ملاؤ شی۔ دارنګه محاذات ددې حدیثو نو نه اخستل بالکل صحیح نهٔ دی ځکه محاذات خو پدې طریقه هم راځی چه یو تن د

صف په هغه سر کښې اُودرېږي او بل تن پدے سر کښې نو ديته دے هم صف اوويلے شي؟!۔ سبحان الله !۔ ولا حول ولا قوة الا بالله۔
فيض الباري (٥/٤) کښې شاه انور شاه کشميريؒ دا سنت په ډير بليغ انداز سره رد کړيدے او علامه ابو الحسن عبيد الله مبارکفوريؒ په هغه باندے ډير جامع رد کړيدے۔ هغه د الزاق نه مراد معنیٰ مجازي اخستے ده وائي چه (الباء للالصاق) معنیٰ به اهل حديث څنګه کوي او بيا مثال کښې (مررت بزيد) وائي نو آيا دا انسان زيد پورے متصل کيدے شي؟
ددے جواب دا دے چه د (بِه ذاءٌ) (او اذا الزق الختان الختان فقد وجب الغسل) معنیٰ به دا مقلد څنګه کوي؟، آيا دے کښې به هم جُدا والے مراد وي؟۔ بله وجه دا ده چه د الزاق خپله حقيقي معنیٰ اخستلو نه مجازي معنیٰ ته ولے عدول کيدے شي پدے باندے هيڅ قرينه نشته۔ بيا وائي : د الزاق المنکب بالمنکب نه مراد د فقهاءِ اربعو په نيز دا دے چه دومره کولاؤ والے به نۀ وي چه دريم سړے پکښې راځائے شي ۔
ددے جواب دا دے چه دا په ائمه اربعو باندے دروغ دي۔خپل دروغ ئے په ائمه اربعو اُوتپل۔ دارنګه وائي : سلفو نه دا نۀ دي ثابت چه هغوي دِ په حالت د انفراد او يا حالت د جماعت کښې د دواړو قدمونو ترمينځ فاصله کښې فرق راوستے وي۔ ددے جواب دا دے چه په کوم حديث کښې يا په عمل د صحابي کښې دا راغلي دي چه د مونځ کونکي د قدمونو ترمينځ به دومره فاصله وي چه څلور ګوتے به وي يا به يو لويشت وي په حالت د انفراد يا حالت د جماعت کښې ؟ هيڅ ثبوت نشته۔بلکه د سلفو نه ددے خلاف نقل دي په روايت د مَعْمر کښې د انس بن مالكؓ عمل مونږ ذکر کړو چه هغۀ هغۀ چا ته نفرتي قچروئيلي دي ځوك چه خپه نه جنګوي۔ بلکه حقه دا ده چه شارع د مونځ کونکي د قدمونو فاصله کښې څۀ تحديد ندے کړے بلکه دا ئے اُمت ته پريخي دي دپاره د شفقت په هغوي باندے ځکه بعض خلق به غټ وي بعض به خوَار وي بعض به قوي وي بعض به ضعيف وي نو هر سړے به د خپل وزن مطابق اُودرېږي، نۀ به د خپل وزن نه زيادت کوي او نۀ به کم والے، او داسے جوخت به اُودرېږي چه په خپل وزن هم وي او خپي او اُوګے هم اُوجنګيږي لکه الحمد لله – اهل الحديث پدے باندے دغه شان صحيح عمل کوي۔ او مقلدين اعداء السنة الله ددے سنت د عملي کولو نه محروم کړيدي د وجه د تعصب د هغوي نه د اهل حقو سره۔بيا وائي : تۀ سوچ اُوکړه پدے باندے عمل نشي کيدے۔
**الجواب :** هغه مقلد چه الله د هغۀ بصيرت ړوند کړے وي نو هغه باندے هر سنت ګران وي مګر هغه چه ددۀ د خواهش موافق وي!! ولے ګران دے، د خپل وسع مطابق خپه

جنګوه او کوشش کوه بغیر د تکلف نه به دواړه کاره اُوشی۔ پیغمبر داسې خبرې نهٔ کوی چه هغې باندې اُمت عمل نشی کولې نو اې مقلدینو! تاسو ته سوال کوو چه دې سنت طریقو ته د چا د وجې نه حیلې او بهانې مهٔ جوړوئ او راشئ د کتاب او سنت صحیح براهِ راست تابعداری شروع کړئ چه الله مو کامیابئ ته اُورسوی۔ او دا تاویلات چه دوی کوی نو دا حنفی مذهب هم نهٔ دې بلکه حنفی مذهب کښې هم د وصل الصف تاکید راغلې دې کما مرّ۔ راجع فتاوی الدین الخالص (٥/ ٢٥٤) والمرعاة (٤/ ٥)

## الفصل الاول

١ – عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُسَوِّيْ صُفُوْفَنَا حَتّٰى كَأَنَّمَا يُسَوِّيْ بِهَا الْقِدَاحَ، حَتّٰى رَأٰى اَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ، ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا، فَقَامَ حَتّٰى كَادَ اَنْ يُّكَبِّرَ، فَرَأٰى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهٗ مِنَ الصَّفِّ، فَقَالَ: «عِبَادَ اللهِ! لَتُسَوُّنَّ صُفُوْفَكُمْ اَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوْهِكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : نعمان بن بشیر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه برابرول تردې چه ګویا کښې په هغې باندې غشې برابروی تردې چه هغهٔ اُولیدل چه مونږ د هغهٔ نه (صفونه سیده کول) زدهٔ کړل (نو بیا به ئې بار بار د برابرولو حکم نهٔ کولو) بیا یوه ورځ راووتو، اُودریدو تردې چه نزدې وه چه تکبیر ئې کړې وې نو یو سړې ئې اُولیدو چه د صف نه ئې سینه راوستې وه، نو وې فرمایل : «اې د الله بندګانو! خپل صفونه سیده کړئ او یا به الله ستاسو د مخونو ترمینځ اختلاف اچوی»۔ (مسلم)

تشریح : رسول الله ﷺ سره د صف دومره اهتمام وو چه په خپله به ئې صفونه برابرول۔

فوائد الحدیث : ١– امام لره د صفونو اهتمام پکار دې۔ ٢– نبی ﷺ دوه قسمه تسویه کړېده قولًا لکه (استوُوا، اعتدلُوا، تراصوا) وغیره حکمونه ئې کړیدی او عملًا تسویه ئې هم کړیده لکه حدیث کښې دی : (کان رسول الله ﷺ یتخلل الصف من ناحیة الی ناحیة یمسح صدورنا ومناکبنا الخ) (ابوداود ١/ ١٠٤) نبی ﷺ به د صفونو مینځ کښې د یو طرف نه بل طرفته اُووتلو او زمونږ سینې او اُوګې به ئې برابرولې) دا ډیر اهتمام ته اشاره ده۔ او عمر او عثمان رضی الله عنهما به سړې لیږلو چه صفونه برابر کړی او دا معنی نبی ﷺ قولًا هم کړیده (لینوا بایدی اخوانکم) (د ورورنو په لاسونو کښې نرم شئ)۔

قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ : ددې نه دا فائده معلومیږی چه د تسویة الصف امر همیشه دپاره سنت نهٔ دې بلکه کله چه مقتدیانو دا خبره زدهٔ کړه نو بیا هره ورځ امر ندې پکار خو کله چه عام

مسجد وی چه نوی خلق ورته راځی نو بیا بار بار وئیل پکار دی۔ (استووا اعتدلوا)۔

يُسَوِّیْ بِهَا الْقِدَاحَ : قِداح جمع د قَدَح دہ، د غشي لرګی ته وائی چه کله اُوتراشلی شی۔ دلته ډیره مبالغه شویده چه صف به دومره نیغ وو ګویا کښ دا د غشي دپاره قالب دے او ګویا کښ نیغه اُوسپنه ده او غشي په دۀ باندے نیغولے شی او اصل کښ صف په غشي سره نیغولے شی۔ او یسوی معلوم او مجهول دواړه صحیح کیږی او القداح به یا مفعول وی یا به نائب فاعل وی۔

عِبَادَ اللهِ! منادیٰ ده، حرفِ نداء حذف ده د نبی ﷺ عادت مبارك دا وو چه یو تن به غلطی اُوکړه نو عامه خبره به ئے کوله دے دپاره چه چه په هغۀ باندے پَرده واچوی۔

اَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوْهِكُم : د « مخالفت بین الوجوه » ډیرے معنے دی (١) حقیقی معنیٰ ئې دا ده چه مخونه شاته اُوګرځوی اُلټه ئے کړی یا دا چه شکل ورله بدل کړی او د بعض حیواناتو په شکل ئے مسخ کړی لکه خَر وغیره ترے جوړ کړی۔ او ددے حقیقی معنیٰ تائید په حدیث د ابوامامهؓ کښ راغلے دے۔ « لتسون الصفوف او لنطمس الوجوه (احمد) وفی سنده ضعف » ۔جزاء من جنس العمل وی۔ فرمائی : بناء پدے تسویه د صف فرض ده او تفریط پکښ حرام دے۔(عون المعبود ٢/٢٥٧)

٢- بعض وائی : دا مجاز دے کنایه ده د عداوت او بُغض پیدا کولو نه یعنی ستاسو په زړونو کښ به بے محبتی او دُشمنی پیدا کړی، یو بل سره به مو اِختلافات پیدا شی ځکه د دوی مخالفت په صفونو کښ دا مخالفت دے په ظاهر کښ او اختلاف د ظاهر سبب وی د اختلاف د باطن دپاره۔ او دا معنیٰ په روایت د ابوداود کښ راغلې ده : (اولیخالفن الله بین قلوبکم)۔

٣- بعض وائی : د "وجوه" نه مراد ذوات دی یعنی الله به ستاسو اِرادے او مقاصد ګډوډ کړی، ځکه زړونه چه کله برابر وی نو ظاهری اندامونه برابریږی او کله چه صفونه ګډوډ وی نو دا دلیل دے په اختلاف د زړونو او کله چه صفونه همیشه دغه شان ګډوډ وی نو الله به د انسانانو اغراض او مقاصد ګډوډ کوی او بعینه دا کار اُوس شویدے۔

(عارضة الاحوذی ٢/٢٥)

او دا معنیٰ هم ده چه کله تاسو په صف کښ جُدا جُدا شئ نو بیا به هر یو تن خپله خپله مخ اُونیسی او د یو بل خبره به نۀ منی، فسادات به پیدا شی۔ (قرطبیؒ)

نو حاصل دا شو چه که د (وَجْه) نه ذات الشخص واخستے شی نو مخالفت به په اعتبار د مقاصدو سره وی او که عضو مخصوص ترے واخستے شی نو مخالفت به یا په اعتبار د صورت او شکل انسانی سره وی یا به په اعتبار د صفت سره وی، او یا به مخ طرف روستو اړولو سره وی۔ نو حدیث کښ ډیر وعید دے۔

٢ـ وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: أُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ، فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِوَجْهِهٖ، فَقَالَ: «اَقِيْمُوْا صُفُوْفَكُمْ وَتَرَاصُّوْا فَاِنِّيْ اَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِيْ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ قَالَ: «اَتِمُّوا الصُّفُوْفَ، فَاِنِّيْ اَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِيْ».

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : (يوه ورځ) د مانځه اِقامت اُوشو نو رسول الله ﷺ مونږ طرفته مخ راواړوکو وے فرمايل : «صفونه برابر کړئ او جُوخت جوخت اُودرېږئ ځکه زهٔ تاسو د خپل شا طرف نه وينم»۔ (بخاري) او په روايت د بخاري او مسلم کښې دي : وے فرمايل : «صفونه پوره کړئ ځکه زهٔ تاسو د خپل شا طرف نه وينم»۔

تشريح : اُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ : د اقامت نه بعد به صفونه به برابروی نو پدے کښې رد دے په قول د بعض فقهاؤ چه وائي اِمام به (قد قامت الصلاة) سره الله اکبر کوی۔ بلکه صحيح بخاري کښې دی چه نبي ﷺ د اقامت نه بعد د يو گس سره دومره وخت خبرے کولے چه عام خلق په صفونو کښې اُوده شو۔

وَتَرَاصُّوْا : (اى تَلَاصَقُوْا وَانْضَمُّوْا) د تَرَاصِيُ معنیٰ ده يو بل سره منضم کيدل او جوختيدل چه مينځ کښې رَصَاص (قلائي) واچوی ـ د «رَصُّ الْبِنَاءَ» معنیٰ ده آبادے مضبوطول او بعض د بعضو سره يو ځائے کول۔ نبي ﷺ صحابه کرامؓ د خپل ځان نه يَرولی دی چه خبردار ! زه تاسو ته گورم او دا کتل په حقيقت بناء دی او تاويل ته پکښې ضرورت نشته او دا د نبي ﷺ معجزه ده او تحقيق ئے په څلورم جلد کښې تير شويدے۔ دا حديث دليل دے چه اقامت د صف او تراصي کښې فرق دے۔ اقامت د صف نيغول دی او تراصي په صف کښې جوخت جوخت اُودريدل دی چه مينځ کښې هيڅ قسم فاصله نهٔ وی۔

---

٣ـ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ، فَاِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ اِقَامَةِ الصَّلَاةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. اِلَّا اَنَّ عِنْدَ مُسْلِمٍ : «مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ».

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اوفرمايل : « صفونه برابر کړئ، ځکه صفونه برابرول د مانځه قائمول دی »۔ (بخاريؒ ومسلمؒ) او په روايت د مسلمؒ کښې د اقامة الصلاة (د مانځه قائمولو) په ځائے دی : (من تمام الصلاة) (د مانځه د پوره والي نه دی)۔

تشريح : يعنی چه صف جوړ وی نو مونځ به کامل شي او چه صف خراب وی نو بيا به

مونځ ناقص وي دا دليل دے چه د جماعت دپاره صف برابرول د واجباتو نه دي۔ او قرآن کښې چه د اقامة الصلاة حکم شويدے نو په هغے کښې د صف برابرول هم داخل دي۔

---

٤ – وَعَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ الْاَنْصَارِيِّ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلَاةِ، وَيَقُوْلُ: «اِسْتَوُوْا وَلَا تَخْتَلِفُوْا فَتَخْتَلِفَ قُلُوْبُكُمْ، لِيَلِيَنِيْ مِنْكُمْ اُولُوا الْاَحْلَامِ وَالنُّهٰى، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ»، قَالَ اَبُوْ مَسْعُوْدٍ: فَاَنْتُمُ الْيَوْمَ اَشَدُّ اخْتِلَافًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او ابو مسعود انصاری ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به په مانځه کښې (يعنی د مانځه په شروع کښې) زمونږ اوږے برابرولے او دا به ئے فرمايل : « برابر شئ او مۀ مختلف کيږئ (يعنی مخکښې روستو کيږئ مۀ) ورنه ستاسو زړونو کښې به اختلاف پيدا شی، او په تاسو کښې چه څوك بالغان او عاقلان وی هغه دِے ما ته نزدے اودريږی، بيا هغۀ کسان چه هغوی ته نزدے دی بيا هغۀ کسان چه هغوی ته نزدے دی »۔ ابو مسعودؓ (خلقو ته دے حديث بيانولو سره) اوفرمايل : « تاسو نن ډير سخت اختلاف والا يئ » (څکه صفونه مو برابر نۀ دی) (مسلم)

تشريح : يعنی رسول الله ﷺ به زمونږ اوګے مَسحه کولے او په صف کښې به ئے برابرولو چه څوك مخکښې روستو نشی، دا د نبی ﷺ عملی صف برابرول دی۔

وَلَا تَخْتَلِفُوْا : يعنی په صف کښې د يو بل نه مخکښې روستو کيږئ مۀ څکه زړونو کښې به مُو اختلاف او کدورتے پيدا شی څکه چه اختلاف د ظاهر اثر کوی په اختلاف د باطن باندے۔ او حديث دليل دے چه زړۀ تابع د اعضاؤ دے نو کله چه اعضاؤ کښې اختلاف راشی نو زړه کښې اختلاف راشی او کله چه زړۀ کښې اختلاف راشی نو فاسد شی او کله چه زړۀ فاسد شی نو اندامونه به خود بخود فاسد کيږی څکه دا ئے رئيس دے۔

مګر دلته دا سوال پيدا کيږی چه دے نه خو معلومه شوه چه زړۀ تابع د اندامونو دے نو دا مخالف دے د هغۀ مشهور حديث دے (الا ان فی الجسد مضغة اذا صلحت صلح الجسد کله) چه زړۀ کله صحيح شی نو ټول بدن صحيح کيږی، نو دے نه خو معلوميږی چه بدن تابع د زړه دے۔؟ جواب دا دے چه د بدن او د زړۀ ترمينځ يو خاص قسم تعلق او عجيب قسم تاثير دے چه د هريو مخالفت په بل کښې اثر کوی۔لکه ددے مثال دا دے چه د ظاهر يخوالے په باطن کښې اثر کوی او د باطن په ظاهر باندے (مرقاة)

فَتَخْتَلِفَ قُلُوْبُكُمْ : دے کښې دا احتمال هم شته چه معنیٰ دا وی چه کله ظاهر کښې اختلاف مهٔ راولئ ځکه چه دا ظاهری اختلاف به دلیل وی ستاسو د زړونو د اختلاف ولے کهٔ زړه برابر وے نو صف کښې به اختلاف نهٔ راتلے۔

لیلنی : دے کښې بل لغت دے (لِيَلِيَنِّیْ) په اِثبات د یاء سره هم جائز دے۔ اګرکه دا مجزوم دے خو په احادیثو کښې کله نا کله داسے هم راځی دپاره د آسانئ۔ او ددے دپاره علامه ابن مالك په کتاب شواهد التوضیح (ص ۱۱ - ۱۵) کښې طویل بحث راوړیدے او ددے دپاره په اشعارو کښې ډیر شواهد دی۔

اُولُوْا الْاَحْلَامِ وَالنُّهٰی : اَحلام جمع د حِلم ده، بُردباری او آرام او تثبت فی الامور او د غصے په وخت نفس کنټرول کولو ته وائی او دا کارونه د عقل په سبب کیږی نو اولوا الاحلام نه مراد بهترین عقلونو والا خلق دی، بعض وائی : بالغان ترے مراد دی او نهی جمع د نُهْيَة ده په معنیٰ د عقل سره عقل ته نُهْيَة ځکه وائی چه دا انسان منع کوی د قبائحو نه نو دا تاکید د اول شو۔

په حدیث کښې مسئله دا ده چه اول صف کښې به عقلمند خلق، سری اُودریږی، علماء او مشران، او دویم صف کښې به د تقوی نه خکته درجے والا او دغه شان روستو به ماشومان اُودریږی بیا به زنانه وغیره۔ او ماشومان به په اول صف کښې نهٔ اُودریږی۔ مګر دا خبره یاد ساتل پکار دی چه کله په صف کښې ځائے خالی وی او غټ خلق نهٔ وی نو بیا ماشومان اُودرول پکار دی، بعض خلق بالکل ماشومان په اول صف کښې نهٔ پریدی دا صحیح نهٔ ده، دلیل دا دے چه روستو باب الموقف کښې راځی نبی ﷺ پسے روستو اول صف کښې انس بن مالك ؓ او یو یتیم اُودریدو او بیا روستو ام سلیم رضی الله عنها۔

د عقلمندو د مخکښې اُودریدو حکمت دا دے چه د نبی ﷺ مونځ زدهٔ کړی، دارنګه که په مانځه کښې څهٔ عارض پیش شی نو د هغهٔ نه به خلیفه جوړ شی او که سهوه شی فتح به ورکړی۔ (معالم) په روایت د بیهقی کښې دی : نبی علیه السلام به دا خوښول چه مهاجرین او انصار د هغهٔ سره نزدے اُودریږی دے دپاره چه د هغهٔ نه طریقه زدهٔ کړی۔

قَالَ اَبُوْمَسْعُوْدٍ : دا تابعینو ته وائی چه تاسو صفونه پوره طریقے سره نهٔ برابروئ نو ځکه ستاسو وحدت او اتفاق کښې ګډوډ والے راغلو او فتنے په تاسو کښې راپیدا شوے۔ نو زمونږ زمانه کښې چه دا کوم فسادونه دی ددے اصلی سببونه همدا دی چه صفونه نهٔ برابریږی۔

---

٥- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لِيَلِنِيْ مِنْكُمْ اُولُوْا الْاَحْلَامِ

وَالنُّهٰى، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثَلَاثًا، وَاِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْاَسْوَاقِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه: او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل: «نزدے دے اُودريږي ما ته ستاسو بالغان او عقل مند خلق، بيا هغهٔ کسان چه هغوی ته نزدے دی (درے ځل ئے دا جُمله اُوفرمايله) او ځان اُوساتئ د بازارونو د چغو او شور نه (په مساجدو کښې او دغه شان په بازارونو کښې) (مسلمؒ)

تشريح: وَهَيْشَاتِ الْاَسْوَاق: هيشات جمع د هَيْشَة ده اصل کښې د هَوْش نه ماخوذ دے په معنی د ګډوډوالي او اختلاف سره او هاهُو او يو بل کښې داخليدل او شر او فتنه کولو ته وائي، هيشات الاسواق نه مراد چغے او نعرے او ګډوډ آوازونه او هاهُو دے چه واخله راشه، په دومره دے، وغيره. ددے يو مطلب دا دے چه مانځه ته کله اُودريږئ نو د بازاريانو خلقو په شان شور مهٔ جوړوئ بلکه په ډير اِطمينان او سکون او خشوع سره صفونه برابروئ ځکه چه تاسو خو د عظيم ذات مخے ته اُودريږئ نو د هغه د عبادت ادب اُوساتئ. بعض خلق چه جنازه کښې ولاړ وی نو شور به ئے جوړ کړے وی لکه د ماښام چينچنړے، صفونه برابروئ، هر سړے پکښې خپل آواز راښکاره کوی دا د مخلصينو او صحابه کرامؓ طريقه نهٔ ده.

٢- يا د هيشات نه مراد اختلاط او ګډوډ والے دے يعنی د بازار والو په شان ګډوډ کيږئ مه چه عقلمند او غير عقلمند پته پکښې نه لګی، بالغان او نابالغ او زنانه او سړی پکښې ګډوډ روان وی بلکه صفونو کښې برابر اُودريږئ او هر انسان دے خپل خپل مقام د اُودريدو اُوپيژني.

٣- دارنګه دا مطلب هم کيدے شي چه ځانونه د بازارونو په کارونو باندے د مشغوله کولو نه بچ کړئ ځکه دا تاسو ددے نه منع کوی چه ما ته نزدے اُودريږئ.

٤- دارنګه بل مطلب دا دے چه دلته نبی ﷺ د دوه ځايونو اصلاح کوی چه په مسجد کښې ما ته نزدے اُودريږئ او په بازارونو کښې چغے مهٔ وهئ دا دبے وقاره خلقو کار دے.

کله چه انسان په بازار کښې چغے نهٔ وهي نو دهٔ کښې وقار او خشوع پيدا کيږي نو د مانځه په وخت کښې بيا په طريق اولیٰ شور او ګډوډی نهٔ کوی.

---

٦- وَعَنْ اَبِیْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: رَاٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فِیْ اَصْحَابِهٖ تَأَخُّرًا، فَقَالَ لَهُمْ: «تَقَدَّمُوْا وَائْتَمُّوْا بِیْ، وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ، وَلَايَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُوْنَ حَتّٰى يُؤَخِّرَهُمُ اللّٰهُ».

رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابوسعید الخدری ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ په خپلو ملګرو کښې تاخیر اُولیدو نو ورته ئې اُوفرمایل : «رامخکښې شئ! او زما اِقتداء اُوکړئ او ستاسو اقتداء دِې اُوکړی هغهٔ خوك چه ستاسو نه روستو دی، او یو قوم به همیشه (د اول صف د اُودریدو نه) روستو روستو کیږی تردې چه الله به ئې (د خپل رحمت او فضل نه) روستو کړی». (مسلمؒ)

تشریح : ۱- حدیث کښې ترغیب دې چه د الله د بندګئ سره شوق اُوساتئ، او سُست ورته مهٔ راځئ. ... حافظ ابن القیمؒ په «الوابل الصیب» کښې لیکی د الله د تعظیم نښه دا ده چه کله درنه جماعت فوت شی یا درنه صف اول یا درنه د صف ښي طرف فوت شی او تا ته خفګان اُورسی.

## آیا دویم صف والا به د اول صف مقتدیان وی؟

وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ : کښې دوه مسئلې دی یوه حقیقی او بله وهمی.

حقیقی مسئله دا ده چه (۱) د امام بخاریؒ او امام شعبیؒ او مسروقؒ رایه دا ده چه روستنې صف به د اول صف مقتدیان وی لکه څنګه چه اول صف د امام مقتدیان دی. نو دویم صف به د اول صف نه روستو سر اُوچتوی، لکه څنګه چه اول صف د امام نه روستو سر اُوچتوی (اخرجه ابن ابی شیبةؒ)

امام بخاریؒ دا حدیث په خپل صحیح کښې راوړې او دا استدلال ئې کړیدې.

۲- جمهور علماء فرمائی : ټول مقتدیان به د امام پسې اقتداء کوی او ددې حدیث مطلب دا دې چه کله زما آواز نهٔ رسیږی نو په نقل الافعال کښې دې هر روستنې صف د خپل مخکښې صف تابعداری اُوکړی، دوی ته به ګوری نو پته به لګی چه امام رکوع یا سجده یا قیام کښې دې. لکه امام نوویؒ فرمائی : (معناه : یقتدی بکم من خلفکم مستدلین علی افعالی بافعالکم) یعنی ستاسو افعالو ته په کتلو سره به زما په افعالو استدلال کوی. ځکه چه روستنو ته خو اِمام نهٔ ښکاری. او دا مطلب نهٔ دې چه روستنی صف والا به د مخکښې صف مقتدیان وی. او دارنګه امام بخاریؒ خپل اختیار پدې مسئله کښې ندې ښکاره کړې بلکه صرف د ظاهری الفاظو د حدیث مطابق ئې ترجمه لګولې ده. او دغه تسلسل الاقتداء ئې مقصود نهٔ دې. علامه عبیدالله مبارکفوریؒ په المرعاة (۱۱/٤) کښې د جُمهورو قول راجح کړیدې.

دارنګه دې کښې دا مطلب هم بعض علماؤ بیان کړیدې چه اې صحابه کرامو! تاسو زما تابعداری اُوکړئ په زدهٔ کولو د دین کښې، ما نه دین زده کړئ ما ته ګورئ او ستاسو نه

روستو چه کوم تابعین وغیره راروان دی نو هغوی دے ستاسو نه دین زده کړی او دغه شان تر قیامته پورے۔ (طیبیؒ)

وهمی مسئله : بعض خلق ددے الفاظو نه تقلید ثابتوی چه راتلونکے امت دے ستاسو تابعداری اُوکړی نو بس تقلید ثابت شو۔ ددے ډیر جوابونه دی چه دا استدلال باطلوی :

۱- یوه وجه دا ده چه اتباع د صحابه کرامو ضروری ده، او تقلید په دین کښې نشته۔ دلته خو اقتداء او اتباع وئیلے شویده، تقلید پکښې د کوم ځائے نه راغلو؟ (ماچہ مے گویدو تنبور ماچہ سراید)

۲- دارنګه که تقلید ثابت شی نو پدے کښې خو تقلید د صحابه کرامؓ دے نو بیا خو ستاسو په نیز هم په تقلید د صحابه کرامؓ امر راغلو او تاسو خو د صحابه کرامؓ تقلید نه حرام وایئ ځکه چه هغوی اصول ندی لیکلی (رد المحتار) او تاسو خو د امام ابوحنیفةؒ تقلید واجب ګنړئ نو «وهم دے کوم ځائے او ډب دے کوم ځائے کوی»۔

*- دارنګه دا د اُمت اتفاقی مسلك دے چه د صحابه کرامؓ به هغه خبره منلے شی چه د دلیل موافق وی ځکه که د هر صحابی بے دلیله خبره اُومنلے شی نو بیا خو د بعض صحابه کرامؓ نه اجتهاداً داسے مسائل ثابت دی چه نص د هغے په خلاف وی لکه عمرؓ او ابن مسعودؓ به د جنب دپاره تیمم جائز نهٔ ګنړلو (بخاری)۔

۲- بلال به په چرګ باندے قربانی کول جائز ګنړل (محلیٰ)۔

۳-سمره بن جندب به ربا الفضل جائز ګنړله۔

٤- ابوطلحه به په ګلئ باندے روژه ماته نه ګنړله۔ دارنګه په نفلی مانځه کښې به ئے اُوبه څکل جائز ګنړل او دا خو تاسو هم نه منئ نو خبره د تقلید کوئ او بیا ترے تښتئ۔ انظر ((حقیقة التقلید واقسام المقلدین)) نو صحیح دا ده چه پدے حدیث کښې د مانځه د صفونو متعلق خبره ده یا د علم زده کولو چه امر دے په طلب د علم قرناً بعد قرن۔

يُؤَخِّرَهُمُ اللّٰهُ : په څه کښې به ئے روستو کړی؟ ۱- نو یا جنت ته داخلیدو کښې۔

۲- یا د خپل رحمت او عظیم فضل او اُوچتے مرتبے د علم نه به ئے روستو کړی۔

۳- دریم مطلب روستو حدیث کښې راروان دے (حتی یؤخرهم الله فی النار) یعنی که اُور ته د ګناهونو په وجه داخل شو نو روستو به راوځی ځکه دا قانون دے چه الله طرفته د بنده په دنیا کښې څومره سیر او منډه وی نو هغومره به په جنت کښې ددهٔ مرتبه وی، نو که منډه ئے سُسته وه نو په هر څه کښې به روستو روستو وی۔

٤- او دا مطلب هم دے چه (حتی یؤخرهم الله فی کل شیء) په هر شی کښې به ئے الله روستو کړی، علم به هم ورته زر نهٔ ورکوی، نور د دنیا فوائد به هم ورته زر نهٔ حاصلیږی۔

۷- وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : فَرَآنَا حَلَقًا فَقَالَ: «مَالِيْ اَرَاكُمْ عِزِيْنَ»، ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا، فَقَالَ: «اَلَا تَصُفُّوْنَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟» فَقُلْنَا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟ قَالَ: «يُتِمُّوْنَ الصُّفُوْفَ الْاُوْلٰى، وَيَتَرَاصُّوْنَ فِي الصَّفِّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او جابر بن سمره ﷺ فرمائي: (يوه ورځ) رسول الله ﷺ په مونږ راووتو نو مونږه ئې په مختلفو حلقو کښې ناست اُوليدو، وې فرمايل: «څۀ وجه ده ما لره چه زۀ تاسو جدا جدا ډله وينم» (داسې مۀ کيننئ څکه دا د انتشار او بې إتفاقئ علامه ده) بيا (دغه شان يوه ورځ) مونږ ته راووتو نو وې فرمايل: «آيا تاسو داسې صفونه نۀ تړئ لکه څنګه چه ملائك صفونه تړي د رب په دربار کښې؟» مونږ اُوويل: يا رسول الله! ملائك د رب په دربار کښې څنګه صفونه تړي؟ وې فرمايل: «هغوي اولنى صفونه پوره کوي او په صفونو کښې جوخت جوخت اُودريږي». (مسلم)

تشريح: حَلَقًا: په کسره د حاء دې جمع د حَلْقَة ده لکه قِصَعٌ چه جمع د قَصْعَة ده يا بِدَر چه جمع د بَدْرَة ده. او فتحه هم خلاف القياس جائز ده. لکه فَلَكَةٌ جمع ئې فَلَك ده.

عِزِيْنَ: جمع د عِزَة ده مختلفو ډلو ته وائي، مطلب دا دې چه مسجد ته راشئ نو ډله ډله کيږئ مۀ دا اختلاف ته اشاره ده بلکه صف کښې کيننئ، نو په حديث کښې نهى ده د تفرق نه او امر دې په اجتماعيت، دارنګه پدې کښې امر دې په اقتداء د ملائکو په مانځه او نورو عباداتو کښې او امر دې په اولنو صفونو پوره کولو او صفونو کښې جوخت جوخت اُودريدلو چه مينځ کښې کولاؤ ځائے پاتے نشي.

د صف مقدار څه دې؟ نو ظاهر دا ده چه د يو ديوال نه بل ديوال پورې دا صف دې، ددې مينځ کښې به کولاؤ ځائے نۀ پريدى، بلکه ددې پوره کول ضروري دي. العرف الشذي (۲۵۸/۱)

۸- عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «خَيْرُ صُفُوْفِ الرِّجَالِ اَوَّلُهَا، وَشَرُّهَا آخِرُهَا، وَخَيْرُ صُفُوْفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَشَرُّهَا اَوَّلُهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل: «بهترين صفونه د سړو اولنى دي او بد ترين صف ئې روستنے صف دې. او بهترين صفونه د زنانو روستنې دې او

بد ترین ئے اولنئ دے»۔ (مسلمؒ)

تشریح : وَشَرُّهَا اَوَّلُهَا : د شرنـه مراد دا نهٔ دے چه آخری صف د سړو ناکاره دے او سخت گناهگار دی، بلکه هرڅوک چه مانځه ته راغلی دی هغه ټول د اَجر مستحق دی نو دلته د شر نه مراد کم اجر او ثواب والا دے، د مطلوب د شرع نه وړاندے دے ۔او خیر نه ډیر اجر مراد دے او شرئے ورته اُووئیلو ځکه چه دا متضمن کیدے شي شر لره۔

وجـه د شر والی دا ده چه کله انسان په اول صف کښې اُودریږی نو د زنانو نه به بعید وی، د هغوی د خوشبو او آوازونو او حرکات او سکناتو نه به محفوظ وی او که رکوع ته راځکته شي نو په ترخونو کښې به پرے نظر نهٔ لگی لکه په حدیث د ترمذیؒ کښې راځی چه یوه زنـانه به مانځه له راتله ډیره تعجبی ښائسته وه مخ به ئے ښکاره وو، منافقان به په روستنو صفونو کښې د هغے د کتلو دپاره اُودریدل او په ترخونو کښې به ئے ورته کتل او مومنانو به مخکښې صفونو ته زور کولو نو الله دا آیتونه نازل کړل ﴿ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِيْنَ ﴾ (مونږ ته مخکښې کیدونکی او روستو کیدونکی خلق معلوم دی) (ابـن کثیرؒ دا روایت نقل کړیدے) او زنانو دپاره په اول صف کښې اجر کم دے ځکه چه سړو ته به نزدے وی نو فتنه کښې به واقع شي۔

امام نوویؒ لیکی : د سړو دپاره دا حکم په هر وخت کښې دے او هرچه زنانه دی نو د هغوی دپاره دا حکم په هغهٔ وخت کښې دے چه مسجد کښې د سړو سره مونځ کوی او کله چه یواځے زنانه مونځونه کوی نو بیا هغوی د سړو په شان دی چه اولنی صفونو والا بهتر دی ځکه فساد پکښې نشته۔

او حدیث دلیل دے چه د زنانو مونځ په صفونو کښې جائز دے برابره ده که د سړو سره شاملیږی او که ځانله ئے کوی۔

بیا دا حدیث هر مانځه ته عام دے که د جنازے وی او که د اخترونو او که عام مونځونه وی۔ صرف په در مختار کښې لیکی : چه په جنازه کښې د سړو دپاره روستو صف غوره دے او نورو مونځونو کښې اول صف د سړو دپاره غوره دے مگر پدے فرق باندے هیڅ معتمد دلیل نشته، شامیؒ هم پرے رد کړیدے چه مطلق حدیث خو داسے دے چه د سړو دپاره اولنی صفونه غوره دی نو پدے فرق باندے دلیل راوړل پکار دی۔

## الفصل الثاني

۹- عَنْ اَنَسٍ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «رُصُّوْا صُفُوْفَكُمْ وَقَارِبُوْا بَيْنَهَا وَحَاذُوْا بَيْنَ

الْأَعْنَاقِ، فَوَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ، إِنِّیْ لَأَرَی الشَّیْطَانَ یَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ کَأَنَّهَا الْحَذَفُ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : انس ﷛ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «صفونه خپل جُوخت جُوخت کړئ او ددې په مینځ کښې نزدې والے اُوکړئ او د اُوګو ترمینځ برابروالے اُوکړئ، قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغهٔ په لاس کښې دے، یقیناً زهٔ شیطان وینم چه د مینځ (کولاؤ ځایونو) د صف نه داسې داخلیږي ګویا کښې دا د چیلۍ تور بچې دے». (ابوداوُدٌ).

تشریح : (رص) دیته وائي چه د یو بل سره جوخت جوخت اُودریږي او مقاربه دیته وائي چه روستني صف اولني صف ته نزدې اُودریږي دومره اندازه چه دریم صف په مینځ د دوه صفونو کښې رانشي. پدې کښې حکمت دا دے چه دا ظاهري اندامونه یو بل ته نزدې کول سبب د اتفاق د روحونو دے (مرقاة)

وَحَاذُوْا بَیْنَ الْأَعْنَاقِ : یعني څټونه د یو بل سره برابر کړئ پداسې شان سره چه ټول په یوه همواره زمکه وي او بعض په بعضو باندې پورته نه وي. په بل روایت دا بن عمرٌ او ابو امامهٌ کښې د اعناق په ځائې (مناکب) راغلے دے. (حاذوا بین مناکبکم).

خَلَلِ الصَّفِّ : خلل خالي ګاه او کولاؤ ځائے ته وائي چه د دوه کسانو په مینځ کښې د نهٔ جوختیدو نه پیدا شوے وي.

کَأَنَّهَا الْحَذَفُ : په فتح د حاء او ذال جمع د "حَذَفَةٌ" ده. د چیلۍ تور واړه بچي چه په حجاز کښې پیدا کیږي. بعض وائي : دا هغهٔ واړه بچي دي چه غوږونه او لکۍ نه لري او ویښته پرې نهٔ وي او د یمن نه راوستې شي. یعني شیطان پدې کولاؤ ځائې کښې داسې راپورته کیږي او زړهٔ ته وسوسې اچوي لکه د چیلي تور وړوکے بچے کوم چه په حجاز علاقه کښې پیدا کیږي. او کأنها ضمیر شیطان ته راجع دے او تانیث د ضمیر په اعتبار د خبر سره دے یا ضمیر نفس د شیطان ته راجع دے. یا په روایت د نسائي کښې لفظ د «لأری الشیاطین» دے نو ضمیر جمع ته راجع دے. فلا اشکال.

بعض خلق ددې حدیث پورې ټوقې کوي وائي چه شیطان ډېر د دوه خپو مینځ کښې داخل شي کنه؟ . جواب دا دے چه شیطان ډېر متکبر دے هغه د چا نه ځان نه لاندې کوي او مخامخ هم نشي راتلے ځکه مخامخ الله دے. نو د دواړو طرفونو نه کوشش کوي. او کله چه تا د شیطان لارې بندې کړې نو د وړاندې نه به وسوسې اچوي نو وسوسه به ئې دومره تاثیر نهٔ کوي، او دا بالکل تجربه شوې خبره ده کله چه انسان خپې نهٔ جنګوي نو بیا

دکانونو کښې سُوچونه کوی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (١٥٤/٣) (٢٦٠) وابوداود (٦٦٧) والنسائی (٩٢/٢) وابن خزيمة (١٥٤٥) وابن حبان (٢١٥٦) قال النووی : اسناده صحيح علی شرط مسلم۔

١٠ – وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«اَتِمُّوْا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ ثُمَّ الَّذِیْ يَلِيْهِ، فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِی الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوْدَ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : « مخکنے صف پوره کړئ بيا هغهٔ چه هغے ته نزدے دے، او كهٔ څهٔ نقصان وی نو پكار ده چه په روستنی صف كښې وی»۔ (ابوداودؒ)۔

تشریح : يعنی كه كوم نقصان وی په نو په آخری صف كښې دِے وی څكه څوك به نهٔ وی چه هغهٔ پوره كړی نو په هغهٔ نقصان باندے انسان گناهگار نهٔ دے۔ بيا پدے حديث كښې دا بيان نشته چه دا ناقص صف به كوم ځائے كښې اُودريږی نو ظاهر حديث د ابو هريرهٔ كښې دا الفاظ دی : (واسّطوا الامام) يعنی دا ناقص صف به د امام مينځ ته اُودريږی۔ او صف به د مينځ نه جوړيږی۔ او چه اول صف كښې ځائے وی، دويم صف جوړول سخته گناه ده ددے امر خلاف دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٢٣٣/٣) وابوداود (٦٧١) والنسائی (٩٣/٢) وابن خزيمة (١٥٤٦) وابن حبان (٢١٤٦)

---

١١ – وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَی الَّذِيْنَ يَلُوْنَ الصُّفُوْفَ الْاُوْلٰی، وَمَا مِنْ خَطْوَةٍ اَحَبُّ اِلَی اللّٰهِ مِنْ خَطْوَةٍ يَمْشِيْهَا يَصِلُ [الْعَبْدُ] بِهَا صَفًّا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوْدَ.

ترجمه : او براء بن عازب ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ به فرمايل: « يقيناً الله او ملائك رحمتونه راليږی په هغهٔ كسانو باندے چه اولنو صفونو ته نزدے كيږی، او نشته يو قدم ډير محبوب الله ته د هغهٔ قدم نه چه دائے اخلی او پدے سره صف متصل (يوځائے) كوی»۔ (ابوداودؒ)

### د اول صف مقدار :

تشریح : صف اول چا ته وائی ؟ نو ددے بيان په (٢٢٥/٣) باب فضائل الصلاة كښې تير شويدے۔ (١) يو هر هغه څوك چه مسجد ته مخكښې او وختی راشی، برابره ده روستو

اُودریږی او که مخکښې نو هغه صف اول کښې حساب دے۔
(۲) – من قرب من الامام) څوك چه امام ته نزدے اُودریږی نو دا صف اول دے۔او د امام او ددۀ ترمینځ خلل نۀ وی۔
(۳) – ظاهر دا ده چه کوم غټ صف چه د امام پسے متصل ولاړ وی او د سلام په وخت کښې د امام نظر په هغوی لګی نو دا صف اول دے۔او دا د عام حدیثونو نه معلومیږی۔
بیا صفوف ئے جمع راوړه نو دا یا په اعتبار د تعدد د مساجدو دے یا په اعتبار د تعدد د جماعتونو دے۔ او مراد یو صف دے۔ ځکه اول صف خو یو وی۔ یا د صفوفو نه ډیر صفونه مراد دی چه مقدم وی په آخری صف باندے ځکه هغه هم اول دی په نسبت د آخر، نو د آخر صف فضیلت دومره نشته ځکه د دوی نه تقدم فوت شویدے او ددے صف نه مخکنو صفونو دپاره د الله او د ملائکو دا صلاة (رحمت رالیږل) شته دے (سندی حاشیة النسائی)
خَطْوَةٍ : په فتحه د خاء یو ځل قدم اخستو ته وائی دا صیغه د مصدر ده او په ضمه د خاء د دوه قدمونو په مابین کښې فاصلے ته وائی۔
يَصِلُ بِهَا صَفًّا : ددے ډیر صورتونه دی : ۱ – یو دا چه د بهر نه راشی صف کښې یو ځائے خالی وی هغۀ پوره کړی۔ ۲ – دویم دا چه تۀ په روستو صف کښې ئے خو چه مخکښې صف کښې دے خالی ځائے اُولیدو یو څوك اُووتو نو تۀ به ورځے حتیٰ چه په مانځه کښې به هم دا قدم اخلے او په مانځه کښې داسے قسم مزل کول جواز لری، دا حدیث عام دے ټولو حالتونو ته شامل دے او د صحابو نه ددے ثبوت شته دے۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۲۹۷/٤) وابوداود (٥٤٣) (٦٦٤) والنسائی (۹۰/۲) وابن خزيمة (١٥٥١) (١٥٥٢) وابن حبان (۲۱٤٨)

---

۹۱ – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلٰى مَيَامِنِ الصُّفُوْفِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « یقیناً الله او ملائك رحمتونه رالیږی (او ملائك دعا غواړی) په ښی طرف صفونو باندے»۔ (ابوداود)۔
تشریح: حدیث دلیل دے چه ښی طرف صفونه بهتر دی او په ښی طرف صفونو کښې اُودریدل مستحب دی خو کله چه ښی طرفونه نیول شوی وی او کس طرف کښې ځائے خالی وی نو هغه به هم ډکوے داسے به نۀ وائے چه دا بهتر نۀ دے بلکه په دغه وخت کښې بیا هغه بهتر دے۔ لکه دے باره کښې یو حدیث هم دے (من عمر جانب المسجد الایسر لقلة

اهله فله اجران ) (چاچه د مسجد کس طرف آباد کړو نو هغهٔ له دوه اجره دی) (وفی اسناده مقال فیه بقیة وقد عنعنه ولکنه ثقة) (مجمع الزوائد ۹٦/۲)

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (٦٧٦) وابن ماجه (١٠٠٥) وابن حبان (٢١٦٠- الاحسان) والبيهقي (١٠٣/٣) وقال الحافظ في الفتح (٢١٣/٢) : اسناده حسن۔

---

۱۳ – وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُسَوِّيْ صُفُوْفَنَا اِذَا قُمْنَا اِلَى الصَّلَاةِ، فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او نعمان بن بشیر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه برابرول کله چه به مونږ مانځه ته اُودریدو نو کله چه به مونږ برابر شو (په صفونو کښې) بیا به ئے الله اکبر اُوکړو"۔ (ابوداودٔ)

تشریح : دا حدیث هم دلیل دے چه د امام ذمه واری دا ده چه هغه به صفونه برابروی او امر به کوی په برابرولو د صفونو او هله به تکبیر کوی چه صفونه برابر شی او دا کار به د اقامت نه پس کوی او دلیل پدے باندے (اذا قمنا) دے او (فقام حتی کاد ان یکبر) (او اقیمت الصلاة فاقبل علینا بوجهه) دا دواړه په فصل اول کښې تیر شویدی۔ او داسے هم سنت نهٔ دی چه اول صفونه برابر کړی او بیا اقامت شروع کړی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح على شرط مسلم۔ اخرجه احمد (٢٧٠/٤) وابوداود (٦٦٥)

---

١٤ – وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ عَنْ يَمِيْنِهِ : «اِعْتَدِلُوْا، سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ»، وَعَنْ يَسَارِهِ : «اِعْتَدِلُوْا، سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ به (چه کله صف برابرولو نو) ښی طرفته به ئے اُوفرمایل : «برابر شئ او صفونه برابر کړئ» او کس طرفته به (ئے هم فرمایل) : «برابر شئ، صفونه سیده کړئ»۔ (ابوداودٔ)

تشریح : دیته قولی برابرول وائی چه دواړو طرفونو ته داسے الفاظ اُووائی چه صفونه برابر کړئ۔ او مخکښې اوویل شو نو دا به همیشه دپاره نهٔ وائی مگر که ضرورت ئے محسوس کړو لکه نوی خلق مانځه کښې شامل شو نو بیا ئے لوستل سنت طریقه ده۔

د « اعتدلوا » نه مراد په اُودریدلو کښې برابروالے دے چه په یو سمت باندے اُودریږی څکه

چه د صف برابرول د ملائکو شان دے او د یو بل نه مخکښې روستو اُودریدو کښې کله نا کله د بل مسلمان په خشوع کښې فرق پیدا کوي۔او د «سووا» نه جوختیدل مراد دی چه مینځ کښې ځائے پاتے نشي۔یا ثاني تاکید د اول دے یا تفسیر د اول دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح بشواهده : اخرجه ابوداود (٦٧٠) وابن حبان (٢١٥٩)

---

١٥ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «خِيَارُكُمْ اَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلَاةِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او ابن عباس رضی الله عنه فرمائي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «غوره په تاسو کښې هغهٔ خوك دي چه ډیرنرم وي په تاسو کښې په مانځه کښې د اُوګو په لحاظ»۔ (یعني چه صف برابرونکي سره سختي نهٔ کوي) (ابوداودؒ)

تشريح : ١– دے کښې ظاهري او د باب سره مناسبه معنیٰ دا ده چه غوره هغهٔ څوك دے چه څوك ئے د اُوګے نه اُونیسي او په صف کښې ئے مخکښې روستو کوي نو هغهٔ نرمي کوي او بَدُ اَخلاقي نهٔ کړي چه ما نه وړاندے شهٔ ما له ګوتے مهٔ راوړه څکه د نبي ﷺ په زمانه کښې طریقه دا وه چه په صفونو کښې به ئے سرے کرځولو دے دپاره چه خلق برابر کړي نو دا اِرشاد ئے اُوفرمایلو چه د ورونو سره نرمي کوئ۔ نن صبا دا عادت ورك شویدے څکه خلق پدے اِصطلاح نهٔ پوهیږي۔

٢– دویمه معنیٰ : لين المنكب كنايه ده د لزوم السكينة نه یعني څوك چه په مانځه کښې په سکون او آرام ولاړ وي او بے ځایه نهٔ خوزیږي، ګیره او پوزه وغیره کښې ګوتے نهٔ وهي، اُوګے نهٔ وهي، دیکے نهٔ وهي، نو دا غوره انسان دے۔

٣– بعض دا مطلب هم بیانوي چه په اُوګو باندے هغه څوك نهٔ منع کوي کوم چه د خالي ګاه د ډکولو دپاره صف کښې داخلیږي یا د مکان د تنګوالي د وجه نه صف کښې ننوزي نو دے ورله دیکه نهٔ ورکوي (خطابي في المعالم ١٨٤/١)۔

میرك شاهؒ: وائي اوله معنی د باب مناسبه ده او ددے تائید په حدیث د ابو امامه کښې په فصل ثالث کښې راروان دے چه (لينوا في ايدي اخوانكم) او دریمه معنیٰ هم د باب مناسبه ده۔

درجة الحديث : اسناده صحيح بشواهده ـ كما في بيان الوهم والايهام (٨٦٠) فراجعه۔ اخرجه ابوداود (٦٧٢) وابن خزيمة (١٥٦٦) والبيهقي في السنن الكبرى (١٠١/٣) وفي سنده جعفر بن يحيى بن ثوبان عن عمه عمارة بن ثوبان وجعفر مجهول (ابن المديني) ومجهول الحال (ابن القطان) وذكره ابن حبان في الثقات وقال الحافظ في التقريب : مقبول

وعمه عمارة حجازی مستوروقال الذهبی لین لکنه قد وثق وذکره ابن حبان فی الثقات۔ قال المبارکفوری قول الذهبی لکنه قد وثق وقوله لین وذکر ابن حبان ایاه فی الثقات یدل علی انه لیس بمجهول الحال عندهم ومن عرف حجة علی من لم یعرف الخ (مرعاة ١٨/٤)

## الفصل الثالث

١٦ – عَنْ اَنَسٍ، قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَقُوْلُ: «اِسْتَوُوْا، اِسْتَوُوْا، اِسْتَوُوْا، فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ، اِنِّيْ لَاَرَاكُمْ مِنْ خَلْفِيْ كَمَا اَرَاكُمْ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او انس رضی الله عنه فرمائی : نبی ﷺ به فرمايل : «برابر شئ، برابر شئ، برابر شئ، قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغه په لاس کښې دے، زه (په مانځه کښې) تاسو د خپل شا طرف نه داسے وينم لکه څنګه چه زه تاسو د مخې نه وينم»۔ (ابوداوُد)

تشریح : درے کرتے ئے دا حکم اُوکړو دپاره د تاکید یا ممکن ده چه اول امر اِجمَالاً واقع شوے وی او دویم بنی طرف والا او دریم چپ والو دپاره شوے وی۔

امامانو له پکار دی چه د صفونو د جوړولو اهتمام اُوکړی بعض امامان د اقامت په وخت قبلے ته متوجه وی او صرف دا کلمات اووائی او باقی صف نۀ برابروی او دا ګمان کوی چه ما ګنے په سنت عمل اُوکړو حال دا چه ددے کلماتو د وینا مقصد د صف سیده کول او مقتدیان برابرول دی۔ انظر تمام المنة (١٥٢/١)

اِنِّيْ لَاَرَاكُمْ مِنْ خَلْفِيْ : دا ئے منافقانو ته دهمکی ورکړه چه تاسو خو د الله نه نۀ یریږئ خو زۀ هم ستاسو ورانے وینم۔ او دا لیدل په حقیقت باندے حمل دی او دا د نبی ﷺ معجزه وه لکه ددے باقی تشریح په (٤ جلد/٢٨٨ باب الرکوع) کښې تیره شویده۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح علی شرط مسلم۔ اخرجه احمد (٢٦٢/٣) والنسائی رقم ٨١٣) فی باب کم مرة یقول : استووا، ولیس فی ابی داود فعزو المصنف الیه وهم منه– رحمه الله

---

١٧ – وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «اِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْاَوَّلِ»، قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَعَلَى الثَّانِيْ؟ قَالَ: «اِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْاَوَّلِ». قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَعَلَى الثَّانِيْ؟ قَالَ: «اِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الصَّفِّ الْاَوَّلِ»، قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَعَلَى الثَّانِيْ ؟ قَالَ : «وَعَلَى الثَّانِيْ». وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ، وَحَاذُوْا بَيْنَ مَنَاكِبِكُمْ، وَلِيْنُوْا فِيْ اَيْدِيْ اِخْوَانِكُمْ، وَسُدُّوا الْخَلَلَ، فَاِنَّ

الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ فِيْمَا بَيْنَكُمْ بِمَنْزِلَةَ الْحَذَفِ»، يَعْنِيْ اَوْلَادَ الضَّأْنِ الصِّغَارَ. رَوَاهُ اَحْمَدُ.

---

ترجمه : او ابو امامه ﷛ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «يقيناً الله او ملائك په اول صف باندے رحمتونه ليږي»، صحابه كرامو عرض اُوكړو اے د الله رسوله ! او په دويم صف والو باندے (هم يعني داسے اُووايئ چه په اول او دويم صف باندے رحمت راليږي مګر) نبي ﷺ اُوفرمايل : «يقيناً الله او ملائك په اول صف والو باندے رحمت ليږي»، (پدے ځل ئے هم دويم صف ذكر نۀ كړو) صحابه كرامو عرض اُوكړو : اے د الله رسوله ! او په دويم صف باندے (هم اُووايه) وے فرمايل : «يقيناً الله او ملائك په اول صف والو باندے رحمت راليږي » صحابه كرامو اُوفرمايل : اے د الله رسوله ! او په دويم صف باندے. وے فرمايل : «او په دويم باندے » (هم الله او د هغۀ ملائك رحمت راليږي) او رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « صفونه برابر كړئ او د خپلو اُوګو ترمينځ برابروالے اُوكړئ او د خپلو وروڼو په لاسونو كښې نرم شئ (چه هغۀ مو صف كښې سيده كوي نو سختي ورسره مۀ كوئ چه زۀ نۀ سميږم) او خالي ګاه بنده كړئ، ځكه شيطان ستاسو په مابين كښې داسے ننوځي لكه په شان د حذف يعني وړوكي بچي د چيلئ ». (احمدؒ)

تشريح : پدے كښې د صف اول زيات فضليت شو د صف ثاني نه په درے چندونو.

وَعَلَى الثَّانِيْ؟ : يعني په دويم باندے هم دغه شان اُووايه. او دا په ظاهر كښې خبر دے خو په معنیٰ د دعاء دے. يا خبر په خپله معنیٰ دے.

وَلِيْنُوْا فِيْ اَيْدِيْ : دا دليل دے چه (الينكم مناكب) كښې اوله معنیٰ بهتره وه يعني چه وړور مسلمان دِے سموي نو نرم شه او چه مسلمان د خالي ګاه ډكولو دپاره صف كښې ننوزي نو نفرت ترے مۀ كوه.

دے كښې يوه بله معنیٰ هم دا شويده چه څوك راشي او صف پوره شوے وي او هغه يواځے اُودريږي نو تا د مخكښې صف نه راكاږي دے دپاره چه هغه سره اُودريږے او هغۀ د يواځے مونځ كولو نه محفوظ كړے ځكه يوتن به يواځے صف نۀ جوړوي بل څوك به د مخكښې صف نه راكاږي نو تۀ به هغه ته خپله اُوګه نۀ سختوے بلكه هغه سره به مدد كوے. مګر دا معنیٰ دومره واضحه نۀ ده ځكه پدے باره كښې صريح صحيح حديث نشته. كما سيأتي قريباً.

او دا مقصد هم دے چه يو انسان په مانځه كښې وران ولاړ دے لرے ولاړ دے ته ئے ځان ته راكاږے نو هغۀ له پكار دي چه تا ته نرم شي او رانژدے شي، او داسے نهي عن المنكر او تصرفات په

مانځه کښې جائز دی لکه نبی ﷺ ابن عباسؓ لره د ګس طرفنه ښی طرفته راتاؤ کړو۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (٢٦٢/٥) باسناد لا بأس به وصححه الالبانی فی صحیح الترغیب ١١٨/١) وصحیح الجامع (١٨٤٠) وقال المنذری فی الترغیب : باسناد لا بأس به، وقال الهیثمی رجاله موثقون۔ واخرجه الطبرانی فی الکبیر۔

---

١٨ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اَقِیْمُوا الصُّفُوْفَ، وَحَاذُوْا بَیْنَ الْمَنَاکِبِ، وَسُدُّوْا الْخَلَلَ، وَلِیْنُوْا بِاَیْدِیْ اِخْوَانِکُمْ، وَلَا تَذَرُوْا فُرُجَاتٍ لِلشَّیْطَانِ، وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَ صَفًّا قَطَعَهُ اللهُ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ وَرَوَى النَّسَائِیُّ مِنْهُ قَوْلَهُ « وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا» اِلٰی آخِرِهٖ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « صفونه اُودروئ (نیغ ئے کړئ) او د اُوګو ترمینځ برابر والے اُوکړئ، او خالی ګاه بندے کړئ او د خپلو ورونو په لاسونو کښې نرم شئ، او د شیطان دپاره کولاؤ ځایونه مهٔ پریدئ، او چا چه صف پیوسته کړو، الله به ئے پیوسته کړی (د خپل رحمت سره) او چا چه صف پریکړو نو الله به ئے (د خپل رحمت نه) کټ کړی»۔(ابوداودٌ) او نسائیٌ ددے حدیث نه (من وصل صفا) تر آخره پورے روایت کړے دے۔ (او ددے نه مخکښې روایت پکښې نشته)۔
تشریح : وَصَلَهُ اللهُ : یعنی چا چه صف کښې خالی ګاه بنده کړه یا نقصان ئے پوره کړو نو الله به ئے د خپل رحمت سره یو ځائے کړی یا به ورله مقاصد پوره کړی۔
وَمَنْ قَطَعَ صَفًّا : او چا چه صف قطع کړو چه خپه ئے د خپل ملګری سره اُونهٔ جنګوله یا ئے یو مانع مینځ ته راوړو او صف کښې ئے کولاؤ والے پیدا کړو نو الله به ئے د خپل رحمت نه پریکړی او مقاصد به ئے نهٔ پوره کوی۔
نو پدے کښې سخته سزا ده پدے وجه صف نهٔ برابرول ګناه کبیره ده۔او شیطان ته د مانځه نه برخه ورکول دی۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه ابوداود (٦٦٦) والنسائی (٩٣/٢) والحاکم (٢١٣/١) وقال صحیح علی شرط مسلم ووافقه الذهبی وصححه ابن خزیمة۔

---

١٩ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«تَوَسَّطُوْا الْاِمَامَ وَسُدُّوْا الْخَلَلَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ.

ترجمه : او ابو هريره رضي الله عنه فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « امام په مينځ کښ کړئ، او کولاؤ ځايونه بند کړئ»۔ (ابوداود)

تشريح : تَوَسَّطُوا الْإِمَامَ : يعني د امام نه په داسې ځائے کښ اُودريږئ چه هغه په مينځ د صف کښ راشي او ښي او کس طرفته خلق ئې برابر وي او دا مطلب نهٔ دے چه امام به د مقتديانو سره په يو صف کښ اُودريږي هغه معنیٰ به روستو باب الامامة کښ د زنانو باره کښ راشي۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (٦٨١) وفي اسناده يحيى بن بشير بن خلاد عن امه ويحيى مستور وامه مجهولة وهو في ضعيف الجامع الصغير (٦١٢٢) تعليق المشكاة (٤٥٤/١) لكن للشطر الثاني شواهد من حديث ابن عمر بسند صحيح الخ

---

٢٠ – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُوْنَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ، حَتّٰى يُؤَخِّرَهُمُ اللهُ فِي النَّارِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « هميشه به وي يو قوم چه د اول صف نه به روستو روستو کيږي تردے چه الله به ئې په اُور کښ روستو کړي»۔ (يعني د اُور نه به ئې رُوستو راوباسي کهٔ چرته اُور ته لاړ شي) (ابوداودؔ)۔

تشريح : يَتَأَخَّرُوْنَ : يعني څهٔ خلق د صف اول د فضيلت اهتمام نهٔ کوي نو الله به ئې د خيراتو نه محروم کړي او آخر دا چه اُور ته به لاړ شي او بيا به ئې د اُور نه روستو راوباسي، ځکه جزاء من جنس العمل وي، دهٔ تاخير کړے وو په نيك اعمالو کښ نو الله ئې هم د تولو نه روستو راوباسي۔

ديکښ دا مطلب هم ښهٔ دے چه هر انسان اُور ته داخليږي ځکه پُل صراط باندے به تيريږي نو څوك به پرے زر تيريږي او دا انسان چه د صف اول اهتمام ئې ندے کړے نو دے به په هغے کښ په آرام روان وي نو که نور گناهونه ئې ورسره ملگري وو نو بيا به سزا هم خوري او روستو به د اُور نه اُوځي او که گناهونه ورسره ملگري نهٔ وو نو پُل صراط باندے به په قلاره پورے وزي او دا هم ډير لوئي هيبت دے ځکه د پُل صراط لاندے اُور دے (وان منکم الا واردها)

درجة الحديث : اسناده رجاله ثقات : لكن من رواية عكرمة بن عمار بن يحيى بن ابي كثير وقد ضعفها جماعة من النقاد منهم مُخرّجه ابوادود اخرجه ابوداود (٦٧٩) ولكن يشهد له حديث ابي سعيد المتقدم برقم (٦) وصححه الالباني في صحيح ابي داود (٦٧٩) وصحيح

الجامع (۷۶۹۹) ______

۲۱ - وَعَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ، قَالَ: رَأَى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَجُلًا يُصَلِّيْ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ، فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيْدَ الصَّلَاةَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ. ______

ترجمه : او وابصه بن معبد ﷺ فرمائی: "رسول الله ﷺ یو سړی اُولیدو چه د صف نه روستو ئے یواځے مونځ کولو نو هغهٔ ته ئے حکم اُوکړو چه مونځ راوګرځوی"۔ (احمدؒ، ترمذیؒ، ابوداودؒ) او ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث حسن دے۔

تشریح : فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيْدَ الصَّلَاةَ :

## د صف نه روستو یواځے مونځ کول :

پدے کښې اختلاف دے چه آیا د صف نه روستو یواځے مونځ کول په کومه درجه کښې دی؟ نو پدے کښې ۱ – د اهل ظواهرو مذهب دا دے چه د صف نه روستو یواځے مونځ کول باطل دی او اِعاده ئے لازم ده او دا حدیث ئے دلیل دے او دا قول د حسن بن صالحؒ، ابراهیم نخعیؒ، احمدؒ، اسحاقؒ او ابن المنذرؒ او الحکمؒ، او دا قول د یو قوم د کوفے والو دے لکه حماد بن ابی سلیمانؒ ، عبد الرحمن بن ابی لیلیٰؒ او وکیعؒ دے۔ ابن حزمؒ وائی : دا قول د اوزاعیؒ او حسن بن حیؒ او یو قول د سفیان ثوریؒ دے۔ امام دارمیؒ وائی دا زما قول هم دے۔

او دا حدیث حافظ ابن القیمؒ په «اعلام الموقعین(۲/۳۵۸)» کښې ذکر کړیدے ددے دپاره چه مقلدینو دا صحیح صریح حدیث د خپلو قواعدو په بناء رد کړیدے۔ او هغه دا چه ددے سړی شرائط او ارکان پوره دی اودس ئے صحیح کړیدے او عورت ئے پټ دے نو ددهٔ مونځ ولے باطل شی؟ مګر د الله نبی فرمائی چه یو شرط درنه پاتے دے او هغه دا چه صف کښې نه ئے شامل۔ نو دا حدیث جُدا قاعده ده۔

(۲) مالک ، شافعی او ابوحنیفه رحمهم الله – فرمائی : دا مونځ صحیح دے لیکن سړے ګناهګار دے لهذا مونځ مکروه دے او باطل نهٔ دے۔ عینیؒ وائی : ځکه چه صحت د مونځ تعلق لری د ارکان او شرائطو سره او هغهٔ موجود دی۔ او مکروه ځکه دے چه نهی موجود ده۔ او دلته ئے چه پرے اِعاده کړے ده نو دا استحباباً ده۔

لیکن قول اول حق دے وجه ئے دا اُوپیژندله چه پدے حدیث کښې یو بل شرط هم د مانځه ذکر دے چه یواځے د صف نه روستو به مونځ نهٔ کوے۔ که اُودے کړو نو مونځ به راګرځوے۔ نو مونږ ولے اُووایو چه دا اِعاده مستحب ده بلکه فرض ده، مانع د فرضیت نه

نشته۔ او پدې حدیث باندې بعض علماؤ کلام کړیدې لیکن راجح دا ده چه دا حسن یا صحیح دې۔ لکه روستو ئې درجه راروانه ده۔ او صریح حکم په کښې ذکر دې۔
۲- دلیل : حدیث د علی بن شیبان دې دا فرمائی: مونږ په وفد کښې رسول الله ﷺ ته راغلو او د هغهٔ نه روستو مو مونځ اُوکړو، هرکله چه رسول الله ﷺ مونځ ختم کړو، نو یو سړې ئې اولیدو چه د صف نه روستوئې یواځې ولاړ وو نو نبی ﷺ هغهٔ ته اُودریدو کله چه هغهٔ مونځ ختم کړو نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : (استقبل صلاتك (وفي رواية : اعد صلاتك) فانه لا صلاة لفرد خلف الصف) (مونځ دوباره راوګرزوه ځکه چه د صف نه روستو د یواځې سړی کونکی مونځ نهٔ کیږی) (صحیح ابن حبان (۵۷۹/۵) رقم (۲۲۰۲) و (۲۲۰۳) صححه شعیب الارناؤوط) (سنن البیهقی (۱۰۵/۳) بلوغ المرام (۱۵۱/۱) بسند صحیح، اتحاف الخیرة المهرة بزوائد المسانید العشرة للبوصیری (۷۰/۲) دا حدیث صریح دلیل دې چه د صف نه روستو د یواځې مونځ کونکی مونځ صحیح نهٔ دې۔
اوس که یو سړې یواځې صف ته راشی او صف پوره وی نو څهٔ به کوی؟ نو پدې کښې بعض شوافع دا وائی چه (انجرار الرجل) به کوی یعنی د مخکښې صف نه به یو سړې راکاږی او ځان سره به ئې اُودروی او هغه صف والا به د یو بل سره نزدې نزدې شی او که دریم کس راغې نو دغه شخص به بیرته خپل اول صف ته لاړ شی او مانځه کښې دا تصرف جائز دې۔ او دوی استدلال کوی د یو حدیث نه چه بیهقی (۱۰۵/۳) راوړیدې د وابصهؓ نه : (ایها المصلی وحده اَلّا وصلت الی الصف او جررت الیك رجلاً فقام معك اَعِدِ الصَّلَاةَ)
او دغه شان روایات په مراسیل ابی داود او طبرانیؒ کښې هم شته مګر ټول په مجموع الطرق ضعیف دی۔ ددې په سند کښې سری بن اسماعیل ضعیف بلکه متروك راوی دې۔
دا ډیره ښهٔ طریقه وه لیکن حدیث ئې په ټولو اَسانیدو ضعیف دې لهذا پدې باندې به عمل نشی کیدې ځکه زمونږ دین مستغنی دې د ضعیف احادیثو نه۔ شوکانیؒ دا حدیث ضعیف کړیدې بیا ئې وئیلی دی چه دا راخکل د قبیلې د مُعَاونة علی البر والتقویٰ نه دی نو پدې وجه مستحب دی چه مونځ باطل نهٔ شی۔ نیل الاوطار (۲۲۸/۳) والمرعاة (۲۰/٤)
او پدې باندې عام دلائل شته لکه دلیل حدیث د مسلم دې د جابرؓ نه چه زهٔ د نبی ﷺ سره اُودریدم پدیکښې جبار بن صخرؓ راغلو۔ نو نبی ﷺ مونږ دواړو لره دیکه راکړه او روستو ئې کړو، لکه لږ روستو راځی۔ نو ددې نه معلومیږی چه تقدم او تأخر په صفونو کښې جائز دې۔
مګر مالك بن انسؒ، احمد بن حنبلؒ، اسحاقؒ او اوزاعیؒ وائی چه د سړی راخکل مشروع نهٔ دی ځکه چه مخکښې صف نه یو شخص راخکل د هغهٔ صف کښې کولاو والی

راوستل دی او هغهٔ منقطع کول دی او حدیث کښې دی (من قطع صفا قطعه الله) نو نبی ﷺ وائی : صف متصل کړه او تهٔ ئې منقطع کوے۔ (الجامع لاحکام الصلاة لمحمود عبد اللطیف عویضة) مګر ددے په جواب کښې دا وئیلے شی چه مخکنی صف والا خلق به یو بل ته متصل شی، او کولاو والے به بند کړی، هغوی به په الزاق (متصل کیدو امر) باندے عمل اُوکړی۔ مګر شیخ مبارکفوریؒ د بعض علماؤ نه نقل کړیدی چه پدے سړی راځکلو کښې هغهٔ د اول صف نه محروموول دی۔

۲- دویم صورت دا دے چه انتظار به کوی تردے چه بل سړے راشی دا خبره ابن باز کړیده (الفتاوی الاسلامیة ۲۶۷/۱) لیکن دا خبره هم خطاء ده ځکه نبی ﷺ فرمائی : کله چه یو تن مانځه ته راشی او امام په مانځه اُومومی (فلیصنع کما یصنع الامام) (امام چه ځهٔ کوی هغه شان دے دا هم اُوکړی) نو انتظارونه پکښې نشته ځکه یا به بل سړے راځی یا به نهٔ راځی، دهٔ نه به توله جُمعه فوت شی۔

نو څه ځهٔ به کوی ؟ نو پدے کښې (۳) یوه طریقه دا ده چه دغه مقتدی به لاړ شی د امام سره به یو ځائے اُودریږی لکه دا کار نبی ﷺ اُوکړو چه په مرض الوفاة کښې د ابوبکر صدیقؓ خوا کښې اُودریدو (بخاری) دارنګه ابن عباسؓ د نبی ﷺ سره صف تړلے وو (بخاری)

(٤) مګر پدے ټولو کښې راجح او ډیره صحیح طریقه دا ده چه ددهٔ نه مخکښې صف کښې به ځانله ځائے پیدا کړی لکه د مقلدینو په عام مساجدو کښې دا کار کیدے شی چه جُدا جُدا ولاړ وی او که د اهل حدیثو جماعت ته حاضر شی نو بیا خو هغوی ډیر جُوخت جُوخت ولاړ وی د بل تن ګنجائش پکښې نهٔ وی نو بیا به یو ائے اُودریږی او دا ضرورت دے، او عند الضرورة داسے حکم ساقطیږی او هر چه دا حدیث دے نو دا محمول دے په هغه چا چه په اول صف کښې ورته ځائے ملاویږی او دے صف ثانی جوړوی۔ نو ددهٔ مونځ بیا نهٔ کیږی، ځکه ددهٔ ضرورت نشته۔

او حافظ ابن عبد البرؒ لیکی : کوم علماء چه د صف نه روستو مونځ کولو ته جائز وائی نو هغوی په حدیث د ابوبکرهؓ باندے استدلال کوی چه هغهٔ د صف نه روستو یو ائے رکعت اُوکړو او نبی ورته د اِعادے حکم اُونهٔ کړو۔ بلکه (زادك الله حرصاً ولا تعد) ئے ورته اُوفرمایل۔ انتهیٰ۔ لیکن ددے جواب دا دے چه هغهٔ حدیث صحیح دے لیکن دا مسئله ترے نهٔ ثابتیږی ځکه چه هغهٔ خو پوره مونځ د صف نه روستو یو ائے نهٔ دے کړے بلکه صف کښې په همدغه رکعت کښې شامل شویدے۔ صرف تحریمه ئے د صف نه بهر تړلے ده او بیا صف کښې داخل شویدے لهٰذا دا پوره دلیل نهٔ ګرځی۔فتدبر۔ او کهٔ یو انسان ته د

ابوبکرہؓ په شان صورت راپیش شی نو هغهٔ دپاره به هم د صف نه جدا تحریمه ترل بالکل جائز وی، او په دهٔ باندے به بیا اعاده نهٔ وی۔ (کما قال الحافظ ابن قیمؒ فی الاعلام) والوهبة فی الفقه الاسلامی وادلته (۳۲۶/۲)

☆– او دوی وائی چه په دے حدیث د وابصهٔ کښې دا خبره نشته چه نبی ﷺ دهٔ ته پدے وجه د اِعَادے حکم اُوکړو چه دهٔ د صف نه روستو یواځے مونځ اُوکړو، شاید چه د بل څه سبب په وجه ئے ورته د اِعادے حکم کړے وی۔ جواب دا دے چه دا هسے احتمال دے او ظاهر دا ده چه سبب ئے همدغه د صف نه جدا مونځ کول دی، او پدے حدیث کښې د اضطراب خبره ضعیفه ده ځکه دے کښې داسے اضطراب نشته چه هغهٔ مضر وی او عمل پرے اُونهٔ شی۔

نو صحیح دا ده چه کله مونځ کونکے یواځے پاتے شو او بل څوك نهٔ وو نو بل راخکل ضروری نهٔ دی او دا په دے حالت کښې معذور دے او دده مونځ بالکل جائز دے، او د معذور نه دا قسم واجب ساقط دی۔ لکه دا خبره حافظ ابن قیمؒ د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ نه هم نقل کړیده۔ او ابن المنذرؒ د حسن بصریؒ، مالك، اوزاعیؒ، شافعیؒ او اصحاب الرأیؒ نه مطلقاً جواز نقل کړیدے لیکن مونږ وایو چه مطلقاً خبره صحیح نهٔ ده بلکه که عذر وی، صفونه ډك وی او بل څوك هم موجود نهٔ وی نو بیا جواز لری۔ والله اعلم ۔کما فی الاختیارات العلمیة لشیخ الاسلام ص (٤٢) وبدائع الفوائد (۸۷/۳) لابن القیم۔ والضعیفة (۳۲۲/۲) والارواء (۳۲۹/۲) و تحفة الاحوذی (۱۹۵/۱) وفتاوی الدین الخالص (۲٤٤/٥) و کتاب الجامع لاحکام الصلاة (۱۹۳/۳) لمحمود عبد اللطیف عویضة۔ والاستذکار لابن عبد البر (۳۱٦/۲) وطرح التثریب (٦۹/۳)

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۲۲۸/٤) وابوداود (٦۸۲) والترمذی (٤٤۸/۱) وقال حدیث حسن واخرجه ابوداود الطیالسی (۱۲۰۱) وقال الحافظ فی الفتح : صححه احمد وابن خزیمة وغیرهما واعله بعضهم بالاضطراب فی السند ولکن قال ابن سید الناس فی شرح الترمذی هذا الاضطراب لیس مما یضره کما قال الشوکانی وقد بینه احمد شاکر فی تعلیق الترمذی (٤٤۸/۲) واطال الکلام فیه فراجعه (مرعاة ٤/ ۲٤) وصححه الالبانی فی ارواء الغلیل (۳۲۳/۲) رقم (٥٤۱) وقد جمع طرق الحدیث کلها ثم قال: فتبین ان الحدیث صحیح لیس من قبیل المضطراب فی شیءٍ آه.

OOOOOOO

# باب الموقف

## د امام او د مقتدی د اُودریدو دَ ځائے بیان

امام به چرته اُودریږی، او مقتدی به چرته او ډیر مقتدیان به چرته اُودریږی ددے بیان به کوی۔

### الفصل الاول

۱- عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ فِیْ بَیْتِ خَالَتِیْ مَیْمُوْنَةَ، فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ یُصَلِّیْ، فَقُمْتُ عَنْ یَسَارِهٖ، فَاَخَذَ بِیَدِیْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهٖ فَعَدَلَنِیْ کَذٰلِكَ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهٖ اِلَی الشِّقِّ الْاَیْمَنِ. مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

ترجمه : ابن عباس ﷺ فرمائی: ما د خپلے ترور (ماسی) میمونے په کور کښں شپه تیره کړهٔ نو رسول الله ﷺ راپاڅیدو چه مونځ ئے کولو نو زهٔ (هم) راپاڅیدم (او د هغهٔ) کس طرف ته اُودریدم۔ نو د شا طرف نه ئے زما لاس اُونیولو نو دغه شان ئے د شا طرف نه ښی طرفته راواړولم۔ (او ځان سره ئے خوا کښں ښی طرفته اُودرولم) (بخاریؒ، مسلمؒ)

تشریح : دا حدیث مختصر دے د اُوکد حدیث نه چه ابن عباسؓ خپل پلار ددے دپاره نبی ﷺ ته اُولیږلو چه د هغهٔ د شپے د مانځه کیفیت زدهٔ کړی، نو ددے نه دا فائده معلومه شوه چه علم به کله په واسطه طلب کوے او کله بالذات۔

۲- خبر واحد له اعتبار دے په شریعت کښں ځکه ابن عباسؓ به خپل پلارته ددے بیان کوی او هغه به ئے منی، او دے کښں به احتمالات نه راوُباسی۔

بل روایت کښں دا دی چه رسول الله ﷺ ماسخوتن سنت اُوکړل او په بالخت ئے سر کیخودو او میمونهٔ هم ورسره وه او زهٔ هم ورسره په بالخت څملاستم چه خپے مے بل طرفته وے (ددے نه دا فائده معلومیږی چه خپلے ښځے سره د یو محرم په خوا کښں کیناستل جواز لری لکه وراره، خوریا وغیره لیکن د جماع حالت به نهٔ جوړوی او ښکلول وغیره به د هغه په مخکښں نهٔ کوی ځکه بیا ددے نه بی حیائی پیدا کیږی۔

بل روایت کښں دی : (فتحدث عند اهله ساعة) د خپل اَهل سره ئے لګ وخت خبرے اُوکړے(معلومه شوه چه د ماسخوتن مانځه نه روستو د خپلے ښځے سره خبرے اَترے جواز لری)۔ دارنګه بیا ابن عباسؓ وائی : زهٔ ویښں شوم چه نبی ﷺ نصف اللیل کښں پاڅیدو

مسواك ئې اُووهلو او (ان في خلق السموات) ركوع ئې تلاوت كړه بيا ئې اَودس اُوكړو، بيا په مانځه اُودريدو نو زۀ هم چپ طرفته اُودريدم.

پدے حديث كښې مسائل دى : ١- مسئله : مقتدى دپاره د امام نيت ضرورى دے خو د امام دپاره د مقتدى نيت ضرورى نۀ دے بلكه ډيرو اَحاديثو كښې دى چه نبى ﷺ يواځے مونځ باندے ولاړ دے صحابه ورپسے اُودريدلى دى او جماعت ترے جوړ شويدے او امام ئې د مخكښې نه نيت نۀ دے كړے او دا واقعات په تهجدو كښې ډير دى، دلته نبى ﷺ د ابن عباسؓ د جماعت نيت نۀ وو كړے ليكن كله چه ورسره ابن عباسؓ اُودريدو نو جماعت ترے جوړ شو.

حافظ ابن المنذرؒ ددے دپاره استدلال كړے په حديث د انس باندے چه هغه فرمائى : نبى ﷺ به، په رمضان كښې اُودريدو، نو (يوه ورځ) زۀ راغلم د هغه اړخ ته اُودريدم او بل تن راغے زما اړخ كښې اُودريدو تردے چه مونږ يو جماعت شو كله چه نبى ﷺ په مونږ پوهه شو نو په مانځه كښې ئې اختصار اُوكړو الحديث. (مسلم ١/٣٥٢- بخارى تعليقاً)

دا حديث دليل دے چه نبى ﷺ نيت د امامت ابتداءً نۀ وو كړے. او پدے باندے امام بخارى باب تړلے دے.

٢- پدے كښې امام احمدؒ فرق كوى د فرض او نفلو په مينځ كښې نو په فرضو كښې ئې نيت شرط گرځولے دے نۀ په نفلو كښې، ليكن قول ئې ضعيف دے. وجه دا ده چه حديث د ابوسعيد الخدريؓ كښې دى : نبى ﷺ يو سړے اُوليدو چه مونځ ئې يواځے كولو، وے فرمايل : «څوك نشته چه په دے سړى باندے صدقه اُوكړى او ددۀ سره مونځ اُوكړى» (ابوداودؒ، ترمذىؒ، وصححه ابن خزيمة وابن حبان والحاكم) نو دا په فرضو كښې دے.

پدے باندے بله مسئله بناء ده چه امام پسے سړى او ښځے ټول اُودريدے شى برابره ده كه امام ئې نيت كړے وى او كه نۀ وى او دا قول د جمهورو علماؤ دے.

٢- اَحناف وائى چه كه اِمام د زنانو نيت كړے وى نو مونځ به ئې جائز وى او كه نيت ئې نۀ وى كړے نو ندے جائز. يعنى وائى : په حق د سړو كښې نيت د امامت شرط نۀ دے او په حق د زنانو كښې نيت د امامت شرط دے ځكه احتمال شته چه مونځ د سړى د ښځے په محاذات سره فاسد شى.

نو پدے باندے بيا مسئله د محاذاة المرأة تفريع كوى چه كه امام د سړو او زنانو دواړو نيت كړے وو او يوه ښځه د سړى سره اُودريده نو د سړى مونځ باطل شو په لس شروطو سره. چه د هغۀ شروطو دپاره هيڅ قسم دليل نشته، او دا مصنوعى اِختراعى مسئله ده چه شريعت كښې ئې هيڅ ثبوت نشته. بعض احناف چه دے له كوم روايت په دليل كښې

پیش کوی چه (اَخِّرُوْهُنَّ من حیث اَخَّرَهُن الله) چه دلته سړی ته خطاب دے چه زنانه روستو کړه نو دے سړی پدے امر باندے عمل اُونکړو نو ځکه ئے مونځ باطل شو۔

۱ – ددے جواب دا دے چه شیخ البانیؒ په الضعیفه (۳۱۹/۲) رقم (۹۱۸) کښ فرمائی : دا حدیث مرفوعاً ندے ثابت، ضعیف دے۔ زیلعیؒ په نصب الرایه (۳۶/۲) کښ لیکی : (غریب مرفوعاً) ملاعلی القاریؒ په الموضوعات کښ د ابن الهمامؒ نه نقل کوی چه هغه په شرح الهدایه کښ وئیلی دی : (لایثبت رفعه فضلاً عن شهرته) صحیح دا ده چه دا د ابن مسعودؓ وینا ده کما فی کشف الخفاء (۶۷/۲) ومصنف عبد الرزاق (۱٤۹/۳) رقم (۵۱۱۵)۔

او هر کله چه دا د نبی ﷺ وینا نشوه نو پدے باندے استدلال کول په فساد د مانځه د سړی باندے صحیح نۀ شو۔

دویم دا چه حافظ ابن حجرؒ ددے په باره کښ فرمائی : پدے استدلال کښ تَعَسُّف دے ځکه چه دے کښ خو دا دی چه زنانه به سړی سره جُوخته نۀ اُودریږی، ځکه چه یَره ده چه سړے په فتنه کښ واقع نۀ شی نو کله چه ښځے خلاف اُوکړو او د سړی سره اُودریده نو د جُمهورو په نیز د ښځے مونځ جائز دے۔ اګرکه ګناهګاره ده ۔او ددے تعسف وجه دا ده چه (۱) یو خو دا حدیث مرفوع نۀ دے بلکه موقوف دے او دا عامه معنیٰ لری چه ښځے صف کښ مۀ مخکښ کوئ، دارنګه د دوی مخکښ نوم مۀ اخلئ په هر څه کښ ئے روستو کړئ۔

(۲) دویمه وجه دا ده چه د احنافو او جمهورو دا قاعده ده چه په ترک د امر سره فساد د مانځه نۀ راځی بلکه کراهیة راځی او انسان ګناهګاریږی اګرکه مونځ به صحیح وی او دا خو اصول د ابن حزمؒ دی چه (مخالفة الامر توجب الفساد)۔

نو احناف څنګه د خپلو اصولو خلاف کوی او بیا حافظؒ ددے مثالونه ذکر کړیدی لکه فرمائی :« په مغصوبه جامه کښ د مونځ کولو نه منع راغلے ده او اغوستونکی ته ئے حکم کړے دے چه هغه اُوباسی لیکن که بیا هم مُصلی مخالفت اُوکړو او دغه جامه کښ ئے مونځ اُوکړو نو مونځ ئے جائز دے اګرکه ګناهګار به وی نو دلته هم احنافو له داسے وئیل پکار دی چه په مسئله د محاذات کښ دے هم مونځ جائز شی۔

دارنګه که د مسجد مخے ته پردئ زمکه وی او یو شخص پکښ بغیر د اجازت نه مونځ ته اُودریدو سره ددے نه چه قادر وی په دے چه یو قدم مخکښ شی او مسجد کښ اُودریږی او دا انسان په دغه پردئ زمکه کښ مونځ اُوکړی نو مونځ ئے صحیح دے خو سړے ګناهګار دے نو دغه شان دے په محاذات المرأة کښ هم اووئیلے شی»۔ فتح الباری (۱۷۷/۲)

(۳) بله وجه دا ده چه سړی خو په مانځه کښ شروع کړیده نو که ښځه روسته کوی نو

بیا عمل کثیر راځی، او د احنافو په نیز خو مونځ کښې امر او نهی او اشارے کول ممنوع دی نو سرے مجبوره دے۔ (٤) بله دا چه پکار ده چه د ښځے مونځ فاسد شی ځکه دے ته د روستو کیدو حکم دے چه صف به روستو جوړوی او دے ددے حکم مخالفت اُوکړو۔ (السیل الجرار (۲۵۹/۱)

نو معلومه شوه چه ددے روایت نه دلیل نیول په مسئله د محاذات کښې صحیح نهٔ دی نو د محاذات مسئله باطله شوه یو خو دا بناء ده پدے روایت باندے او بل دا چه امام به د مقتدیانو د سړو او ښځو نیت کړے وی نو دا خبره ضعیفه شوه تا اوپیژندله۔ او دارنګه د (اخروهن) معنی وے هم اُوپیژندله نو کوم مقلدین چه دا وصیتونه کوی حاجیانو ته چه مسجد حرام او مسجد نبوی کښې وے زنانه د جماعت مونځ نهٔ کوی ځکه د حرم امامان د زنانو د مانځه نیت نهٔ کوی نو دا خبره ئے د سنت خلاف ده۔لکه رشید احمد لدهیانوی په احسن الفتاوی (۳۵۳/۲) کښې دا وصیت کړیدے ۔ نور د دوی دلائل نشته۔

ظفر احمد عثمانی چه په اعلاء السنن (۲۳٦/٤) کښې ددے مسئلے دپاره کوم دلائل ذکر کړیدی هغه پدے باندے دلالت نکوی ځکه چه هغے کښې صرف دا خبره ده چه د زنانو صفونه به روستو وی د سړو د صفونو نه او دا خو اتفاقی خبره ده۔

راجع فتاوی الدین الخالص (۲۳۱/٥)

۲- المسئلة الثانیة : یو امام وی او یو مقتدی وی نو مقتدی به ښی طرفته اُودریږی او امام به ګس طرفته وی۔ دلته عبد الله بن عباسؓ ته مسئله نده معلومه ځکه ګس طرفته ولاړ دے او نبی ﷺ ښی طرفته په مانځه کښې راتاؤ کړے دے۔ بیا چه یو مقتدی وی نو څنګه به اُودریږی؟ نو فقه حنفی کښې دی چه امام محمدؒ نه نقل دی چه مقتدی به د امام نه لګ روستو اُودریږی، چه ګوتے د خپو به د امام د ګیټو سره وی، دے دپاره چه د امام او مقتدی مساوات رانشی۔ او فرق راشی، (عینیؒ) لیکن دا خبره بے دلیله ده،

۲- امام شافعیؒ وائی لګ شان به روستو کیږی۔ علامه شوکانیؒ فرمائی پدے خبره دلیل نشته۔

۲- امام بخاریؒ پدے حدیث باندے دا باب تړلے دے : باب یقوم عن یمین الامام بحذاءه سواء اذا کانا اثنین) : او استدلال ئے کړیدے د فقمت الی جنبه (کتاب الطهارة) (او فاقامنی عن یمینه) نه چه ظاهر ددے مساوات دے ۔او دا قول د عمر بن الخطابؓ دے چه هغه داسے کار د عبد الله بن عتبه بن مسعود سره کړے وو چه هغه ئے ځان سره نزدے برابر کړو، (موطأ ۱٥٤/۱) بسند صحیح ۔ او د ابن عمر، انس بن مالك، ابن عباس رضی الله عنهم او د سفیان الثوری، ابراهیم، مکحول، شعبی، عروه، ابوحنیفه، مالك، اوزاعی او اسحاق

رحمهم الله قول هم دے۔ (عمدة القاری) او همدا سنت عمل دے۔او تقدیم تاخیر سنت کښې نۀ دے راغلے بلکه دا د امام محمد صاحبؒ اجتهادي خبره ده۔ او نافع سره عبد الله بن عمرؓ هم دا کار کړے وو چه هغه ئې ښی طرفته ځان سره برابر اُودرولو ۔ (موطأ مالك ١٥٤/١)

او په روایت د ابن عباسؓ کښې دا هم دی: (فَجَعَلَنِيْ حذائه) نبی ﷺ زه خپل ځان سره برابر اودرولم۔ (اخرجه احمد ٣٣٠/١) والحاکم (٥٣٤/٣) الصحيحة (١٧٤/٦) دارنګه نبی ﷺ پخپله د ابوبکرؓ کس طرفته برابر ناست وو۔ (فجلس النبی ﷺ حذائه عن يساره) مختصر البخاری (٣٦٦/١) ۔

فوائد الحدیث: ١- حدیث نه معلومه شوه چه دوه کسان هم جماعت دے او پدے باندے ابن ماجه باب تړلے دے۔ باب الاثنان جماعة۔

٢- دوه کسان هم جماعت دے اګرکه یو په کښې ماشوم وی، ځکه په دے حدیث کښې بعض الفاظ داسے دی: چه ما د نبی علیه السلام سره دا مونځ اوکړو او زه د لس کالو په عمر وم۔ (اخرجه احمد) او دے باندے ابن تیمیه په المنتقیٰ کښې باب تړلے دے۔ انعقاد الجماعة باثنين احدهما صبی) (نيل الاوطار١٧٤/٣)

علامه شوکانی فرمائی: کوم خلق چه د ماشوم سره د جماعت د انعقاد نه منع کوی د هغوی سره هیڅ دلیل نشته سوی ددے نه چه حدیث کښې دی: (رفع القلم عن ثلاث عن الصبی) او حال دا چه رفع د قلم دلالت نه کوی په عدم صحت د مانځه د هغه باندے، او په عدم انعقاد د جماعت د هغه باندے، او که اومنو نو دا مخصص دے په حدیث د ابن عباس وغیره باندے۔ ٢- ابوحنیفهٓ او د هغه ملګری وائی: جماعت د ماشوم سره نشی جوړیدے۔ ٣- مالك او یو روایت د ابوحنیفهٓ دا دے چه په نفلو کښې صحیح دے او په فرضو کښې صحیح نه دے۔ او شافعیؒ ئې د فرض او نفل فرق نه کوی ټولو کښې ئې صحیح وائی۔ (النیلؒ) وهو الحق۔

٣- فائده: «فاخذ بیدی» نه معلومه شوه چه نهی عن المنکر په مانځه کښې هم جائز دے لکه یو شخص ستا نه وړاندے دے ځان ته ئې رانژدے کړه یا صف کښې ځائے خالی شو خپله ورشه که نه ورته مخامخ نۀ ئې نو بل ورديکه کړه۔ دا قسم تصرفات د مانځه د اِصلاح دپاره مانځه کښې جائز دی۔

٤- په نفل مانځه کښې هم جماعت جائز دے۔ ٥- تقدیم د مقتدی په امام باندے مُبطل د مانځه دے۔ ځکه ئې ابن عباسؓ د شاته نه راتاؤ کړو۔ ٦- ابن عباسؓ ئې د شاته نه راتاؤ کړو ځکه که مخکښې ئې راتاؤ کړی نو بیا د مونځ کونکی مخکښې تیریدل راځی او دا خو حرامه ده۔

۷- که دوه کسان جَمعه کوی او مقتدی کس طرفته قصداً اُودریږی نو آیا مونځ باطل دے او که نهٔ ؟- جمهور وائی :مونځ ئے صحیح دے اګرکه ګناهګار دے ځکه د سنت مخالفت ئے اُوکړو۔دلیل دا دے چه د ابن عباسؓ مونځ نبی ﷺ باطل نهٔ دے ګرځولے۔
۲- لیکن ظاهر دا ده چه مونځ ئے باطل دے او دا قول د احمدؒ دے او هر چه د ابن عباسؓ عمل دے نو هغه عالم نهٔ وو په مسئله باندے او جهل عذر دے۔
۲- دارنګه ابن عباس خو تول مونځ چپ طرفته اُونکړو بلکه ابتداء ئے کس طرفته اُوکړه خو نبی ﷺ زر ښی طرفته واړولو۔ او خبره د مونځ په ټول کښې ده چه قصداً په ټول مانځه کښې کس طرفته اُودریږی۔ لهذا پدے باندے استدلال صحیح نهٔ شو۔
۳- سعید بن المسیبؒ فرمائی : مُقتدی به د امام کس طرفته اُودریږی۔ لیکن هغه ته دا حدیث نهٔ دے رسیدلے لهذا قول ئے د احادیثو خلاف دے۔ (نیل الاوطار۳/۱۷۵) والمرعاة (۲۶/٤)

---

۲- وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِيُصَلِّيَ، فَجِئْتُ حَتّٰى قُمْتُ عَنْ يَسَارِهٖ، فَاَخَذَ بِيَدِيْ فَأَدَارَنِيْ حَتّٰى اَقَامَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهٖ، ثُمَّ جَاءَ جَبَّارُ بْنُ صَخْرٍ، فَقَامَ عَنْ يَسَارِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَاَخَذَ بِيَدَيْنَا جَمِيْعًا، فَدَفَعَنَا حَتّٰى اَقَامَنَا خَلْفَهٗ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ۔

---

ترجمه : او جابرؓ فرمائی : (یوځل) رسول الله ﷺ د مانځه کولو دپاره پاڅیدو نو زهٔ راغلم تردے چه د هغهٔ کس طرف ته اُودریدم نو هغهٔ زما لاس اُونیولو او راتاوے کړم تردے چه ښی طرف ته ئے اُودرولم، بیا جبار بن صخرؓ راغلو، نو هغهٔ د رسول الله ﷺ کس طرف ته اُودریدو نو رسول الله ﷺ زمونږ د دواړو لاسونه اُونیول او دیکه ئے کړو تردے چه خپل شا ته ئے اُودرولو۔ (مسلمؒ)
تشریح : ددے حدیث او د مخکنی حدیث نه معلومیږی چه تهجد یا نهاری نفلو کښې جماعت سنت طریقه ده خو دا کله کله پکار ده او دا سفری واقعه ده او پدے باره کښې تقریباً لس روایات دی چه اَحیاناً جماعت شویدے لکه یو کرت په کور د ام سلیمؓ کښې دا کار شویدے لکه دے متصل حدیث کښې راروان دی۔ نو اَحیاناً پدے باندے عمل سنت او مداومهٔ بدعت دے۔
فوائد الحدیث : ۱- حدیث دلیل دے چه کله د امام سره یو مقتدی وی نو ښی طرفته به اُودریږی مګر که بل مقتدی راغلو او کس طرفته اُودریدو نو امام له جائز دی چه هغه دواړه

خپل شاته کړي، لکه دا حدیث شو یا که مخکښ ځائے وي نو خپله به د هغوی نه مخکښ شي لکه فصل ثاني کښ حدیث راروان دے۔
۲- دارنګه که ابتداءً دوه کسان مقتدیان وي نو موقف د مقتدیانو به د امام نه روستو وي۔
۳- د ضرورت دپاره عمل کثیر په مانځه کښ جائز دے۔ او دغه شان تقدم او تأخر هم جائز دے۔
٤- که یو مقتدي د امام ګس طرفته اُودریدو نو امام له جائز دي چه هغه په مانځه کښ ښي طرفته راتاؤ کړي۔ ٥- په سفر کښ سنت کول نشته او دلته دا جماعت په نفلو کښ شویدے۔ نو نفل په سفر کښ جائز دي۔

## امام د صف په مینځ کښ اُودرول

د- مسئله : کله چه مقتدیان دوه وي نو دوی به د امام نه روستو صف جوړوي۔ آیا شریك ورسره صف تړلے شي چه امام ئے په مینځ کښ شي ؟ نو پدے کښ اختلاف دے۔
(۱) د ټول امت مذهب دا دے چه دوه کسان به د امام نه روستو اُودریږي لکه ابتداء د اسلام کښ به امام د دوه کسانو مینځ کښ اُودریدو روستو بیا منسوخ شو۔
۲- ابن مسعودؓ او د هغه د شاګردانو (اسودؒ او علقمهؒ) مذهب دا دے چه درے کسانو کښ به امام مینځ کښ اُودریږي۔ لکه ابن مسعودؓ داسے عمل کړے وو د اسودؒ او علقمهؒ سره لکه مسلم (٦٨/٢) طبع بیروت) (نسائي ٤١٩/٢ بیروت) کښ راځي چه اسودؒ او علقمهؒ داخل شو په عبد الله باندے، هغه ورته اُوفرمایل : آیا خلقو مونځ کړے ؟ هغوی اُووئیل : آو، (ده اُوفرمایل : راځئ چه مونځ اُوکړو) نر د دواړو په مینځ کښ اُودریدو، یو ئے ښي او بل ئے ګس طرفته اُودرولو او په رکوع کښ ئے تطبیق اُوکړو او بیا ئے اُوفرمایل : دغه شان نبي ﷺ کړي دي۔
تنبیه : امام نوويؒ په (الخلاصة) کښ لیکي : مسلم کښ دا نشته چه ابن مسعودؓ نبي ﷺ ته نسبت کړے وي بلکه هغے کښ دا دي چه ابن مسعودؓ دا کار اُوکړو۔ لیکن دا خبره خطاء ده۔ ځکه په مسلم کښ درے روایات دي په بعضو کښ نسبت نبي ﷺ ته موجود دے۔ (رأیت النبي ﷺ فعله) او دا قول : (هکذا کان رسول الله ﷺ یصنع)۔
علامه حازميؒ د جمهور علماؤ د طرفنه جواب ورکوي چه دا حکم منسوخ شویدے ځکه چه ابن مسعودؓ دا مونځ د نبي ﷺ نه په مکه کښ زده کړے وو کله چه په هغے کښ تطبیق وو او نور احکام وو اُوس هغه منسوخ شویدي، لهذا دا حکم هم منسوخ دے او کله چه نبي ﷺ مدینے ته راغلو نو دغه عمل ئے پریخودو، دلیل پرے (دا) حدیث د جابرؓ دے۔

انتهیٰ۔

علامه ابن الهمامؒ فرمائي : په عبد الله بن مسعودؓ باندے ناسخ پټ پاتے شوے وو او دا څۀ بعیده خبره نۀ ده ځکه د نبی ﷺ عامه طریقه ډیرو کسانو ته جمع ورکول وو او دوه کسانو ته جمع کول ډیر نادر راغلی دی لکه دا واقعه شوه او حدیث د یتیم شو، نو عبد الله د خپل علم نه ماسویٰ باندے خبر نشو۔ انتهیٰ (انظر المرعاة ٢٨/٤)

★- او پدے نسخ باندے دلیل حدیث د انس بن مالكؓ دے (صففت انا والیتیم وراءه والعجوز من ورائنا) (متفق علیه) او دارنګه دا حدیث الباب حدیث د جابرؓ دے او دارنګه حدیث د سمرةؓ دے چه فرمائي: (امرنا رسول الله ﷺ اذا كنا ثلاثة ان یتقدمنا احدنا) ترمذی) او شاید چه ابن مسعودؓ ته به دا ناسخ حدیثونه نۀ وی رسیدلی۔

★- او دا هم ممکن ده چه ابن مسعودؓ دا کار د مکان (د مسجد) د تنګ والی په وجه کړے وی لکه دا خبره ابن سیرینؒ کړے ده، چه مسجد تنګ وو۔ او بیهقی فی المعرفة او طحاویؒ ترے نقل کړیده۔ یا نور څۀ عذر وی، او په طریقه د سنیت ئے نۀ وی کړے۔ (فتح الباری (٢١٢/٢) نصب الرایة (٣٤/١)

٣- قول ثالث : دا دے چه دا طریقه د ابن مسعودؓ هم جائز ده او منسوخ نۀ ده لیکن بناء ده په ضرورت باندے مثلاً که ځائے نۀ وی پراخه، نو دغه طریقه باندے عمل پکار دے او که پراخه ځائے وی نو بیا به روستو کیږی۔ لکه دا خبره امام طحاویؒ د ابن سیرینؒ نه نقل کړیده۔ ددے وجه نه علامه ابن سید الناسؒ فرمائي : دا اختلاف په اولیٰ او احسن کښې دے او دا خبره څۀ شرط د مانځه نۀ دے چه امام به د دوه کسانو نه مخکښې اُودریږی۔ بلکه مستحب دا ده چه امام مخکښې اُودریږی۔ او حدیث د (وسطوا الامام) نه استدلال کول صحیح نۀ دی یو خو هغۀ ضعیف دے کما مرّ۔ او بله دا چه د هغے صحیح معنیٰ هم تیره شوه چه امام به د صف نه مخکښې داسے ځائے کښې اُودریږی چه شاته دواړو طرفونو ته برابر خلق اُودریږی۔

تعارف د جبار بن صخر ﷺ: جبار بن صخر بن امیة بن خنساء بن سنان السلمی الانصاری صحابی دے او د دوه دیرشو (٣٢) کالو په عمر جنګ بدر ته حاضر شو او بیا اُحد او ما بعد غزواتو کښې ئے شرکت فرمائیلے دے او په لیلة العقبة کښې په (٧٠) کسانو کښې یو دا هم شامل وو، او نبی ﷺ ددۀ او د مقداد بن الاسودؓ په مینځ کښې مُواخات کړے وو۔ ابوعبد الله ئے کنیه ده او په مدینه کښې په سنه (٣٠هـ) کښې وفات دے۔ ابن اسحاق فرمائي : د عبد الله بن رواحه نه روستو به د نبی ﷺ دپاره دۀ د کجورو د زکاة په اټکل اندازه لګوله۔

۳- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ اَنَا وَيَتِيْمٌ فِيْ بَيْتِنَا خَلْفَ النَّبِيِّ ﷺ، وَاُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : ما او يتيم د نبي ﷺ نه روستو مونځ اُوكړو او اُم سليمؓ زمونږ نه روستو وه"۔ (مسلم)

تشريح : پدې حديث كښې مختصره شان قصه ده او هغهٔ دا چه ام سليمؓ - چه بني سليم مسجد القبلتين خوا كښې اُوسيدل- يوه ورځ رسول الله ﷺ ته دعوت وركړو چه مونږ كره راشه -ځكه دا يوه ميلمه دوسته زنانه وه نبي ﷺ به وركره بار بار ورتلو- نو هغې ورله طعام تيار كړو او كله ئې چه خوراك اُوكړو نو د نبي ﷺ نه ئې دا مطالبه اُوكړه چه دوى ته په كور كښې مونځ اُوكړي چه هلته بيا دوى مونځونه كوى او د نبي ﷺ عادت مبارك هم دا وو چه د چا كره به ئې خوراك اُوكړو نو هلته به ئې د بركت دپاره مونځ هم كولو۔ نو انسؓ يو بزكي پسے ورپاځيدو چه هغهٔ د ډير زمكه پاندے حصاريدو په وجه تور شوے وو نو هغهٔ ئې په اُوبو پاندے چنړكاؤ كړو، او رسول الله ﷺ ته ئې خوركړو نو رسول الله ﷺ په هغې باندے اُودريدو چه مونځ ئې كولو نو انسؓ، او يو يتيم او اُم سليمؓ وريسے اُودريدل، اُوس هغهٔ ځنګه اُودريدل ؟ نو انسؓ مونږ ته هغهٔ بيانوى چه زهٔ او يتيم يو صف كښې اُودريدو او ام سليمؓ زمونږ نه شاته جدا صف كښې اُودريدله۔

فوائد الحديث : ۱- په كور كښې په نفل مانځه كښې جماعت جائز دے۔

۲- د تعليم او د تبرك دپاره د چا په كور كښې مونځ كول صحيح دي۔

۳- دوه كسان به د امام نه روستو اُودريږي۔ ٤- د زنانه امامتي سړي ته نهٔ ده جائز۔

۵- د مقتديانو د ځايونو د اُودريدو ترتيب واجب دے چه افضل به مخكښې وى د غير افضل نه مثلاً سړي به مقدم وى بيا به ماشوم بيا زنانه وغيره۔

٦- كله چه اول صف كښې مشران خلق نهٔ وى موجود نو بيا ماشوم ځان سره اُودرولے شى لكه دلته د انسؓ سره يتيم ولاړ دے۔بيا كه مشران روستو راشي نو بيا دوه طريقے دى :

۱- يوه دا چه ماشوم دِے په خپل ځائے ولاړ وى او مشران دِے روستو اُودريږي۔

۲- دويمه دا چه ماشوم دِے روستو كړى لكه دا د بعض صحابه كرامو نه نقل ده لكه ابى بن كعب يو ماشوم (قيس بن عباد) روستو كړو۔ نسائى (۱۲۹/۱) احمد (۱٤۰/۵) ۔ لكه د مشكوٰة صفحه (۹۹/۱) كښې راځى۔

۷- يتيم هغهٔ چا ته وائى چه د بلوغ نه مخكښې ئې پلار وفات شوے وى۔ عرب يتيم په

انسانانو کښې هغهٔ چاته وائی چه پلارئے نهٔ وی، په حیواناتو کښې هغهٔ دے چه مورئے نهٔ وی او په مارغانو کښې هغهٔ دے چه دواړه ئے نهٔ وی،

او د بلوغ نه روستو یتیم والے نهٔ وی، نو معلومه شوه چه ماشوم کله مُمیز وی نو د بل سړی د هغهٔ سره اُنس او اِطمینان حاصلیږی لهٰذا دا به د سړی سره یو شان اُودریږی او په دوی باندے صف پوره کیږی، روستو به ئے نهٔ اُودروی، لکه چه دلته اَنسؓ دا یتیم ځان سره صف کښې اُودرولے دے ځکه دا مُمیز ماشوم دے۔ او کله چه داسے ماشوم وی چه مُمیز نهٔ وی د دوه درے کالو وی نو د هغهٔ سره د مشر اِطمینان نهٔ راځی ځکه چه هغهٔ کله د خوا هش څهٔ اُووینی نو ناڅاپه د پلار نه اُوتښتی لهٰذا داسے ماشوم به د یو سړی سره صف کښې نشی اُودرولے بلکه یو سړے به د امام ښی طرفته اُودرولے شی او ماشوم به د هغهٔ په جانب کښې اُودرولے شی۔

٨- د زنانو صف به جُدا وی د سړو د صف نه اګرکه مور او ښځه هم ولے نه وی !۔ دلته اُم سلیمؓ د انسؓ مور ده او بیا هم ورسره په صف کښې شریکه نه ده ولاړه۔

٩- ښځه او خاوند چه نفل وغیره مونځ کوی نو دواړه به یو ځائے نهٔ اُودریږی بلکه ښځه به روستو اُودریږی۔

١٠- که ښځه د سړی سره شریکه اُودریده نو مونځ ئے جائز دے اګرکه ګناهګاره ده ځکه په حدیث کښې صرف دا خبره ده چه زنانه به روستو اُودریږی او پدے کښې د مانځه د فساد خبره نشته۔ او اَحناف وائی چه د زنانه مونځ باطل دے یا د سړی کما مرّ خو دا خبره بے دلیله ده۔

١١- جمهور استدلال کوی چه د صف نه روستو یواځے مونځ جائز دے۔

لیکن جواب دا دے چه د عدم جواز قانون د سړو دپاره دے او هر چه زنانه ده نو هغه ځانله یواځے هم روستو اُودریدے شی۔ دلته نبی ﷺ اُم سلیمؓ یواځے اُودرولے ده او سړے ئے منع کړے دے۔ لهٰذا یو به په بل نشی قیاس کولے۔

٢- جواب : مونږ وئیلی وو چه د ضرورت په وخت د صف نه روستو یواځے هم مونځ کیږی لکه دلته د اُم سلیم ضرورت دے نورے زنانه ورسره نشته۔

١٢- دُ مُمیز ماشوم مونځ صحیح دے او د ماشوم اُودریدل معتبر شمارلے شی او ددهٔ او د بل مشر نه صف جوړیدلے شی۔

١٣- ددے یتیم نوم ضمیره وو چه دا د حسین بن عبد الله بن ضمیره نیکه دے۔

---

٤- وَعَنْهُ، اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی بِهٖ وَبِاُمِّهٖ اَوْخَالَتِهٖ، قَالَ: فَاَقَامَنِیْ عَنْ یَمِیْنِهٖ، وَاَقَامَ الْمَرْاَةَ

خَلْفَنَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او انس ﷺ نه روایت دے چه نبی ﷺ ده او ددهٔ مور یا ددهٔ ترور (ماسِی) ته مونځ اوکړو۔ دے فرمائی: نبی ﷺ زهٔ خپل ښی طرف ته اُودرولم او ښځه ئے زمونږ نه روستو اُودروله۔ (مسلمؒ)

تشریح: او خالته: دا شك د راوی دے او ددے خاله نوم اُم حرام بنت مَلْحَان دے۔

حدیث دلیل دے چه کله د اِمام سره یو سړے او یوه ښځه وی نو سړے به د امام سره ښی طرفته اُودریږی او ښځه به شاته اُودریږی۔ بیا بعضِ خلقو دا وئیلی دی چه پدے حدیثونو کښې اضطراب دے ځکه چه دا روایات ډیر مختلف راغلی دی۔ مګر صحیح خبره دا ده چه روایات ځکه مختلف راغلی دی چه دا قسم واقعات ډیر واقع شویدی د انس بن مالك په کور کښې تقریباً اته کرته داسے واقعه راغلے ده۔

★- بعضو کښې دا دی چه مُلیکه چه د انس د مور د طرف نه نیا ده نبی ﷺ ته د طعام دعوت ورکړو نو خوراك ئے اُوکړو بیا مانځه ته پاځیدو پدے کښې ورسره یتیم او عجوز هم ده۔(احمدؒ) ★ - بل روایت کښې دی نبی ﷺ ام سلیم کره راغلو نو هغے ورته کجورے او غوړی راوړل او نبی ﷺ روژه وو، وے فرمایل: کجورے خپل لوښی او غوړی خپله مشکیزه کښې واپس کړئ بیا پاځیدو په یو طرف د کور کښې ئے دوه رکعاته مونځ اُوکړو۔ او مونږ ورسره وو۔ الحدیث ۔(مسند احمد ۱۰۸/۳)

★- بعض روایاتو کښې دی: چه په کور د ام حرام کښې ئے مونځ اُوکړو، انسؓ ئے خپل ښی طرف ته اُودرولو او شاته ئے امّ حرام اُودروله۔ (احمد۲۰٤/۳)۔

★- بعضو کښې دی: نبی ﷺ مونځ اُوکړو او د هغهٔ سره انسؓ او ام سلیمؓ وو، نو انسؓ ئے ښی طرف ته اُودرولو او ام سلیمؓ ئے شا ته اُودروله۔

★- بعضو کښې دی: انس ئے ښی طرفته اُودرولو او امّ سلیم او د هغهٔ خاله (امّ حرام) دواړه ئے روستو اُودرولی۔ (ابوداود)۔

★- بعضو کښې دی: چه نبی ﷺ به دهغوی ملاقات ته ورتلو نو کله به د مانځه وخت راغلو نو هغوی ته به ئے مونځ اُوکړو۔ (احمد ۲۱۲/۳) ومسلم)

نو دا دلیل دے چه په بعض اَوقاتو کښې به ئے فرض مونځ هم د هغوی سره کړلو۔ او بعضو کښې تصریح ده چه دا نفلی مونځ وو۔ (احمد، ابی داود) نو دا مختلف واقعات دی ځکه روایتونه مختلف راغلی دی۔او هیڅ تعارض او تدافع پکښې نشته۔

او ددے نه دا فائده هم معلومه شوه چه د نبی ﷺ په زمانه کښې داسے مروجه ختمونه نه

وو چه خلك د قرآن وئيلو دپاره راجمع شي او سيپارے ورله لاس كښ وركړي اوټول په شريكه لګيا شي او بيا پرے خوراك اُوكړي بلكه دا بدعت دے اصلي طريقه دا ده چه نبي ﷺ به د چا كور ته لاړو او د تبرك دپاره به ئے دوه ركعاته هلته اُوكړل بيا ددے نه پس به ئے روټئ وغيره هم خوړله نو دغه شان كه څوك په يو كور يا دكان كښ د بركت دپاره يو عالم راوُغواړي چه هلته مونځ اُوكړي نو بيا پرے خوراك كول هم جائز دي.او دهغے مستقل دليل دا هم دے : (اذا دعى احدكم اخوه فان كان صائماً فليصل)

---

٥- وَعَنْ اَبِىْ بَكْرَةَ : اَنَّهُ انْتَهٰى اِلَى النَّبِيِّ ﷺ وَهُوَ رَاكِعٌ، فَرَكَعَ قَبْلَ اَنْ يَّصِلَ اِلَى الصَّفِّ، ثُمَّ مَشٰى اِلَى الصَّفِّ، فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ ﷺ، فَقَالَ : «زَادَكَ اللهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : ابو بكره ؓ نه روايت دے چه دے نبي ﷺ ته پداسے حال كښ اُورسيدو چه هغهٔ په ركوع كښ وو، نو ركوع ئے اُوكړه مخكښ ددے نه چه صف ته اُورسي (دے دپاره چه ركعت ترے لاړ نهٔ شي)، بيا صف ته (په آرام آرام) روان شو، نو دا خبره ئے نبي كريم ﷺ ته ذكر كړه، هغهٔ اُوفرمايل: «الله دِے ستا حرص زيات كړي ليكن آينده دے كار ته اِعاده مهٔ كوه»۔ (بخاريّ)

تشريح : مسائل : ١- يو سړے دے د هغهٔ نه ركعت ځي نو د ركعت نيولو دپاره صف ته د رارسيدو نه مخكښ نيت اُوتړي نو آيا دا به جائز وي ؟ پدے كښ اختلاف دے :

١- امام مالك ، ليث او بعض السلف فرمائي : كله چه يو انسان د ركعت د فوت كيدو نه ويريږي نو مخكښ د صف نه ركوع كولے شي او بيا به په ركوع كښ روان وي تردے چه صف ته اُورسي او ديته (دَبْ) وائي.خو دا هله چه قريب وي (اوددے قرب اندازه دا ده چه انسان پكښ د امام د سجدے نه مخكښ صف ته اُورسي يا د درے صفونو په مقدار وي)۔ او دا د ابوبكر صديق، زيد بن ثابت ، ابن مسعود، عبد الله بن زبير، او ابوامامه بن سهل بن حنيف رضى الله عنهم- او عطاء، سعيد بن جبير، ابوسلمه، عروة بن الزبير رحمهم الله نه نقل شويدي چه دوى به ركوع قبل الصف كوله.بيا به په قلاره صف ته راتلل۔

٢- امام زهريؒ، او اَوزاعيؒ فرمائي : كهٔ صفونو ته نزدے وي نو كول ئے جائز او كه بعيد وي نو بيا به ئے نهٔ كوي او دا يو روايت دے د احمد بن حنبل نه چه ابن منصور ترے نقل كړيدے۔

٣- جمهور وائي : دا كار جائز نهٔ دے۔

دلائل د منع : ١- اول دا حديث دے چه دلته نبی ﷺ ابوبکرؓ ته اُوفرمايل : اوس خو دے دا کار اُوکړو خو بيا دے کار ته مهٔ راګرزه ـ (ولا تعد) پدے کښې يو قراءت دا دے چه دا (لاتعد) د عَوْد نه دے په معنیٰ د راګرزيدو سره يعنی دے کار ته رجوع مهٔ کوه چه د صف نه مخکښې نيت اُوتړے او بيا په رکوع کښې راروان ئے۔

٢- دليل : ابو هريرهؓ نه مرفوعاً نقل دی : نبی ﷺ فرمائی : (اذا اتی احدکم الصلاة فلا يرکع دون الصف حتی يأخذ مکانه من الصف اخرجه الطحاوی ورجاله ثقات وقال الحافظ : اسناده حسن فتح الباری (٢/٢١٤) ولکن قال الالبانی فی الضعيفة (٢/٤٠٨، رقم (٩٧٧) فی سنده عمر بن علی وهو من رجال الشيخين لکنه يدلس تدليساً وهو تدليس السکوت وتدليس العطف واخرجه ابن ابی شيبة (١/٢٥٦) وفيه محمد بن عجلان وقد اختلط عليه احاديث ابی هريرة کما فی التقريب) فهو ضعيف۔

(کله چه يو تن ستاسو نه مانځه ته راځی نو د صف نه مخکښې دے رکوع نهٔ کوی تردے چه صف کښې ځائے اُونيسی)۔ (طحاویؒ)

دلائل الجواز : ١- عبد الله بن زبيرؓ په مسجد کښې حرام کښې په خطبه کښې اُوفرمايل : «کله چه يو تن ستاسو نه مسجد ته راشی او خلق په رکوع کښې وی نو دا دے رکوع اُوکړی کله چه داخليږی او بيا به په رکوع کښې راروان وی تر دے چه صف ته راداخل شی ځکه دا سنت طريقه ده»۔ (واسناده صحيح) (طبرانی فی الاوسط ٣٣/١) حاکم (١/٢٠٤) بيهقیؒ (١٠٦/٣) الصحيحة (١/٤٠١)

٢- ابوبکر بن عبد الرحمن بن الحارث بن هشام فرمائی : «ابوبکر صديق او زيد ثابت دواړه مسجد ته راداخل شو او امام په رکوع کښې وو نو دواړو رکوع اُوکړه، بيا دواړه رانژدے شو په حالت د رکوع کښې تردے چه صف سره يو ځائے شو» (٩٠/٢) رجاله ثقات الان مکحولاً مدلس وقد عنعنه۔

٣- ابو امامه بن سهل بن حنيف زيد بن ثابت اُوليدو چه مسجد ته راداخل شو او امام په رکوع کښې وو نو دے روان شو دے دپاره چه د رکوع په حالت کښې ورله صف ته رسيدل ممکن شی نو الله اکبر سره ئے رکوع اُوکړه او بيا په رکوع کښې روان شو تردے چه صف ته اُورسيدو۔ (بيهقی ٢/٩٠) و (١٠٦/٣) وسنده صحيح والموطأ (١/١٤٩)

٤- زيد بن وهب فرمائی : «زهٔ د عبد الله بن مسعودؓ سره د هغه د کور نه مسجد ته اُوتلم کله چه مونږ د مسجد مينځ ته اُورسيدو نو امام رکوع ته خکته شو نو عبد الله اکبر اُوکړو او رکوع ئے اُوکړه او ما (هم) ورسره رکوع اُوکړه بيا په رکوع کښې لاړو تردے چه صف

تـه اُورسيـدو په هغه وخت چه خلقو سرونه پورته كړي وو، كله چه امام مونځ ختم كړو، زۀ پاڅيدم او زما دا خيال وو چه ما ركعت ندے موندلے نو عبد الله زما لاس اُونيولو او كينولم بيـا ئے اُوفـرمـايـل : يقيناً تا ركعت اُوموندلو. (ابن ابى شيبة ۲۵۵/۱) واخرج نحوه احمد بسـنـد صحيح (۴۰۷/۱) والادب المفرد ص (۲۷۰) طحاوى (۲۳۱/۱) طبرانى فى الكبير (۳۳/۳) والبيهقى (۹۰/۲) ـ

او دغـه شـان ډيـر آثـار شيـخ البـانـىؒ د ابى عبيده، سعيد بن جبير، ابوسلمه، عبد الله بن تـمـيـم، عثـمان بن الاسود، مجاهد، حسن رحمهم الله نه او ددغه مذكوره صحابه كرامو نه ذكر كړيدى ـ (الصحيحة (۴۰۱/۱، ۴۰۸) رقم (۲۲۹)

ددے حـديـثـونو نه دوه مسئلے ثابتے شوے يو دا چه د صف نه مخكښ ركوع كول او بيا په ركوع كښ صف ته رسيدل جائز دى. دويم مدرك د ركوع د مدرك د ركعت دے.

او دا علماء جواب وركوى د دغه حديث د ابوبكره نه چه (لا تعد) كښ درے لغات دى :

۱ - مشـهـور قـراءت لاتـَعـُدْ دے د "عَوْد" نه ماخوذ دے، رجوع ته وائى نو بيا داسے معنىٰ ده چه (لاتعد الى مثل هذا الفعل اى الى الاسراع بل اِمْشِ بوقارو سكينةٍ) (يعنى بيا دے كار ته رجوع مۀ كوه چه منډے دى يعنى مانځه ته په منډه مۀ راځه بلكه په وقار او آرام سره راځـه). لكه دا د روايت د احمد (۴۲/۵) او طحاوى نه معلوميږى چه نبى ﷺ د ابوبكرهؓ د ځپـلـو آواز واوريـدو نـو د سلام نه روستو ئے تپوس اُوكړو چه دا (ساعى) منډه وهونكے څوك وو ابـوبـكـرهؓ اُووئيل : زۀ وم) معلوميږى چه دا منع متوجه ده منډے وهلو ته، نۀ ركوع قبل الصف تـه. لهـذا پدے كښ بيا ادب دے چه مانځه ته په آرام او خشوع سره راځئ او منډے مۀ وهئ لكه څنګه چه دا حكم د بل حديث نه هم معلوم شوے دے.

امام بيهقىؒ فرمائى : امام شافعىؒ ددے معنىٰ كوى : لاتعد مشابه دے ددے قول د نبى ﷺ سره : (لاتأتوا الصلاة وانتم تسعون) (مانځه ته په منډه مۀ راځئ) (بيهقى ۹۰/۲)

يا معنىٰ دا چه (لا تعد الى التاخير) يعنى مانځه ته ناوخته مۀ راځه بلكه وختى راځه چه منډے وهلو ته نۀ محتاج كيږے.

او دا تاسو چه كومه معنىٰ ذكر كوئ د هغے نه امام ابن حبان انكار كړيدے.

۲- دويم قرائت (لاتَعْدُ). د عَدْوٌ نه، په معنىٰ د منډے وهلو سره، يعنى منډے مۀ وهه. نو دا معنىٰ هم د مخكنۍ معنىٰ تائيد كوى. ۳- قراءت : (لَاتُعِدْ) د اِعادے نه دے په معنىٰ د واپس كولو. (يعنى اعاده ددے ركعت مۀ كوه) نو دا بيا دليل دے چه مدرك د ركوع مدرك د ركعت دے. اول قرائت پكښ مشهور دے. سبل السلام (۳۴/۲) فتح البارى

(٢١٤/٢)

خلاصه: ددے تحقیق نه واضحه کیږی چه احادیث د جواز راجح دی ځکه چه بل طرفته صریح روایت نشته او کوم چه راغلی هغه مرفوعاً ضعیف دے۔وبالله التوفیق۔

## المسئلة الثانية : آیا مدرک د رکوع مدرک د رکعت دے او که نه ؟

١- یو قول دا دے چه مدرك د ركوع مدرك د ركعت نهٔ دے او دا قول د ابو هريرةؓ، اهل الظاهرؒ، ابن خزيمةؒ، ابوبكر الضبعيؒ او امام بخاريؒ دے۔ دوه دلائل وائی : یو دا چه ددهٔ نه دوه فرائض فوت شویدی یو قیام او بله فاتحه۔ دویم (وما فاتكم فأتموا) راغلے دے او دلته امر شویدے په اتمام د مافات باندے لهذا فاتحه او رکوع به دوباره کوی۔ یعنی رکعت ترے فوت دے۔

٢- دویم قول د جمهورو دے چه مدرك د ركوع مدرك د رکعت دے او چا چه رکوع کښ امام لاندے کړو نو دا رکعت ئے اُوشو۔ او اِعاده ئے نشته۔ د دوی سره پدے خبره باندے ډیر دلائل دی او هذا قول راجح دے۔ او دا د علی، ابن مسعود، ابن عمر، زید بن ثابت ﷺ نه هم روایت شویدے۔ (مصنف عبد الرزاق ٢٧٨/٢)۔

او یو روایت د ابو هریره نه هم دے چه امام مالكؒ په موطأ کښ نقل کړیدے۔ او اسحاق بن راهويهؒ وئیلی دی چه پدے باندے اجماع د علماؤ ده۔ (فتح الباری لابن رجب) امام نوویؒ هم په مجموع (١١٤/٤) کښ اجماع نقل کړیده۔

دلائل الجمهور : ١-اول دلیل : دا حدیث د ابوبکرةؓ دے چه ده امام په رکوع کښ اُوموندلو او نبی ﷺ ورته حکم په اِعاده اُونکړو، او دا مقام د بیان دے بلکه د هغه تائید ئے اُوکړو په (زادك الله حرصاً) سره۔ بلکه په روایت د احمد (٤٢/٥) کښ داسے الفاظ راغلی دی : (انه جاء والنبی ﷺ راكع فسمع النبي صوت نعل ابی بكرة وهو يحضر (يعدو) يريد ان يدرك الركعة فلما انصرف النبی ﷺ قال : من الساعی ؟ قال ابوبكرة : انا، فقال النبی ﷺ زادك الله حرصاً ولا تعد) وسنده حسن ـ او په بعض طرقو کښ داسے دی : (خشيت ان تفوتنی الركعة، (نصب الراية ٣٩/٢) فتح الباری ٢٦٨/٢) فتح القدير لابن الهمام (٢٥٢/١)

نو ددے صحیح مرفوع حدیث نه ښکاره معلومه شوه چه په رکوع لاندے کولو سره رکعت اُوشو ځکه ابوبکرةؓ تصریح اُوکړه چه ما ددے دپاره منډه اُووهله چه يَرېدم رکعت رانه فوت نهٔ شی۔ او نبی ﷺ په هغه باندے دا رد اُونکړو چه ستا رکعت نهٔ دے شوے۔بلکه صرف د منډے وهلو نه ئے منع کړو۔ پدے کښ د شوكانیؒ وغیره جواب صحیح نهٔ دے چه وائی : لکه څنګه چه نبی ﷺ ابوبکرةؓ ته د اعادے حکم نهٔ دے کړے نو

دا هم نهٔ دی نقل شوی چه هغه دې رکعت له اعتبار ورکړے وی۔ آه۔ ځکه چه دا مقام د بیان دے او تاخیر د بیان د وقت د حاجت نه صحیح نهٔ وی نو که دا رکعت نهٔ وے شوے نو نبی ﷺ به ورته وئیلی وے چه ستا منډے یے فائدے دی د رکوع په لاندے کولو رکعت فوت دے۔ او دا د ابتدائی قول د شوکانیؒ وو چه په نیل الاوطار کښې ئے ذکر کړے وو بیا ئے روستو ترے په (الفتح الربانی) نومے فتاویٰ کښې رجوع کړیده۔ لکه هغه فتوی په عون المعبود (۳۳۶/۱) کښې ذکر ده۔ فتاوی الدین الخالص (۲۲۳/٤) هم اُوګوره۔

او د امیر صنعانیؒ په سبل السلام (۲۳/۲) کښې دا خبره کول – چه نبی ﷺ ورته د اِعادے حکم ځکه اُونکړو چه کیدے شی هغه جاهل وو پدے حکم او جهل عذر دے– نو دا ډیره بعیده خبره ده۔ وجه دا ده چه په صحیحینو کښې راغلی دی چه مسیء الصلاة هم په حکم د تعدیل الارکان باندے خبر نهٔ وو او بیا هم نبی ﷺ هغهٔ ته بار بار حکم کړے دے۔ حال دا چه د هغهٔ نه خو لا رکعت هم نهٔ دے فوت شوے۔ صرف تعدیل ئے فوت کړے وو۔ الصحیحة (۲۲۸/۱) رقم (۲۳۰)

۲- ۳- دویم دلیل او دریم دلیل : عمل او قول د زید بن ثابت او عبد الله بن مسعود په مخکښې مسئله کښې تیر شو چه هغوی هم دا فتویٰ ورکړیده چه په رکوع نیولو سره رکعت نیولے شی۔

٤- دلیل : حدیث د ابو هریره کښې دی : (قال رسول الله ﷺ : اذا جئتم الی الصلاة ونحن سجود فاسجدو ولا تعتدوها شیئاً ومن ادرک رکعة فقد ادرک الصلاة (ابوداود ۱۳۶/۱)

(دلته د رکعت نه رکوع مراد ده ځکه چه د سجدے مقابله کښې ذکر شویده) په بل روایت د ابوداود کښې دی : (من ادرک الرکوع ادرک الرکعة (کما فی ارواء الغلیل : ۲٦٤/۲) رقم (٤٩٦) باب صلاة الجماعة وسنده صحیح) نو دا هم واضح دلیل دے۔ چه په رکوع موندلو سره موندځ او رکعت لاندے شو۔ او په روایت د بیهقی (۸۹/۲) کښې ورسره دا اِضافه ده : (من أدرک رکعة من الصلاة فقد ادرکها قبل ان یقیم الامام صلبه) (اخرجه الدارقطنی والبیهقی)

(یعنی د امام د پورته کیدو نه مخکښې که رکوع کښې شامل شو نو مونځ ئے اُوموندلو)

او دے په سند کښې یحیی بن ابی سلیمان دے چه حاکمؒ او ذهبیؒ ورته ثقه وئیلے دے او بخاریؒ وئیلی دی چه په دهٔ کښې نظر دے او بیهقیؒ وغیره هم ضعیف کړیدے، مګر ددے دپاره شواهد شته چه په هغے باندے مضبو طیږی۔ لکه دا متصل روایت :

٥- دلیل : عبد العزیز بن رفیع عن رجل عن النبی ﷺ : اذا جئتم والامام راکع فارکعوا وان کان ساجداً فاسجدوا ولا تعتدوا بالسجود اذا لم یکن معه الرکوع) (یعنی د سجدے

سره چه کله رکوع اُونه مومئ نو هغه سجدے له اعتبار مهٔ ورکوئ) معلومه شوه چه په رکوع موندلو سره رکعت موندلے شي۔ او دا روایت بالکل صحیح دے ځکه چه دا رجل مجهول نهٔ دے بلکه صحابي دے په بل روایت د اسحاق بن منصور المروزي کښې د هغه نوم راغلے دے چه دا عبد الله بن المغفل رضي الله عنه دے (مسائل احمد واسحاق ١٢٧/١ – مصورة المكتب) (الصحيحة رقم ١١٨٨) (١٨٥/٣)

دا روایت ډیرو مُلیانو ته ندے معلوم ځکه دا حدیث ضعیف گڼري۔ شیخ البانیؒ فرمائي : (هذا شاهد قوي فان رجاله كلهم ثقات الخ) (ارواء : ٢٦٠/٢)

٦- دليل : علي او ابن مسعود دواړه فرمائي: (من لم يدرك الركعة لم يعتد بالسجدة (البيهقي (٩٠/٢) طبراني – مجمع الزوائد (١٧٢/١) ورجاله موثقون) (وفي لفظ من لم يدرك الامام راكعاً لم يدرك تلك الركعة) (اخرجه البيهقي (٩٠/٢) وقال الالباني هذا سند صحيح) (ارواء الغليل (٢٦٠/٢) (چا چه رکوع اُونه موندله نو سجدے له ډِے اعتبار نهٔ ورکوی) (او چا چه د امام سره رکوع لاندے نهٔ کړه نو هغهٔ دغه رکعت نهٔ دے موندلے)

٧- دليل : عبد الله بن عمرؓ فرمائي : (اذا جئت والامام راكع فوضعت يديك على ركبتيك قبل ان يرفع فقد ادركت (ابن ابي شيبة ٢٤٣/١) ولفظ البيهقي (٩٠/٢) : من ادرك الامام راكعاً فركع قبل ان يرفع الامام رأسه فقد ادرك تلك الركعة) وسندهما صحيح) (یعني کله چه ته راغلے او امام په رکوع کښې وو او تا لاسونه په زنگنونو کیخودل مخکښې د هغه د پورته کیدو نه نو تا دغه رکعت اُوموندلو)

٨- دليل : زيد بن ثابت ﷺ فرمائي : من ادرك الركعة قبل ان يرفع الامام رأسه فقد ادرك الركعة) (بيهقي، طحاوی (٢٣٢/١) (چا چه رکوع د امام د سر پورته کولو نه مخکښې موندهٔ کړه نو هغهٔ رکعت اُوموندلو) (دا موقوف بمنزلة المرفوع دے)

لنډه دا چه دغه شان عمل او فتوے د ډیرو صحابه کرامؓ نه نقل دی لکه ابوبکر صدیق، زید بن ثابت، ابو عبیده، عبد الله بن مسعود، عبد الله بن عمر، عبد الله بن زبیر رضي الله عنهم ، دارنگه عروه بن زبیرؒ سعید، عطاء، مجاهد او حسن بصري وغیره نه او ددے صحابه کرامو مخالف ندے موجود مگر صرف د ابو هریرهؓ نه ددے مخالف قول نقل دے لیکن هغه ضعیف السند دے معقل بن مالك راوي پکښې ضعیف متروك دے۔ او ددے په خلاف بانديے د هغه فتوی هم موجود ده لکه په مشکاة (١٠٢/١) والمطالب العالية (١٢٤/١) کښې راغلے ده۔

او بعض علماؤ چه اول دلیل پیش کړے دے نو د هغے نه جواب دا دے چه هرکله دا خبره

په صحيح مرفوع او موقوف احاديثو ثابته شوه چه مدرك د ركوع مدرك د ركعت دے نو دا د (لاصلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب) د عموم دپاره مخصص شو۔

نو دواړه خبرے صحيح دی۔ په عام حالت د اختيار کښې به فاتحه هم وائی او قيام به هم کوی او کله چه د امامتی حالت وی او امام په رکوع کښې لاندے کړی نو دا مقتدی مجبوره دے، ددهٔ نه شريعت قيام او فاتحه ساقطه کړه۔ لهذا هيڅ اشکال نشته۔ (فتاوی الشوكانی – عون المعبود) او کله چه شريعت يو شے ساقطوی نو خپل رائے او قياس چلولو ته ضرورت نشته۔ ددے وجه نه امام عبد الرحمن السعدیؒ په فتاوی السعديه (١١٧/١) کښې ليکی : پدے باندے د فقهاؤ اجماع ده چه په مانځه کښې چه څومره شيزونه واجب دی نو دا په هغه وخت کښې واجب دی چه قدرت په هغے باندے وی او کله چه انسان عاجز شی نو د هغے وجوب ساقط شی الخ ۔

دارنګه شيخ الاسلام فتاوی (٢٩٠/٢٣) کښې فرمائی : ددے مثال دا دے لکه نبی ﷺ د ابوبکر پسے مونځ کولو بيا کله چه مونځ نبی ﷺ ته نقل شو نو هغه د هغه ځائے نه قراء ت شروع کړو چه ابوبکر کوم ځائے ته رسيدلے وو او قراءت د فاتحے ئے راونه ګرځولو ځکه چه ددهٔ بناء اُوکړه په مانځه د ابوبکر باندے آه۔ دارنګه نبی ﷺ فرمائی : کله چه امام په ناسته مونځ کوی (معذور وی) نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ اُوکړئ الحديث (متفق عليه) نو دلته هم داسے وئيلے شی چه قيام خو فرض دے او مقتديانو اُونکړو۔ نو ددے وجه دا ده چه دا حالت مستثنیٰ دے د عام حالت نه۔

د دويم دليل نه جواب دا دے چه (وما فاتکم فأتموا) حديث نه استدلال کول واضح نهٔ دی ځکه دا استدلال دے په عموماتو باندے په يو خاص مسئله کښې ځکه چه ددے حديث سَوق ددے دپاره نهٔ دے شوے چه مدرك د ركوع مدرك د ركعت نهٔ دے۔ او بل طرفته نصوص موجود دی لکه چه تا اُوپيژندل۔ نو دا حديث معارض د هغه خاص نصوصو نشی کيدے۔ بله دا چه دا عام دے او زمونږ روايات خاص دی، او خاص په عام باندے قاضی وی ځکه خاص په منزله د استثناء وی۔

دارنګه وايو چه حديث کښې فوات ذکر دے او دلته مدرك د ركوع نه فوات نهٔ دے شوے۔ ځکه شريعت دا ركعت اداء حساب کړو۔ نو د څهٔ شی اِتمام اوکړی۔

٣– يا دا چه ددے نه هم د ادراك الركوع والا احاديث مخصص دی۔ لهذا د جمهورو قول حق دے او دلائل ئے قوی دی او د بعض علماؤ قول ضعيف دے او دلائل ئے بعيد دی۔

دا قول جمهور (ائمه اربعه، عام اهل حديث، محدثين) اختياروی بلکه پدے باندے د

صحابه کرامو اجماع ده۔
حافظ ابن عبد البرؒ لیکی : دا هغهٔ خبره ده چه پدے باندے تولو خلقو (علماؤ) اجماع کړیده۔ (التمهید ۲۰/۱۹۸)

## الفصل الثانی

٦- عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا كُنَّا ثَلَاثَةً اَنْ يَّتَقَدَّمَنَا اَحَدُنَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او سمره بن جندب ﷛۔ فرمائی : "مونږ ته رسول الله ﷺ حکم کړے دے چه کله مونږ درے کسان یو نو یو تن دے زمونږ نه (کوم چه بهتر وی امامتئ ته) وړاندے کیږی"۔ (ترمذیؒ)

تشریح : حدیث دلیل دے چه درے کسانو کښ به امام مقدم کولے شی او مقتدیان به روستو وی که مینځ کښ اُودریدو نو گناهگار دے او دا هم په حالت د اختیار کښ دے او د ضرورت په بناء د امام سره اُودریدل هم جواز لری کما تقدم۔

اِذَا كُنَّا : ظرف دے دپاره د ان یتقدم او ان یتقدم کښ باء مقدره ده۔ (ای امرنا بأن یتقدمنا) او تقدیم د ظرف په ان باندے جائز دے ځکه په ظروفو کښ اتساع ده۔

درجة الحديث : اسناده ضعیف : اخرجه الترمذی (۲۳۳) وفی اسناده اسماعیل بن مسلم عن الحسن عنه والاول ضعیف والحسن مدلس وقد عنعنه۔

---

٧- وَعَنْ عَمَّارٍ [بْنِ يَاسِرٍ] :اَنَّهُ اَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ، وَقَامَ عَلٰى دُكَّانٍ يُصَلِّيْ وَالنَّاسُ اَسْفَلُ مِنْهُ، فَتَقَدَّمَ حُذَيْفَةُ فَاَخَذَ عَلٰى يَدَيْهِ، فَاتَّبَعَهُ عَمَّارٌ حَتّٰى اَنْزَلَهُ حُذَيْفَةُ، فَلَمَّا فَرَغَ عَمَّارٌ مِنْ صَلَاتِهِ، قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ: اَلَمْ تَسْمَعْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اِذَا اَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ فَلَا يَقُمْ فِيْ مَقَامٍ اَرْفَعَ مِنْ مَقَامِهِمْ اَوْ نَحْوَ ذٰلِكَ ؟ » فَقَالَ عَمَّارٌ: لِذٰلِكَ اتَّبَعْتُكَ حِيْنَ اَخَذْتَ عَلٰى يَدَيَّ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او عمار ﷛ په مدائن کښ خلقو ته امامتی کوله او په یو دکان باندے ولاړ وو مونځ ئے کولو او خلق د هغهٔ نهٔ لاندے وو، نو حذیفه ﷛ وړمخکښ شو او د هغهٔ (عمارؓ) دواړه لاسونه ئے اُونیول، (او هغهٔ ئے راخکته کړو دے دپاره چه د مقتدیانو سره په صف کښ برابر اُودریږی) نو عمارؓ (هم) د حذیفه پسے راروان شو (او هیڅ انکار ئے ترے اُونهٔ کړو) تردے

چه حذیفه ﷺ هغهٔ لره راکوز کړو، نو عمار ﷺ چه کله د مانځه نه فارغ شو نو حذیفه ﷺ ورته اُوفرمایل:" آیا تا د رسول الله ﷺ نه نهٔ دی اَوریدلی دی چه فرمایل ئې :«کله چه یو سړے یو قوم ته مونځ کوی نو نهٔ دے اُودریږی په یو ځائے کښ چه د هغوی د ځائے نه اُوچت وی» او یا ئې ددے په شان الفاظ فرمائیلی دی. نو عمار ﷺ اوفرمایل :"پدے وجه خو زهٔ تا پسے راروان شوم کله چه تا زما لاسونه اُونیول" ـ(او هیڅ جګړه ﻣﮯ درسره اُونهٔ کړه) (ابوداودؒ)

تشریح : مدائن د دجلې په غاړه یو پخوانے ښار دے. د بغداد نه اُووه فرسخه وړاندے دے. او دا د اَکاسرو دار الحکومت وو. دکان نه مراد اُوچت ځائے دے چه د ناستے دپاره تیار شوے وی.

فَأَخَذَ عَلٰی یَدَیْهِ : دا نهی عن المنکر دے په مانځه کښ دے حدیث کښ اګرکه کلام دے لیکن دا قسم واقعه د حذیفهؓ سره هم شویده ابوداودؒ، حاکمؒ او بیهقیؒ نقل کړیده او هغه صحیح حدیث دے چه حذیفه په مدائن کښ خلقو ته امامتی کوله په یو دکان باندے اُودریدو نو ابو مسعود انصاریؓ د قمیص نه راخکلو، کله چه هغهٔ د مانځه نه فارغ شو ورته ئې اُوفرمایل : آیا تا ته نهٔ ده معلومه چه خلق به ددے کار نه منع کولے شو. هغه اُوفرمایل : ولے نهٔ ! کله چه تا زه راخکلم نو ما ته خبره رایاده شوه. (صححه النووی)

او دواړه واقعو کښ تناقض نشته ځکه چه کیدے شی حذیفه سره اول دا کار شوے وی بیا ددهٔ د عمار سره داسے واقعه راغلې وی.

## امام به د مقتدیانو نه اُوچت نهٔ اُودریږی

بیا حدیث کښ دا مسئله ده چه امام به یواځې د مقتدیانو نه جدا په اوچت ځائے نه اُودریږی چه مقتدیان لاندے وی. ځکه پدے کښ تمییز د امام راځی او الله دا بده ګڼړی چه په نورو ملګرو کښ متمیز او جدا وی. (الرحیق المختوم)

مګر پدے کښ اختلاف دے دوه قوله دی (۱) جمهور علماء (نخعیؒ، ثوریؒ، اوزاعیؒ، مالكؒ، ابوحنیفهؒ) فرمائی : امام لره په اُوچت ځائے اُودریدل منع دی او دا قول د ابن مسعود دے چه هغه دا مکروه ګڼړی او ددے نه ئې منع فرمائیلې ده. (فتح الباری لابن رجب کتاب الصلاة ۱۱۷/۳) او دلیل ئې دوه حدیثونه دی یو دا حدیث د عمار شو او بل حدیث د ابو مسعود انصاریؓ شو. چه په هغې کښ داسے الفاظ دی : (نهی رسول الله ﷺ ان یقوم الامام فوق شیء والناس خلفه یعنی اسفل منه (الدارقطنی، الحاکم ۲۱۰/۱) بسند صحیح ذکره الحافظ فی التلخیص (۴۳/۲) صحیح الجامع (رقم ۶۸۴۲)

په روایت د ابوداود کښ دی : (الم تعلم انهم کانوا ینهون عن ذلك) (سنده صحیح) ـ

وسيأتي في المشكوة) في باب المشي مع الجنازة)

(۲) دويم قول د امام بخاريؒ، طحاويؒ او ابن حزمؒ دے چه د امام دپاره په اُوچت ځائے اُودريدل جواز لري او ابن حزمؒ وئيلي دي چه دا قول د امام شافعيؒ، ابوسليمانؒ، احمد بن حنبلؒ، ليث بن سعدؒ او بخاريؒ دے۔ دوي استدلال كوي په حديث د سهل بن سعدؓ باندے چه نبي ﷺ په منبر باندے خلقو ته مونځ كړے دے او خلق ترے لاندے ولاړ وو لكه دا حديث روستو متصل راروان دے۔

ليكن صحيح خبره دا ده چه امام دپاره اُوچت ځائے باندے اُودريدل صحيح نۀ دي برابره ده مسجد وي او كه غير مسجد وي وجه ددے حديث د ابومسعودؓ نه۔ او هر چه واقعه د منبر ده نو په هغه حديث كښ د هغے علت ذكر شويدے (لتأتموا بي ولتعلموا صلاتي) يعني دے دپاره چه صحابه كرامو ته تعليم د مانځه وركړي ځكه منبر ته پورته شوے وو۔ نو كه صورت د تعليم وي نو بيا امام له پورته كيدل جواز لري او كه تعليم غرض نۀ وي نو بيا به نۀ پورته كيږي۔ لهذا ددے حديث د سهلؓ نه مطلقاً جواز نۀ ثابتيږي۔

علامه ابن دقيق العيدؒ فرمائي: حديث د سهلؓ دليل دے چه امام د مقتديانو نه اُوچت ځائے كښ اُودريدے شي خو كله چه مقصود تعليم وي او كه دا مقصود نۀ وي نو بعض علماؤ ديته مكروه وئيلي دي او بيا فرمائي: ځوك چه دا پورته اُودريدل د امام بغير د قصد د تعليم نه جائز ګڼړي نو الفاظ د حديث ديته نۀ شامليږي او قياس صحيح نۀ دے ځكه چه اصل كښ داسے صفت دے چه هغه په فرع كښ نشته۔ آه۔ نيل الاوطار (۲۳۸/۳) عون المعبود (۱۱۹/۲)

علامه شوكانيؒ پكښ لا دا هم وئيلي دي: چه دا يو قاعده اصولي ده چه كله نبي ﷺ نهي اُوكړي د يو شي نه او بيا د هغے مخالف عمل اُوكړي نو د هغۀ فعل به مُخصص وي د هغه عموم نه لهذا مونځ د پيغمبر په منبر باندے معارض نۀ دے د منع د پورته كيدو د امام په مقتديانو باندے په اعتبار د امت سره۔ يعني په منبر باندے اُودريدل د خصوصياتو د نبي ﷺ نه دي او امت د هغه په شان كار نشي كولے چه په منبر اُوخيژي۔ مګر په «السيل الجرار» كښ ئے بيرته پدے خبره رد كړيدے۔ چه دليل په خصوصيت باندے نشته۔

## بيا څومره اندازه اُوچت اُودريدل ممنوع دي:

۱ – بعض وائي: په اندازه د قامت د سړي۔ (وهو قول ابي يوسف)۔

۲ – بعض وائي: په اندازه د يو ګز ۳ – بعض وائي دومره اندازه چه د امام او د مقتديانو امتياز پرے راځي۔ او همدا خبره راجح ده ځكه حديث مطلق راغلے دے۔ (المرعاة ٤/ ۳۸)

تنبیه : دا اختلاف په هغهٔ صورت کښ دے چه امام یواځې په اُوچت ځائے ولاړ وی او که چرته د امام سره څهٔ خلق په اُوچت ځائے ولاړ وی او باقی مقتدیان لاندے ولاړ وی نو جائز به وی، ځکه علت د منع ختم شوچه هغه د امام یواځې کیدل دی په اُوچت ځائے کښ. او دغه شان خبره د امام مالکؒ نه هم نقل ده چه په کشتئ کښ خلق مونځ کوی څهٔ کسان بَره او څهٔ لاندے اُودریږی نو دا به جائز وی ځکه ضرورت دے. (شرح ابن بطال)

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٥٩٨) وقال المنذرى فى مختصر سنن ابى داود (٣٠٩/١) فى اسناده رجل مجهول ولكن ورد فى معناه حديث آخر وفيه ان حذيفة هو الامام والذى جذبه هو ابومسعود اخرجه ابوداود (٥٩٧) وابن خزيمة (١٥٢٣) وابن حبان (٢١٣٤) والحاكم (٢١٠/١) وصححه الالبانى فى صحيح الجامع الصغير (٣٩٢).

---

٨- وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، اَنَّهُ سُئِلَ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ الْمِنْبَرُ؟، فَقَالَ: هُوَ مِنْ اَثْلِ الْغَابَةِ، عَمِلَهُ فُلَانٌ مَوْلٰى فُلَانَةٍ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ، وَقَامَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ حِيْنَ عُمِلَ وَوُضِعَ، فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَكَبَّرَ وَقَامَ النَّاسُ خَلْفَهٗ، فَقَرَأَ وَرَكَعَ، وَرَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهٗ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ، ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى، فَسَجَدَ عَلَى الْاَرْضِ، ثُمَّ عَادَ اِلَى الْمِنْبَرِ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ، ثُمَّ رَجَعَ الْقَهْقَرٰى، حَتّٰى سَجَدَ بِالْاَرْضِ، هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ. وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ نَحْوَهٗ، وَقَالَ فِيْ آخِرِهٖ : فَلَمَّا فَرَغَ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، فَقَالَ: «اَيُّهَا النَّاسُ! اِنَّمَا صَنَعْتُ هٰذَا لِتَأْتَمُّوْا بِيْ وَلِتَعَلَّمُوْا صَلَاتِيْ».

ترجمه: او سهل بن سهل ساعدی ﷺ نه روایت دے چه دهٔ نه (یوه ورځ) تپوس اُوکړے شو چه د نبی ﷺ منبر د څهٔ شی نه (یعنی کوم لرګی) نه وو؟ نو هغهٔ اُوفرمایل: دا د ځنګلی غز وُنے نه وو، چه فلانی شخص چه د فلانۍ ښځې آزاد کړده غلام وو- د رسول الله ﷺ دپاره جوړ کړے وو، او کله چه دهٔ جوړ کړو نو رسول الله ﷺ په هغې باندے اُودریدو، او په (مسجد کښ) کیخودے شو، نو رسول الله ﷺ قبلے ته مخ واړولو (مونځ دپاره) او الله اکبرئے اُووئیلو او خلق د هغهٔ نه روستو ولاړ وو نو هغهٔ قراءت اُوکړو او رکوع ئے اُوکړه او د هغهٔ نه روستو خلقو (هم) رکوع اُوکړه، بیا هغهٔ سر پورته کړو، بیا هغهٔ شا کړے راواپس شو او په زمکهٔ ئے سجده اُوکړه، بیا منبر ته واپس شو بیائے قراءت شروع کړو، بیائے رکوع اُوکړه بیائے سر پورته کړو بیا شا کړے راواپس شو تردے چه سجده ئے په زمکه باندے اوکړه. دا الفاظ د بخاری دی، او د بخاری او مسلم متفقه روایت هم دغه شان دے او راوی ددے حدیث په آخر

کښې وئیلی دی : "هرکله چه نبی ﷺ (د مانځه نه) فارغ شو نو خلقو ته ئې مخ راواړولو او وے فرمايل: «اے خلقو ! ما دا کار پدے وجه اُوکړو چه تاسو زما پیرَوِی (اقتداء) اُوکړئ او دے دپاره چه زما مونځ (سره د کیفیات او احکام او مسائلو نه) زده کړئ »۔

## د نبی علیه السلام د منبر تفصیل

تشریح : د نبی ﷺ منبر د غز ونے نه جوړ شوے وو او حدیث د مسلم کښې دی چه درے پوړئ ئے وے او د محراب کس طرفته او د مسجد نبی طرف ته پروت وو او همدا سنت ده چه درے پوړئ به وی زیاتے یا کمے پوړئ جوړول بدعت دے۔ او دا منبر ورله د یوے زنانه چه حافظ ابن حجرؒ وائی د هغے نوم ندے معلوم خو انصاریه ده او بعض وائی نوم ئے عائشهؓ وو۔ د هغے غلام چه باقوم الرومی نوم ئے وو جوړ کړے وو هغے رسول الله ﷺ اُولیدلو چه په منبر باندے اُوږد قیام کوی او خپے بدلوی رابدلوی نو رسول الله ته ئے اُوفرمایل : یارسول الله ! زما غلام نجار دے ( او په مدینه کښې صرف همدا یو نجار وو) تا له به منبر جوړ کړی۔ نبی ﷺ ورتـه اِجازه ورکړه نو هغے پـه جوړولو کښې تاخیر اُوکړو، رسول الله ﷺ ورتـه اُوفرمایل څۀ دِے اُوکړل، نو بیا ئے راوړو۔ او ددے نه مخکښې رسول الله ﷺ د کجورے یوے تنے تـه تـکیـه وهله، بعض روایاتو نه معلومیږی چه نبی ﷺ کـله ضعیف شو او بدن ئے غوښه واخسته نو تمیم داریؓ رسول الله ﷺ ته اُوفرمایل یارسول الله ! تا ته تکلیف دے چه دے ونے تـه اُودریږے نو تا له به منبر جوړ کړو چه ته پکښې کینے او تکلیف درته نۀ وی لکه څنګـه چـه شام کښې مـا لیدلی دی نو رسول الله ﷺ د مسلمانانو سره مشوره اُوکړه نو عباس بـن عبـد الـمطلبؓ اُووئیل : زما غلام (کُلاب) ډیر ښه کارِندۀ دے نو نبی ﷺ ورته اُوفـرمـایـل : حکم ورته اُوکړه نو هغه ځنګلی غز پسے اُولیږلو او هغه ئے راپرے کړو او منبر ئے ترے جوړ کړو۔ ( فتح الباری ٣٩٨/٢) باب الخطبة علی المنبر ورجاله ثقات الا الواقدی) نو ظاهر دا ده چه هغۀ اراده وه او ددے حدیث (الباب) واقعه حقیقت دے۔

حافظ ابـن حـجرؒ فـرمـائی : راجح دا ده چه ددے نجار نوم میمون وو ځکه دا په صحیح سـنـد ثـابـت دی۔ او روستـو بـه روایت راشی چه کله منبر تیار شو او رسول الله ﷺ په منبر خـطبـه ورکـولـه نو د کجورے هغۀ تنه په ژړا شوه چه صحابه کرامؓ د هغے ژړا واوریدله نو رسـول الله ﷺ د مـنبـر نـه راکوز شو او هغه ئے په غیږه کښې اُونیوله او داسے ئے قلاره کړه لـکه ماشوم چه قلارولے شی نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دے ونے پدے وجه اُوژړل چه څـه ده د هـغـۀ ذکـر پسے چـه دے بـه آوریـدلـو۔ او د خـلـفـاءِ راشدینو په زمانه کښې دغه منبر په

همدغه حالت وو بیا پکښې مروان په خلافت د معاویه کښې درے پوړۍ د لاندے نه زیاتے کړے نو شپږ شوے نو دا د هغه مکروه بدعاتو نه دی چه په مسجد کښې پیدا شو۔ ابن النجارؒ وغیره وائی : دا منبر په همدے حالت وو د بعض ځایونو اصلاح به ئے کولے شوه تردے چه په سنه (۶۵۴هـ) کښې مسجد د مدینے اُوسوزیدو نو بیا (ملك مظفر) په (۶۵۶هـ) کښې نوے منبر جوړ کړو، بیا لس کاله بعد (ظاهر بیبرس) بادشاه نوے منبر راولیږلو او د مظفر منبرئے لرے کړو او دغه منبر تر (۸۲۰هـ) سنه پورے موجود وو دے نه بعد بیا (مُؤید شَیْخُو) بادشاه بل نوے منبر راولیږلو (ذکره الحافظ ابن حجرؒ) او په سنه (۸۸۰هـ) کښې بیا مسجد نبوی اُوسوزیدو نو (اَشرف قایتْبَای) بادشاه نوے منبر جوړ کړو چه هغه تر نن تاریخ پورے موجود دے۔ (حاشیة السندی علی النسائی– الصلاة علی المنبر، وعمدة القاری)۔

اَثْلِ : غز ونے ته وائی چه دیته طرفاء هم وائی بعض وائی دا مشابه ده د طرفاء ونے سره۔

او اَلْغَابَةِ : ځنګل ته وائی او دلته ددے نه مراد د مدینے په عوالی (بَره طرفونو کښې ) جهت د شام ته یو علاقه ده چه نهه میله فاصله د مدینے نه وړاندے ده۔ (عون المعبود، لمعات) او د بئر رُوْمَه نه شاته ده۔ (شرح بلوغ المرام للشیخ عطیه محمد سالم)

وَقَامَ عَلَيْهِ : حافظ فرمائی : نبی ﷺ په اُوچته پوړۍ باندے ولاړ وو۔القهقری : شا بیرته راتلو ته وائی۔ او دا کارئے پدے وجه اُوکړو چه د قبلے نه ئے مخ وانهٔ وړی۔

فوائد الحدیث : ۱– امام بخاریؒ پدے حدیث باندے استدلال کړے چه په منبر او لرګی باندے مونځ جائز دے۔ ۲– دارنګه امام بخاریؒ ترے معلومه کړے ده چه که امام د مقتدیانو نه بَره ولاړ وی نو جائز ده لیکن ددے جواب مخکښې تیر شو چه دلته علت ذکر دے چه هغه تعلیم د نبی ﷺ دے۔

۳– (رجع القهقری) لاندے نکته کښې لیکی : بخطوتین یعنی دا حنفی مولا د خپل مذهب دپاره حدیث ته د ځان نه پیوندونه وراچوی او نبی ﷺ د خپل ځان تابع کوی ځکه د احنافو مذهب دے چه درے قدمونه مُتوالی په مانځه کښې اخستل عمل کثیر دے او دا خوناروا دے نو ځکه وائی چه دلته نبی ﷺ صرف دوه قدمونه راشاته شویدے نهٔ درے لیکن دا خبره خطاء ده ځکه دلته هیڅ قرینه نشته چه دوه قدمونه روستو شویدی۔

بلکه ظاهر دا ده چه څلور قدمونه به روستو شوے وی ځکه چه د منبر د بَره سر نه راکوزیدل او بیا شاته تلل او سجده په زمکه لګول ډیر قدمونو سره کیږی۔ دا نقصان تړل ددے قاعدے نه پیدا شویدے چه وائی درے قدمونه عمل کثیر دے۔ نهٔ، بلکه کوم عمل

چه نبی ﷺ کړے وی اګرکه عمل کثیر وی خو هغه جائز دے۔ نبی ﷺ باندے پابندیانے نشی لګولے۔ او بیا نبی ﷺ داسے عمل همیشه ندے کړے بلکه دا واقعه په ژوند کښې یو کرت نیم راپیښه شویده دپاره د تعلیم د صحابه کرامؓ۔

٤- عملی تعلیم ورکول ډیر مؤثروی په نسبت د بیان باندے پدے وجه اکثرو اوقاتو کښې به نبی ﷺ عملی تعلیم ورکولو چه ما ته اُوګورئ او زما په شان عمل اُوکړئ۔

٥- مقتدیانو دپاره په مانځه کښې امام ته کتل جواز لری ځکه چه دلته نبی ﷺ منبر ته ختلے دے او صحابه کرامؓ ته مونځ ښائی نو هغوی به ورته ضرور ګوری۔ خو پدے شرط چه د قبلے نه به مخ نهٔ اړوی۔ ٦- عبادت او تعلیم جمع کول روا دی لکه یو هلك ته د حفظ او جُمعے سره مونځ کولو تربیت ورکول۔

٧- امام ته په مانځه کښې او بهر د مانځه نه فتح ورکول جواز لری او دا قاعده خطاء ده چه مونځ د تعلیم او تعلم ځائے نهٔ دے۔ ________________________

٩- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ حُجْرَتِهٖ وَالنَّاسُ يَأْتَمُّوْنَ بِهٖ مِنْ وَرَاءِ الْحُجْرَةِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاؤدَ. ________________________

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ په خپله حجره (کوټه) کښې مونځ کولو او خلقو د هغهٔ پسے اِقتداء اُوکړه د حجرے نه شا ته۔ (ابوداوٗدؒ)

تشریح : حدیث ئے دے دپاره راوړو چه کهٔ امام جُدا ولاړ وی او مقتدیانو ته نهٔ ښکاری نو هم خیر دے، مونځ کښې نقصان نهٔ راځی، دِامام ښکاره کیدل د مانځه د صحت دپاره شرط نهٔ دے۔

حُجْرَتِهٖ : ددے حُجرے نه څهٔ مراد دے ؟١- بعض وائی : دا د عائشےؓ کوټه ده لیکن دا معنیٰ ظاهره نهٔ ده ځکه که دا د هغے کوټه وے نو هغے به داسے وئیلی وے (فی حجرتی) (زما کوټه کښې ئے مونځ اُوکړو) دویم دا چه دا ځکه نهٔ ده مراد چه د عائشےؓ کوټه خو چپ طرف د مسجد کښې ده نو صحابهؓ پسے څنګه اُودریدل دا خو بیا د قبلے نه ئے مخ اوړی۔ فتفکر۔

٢- ظاهر دا ده چه دلته حُجْرَةُ الْحَصِيْرِ (د بزکی نه جوړه شوے کوټه) مراد ده یعنی رسول الله ﷺ په اعتکاف کښې په رمضان کښې ځانله یو معتکف خانه د بزکی نه جوړه کړے وه چه سر به ئے ترے ښکاره کیدو چه په تراویح کښې به په هغے کښې اُودریدو، نو صحابه کرامؓ راغلل او ورپسے شاته اُودریدل۔ لکه دا په بخاریؒ کښې راغلی دی۔ (حافظ ابن حجرؒ) نو حدیث دلیل دے چه که د امام او د مقتدیانو ترمینځ دیوال یا نهر یا لاره وغیره حائل شی نو څهٔ نقصان نشته۔ کله چه د امام تکبیر اَوری۔ پدے شرط چه د صفونو اتصال

بـه نـهٔ خرابوی۔ داسې بـه نهٔ کوی چه امام دننه ولاړ وی او مسجد کښې ځائے وی او یو انسان بهر کوڅه کښې اُودرېږی، ځان د گرمیٔ وغیره نه بچ کوی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (١١٢٦) والبيهقى (١١٠/٣)

## الفصل الثالث

١٠ – عَنْ اَبِىْ مَالِكٍ الْاَشْعَرِىِّ، قَالَ: اَلَا اُحَدِّثُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ؟ قَالَ: اَقَامَ الصَّلَاةَ، وَصَفَّ الرِّجَالَ، وَصَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ، ثُمَّ صَلّٰى بِهِمْ، فَذَكَرَ صَلَاتَهٗ، ثُمَّ قَالَ: « هٰكَذَا صَلَاةُ – قَالَ عَبْدُ الْاَعْلٰى : لَا اَحْسِبُهٗ اِلَّا قَالَ – اُمَّتِىْ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ.

---

ترجمه : ابومالك اشعرى ﷺ نه روايت دے چه دهٔ (خلقو ته) اُوفرمايل: آيا زهٔ تاسو ته د رسول الله ﷺ د مونځ (طريقه) نهٔ بيانوم؟۔ وے فرمايل : (واورئ چه) نبى ﷺ مونځ اُودرولو او (اول ئے) د سړو صف ئے اُودرولو او (بيا) د هغوى نه روستو ئے د هلکانو صف اُوتړلو، بيا ئے هغوى ته مونځ اُوکړو۔ ابومالك د نبى ﷺ د مانځه (كيفيت) ذكر كړو، بيا هغهٔ اُوفرمايل : «دغه شان مونځ دے» عبد الاعلىٰ راوى فرمائى : زما په ابومالكؓ باندے گمان دے چه داسے ئے وئيلى دى : «زما د اُمت»۔ (ابوداودؒ)

تشريح : حديث ئے دے دپاره راوړے دے چه كله د اِمام سره خلق ډير وى نو اِمام به مخكښې اُودرېږى او ماشومان بـه روستو اُودروى مثلًا نيت نهٔ دے تړلے شوے او ماشوم مخكښې ولاړ وو او مشر سړے راغلو نو ماشوم به روستو كړے شى او كه نيت تړلے شوے وو هم روستو كول جواز لرى لكه ددے روستو روايت نه معلومېږى۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (٦٧٧) واحمد والبيهقى وفى اسانيد الجميع شهر بن حوشب وهو ضعيف لسوء حفظه۔

---

١١ – وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ، قَالَ: بَيْنَا اَنَا فِى الْمَسْجِدِ، فِى الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ، فَجَبَذَنِىْ رَجُلٌ مِنْ خَلْفِىْ جَبْذَةً، فَنَحَّانِىْ، وَقَامَ مَقَامِىْ فَوَاللهِ مَا عَقَلْتُ صَلَاتِىْ. فَلَمَّا انْصَرَفَ، اِذَا هُوَ اُبَىُّ بْنُ كَعْبٍ، فَقَالَ: يَافَتٰى ! لَا يَسُوْءُكَ اللهُ، اِنَّ هٰذَا عَهْدٌ مِنَ النَّبِىِّ ﷺ اِلَيْنَا اَنْ نَلِيَهٗ، ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، فَقَالَ: هَلَكَ اَهْلُ الْعُقَدِ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ، ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: وَاللهِ مَا عَلَيْهِمْ آسٰى، وَلٰكِنْ آسٰى عَلٰى مَنْ اَضَلُّوْا، قُلْتُ : يَا اَبَا يَعْقُوْبَ ! مَا تَعْنِىْ بِاَهْلِ الْعُقَدِ ؟ قَالَ : اَلْاُمَرَاءُ.

رَوَاهُ النَّسَائِيُّ. ___

ترجمه : او قیس بن عبادؒ فرمائی : (یوه ورځ) پدے مابین کښې زهٔ په مسجد کښې په رومبنی صف کښې (په مانځه) ولاړ وم، نو د روستونه یو سړی په سختئ سره راخکلم او زهٔ ئے یو طرف ته کړم او پخپله زما په ځائے اُودریدو، نو قسم په الله (زهٔ دغصے په وجه) په خپل مانځه پوهه نهٔ شوم، هرکله چه هغهٔ شخص مونځ اُوکړو، (او ما هم مونځ اُوکړو او وے لیدل) نو دغه وخت کښې دغه شخص ابی بن کعب (ﷺ) وو، هغهٔ اُوفرمایل : اے ځوانه ! الله دے تا نهٔ خفه کوی، مونږ ته د نبی ﷺ دا وصیت دے چه مونږ به امام ته نزدے اُودریږو، بیا ئے قبلے ته مخ کړو او درے کرتے ئے اُوفرمایل :" قسم په رب د کعبه ! اهل عقد ( سرداران) هلاک شو، او وے فرمایل : قسم په الله ! زهٔ په سردارانو غم نهٔ کوم، غم خو د هغهٔ خلقو (رعیت) دے چه سردارانو هغوی لره گمراه کړل (پدے طریقه چه سرداران کوم کار کوی نو همغه کار رعایا هم کوی) قیس بن عباد فرمائی : ما اُووئیل: اے ابویعقوب ! د اهل عقد نه ستا څهٔ مراد دے ؟ هغهٔ اُوفرمایل :"امراء" (یعنی سرداران او حُکام)۔ (نسائیؒ)

تعارف د قیس : بن عباد الضبعی ابی عبد الله البصری ثقه د کبار التابعین نه دے، مخضرم دے، د اَتیایم (۸۰) هجری نه بعد وفات دے او چا چه په صحابه کرامؓ کښې شمارلے دے، نو خطاء شویدے۔ د عمر فاروق په خلافت کښې مدینے ته راغلو او د هغهٔ نه او د علیؓ او ابی بن کعبؓ وغیره نه ئے روایتونه نقل کړل دا د کبار الصالحین نه وو ۔ ابن مخنف ذکر کړیدی چه دا حجاج قتل کړیدے د هغه کسانو سره چه د ابن الاشعث سره ئے خروج کړے وو۔

تشریح : فَنَحَّانِیْ : ظاهر دا ده چه دا ئے په مانځه کښې جدا کړے دے۔ بیا چا چه یو ځائے مخکښې اُونیولو نو هغه به د هغه ځائے نه نهٔ لرے کولے شی دے نه حدیث کښې منع راغلے ده خو لیکن دلته مشران خلق نبی ﷺ مالکان کړیدی د مخکنی صف، نهٔ ماشومان نوګویا کښې دا ماشوم ئے د خپل مکان نه لرې کړیدے۔ماشوم پردی ځائے کښې ولاړ دے، نو بیا لری کول جواز لری۔

عَهِدُ مِنَ النَّبِيِّ ﷺ اِلَیْنَا : کعب دے قول د نبی ﷺ ته اشاره کوی : ( لیلنی منکم اولو الاحلام والنهی) (ماته دِے عقل مند خلق نزدے اُودریږی)

هَلَكَ اَهْلُ الْعُقَدِ : عقد (په ضمه د عین او فتحه د قاف) جمع د عُقْدَة ده، اصل کښې غوټے ورکول او تړلو ته وائی، دلته ترے مراد ولایت او عهده ده۔ یعنی اهل الولایات علی الامصار (په ښارونو باندے مقرر گورنران او بادشاهان) دوی ته اهل عُقَد ځکه وائی چه پدے عادت جاری دے چه کله دوی په عهده مقرریږی نو دوی دپاره جنده تړلے شی۔

ابی بن کعبؓ دا قول پدے وجه اُوکرو، اشاره ده دیته چه حُکام او مشرانو له پکار دی چه هغوی د صفونو لحاظ اُوکړی او ددے په برابرولو وصیت اُوکړی ځکه دا د دوی ذمّه داری ده لکه څنګه چه د مسلمانانو د دنیاوی اُمورو رعایت کوی نو دغه شان به د دینی اُمورو لحاظ هم کوی۔نو مشری ډیر ګران کار دے الله به د انسان نه ددۀ د مسئولیتونو په باره کښې تپوس کوی۔

قُلْتُ : ددے قائل محمد بن عمر بن علی المقدمی شیخ النسائی دے۔ یا ابا یعقوب : دا د یوسف بن یعقوب السدوسی مولاهم السلعی البصری الضبعی کنیه ده۔(۲۰۱ هـ) کښې وفات دے۔ احمدؒ ورته ثقه وئیلے دے۔

اَلْاُمَرَاءَ : (دا منصوب دے په "اَعْنِیُ "سره یا مرفوع دے په "هُمْ" مبتدأ مقدر سره) ددے نه مراد بادشاهان او والیان دی۔ یعنی په دوی زۀ خفه نۀ یم چه هلاك کیږی ځکه دا د دوی بدعمل دے ځان په زوره جهنم ته ګوزاری، خفګان په رعیت دے چه هغوی ئے ځان سره ګمراه کړل او د هغوی د مصالحو لحاظ ئے اُونه ساتو پدے کښې اِشاره کوی بعض امراؤ ته چه ددۀ په زمانه کښې وو۔

یا عام کافران مشران هم مراد کیدے شی نو بیا دا دلیل دے چه په کافرانو باندے خفګان نۀ دے پکار چه دا ولے جهنم ته ځی بلکه خوشحالیدل پکار دی رد دے په هغه خلقو چه دا وائی چه دا کافر ولے اُورته لاړو؟ قرآن کښې راځی : (فَكَيْفَ آسٰى عَلٰى قَوْمٍ كَافِرِيْنَ) (الاعراف) ځکه دوی ځان دپاره د هلاکت سامان تیار کړیدے، خفګان ئے په تابعدارو پکار دے چه په جهالت سره ئے کندے ته ګوزار کړل۔

حدیث ئے دے دپاره راوړیدے چه په صف کښې به اهل العلم او اهل فضیلة مخکښې کولے شی۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه النسائی (۱۳۰/۱) واحمد (۱۴۰/۵) وابن خزیمة فی صحیحه.



# باب الامامة

## د امامت بیان

ددې نه مراد احکام د امامت دی په مانځه کښې او د امامانو صفات ذکر کول دی یعنی امام مقررول. امامت د باب نصر نه د مصدر صیغه ده، مضاعف دی.

مناسبت : مخکښې خاص احکام د مقتدیانو وو اُوس اَحکام د اِمام بیانوی.

امامت په دوه قسمه دے : ۱ – امامتِ کبریٰ او عظمیٰ : او دیته خلافت وائی او ددے دپاره یولس شروط دی او دا هر څوك نشي کولے.

۲ – امامتِ صغریٰ : دا امامت د مانځه دے او ددے شرطونه کم دی دا هر څوك کولے شی سویٰ د کافر او فاسق نه ځکه فاسق اهل ددے منصب نه دے او دا امامت زنانه هم کولے شی زنانو ته. د سلفو په زمانه کښې به امامت صغریٰ او کبریٰ دواړه شریك وو ځکه خلیفه به د مسجد امام هم وو، مونځونه به ئے کول، روستو زمانو کښې خلقو کښې جهالت زیات شو، بادشاهان په دین پوره نهٔ پوهیدل نو مساجد ئے علماؤ ته اُوسپارل او خپله به ئے حکومتونه کول نو سیاست او دین ئے د یو بل نه جدا جدا کړو.

الفصل الاول

۱ – عَنْ اَبِیْ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «یَؤُمُّ الْقَوْمَ اَقْرَؤُهُمْ لِکِتَابِ اللهِ، فَاِنْ کَانُوْا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً، فَاَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ، فَاِنْ کَانُوْا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً، فَاَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً، فَاِنْ کَانُوْا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً، فَاَقْدَمُهُمْ سِنًّا. وَلَا یَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِيْ سُلْطَانِهٖ وَلَا یَقْعُدْ فِيْ بَیْتِهٖ عَلٰی تَکْرِمَتِهٖ اِلَّا بِاِذْنِهٖ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِيْ رِوَایَةٍ لَهٗ : وَلَا یَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِيْ اَهْلِهٖ».

---

ترجمه : ابو مسعود ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « خلقو ته به امامتی کوی هغهٔ شخص چه د کتاب الله زیات قاری وی، (ښهٔ قرآن وائی) او که په قرآن لوستلو کښې ټول یو برابر وو نو بیا به هغهٔ شخص اِمامت کوی چه په سنتو باندې زیات عالِم وی او کهٔ د سنتو په علم کښې یو برابر وو نو بیا به هغهٔ شخص اِمامت کوی چه مخکښې وی د

خلقو نه په هجرت کښې او که هجرت کښې هم يو برابر وي نو بيا به هغهٔ شخص اِمامت کوي چه په عُمر کښې د خلقو نه زيات وي، او يو سړے به د بل سړي په ځائے د قدرت کښې (علاقه کښې) امامتي نهٔ کوي، او د هغهٔ په کور کښې به د هغهٔ د عزت په ځائے (خاص کټ، بستره) نهٔ کيني، مګر د هغهٔ په اجازت۔» (که اجازهٔ اُوکړي بيا امامت او کيناستل جائز دي)۔ (مسلمؒ) او په يو روايت د مسلمؒ کښې داسے دي: «يو سړے دِے بل سړي ته د هغهٔ په کور کښې امامت نهٔ کوي»۔

تشريح: يَؤُمُّ الْقَوْمَ: (قانون) يو ځائے کښې يو امام مقرر شويدے نو که هغهٔ هر قسم صفاتو والا وي نو حق د مقرر امام دے اګر که مفضول وي او د بهر نه که هر متقي، عالم وغيره راشي نو د هغهٔ حق نهٔ دے مګر که مقرر امام ورته اجازت اُوکړي۔ او پدے حديث کښې چه اُوس دا مسئله بيانيږي نو دا په هغهٔ وخت کښې ده چه کله د يو مسجد دپاره امام مقررولے شي نو کوم صفاتو والا به مقررولے شي۔نو دے شرطونو ته به ګوري۔

دويم دا په سفر کښې وي چه ډير ملګري وتلي وي نو اُوس اختلاف راغلو چه څوك مخکښې کړو نو دے صفاتو ته به کتلے شي۔ او همدغه به مستحق وي۔نو پدے باندے عمل يا د امام مقررولو وخت کښې راځي يا په سفر کښې۔

اَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ: المسئلة الثانية لائق د امامت څوك دے؟

اختلاف دے چه قاري به مخکښې کولے شي او که عالم؟ ۱- د امام احمدؒ، اسحاق بن راهويهؒ، ابن سيرينؒ او ابويوسفؒ رايه دا ده او په «مجموع» کښې امام نوويؒ فرمائي: دا رأيه د ابن منذرؒ ده۔ چه اقرأ به مقدم کولے شي او عالم به روستو وي يعني چا چه د قرآن کريم الفاظ ښهٔ وئيل هغه به مقدم وي۔ ۲- د امام مالكؒ، ابوحنيفهؒ، شافعيؒ او امام بخاريؒ رايه دا ده چه أعلم به مقدم کولے شي۔ بقولِ عينيؒ دا د جُمهورو رايه ده۔

دليل القول الاول: ۱- دليل: دا حديث صريح دے چه أقرأ به مقدم کولے شي بيا به أعلم۔ او دلته د أقرأ نه د قرآن زيات حافظ مراد دے۔ دليل پرے دويم حديث دے:

۲- دليل: حديث د عمرو بن سلمهٔؓ دے چه فصل ثالث کښې راځي (واخرجه البخاري) دا وائي (فکنت اکثرهم قرآناً فقدّموني) (يعني زهٔ په خپل قوم کښې زيات قرآن حفظ کونکے وم نو خلقو زهٔ مخکښې کړم) او حال دا چه دا ماشوم وو او مشران موجود وو۔ سره ددے نه چه ددهٔ نه ډير پوهه موجود وو۔ او دا ښهٔ قوي دليل دے۔ دارنګه روستو د سالمؓ روايت دے چه هغهٔ اِمام وو او حال دا چه عمر فاروقؓ موجود وو۔

**دلائل الجمهور :** جمهور دوه دلائل وائی : ۱- یو حدیث د مستدرك (۱/۲٤۳) (فان كانوا فی الهجرة سواءً فَأَفْقَهُهُمْ فِی الدِّیْنِ) (یعنی که په هجرت کښې برابر وی نو بیا چه په دین باندے زیات پوهه وی نو هغهٔ به مخکښې کولے شی) لیکن دا روایت ضعیف دے ځکه حجاج بن أرطاة پکښې ضعیف راوی دے۔ دویم په دغه حدیث کښې قلب شویدے د هجرت نه ئے خبره شروع کړیده حال دا چه هجرت روستو دے۔

۲- **قوی دلیل :** امام بخاری په خپل صحیح کښې ذکر کړیدے او هغه دا چه نبی ﷺ فرمائیلی دی : (مروا ابا بکر فلیصل بالناس) (ابوبکرؓ ته حکم اُوکړئ چه خلقو ته مونځ اُوکړی) او حال دا چه نبی ﷺ بل حدیث کښې فرمائیلی دی : (اَقْرَأُكُمْ اُبَیٌّ) (زیات قاری په تاسو کښې ابی بن کعبؓ دے) او ابوسعید خدریؓ فرمائی : (کان ابوبکر اَعْلَمَنَا) ۔ (ابوبکرؓ په مونږ کښې لوئی عالم وو) نو دلته نبی ﷺ اَعْلَم مقدم کړو او اَقْرَأ ئے روستو کړو۔

او دوی جواب کوی (لکه صاحب الهدایه) چه په حدیث د ابومسعودؓ کښې د اقرأ نه مراد اَعْلم دے ځکه په زمانه د صحابه کرامؓ کښې به قاری عالم هم وو۔ لکه بیهقی اوحاکم (۵/۱۱۰) کښې راغلی دی : عبد الله بن مسعود فرمائی : (کنا اذا تعلمنا من النبی ﷺ عشر آیات من القرآن لم نتجاوز من العشر الذی نزلت بعدها حتی نعلم ما فیه) مونږ چه به لس آیتونه حفظ کړل نو مخکښې به نهٔ تلو تردے چه هغې باندے به مو ځان نهٔ وو پوهه کړے)۔

لیکن په دے جواب باندے دا اعتراض دے چه بیا خو په حدیث کښې تکرار لازمیږی ځکه چه روستو «فاعلمهم» لفظ راغلی دے ځکه چه دلته ئے اَعْلَم عطف کړیدے په اَقْرأ باندے مطلب به دا شی : (یؤم القوم اَعْلَمُهُمْ فان تَسَاوَوْا فَاَعْلَمُهُمْ) معلومیږی چه د اقرأ نه مراد قاری دے او د أعلم نه مراد عالم دے۔ (سبل السلام)

**علامه زبیدیؒ** فرمائی : مخالف چه پدے حدیث کښې دا تاویل کوی چه اَقْرأ په هغهٔ زمانه کښې اَفْقَهُ وو، نو دا مَرْدُود دے په دے قول د نبی ﷺ (فاعلمهم بالسنة)اګرکه ددے نه بعضو دا جواب ورکړے دے چه د اَقْرأ نه مراد اَعْلَم بالقرآن دے او اَعْلَمُهُمْ بالسنة نه مراد د سنتو اَعْلَم دے۔نو تکرار رانغلو۔

مګر راجح او ظاهر دا ده چه د اَقْرأ نه مراد اکثرهم حفظاً للقرآن دے یعنی چه چا ته قرآن زیات یاد وی۔او په اَعْلَم بالقرآن باندے حمل کول خلاف ظاهر دی۔

دارنګه دا خبره کول چه په هغهٔ زمانه کښې به قاری عالم هم وو بعینه مَرْدُوده ده په امامت د ابوبکرؓ باندے ځکه که اُبی بن کعبؓ اقرأ د صحابه کرامؓ شی نو بیا خو به اَفْقَهُ او اَعْلَم هم هغه وی نو څنګه ابوبکرؓ مخکښې کیږی؟۔ دارنګه که ابوبکرؓ اَعْلَم وی نو دا به

أَقْرأ هم وي نو بيا د (اقرأكم ابي بن كعب) معنىٰ څه ده ؟ فتفکر۔ هان صحابه کرامؓ کښې بعض هغهٔ وو چه د قراءت سره ئې زيات تعلق وو، د چا د مسائلو سره زيات تعلق وو، د چا د ميراثو سره زيات تعلق وو۔ د چا د أحاديثو سره زيات تعلق وو۔ حفاظ الحديث وو۔ اګرکه ټولو کښې د قراءت ماده هم وه او د علم ماده هم۔ ليکن أبي بن کعبؓ په ټولو کښې أقرأ وو۔

☆- دارنګه دا دعوىٰ کول چه دا حديث خاص دے په صحابه کرامؓ پورے نو دا بے دليله دعوىٰ ده۔ علامه سنديؒ فرمائي : دا حديث فائده کوي تقديم د اقرأ او عام فقهاء قائل دي په تقديم د أعْلم باندے او هغوی ددے حديث نه دوه جوابه کوي يو دا چه دا حديث منسوخ دے په امامت د ابوبکر (لکه دا خبره عينيؒ کړيده) سره ددے نه چه اقرأ په صحابه کرامؓ کښې أُبي بن کعبؓ وو او ابوبکرؓ أعْلَم وو۔ لکه چه ابو سعيد خدريؓ فرمائيلي دي۔

او دويم دا دعوىٰ کول چه دا حکم مخصوص دے په صحابه کرامؓ پورے چه په هغوی کښې به أقْرأ أعْلَم وو۔نو په دے دواړو جوابونو کښې ښکاره تناقض دے چه په هيڅ پټ نهٔ دے، او لفظ ددے حديث مفيد د عموم د حکم دے۔ انتهىٰ۔

(حاصل د تناقض دا دے چه اول وائي صحابه کرامؓ کښې به قاري، عالم هم وو، او بيا وائي : قاري مخکښې کول په عالم باندے منسوخ دي په امامت د ابوبکر باندے څکه چه دا عالِم وو او قاري نهٔ وو۔) المرعاة (٤٨/٤)

او کوم علماء چه عَالِم ته ترجيح ورکوي نو هغوی کښې امام شافعي رحمه الله دا دليل هم وئيلے دے چه په مانځه کښې کله کله داسے أحکام عارضيږي چه هغے باندے صرف کامل عالِم پوهيدے شي او قاري خو به پوهه نهٔ وي، نو د خلقو مونځونه به تباه کړي۔او فقيه ته خو دومره قراءت ياد وي چه مونځ پرے ادا کيدے شي۔ لهذا عالم به مقدم وي۔ صاحب هدايةؒ وائي : قراءت ته صرف په يو رکن کښې حاجت راځي او علم ته په ټولو أرکانو کښې ضرورت وي۔ مګر صاحب د مرعاة وائي چه دا ټول تعليلات دي په مقابله د نص کښې۔ بلکه قراءت ته ضرورت ډير دے څکه هر وقت وي او مسائلو ته ضرورت کله کله راځي فتفکر۔ بله وجه دا ده چه په دوی کښې قراءت د قرآن ته ترغيب دے لکه روستو په عبارت د شاه ولي الله کښې راځي۔

او دارنګه بعض علماء دا هم وائي چه د ابوبکرؓ مخکښې کول يو وقتي واقعه وه چه په هغے کښې نبي ﷺ اشاره کوله چه ما نه روستو خلافت د ابوبکرؓ حق دے دا وجه ده هغهٔ د نبي ﷺ په ژوند کښې هم مونځ خلقو ته ورکړے دے۔ او نبي ﷺ هم وريسے شاته ولاړ وو۔او مونږ ته ئے دا قانون کلي وئيلے دے چه (يؤم القوم اقرأهم لکتاب الله) ۔

او کوم علماء چه د عالِم مقدم کول غوره ګڼي نو هغوی هم داسې تفصيل کوي وائی چه کهٔ عالم باجَوړې (ګډوډ) قرآن وئيلو نو بيا به قاري غير عالِمُ مخکښ کولے شي۔
او ۲ – دارنګه يو شخص قاري او عالم دواړه وي نو دا به مقدم وي د محض قاري نه۔
۳ – دارنګه يو شخص قاري او عالم دواړه وي دا به مقدم وي په نفس عالم باندې۔ او جمهور د حديث د عمرو بن سلمهؓ نه دا جواب هم کوي چه هغهٔ واقعه په ابتداء د اسلام کښې وه چه خلقو له قرآن نهٔ ورتلو او د ابوبکرؓ زمانه آخرې ده صحابه کرامو کښې قاريان موجود وو۔ نو ځکه عالم به مقدم وي په قاري باندې۔
مګر دا جواب چندان مزيدار نهٔ دے ځکه چه دومره قرآن خو هغهٔ قوم ته هم ياد وو چه مونځ پرې جائز کيږي بلکه په هغې کښې دا الفاظ دي چه مانه ځوك زيات قرآن يادونکے نهٔ وو۔او داسې ئې نهٔ دي وئيلي چه چا له هيڅ نهٔ ورتلل ځکه بيا ئې مونځونه څنګه کول؟۔
البته کېدې شي چه د يو قاري آواز دومره ښائسته نهٔ وو او د عالم آواز ښائسته وو چه په مانځه کښې د خلقو توجه ئې پيدا کوله نو بيا به عالم مخکښ کولے شي ځکه چه أقرأ نه بعض علماؤ دا معنیٰ اخستې ده چه (أَحۡسَنُهُمۡ وأَجۡوَدُهُمۡ قِرَاءَةً للقرآن وإنۡ كَانَ أَقَلَّهُمۡ حِفۡظاً) : (يعنې چه مزيدار او ښائسته آواز سره قرآن وائي اګرکه کم ئې ياد وي)
دا اختلاف په هغهٔ صورت کښې دے چه أقرأ به په أعلم مقدم وي کله چه قاري ته د مانځه دومره احکام ياد وي چه د مانځه اصلاح پرې کولے شي البته که سوچه جاهل وي او صرف الفاظ ئې ياد وي او مونځ غلط کوي نو بيا په اتفاق د علماؤ به قاري نشي مقدم کولے۔
فائدة نادرة : يؤم القوم اقرأ هم کښې عُموم دے نو د مَعذور سړي إمامت هم صحيح دے لکه أعمىٰ، أعرابي، او ولد الزنا وغيره شي۔ ۲- فقه حنفي (البحر الرائق ۳/۳۹۶) او المبسوط وغيره کښې دي : چه ددې خلقو امامت مکروه دے، ځکه دا ضعيف دي او روغ خلق قوي دي او اقتداء د قوي په ضعيف پسې صحيح نهٔ ده۔ مکروه ده۔
ليکن ددې جواب دا دے چه هرکله د أعمىٰ وغيره مونځ ځانله صحيح دے نو اقتداء ورپسې هم صحيح ده او د کراهت هيڅ قسم دليل نشته۔ لکه فقه حنبلي کښې دا قاعده ذکر ده : (كل من صحت صلاته لنفسه صحت امامته) (الشرح الممتع على زاد المستقنع ۴/۱۶۵) ۔(هرهغهٔ ځوك چه ځانله ئې مونځ صحيح وي نو د هغهٔ پسې امامت صحيح دے)
فائده ۲ : پدې حديث کښې اهل د امامت څلور کسان ذکر شويدي، او فقه حنفي کښې تقريباً ديارلسونه هم زيات ذکر شويدي۔ ۱- اول أعلَم بيا أقرأ بيا أورَعُ (د شبهاتو نه ځان ساتونکے) بيا أسَن (مُعَمَّر) بيا أقدَمُهُمۡ إسلَاماً (چه اسلام ئې مخکښې راوړے وي) أقدَمُهُمۡ

هِجْرَةً (هجرت کښې د ټولو نه مخکښې وي) بيا اَحْسَنُهُمْ خُلُقًا(چه اَخلاق ئې مزيدار وي) بيا اَحْسَنُهُمْ وَجْهًا (چه مخ ئې ښائسته وي) بيا اَشْرَفُهُمْ نَسَبًا (چه نسب ئې شريف وي) بيا اَكْبَرُهُمْ رَأْسًا ( چه سرئې غټ وي) بيا اَصْغَرُهُمْ عُضْوًا (چه ذګرئې وړوکې وي) بيا اَحْسَنُهُمْ زَوْجَةً (چه ښځه ئې ښائسته وي) بيا اَكْثَرُهُمْ جَاهًا (مرتبه ئې اُوچته وي) بيا اَنْظَفُهُمْ ثَوْبًا (چه ډيرو پاکو جامو والا وي) بيا مُقِيْم بيا مُسَافِر۔ (البحر الرائق ۳۹۳/۳) رد المحتار (۲۳۳/٤) باب الاحق بالامامة) بيا طحطاوي پکښې لا دا هم زياتي کړيدي چه (اَصْغَرُهُمْ عُضْوًا) به وي په بل روايت د امام ابوحنيفةؒ کښې راځي، وائي : (اکبرهم عضواً) به وي (يعنې عضو تناسل به ئې غټ وي) او د دواړو روايتونو دپاره ئې بيله بيله توجيه ذکر کړيده داسې نۀ کوي، چه رَد اُوکړي بلکه دوي ته خپل مشران داسې ښکاري لکه اَنبياء۔

نو اُوګوره دې مقلدينو د پيغمبر په فتوي باندې اکتفاء اُونکړه بلکه د ځان نه ئې ورسره زيادات اُوکړل۔ ديته تقدم بين يدی الله ورسوله وائي۔ او دا د دين پورې ټوقې دي۔ او نۀ داسې چرته واقع کيدې شي دا د متفقهو تعمقات دي چه شريعت کښې مردود شويدي۔ او پې دينه خلق د دين نه متنفر کول دي۔

او هجرت په احاديثو کښې مخکښې ذکر دې دوي هغه کوم ځائې ته پورو؟۔

فَاَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً : ځکه د الله دپاره هجرت چه چا مخکښې کړې وي نو ددۀ فضيلت او شرافت زيات دې په هغه چاچه روستو ئې هجرت کړې وي۔

فَاَقْدَمُهُمْ سِنًّا : يعنې د عمر په لحاظ په اسلام کښې زيات وي او په بل روايت کښې دي چه اسلام ئې مخکښې راوړې وي۔

وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلَ الرَّجُلُ فِيْ سُلْطَانِهٖ : (اي في مکان حُکمِهٖ) يعنې يو سړې به د بل سړي په ځائې د سلطنت ملکيت، مشرئ او تصرف کښې امامتي نۀ کوي لکه يو تن د مسجد اِمام دې يا صاحب مجلس دې يا داسې ځائې دې چه هلته د سړي حکم چليږي لکه بل روايت کښې (فِيْ اَهْلِهٖ) لفظ راغلې دې۔ نو ميلمه به هلته امامت نۀ کوي اګرکه ډير اَفْقَهْ وي ځکه چه دا تباغض او اِختلاف ته رسي کوم چه د جماعت د مقصد خلاف ده۔ دارنګه حکمت دا هم دې چه پدې کښې د کور والا بې عزتي راځي چه د هغۀ نه بې اجازې ته مخکښې کيږي، دارنګه کيدې شي ستا آواز به ښائسته وي او د هغه امام المحله آواز به خراب وي نو خلق به وائي امام خو دې ته وائي، ايسته به خپل امام لرې کړي نو ستا په وجه هغه ته ضرر ملاؤ شو۔ نور حکمتونه هم شته، الله ته معلوم دي۔

لهذا ددې حديث نه معلومه شوه چه که په يو مقام کښې حاکمِ وقت امامت کوي يا د

هغۀ د طرفنه يو مقرر شوے نائب امامت كوى نو بيا چا له دا مناسب نۀ دى چه هغه اِمامتي ته مخكښ شي، خاص طور سره په عيدين او جُمعے مونځونو كښ خو دا بالكل مناسب نۀ دى۔دغه شان په يو مسجد كښ امام مقرر وى يا كور والا موجود وى نو د مقرر امام او كور والا د اِجازت نه بغير مخكښ كيدل د بل چا حق نۀ دے ځكه پداسے كارونو كښ د سلطنت بے عزتى، خپل مينځ كښ بُغض او عِناد او ترك ملاقات، افتراق او اختلافات راپيدا كيږى او فتنے او فساد ته دروازه كولاويږى او حال دا چه د جماعت مشروعيت ددے غير اخلاقى څيزونو د سدِ باب دپاره شويدے۔

ددے وجه نه ابن عمرؓ به د حجاج بن يوسف په شان ظالم او فاسق پسے مونځونه كول او ابن مسعودؓ به د "وليد" پسے مونځونه كول او پخپله به نۀ مخكښ كيدل دے دپاره چه ددے حديث مخالفت رانشى او اختلافاتو ته لاره كولاوه نشى۔

پدے كښ بيا (بقول الترمذیؒ) اسحاق بن راهويه وائى : كه كور والا ورته اجازت اُوكړى نو هم نۀ به مخكښ كيږى۔ دليل كښ حديث د مالك بن الحويرث پيش كوى چه دۀ سره د اِجازت نه امامتى نۀ ده كړے۔ لكه ابوعطيهؒ فرمائى: مالك بن الحويرثؓ زمونږ مُصَلیٰ ته راغلو نو اقامت د مانځۀ اُوشو مونږ ورته اُووئيل مخكښ شه ! هغه اُووئيل : تاسو خپلو كښ يو سړے مخكښ كړئ چه مونځ درته اُوكړى او زر دے چه زۀ به تاسو ته حديث بيان كړم چه زۀ ولے تاسو ته مونځ نۀ كوم، بيا ئے اُوفرمايل : ما د رسول الله ﷺ نه اَوريدلى دى چه فرمايل ئے : (من زار قوماً فلا يؤمهم وليؤمهم رجل منهم) (ابوداود، ترمذى، نسائى) وصححه الالبانى فى المشكاة وصحيح ابى داود رقم (٥٥٦) (١١٨/١) (چا چه د يو قوم ملاقات اُوكړو نو هغوى ته دِے امامتى نۀ كوى بلكه په هغوى كښ دِے يو تن اِمامتى اُوكړى)

٢- مگر جمهور علماء فرمائى : كه كور والا اجازت اُوكړى نو امامتى كولے شى لكه په همدے حديث كښ روستو «الا باذنه» لفظ راغلے دے چه دا ددے ټولو سره لگى۔ لكه په روايت د مُنْتَقیٰ او سعيد بن منصور كښ د هريو سره جُدا جُدا (الا باذنه) ذكر دے۔

او همدا حقه خبره ده۔ او حديث د مالك بن الحويرث ﷺ محمول دے په هغه صورت باندے چه بغير د اِجازت نه مخكښ شى نو ناروا ده۔ يا دا بناء دے په احتياط باندے۔او يا هغۀ ته (الا باذنه) والا روايت نۀ وو رسيدلے۔

نو دلته اگركه زائر افضل دے او كور والا مفضول دے ليكن حق د كور والا دے مگر كه هغۀ اجازت اُوكړى نو بيا مقدم كيدل جواز لرى۔ علامه عراقىؒ وائى : پدے كښ دا شرط دے چه كور والا به اَهل د امامت وى كه اهل نۀ وى لكه زنانه وى، يا اُمى وى او

ملاقات کونکے قاري وي نو پدے صورت کښې حق د زائر دے۔ ځکه په دے صورت کښې په کور والا کښې أهليت د امامت نشته۔(نيل الاوطار ۱۹٦/۳)

علامه شوکانيؒ دا هم فرمايلي دي : د سلطان نه مراد بادشاه دے کوم ته چه د خلقو ولايتونه سپارلے شوي دي، لهذا سلطان به مقدم وي په غير باندے اګرکه غير سلطان په قرآن يادولو او فقه او ورع او فضيلت کښې زيات وي، نو دا داسے شو لکه مخصص د ماقبل، يعني اول د حديث محمول دے په ماسوئ د امام اعظم او نائب باندے۔

او د کور والا په مقدم کولو باندے خصوصي يو حديث هم راغلے دے ابن مسعود فرمائي : من السنة ان يتقدم صاحب البيت) (طبراني باسناد صحيح) قال الهيثمي : رجاله رجال الصحيح، وقال الحافظ : رجاله ثقات) (نيل۳/۱۹٦، التلخيص الحبير۲/۱۵۲) (دا سنت دي چه کور والا به جَمعے ته مخکښې کيږي) بيا دے حديث کښې ورسره دا قصه هم ده چه عبد الله بن مسعود ابو موسیٰ خوا ته راغلو د هغهٔ سره ئے خبرے اترے اوکړے بيا د مانځه وخت شو نو ابو موسیٰ روستو شو نو عبد الله ورته اوفرمايل : تا ته پته ده چه سنت دا ده چه صاحب البيت مخکښې شي)

بيا علماؤ وئيلي دي چه کور والا له پکار دي چه د خپل ځان نه افضل ته اجازت اُوکړي۔ والله اعلم۔

وَلَايَقْعُدُ فِيْ بَيْتِهٖ عَلٰى تَكْرِمَتِهٖ اِلَّا بِاِذْنِهٖ: تکرمه اصل کښې مصدر دے ليکن دلته ترے مجازاً هغه ځائے مراد دے چه سړي له تيار شوے وي دپاره د اکرام د هغهٔ يعني د چا په کورکښې به د هغهٔ د عزت په ځائے (بستره بالخت، جانماز به) نهٔ کيني مګر که هغهٔ اِجازت ورکړي نو خير دے۔ وجه دا ده پدے کښې د هغهٔ د عزت مخدوش کيدل دي۔

فائده : شاه ولي الله په «حجة الله» کښې ليکي : د اقرأ د مقدم کولو سبب دا دے چه نبي ﷺ د علم دپاره يو معلوم حد مقرر کړيدے او ددے علم اول سر د الله د کتاب نه شروع کيږي ځکه دا اصل د علم دے، دارنګه دا د شعائر الله نه دے، نو بس واجب شوه چه څوك د کتاب الله والا وي هغه به مقدم کولے شي او د هغه مرتبه پورته کړل پکار دي، دے دپاره چه خلقو ته دعوت شي چه د الله په کتاب کښې رغبت اُوکړئ او دا سبب نهٔ دے چه ګنيے په مانځه کښې فقط قراءت ته حاجت دے۔

ليکن اصل غرض خلقو له دعوت ورکول دي په قراءت د کتاب الله۔ بيا د سنتو پيژندل دي ځکه دا د کتاب الله تابع دي او د نبي ﷺ ميراث دے، بيا د هغے نه بعد هجرت الى النبي ﷺ دے ځکه نبي ﷺ د هجرت ډير عظمت بيان کړيدے او دے کښې ئے ډير ترغيب

ورکړیدے۔ بیا زیات عمر دے ځکه په ټولو دینونو کښ مشهوره خبره د مشرانو توقیر او احترام کول دی۔ بله دا چه دا زیات تجربے او ډیر حلم والا وی او ذی سلطان باندے د هغهٔ په سلطنت کښ مخکښ کیدل ئے ځکه منع کړل چه دا کار په هغهٔ باندے ډیر ګران او مشقت پریوځی او د هغهٔ په سلطنت کښ عیب لګول دی نو هغهٔ باندے د رحم کولو په وجه دا منع اُوشوه۔ انتهیٰ۔

۲ – وَعَنْ اَبِیْ سَعِیْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «اِذَا کَانُوْا ثَلَاثَةً فَلْیَؤُمَّهُمْ اَحَدُهُمْ، وَاَحَقُّهُمْ بِالْاِمَامَةِ اَقْرَؤُهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُکِرَ حَدِیْثُ مَالِكِ بْنِ الْحُوَیْرِثِ فِیْ بَابٍ بَعْدَ بَابِ «فَضْلِ الْاَذَانِ».

ترجمه : او ابوسعید ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «کله چه خلق درے کسان وی نو یو تن (غوره) به هغوی ته امامتی کوی، او ډیر حقدار د خلقو نه په امامتی کولو هغهٔ څوك دے چه زیات قاری د قرآن وی»۔ (مسلم) او حدیث د مالك بن الحویرث د باب «فضل الاذان» نه یو باب روستو ذکر شویدے۔

تشریح : ددے حدیث د مفهوم العدد نه معلومیږی چه اقل جماعت درے کسان دی او حال دا چه د مالك بن الحویرث ﷺ حدیث کښ نبی ﷺ دهٔ او ددهٔ ترهٔ ځوی ته فرمائیلی وو : (اذا حضرت الصلاة فاذنا واقیما ولیؤمکما اکبرکما) نو دے نه معلومیږی چه دوه کسان هم جماعت دے۔ لهذا پدے حدیث کښ به مفهوم العدد له اعتبار نهٔ وی۔

اَحَدُهُمْ : پدے کښ اشاره ده چه امامت د مفضول هم جائز دے لیکن د افضل امامت غوره دے۔ لیکن روستو وائی چه اقرأ ډیر حقدار دے۔

اَقْرَؤُهُمْ: یعنی کوم څوك چه ډیر قرآن یادونکے وی او ښهٔ طریقے سره قرآن لوستے شی هغه به د امامت حقدار دے۔او دا ظاهر د حدیث دے۔

وَذُکِرَ حَدِیْثُ مَالِكِ بْنِ الْحُوَیْرِثِ : مصنف وائی په مصابیح کښ دلته حدیث د مالك بن الحویرث راغلے وو او هغه دلته مشکاة کښ نهٔ ښکاری هغه دا دے: (صلوا کما رأیتمونی اصلی واذا حضرت الصلاة فلیؤذن لکم احدکم ثم لیؤمکم اکبرکما) نو مصنف وائی چه دا د «باب فضل الاذان» نه روستو باب کښ ذکر شویدے ځکه چه د حدیث اوله جمله د اذان سره متعلق ده۔

## الفصل الثانی

۳ – عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لِیُؤَذِّنْ لَکُمْ خِیَارُکُمْ وَلْیَؤُمَّکُمْ قُرَّاؤُکُمْ».

رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : ابن عباس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «اذان دِے کوی تاسوته غوره په تاسو کښې او امامت دِے کوی تاسوته زيات قرآن لوستونکی ستاسو»۔ (ابوداودؒ)

تشريح : خِيَارُكُمْ جمع د خَيْرٌ ده غوره تـه وائي۔اذان دعوت دے او د غوره خلقو دعوت کښې تاثير زيات وي نو ځکه ئے اُوفرمايل چه غوره خلقو له اذان پکار دے۔

دارنګه مؤذن اُوچت ځايونو ته خيژي نو نظر به ئے په پردو عورتونو او زنانو لګی لهذا غوره سړی له اذان پکار دے چه نظر ئے د عورتونو نه محفوظ شي۔ او دارنګه غوره خلق د اَوقاتو په لحاظ کولو کښې احتياط کوی۔

او پدے کښې ماشوم هم داخل دے هغه هُم اذان کولے شي سوئ د فاسق نه ځکه فاسق دد ے منصب لائق نهٔ دے۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (٥٩٠) وابن ماجه (٧٢٦) والبيهقي (٤٢٦/١) وفي اسناده حسين بن عيسى الحنفي ضعفه الجمهور وقال البخاري في هذا الحديث منكر۔

٤- وَعَنْ اَبِیْ عَطِيَّةَ الْعُقَيْلِیِّ، قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ يَأْتِيْنَا اِلٰى مُصَلَّانَا يَتَحَدَّثُ، فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ يَوْمًا، فَقَالَ اَبُوْعَطِيَّةَ: تَقَدَّمْ فَصَلِّهْ. قَالَ لَنَا : قَدِّمُوْا رَجُلًا مِنْكُمْ يُصَلِّیْ بِكُمْ، وَسَاُحَدِّثُكُمْ لِمَ لَا اُصَلِّیْ بِكُمْ ؟ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَا يَؤُمَّهُمْ، وَلْيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِیُّ، وَالنَّسَائِیُّ اِلَّا اَنَّهُ اقْتَصَرَ عَلٰى لَفْظِ النَّبِیِّ ﷺ.

ترجمه : او ابو عطيه عقيليؒ فرمائي: مالك بن حويرث ﷺ بـه مونږ ته زمونږ عيدګاه ته راتلو او (د رسول الله ﷺ) حديثو نـه بـه ئے بيانول۔نو يوه ورځ د مانځه وخت شو۔ ابوعطيهؒ وائي : مونږ مالك بن الحويرث ته اُوفرمايل : مخکښې شهٔ (مونږ ته) مونځ اُوکړه۔ هغهٔ مونږ ته اُوفرمايل : تاسو يو سړے مخکښې کړئ چه تاسو ته مونځ اُوکړی او زهٔ به تاسو ته بيان کړم چه ولے زهٔ تاسو ته مونځ نهٔ کوم (نوواورئ چه) ما د رسول الله ﷺ نه اَوريدلي دي چه فرمايل ئے :«څوك چه د يو قوم ملاقات تـه لاړ شي نو هغوی ته دِے امامتي نهٔ کوی بلکه په هغوی کښې دِے يو سړے هغوی ته امامتي اُوکړی»۔ (ابوداودؒ، ترمذيؒ، نسائيؒ)

تعارف د ابوعطيه : دا د بنو عقيل مَولٰی دے ابوالحسن القطانؒ فرمائي : مجهول دے

مګر حافظ په تقریب کښې فرمائي : مقبول دے۔
تشریح : دا حدیث دلیل دے د اسحاق بن راهویهٔ دپاره چه میلمه به کور به ته إمامتی نهٔ کوی اګرکه اِجازت ورته ورکړے شي، لیکن ظاهر قول د جمهورو دے چه بغیر د اِجازت نه منع دے او د اِجازت نه روستو هغه خپل حق میلمه ته ورکړو نو امامت د میلمه صحیح دے خاصکر چه میلمه لائق د إمامت وی، عالم وی قاری وی۔ او مالك بن الحویرث چه مرفوع حدیث پیش کړو نو هغې کښې اګرکه د اِجازت او غیر اِجازت تذکره نشته لیکن نورو اَحادیثو کښې (الا باذنه) راغلے دے لهذا دا به محمول وی په عدم اِجازت باندے۔ او هر چه د مالك بن الحویرث اِستدلال دے چه هغه د اِجازت نه روستو هم اِمامتي اُونکړه نو دا د هغهٔ إحتیاط او اِجتهاد دے چه په مطلق او ظاهری الفاظو ئے عمل کړیدے۔ مګربل طرفته احادیثو ته چه اُوکتل شي نو د هغې نه اِجازت معلومیږی لهذا بعد الإذن بالکل جائز دے۔ والله أعلم۔
وَسَاُحَدِّثُکُمْ : دا سین یا د تاکید دپاره دے یا د استقبال دپاره دے که د استقبال دپاره شي نو دا حدیث ئے ورته د مانځه نه پس بیان کړو او که د تاکید دپاره شي نو په دغه وخت کښې به ئے بیان کړے وی۔
درجة الحدیث : اسناده حسن والحدیث صحیح : اخرجه احمد (۴۳۶/۳–۴۳۷) (۵۳/۵) وابوداود (۵۹۶) والترمذی (۳۵۶) والنسائی (۸۰/۲) وابن خزیمة (۱۵۲۰) وصححه الالبانی فی صحیح الجامع الصغیر (۷۲۱)

---

۵– وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: اِسْتَخْلَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ابْنَ اُمِّ مَكْتُوْمٍ يَؤُمُّ النَّاسَ وَهُوَ اَعْمٰى. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او انس ﷜ فرمائي : رسول الله ﷺ ابن ام مکتوم خپل خلیفه (قائم مقام) جوړکړو چه خلقو ته مونځونه کوی او هغهٔ ړوند وو"۔ (ابوداود)
تشریح : یعنی رسول الله ﷺ به چه کله جهاد ته وتلو نو په مسجد نبوی کښې به ئے خپل قائمقام ابن ام مکتوم مقرر ولو ۔ پدے کښې اشاره ده ددهٔ فضیلت ته او دا ئے په دیارلس غزواتو کښې خپل خلیفه مقرر کړے وو، (قاله الشعبی وابن عبد البر، عون المعبود ۴۰۴/۶ الضریر یولی) (المغنی ۳۱/۲) ځکه چه نبی ﷺ ته په سورة عبس کښې ددهٔ په وجه تنبیه ورکړے شوے وه، نو هغهٔ ورله ځکه داسے اعزاز ورکړو۔
يَؤُمُّ النَّاسَ : دا بیان د اِستخلاف دے یعنی دا خلیفه جوړول په مانځه کښې وو۔ او ابن

حجر هیثمیؒ وئیلی دی چه عام اِستخلاف په مدینه باندے دوه کرته وو لکه دا په روایت د انسؓ کښې دی، لیکن حافظ ابن حجرؒ او ابن الاثیرؒ وائی چه نورو روایاتو کښې زیادت دے نو هغهٔ حجت دے۔ او امیر یمانیؒ په «سبل السلام» کښې فرمائی : دا خلافت په مونځونو او غیر مونځونو کښې وو۔لکه دا په روایت د طبرانیؒ کښې په (اسناد حسن) نقل دی۔
دا حدیث ددے دپاره راوړے شویدے چه د ړوند سړی امامت بینا خلقو ته جائز دے۔ کله چه ړوند اَقرأ وی۔

## مسئله : د ړوند سړی امامت صحیح دے

د اَعمیٰ په امامت کښې اختلاف دے : ١- عند الجمهور بلا کراهت جائز دے۔
٢- احناف وائی : جائز مع الکراهة دے۔ ٣- بعض فرق کوی : (ان کان لا یتوقی من النجاسة فهو مکروه والا فلا کراهة) یعنی که ځان د نجاست نه ساتلے شی نو مکروه نهٔ دے او که نجاست نه ځان نشی ساتلے نو بیا دکراهت سره جائز دے۔
د کراهت والو سره هیڅ دلیل نشته سویٰ ددے نه چه وائی : اَعمیٰ د نجاست نه ځان نشی ساتلے نو کیدے شی چه نجاست ورته لګیدلے وی او خلقو ته مونځ اُوکړی لهذا مونځ ئے مکروه دے۔ لکه احنافو دا خبره په ټوله فقه حنفی کښې ذکر کړیده۔
لیکن دا هیڅ خبره نهٔ ده، د ډیرو وجونه خطاء ده۔ یو خو دا چه ډیر بینا خلق ځان د ګندګیٔ نه نشی ساتلے او ډیر ړانده احتیاط کوی، نو مطلقاً داسے نهٔ دی وئیل پکار چه د اَعمیٰ اِمامت مکروه دے بلکه داسے وئیل پکار دی چه که ګندګیٔ نه ځان نشی ساتلے نو بیا به مکروه وی۔
او زمونږ خبره هم په هغه اَعمیٰ کښې ده چه د ګندګیٔ نه ځان ساتی، څکه ګندګیٔ والا اَعمیٰ څوک مونځونو ته نهٔ مخکښې کوی بلکه هغه اَعمیٰ چه هغهٔ کښې شرائط د اِمامتیٔ پوره وی، اقرأ وغیره وی نو داسے شخص ضرور د ګندګیٔ نه ځان ساتی۔
دویمه وجه دا ده چه دا د ډیرو نصوصو خلاف فتویٰ ده چه امامت د اَعمیٰ مکروه دے۔ او هغهٔ نصوص او دلائل دا دی :
١- یو عموم ددے قول د نبی ﷺ : (یؤم القوم اقرأهم لکتاب الله) نو دا شامل دے اَعمیٰ او غیر اَعمیٰ ټولو ته کله چه اَعمیٰ اَقرأ وی د بصیر نه۔ (مسلمؒ) او دیته امام بخاریؒ په خپل صحیح کښې اِشاره کړیده۔ (١٤٧/٢) بشرح الفتح)
٢- دلیل : دا حدیث الباب دے۔ نبی ﷺ عبد الله بن ام مکتومؓ چه ړوند وو خپل خلیفه جوړ کړیدے۔

۳- دلیل: عتبان بن مالك ﷺ ړوند وو او نبی ﷺ هغه د خپل قوم امام جوړ کړے وو۔ (بخاری ۱/ ٦۰) بیهقی (۳/ ۸۷)

٤- مغنی (۲/ ۳۱) لابن قدامه کښې دی: «وقد ثبت عن ابن عباس انه کان یؤم وهو اعمیٰ وکذلك عتبان بن مالك وقتادة وجابر الخ» یعنی ابن عباس، عتبان بن مالك، قتاده او جابر بن عبد الله ﷺ د ړوند والی په زمانه کښې امامتی کړیده۔

٥- ابن ابی شیبه (۳۸٦) او عبد الرزاق (۲/ ۳۹٤) کښې دی: زهریؒ فرمائی: ډیر سړی د اَصحابو د رسول الله ﷺ (بدریانو) سترګے ړندے شوے وے نو هغوی به خپلو خپلو قبیلو ته امامتی کوله (چه بعض دهغوی نه عبد الله بن ام مکتوم، عتبان بن مالك او معاذ بن عفراء ﷺ دی۔ (وسنده صحیح)۔

٦- مجمع الزوائد (۱/ ۱٦۸) کښې دی: عبد الله بن عمیر بن حطمه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د بنی حطمه امام وو او (حال دا چه) هغه ړوند وو۔

نو ددے قوی دلائلو په مقابله کښې مسلمان له دا جائز نه دی چه دا په تاویلی ما ویلی باندے رد کړی بلکه د نبی ﷺ او د هغهٔ د هیڅ صحابیؓ نه په صحیح سند ددے خلاف نهٔ دے نقل لهذا ددے دلائلو نه پس د اعمیٰ امامتی ته مکروه وئیل ظلم دے او د صریح نصوصو مخالفت دے۔ او د ابن مسعودؓ کوم اثر چه صاحب د اعلاء السنن (٦/ ۲۱۰) د خپل مذهب په تائید کښې ذکر کړیدے چه ابن مسعودؓ فرمائی: (ما احب ان یکون مؤذنو کم عمیانکم قال: واحسبه قال: ولا قرائکم -مجمع الزوائد (۲/ ۲)

(یعنی زهٔ دا نهٔ خوښوم چه ستاسو مؤذنین یا قاریان ړانده وی) نو ددے اثر نه استدلال کول په کراهت د امامتی د اعمیٰ باندے باطل دی د یو څو وجوهو نه اول خو دا موقوف اثر دے او خلاف دے د مرفوع او موقوف آثارو نه۔ ۲- دویم پدے کښې شك د راوی دے چه موذنین ئے یاد کړی دی او که قراء۔ ۳- دریم دا چه که قراء مراد شی نو دا د ابن مسعودؓ خپله رایه ده او حدیث ورسره په تائید کښې نشته بلکه أحادیث په بل طرف کښې دی۔

٤- یا دا محمول دے په هغه صورت باندے چه د أعمیٰ نه افضل خلق موجود وی۔ راجع فتاوی الدین الخالص (٥/ ۲۰٦)

علامه شوکانیؒ فرمائی: امام غزالیؒ او ابواسحاق المَرْوَزِیؒ فرمائی: «إمامت د أعمیٰ أفضل دے د امامت د بَصِیر نه ځکه چه ددهٔ خشوع زیاته وی د بینا نه ځکه د بینا سړی زړهٔ په لیدلے شوی څیزونو مشغول وی او بعضو دیته ترجیح ورکړیده چه امامت د بینا افضل دے ځکه چه دا د نجاست نه ځان ډیر ساتلے شی، او علامه ماوردیؒ د امام شافعیؒ د نص نه

دا فهم کړيده چه امامت د اَعمیٰ او بصير دواړه په عدم کراهيت کښې برابر دی ځکه په هر يو کښې فضيلت شته ليکن امامت د بصير ډير أفضل دے ځکه اکثر امامان چه نبی ﷺ مقرر کړيدی نو هغه بينا وو او ابن ام مکتومؓ چه ئے په بعض غزواتو کښې نائب مقرر کړے وو نو ددے وجه دا وه چه د غزا نه به په مومنانو کښې معذور پاتے کيدو او شايد چه په متخلفينو کښې هغهٔ ځوك نهٔ وو چه ددهٔ قائمقام جوړ شی يا به دے ته فارغ نهٔ وو يا ئے د بيان د جواز دپاره خليفه جوړ کړيدے۔ (نيل الاوطار ۱۹۷/۳) المرعاة(٥٤/٤)

علامه ابن الملك فرمائی: د اعمیٰ د امامت کراهيت په هغه صورت کښې دے چه کله په قوم کښې روغ موجود وی چه هغهٔ ډير اَعلَم وی ددهٔ نه يا ددهٔ سره په علم کښې برابر وی۔ والله اعلم ۔ پدے تولو کښې صحيح خبره دا ده چه کله اَعمیٰ لائق د امامت وی او اَقرأ وی او دده مدِ مقابل ځوك نهٔ وی نو ددهٔ مقدم کول پکار دی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح لغيره : اخرجه احمد (۱۹۲/۲) وابوداود (٥٩٥) وصححه الالبانی فی ارواء الغليل (۳۱۱/۲) رقم (٥٣٠)

---

٦- وَعَنْ اَبِیْ اُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«ثَلَاثَةٌ لَاتُجَاوِزُ صَلَاتُهُمْ آذَانَهُمْ: اَلْعَبْدُ الْآبِقُ حَتّٰى يَرْجِعَ، وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، وَاِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهٗ كَارِهُوْنَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

---

ترجمه : او ابوامامه ؓ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائيلی دی : «درے کسان دی چه دهغوی مونځ دهغوی د غوږونو نه نهٔ تيريږی : (۱) يو هغهٔ غلام چه (د مالك د اِجازت نه بغير) تختيدلے وی (مونځ ئے نهٔ قبليږی) تردے چه واپس راشی۔ (۲) او هغهٔ زنانه چه شپه تيره کړی په داسے حال کښې چه خاوند دهغے په هغے باندے غصه وی۔ (۳) او دريم يو قوم ته اِمامتی کونکے شخص چه قوم ئے بد ګڼړی»۔ امام ترمذیؒ دا روايت نقل کړيدے او وئيلی ئے دی چه دا حديث غريب دے۔

تشريح : د غوږونو نه مونځ نهٔ تيريدل کنايه ده د نهٔ قبليدو نه يعنی آسمان ته نهٔ پورته کيږی چه قبول شی لکه په حديث د ابن عباسؓ کښې راروان دی۔او د غوږونو تخصيص ئے اُوکړو ځکه چه دا نزدے دی ځکه پدے کښې د تلاوت آواز اَوريدلے شی يعنی دوی صرف خپل تلاوت او دعاء اَوری مګر د الله په نزد قابل قبول نهٔ دے۔

اَلْعَبْدُ الْآبِقُ : يعنی اول د هغوی نه هغهٔ سړے دے چه د مالك د اِجازے نه بغير اُوتختی،

نشوز او نافرمانی شروع کړی مګر که د تختیدو نه راواپس شی نو بیا به ئې مونځ قبلیږی۔
او دا حکم د تختیدونکی وینځې هم دے۔
۲- دویمه هغه زنانه چه خاوند ترے خفه وی د هغه حاجات نۀ پوره کوی، بد اَخلاقه وی، یا بے اَدبه وی یا ئې پوره طاعت نۀ کوی، او که چرے خاوند پرے بغیر د څۀ جُرم نه غصه وی د خاوند د طرفنه بد اَخلاقی وی نو بیا به ښځه ګناهګاره نۀ وی۔ ورنه کبیره ګناه ده۔ «باب عشرة النساء» کښ به راشی چه ملائك پداسے ښځه باندے تر سحره پورے لعنت وائی۔

## د امام بد ګنړل په دوه قسمه دی

۳- دریم هغه امام چه خلق ترے ناراضه وی او دا ورته مونځونه کوی۔
او دا کراهت بیا دوه قسمه دے ۱- لمذموم شرعی : یعنی خلق ترے پدے وجه خفه وی چه ناروا کارونه کوی لکه بدعت کوی فاسق وی، جاهل وی۔ مونځونه خراب کوی، زر زر اوبے وخته ئې کوی۔فاسقانو سره کینی پاڅی او دلته همدا مراد دے۔
۲- دویم لامر دنیوی : یعنی د امام او د خلقو ترمینځ دنیاوی کار باندے عَداوت او کراهت وی نو دا نۀ دے معتبر۔ کله چه هغۀ د شریعت مطابق مونځ کوی۔ علامه شوکانیؒ فرمائی : د موحدینو او دیندارو خلقو کراهت له اعتبار دے نۀ د بد عملو خلقو۔ تردے چه امام غزالیؒ په احیاء علوم الدین کښ فرمائی : که دیندار خلق کم وی او امام بد ګنړی نو دوی ته به کتلے شی۔(ځکه چه د فاسقانو عوامو خلقو خو هغه موحدین امامان بدی شی چه اُګده او ښائسته مونځونه کوی نو د دوی دے کراهت له هیڅ اِعتبار نشته بلکه دوی پدے بد ګنړلو ګناهګار دی کما فی الترمذی عن منصور)
امام ترمذیؒ فرمائی : (فاذا كان الامام غير ظالم فانما الاثم على من كرهه) (کله چه امام ظالم نۀ وی نو ګناه په بَدُ ګنړونکی ده)۔
بیا فرمائی : بعض علماؤ دا مقید کړیدے پدے چه بد ګنړونکی به اکثر مقتدیان وی او یو یا دوه او درے کسانو لـه اِعتبار نشته، کله چه مقتدیان غټ جماعت وی مګر که مقتدیان دوه او درے کسان وی نو بیا د دوی کراهت یا د اکثرو کراهت به معتبر وی۔
(امام ترمذیؒ د احمدؒ او اسحاقؒ نه نقل کوی : (اذا كَرِهَ واحِدٌ او اثنان او ثلاثة فلا بأس ان يصلى بهم حتى يَكْرَهَهُ اَكْثَرُ القَوْمِ) یعنی د اکثرو نیکانو مقتدیانو کراهت له به اعتبار وی۔ دارنګه امام شافعی رحمه الله پکښ دا قید لګولے دے چه دا کراهت محمول دے په ماسوٰی د حاکمانو او والیانو باندے ځکه بادشاه او ګورنرانو ته د خلقو هسے قهر کیږی۔

لیکن علامه شوکانیؒ فرمائی : ظاهر د حدیث کښې فرق د والیانو او غیر والیانو نشته۔ (نیل الاوطار ۲۱۸/۳)

بیا بعض علماء دا حدیث په تحریم باندې حملوی چه دا کار حرام دې ځکه چه مونځ د غوړوونو نه تیر نۀ شو نو قبول نۀ شو نو دا دلیل د تحریم دې۔ او بعض علماؤ ورته مکروه وائي۔ لیکن علامه شوکانیؒ فرمائی : چه ظاهر دا ده چه دا محمول دې په تحریم باندې دلیل پدې باندې نفی د قبول دې، او بل ددې کار په کونکی باندې لعنت راغلې دې په حدیث د ترمذی کښې (لعن رسول الله ﷺ ثلاثة رجل ام قوماً وهم له كارهون) الحديث)۔

مالکیه پکښې لا دا وائي چه که لږو خلقو بد ګنړلو اګرکه غیر ذوی الفضل وی د وجه د داسې کار کولو نه چه هغۀ په دۀ باندې عیب لګوی لکه د سنت په پریخودلو کښې سستی کوی لکه سنت یا وتر یا اخترونه یا نوافل پریدی نو بیا به د امام مونځ مکروه وی۔ او کله ئې چه ټول خلق یا اکثر یا ذوی الفضل خلق اګرکه لږ وی بد اُوګنړی بیا به ددۀ مونځ حرام وی۔ (الموسوعة الفقهية)

درجة الحديث :اسناده حسن : اخرجه الترمذی (۳٦۰) وقال حدیث حسن غریب وقال الشیخ احمد شاکر (بل هو حدیث صحیح فان ابا غالب ثقة وثقه موسی بن هارون الحمال والدارقطنی وغیرهما (وابن معین وابن عدی والترمذی) نیل (۲۱۷/۳)

---

۷– وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «ثَلَاثَةٌ لَاتُقْبَلُ مِنْهُمْ صَلَاتُهُمْ : مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَهُمْ لَهٗ كَارِهُوْنَ، وَرَجُلٌ اَتَى الصَّلَاةَ دِبَارًا وَالدِّبَارُ: اَنْ يَّأْتِيَهَا بَعْدَ اَنْ تَفُوْتَهٗ–. وَرَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «درې کسان دی چه د هغوی مونځ نۀ قبلیږی۔ (یعنی د مانځه ثواب ورته نۀ ملاویږی (۱) یو هغۀ شخص چه یو قوم ته مخکښې شوې وی او هغوی ترې خوشحاله نۀ وی۔ (۲) دویم هغۀ شخص چه په مانځه کښې روستو راشی او د روستو مطلب دا دې چه مانځه د فوت کیدو نه روستو راشی۔ (۳) او دریم هغۀ سړې چه د آزاد نه غلام جوړ کړی»۔ (ابوداوُدؒ، ابن ماجهؒ)

تشریح : دا حدیث د عبد الله بن عمرو بن العاص نه نقل دې لیکن په مشکاة کښې د لیکونکو نه سهوه شویده ځکه چه په مُنتقیٰ او معالم السنن للخطابیؒ او سنن کبریٰ کښې دا د ابن عمروؓ نه نقل دې نۀ د ابن عمرؓ نه ذهبیؒ په «میزان الاعتدال» کښې فرمائی :

عمران بن عبد المعافری التابعی د عبد الله بن عمرو بن العاص شاګرد دے نهٔ د ابن عمرؓ۔
دِبَارًا : جمع د دَبَر یا د دُبُر ده، د یو شی آخری وقت ته وائی، یا آخر الشیء ته وائی۔ یعنی مانځه ته په داسے حالت کښې راځی چه د هغهٔ نه وخت فوت شوے وی، یا آخری وقت وی، پوره پکښې مونځ لاندے نهٔ کړی یعنی آخری وختونو کښې راځی او دائے ځان له عادت جوړ کړے وی۔ او دا محمول دے په هغهٔ صورت کښې چه عذر نهٔ وی۔ (عون المعبود)
«تفوته» نه مراد یا جماعت فوت کیدل دی یا ټول وخت فوت کیدل دی۔ بیا د نفی د قبول دا معنیٰ نهٔ ده چه مونځ ئے جائز نهٔ دے او نهٔ به ئے کوی بلکه ددے معنیٰ دا ده چه مونځ خو به کوی اګر که ناوخته کړے وی یا ئے وخت ویستلے وی خو دا ګناهګار دے او فریضه به ددهٔ په څټ باندے پاتے وی، لکه هغهٔ زنانه چه خاوند پرے غصه وی یا هغهٔ غلام چه د مولیٰ د اجازت نه بغیر تختیدلے وی نو دوی باندے هم د مانځه فریضه پاتے ده، مونځ خو به کوی مګر مجرمین دی۔ د مانځه اجر او ثواب به ورته نهٔ ملاویږی۔
اعْتَبَدَ مُحَرَّرَةً: دا په معنیٰ د اِسْتَعْبَدَ دے یعنی غلام ئے جوړ کړو۔ محررة نه مراد "رقبة محررة" یا "نفساً محررة" دے۔یو آزاد نفس نه ئے مرئیے جوړ کړے وی۔ نو ښځے او سړی دواړو ته شامل دے او ښځه ئے ذکر کړه ځکه دا ضعیفه وی د خپل ځان مدافعت نشی کولے او سړے قوی وی۔ مګر په بله نسخه کښې محرراً مذکر هم راغلے دے (عون المعبود وسنن ابن ماجه) او ددے مرئی جوړولو طریقه دا وی چه آزاد راونیسی او دعویٰ پرے اُوکړی چه دا زما غلام دے یا مرئیے خرڅ کړی بیا ترے په زوره خدمتونه اَخلی، یا ئے هغه آزاد کړے وی لیکن د هغهٔ آزادوالے پټ کړی، دے دپاره چه فائدے او خدمتونه ترے اخلی۔(طیبیؒ، خطابیؒ، شوکانیؒ)۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف: اخرجه ابو داود (٥٩٣) وابن ماجه (٩٧٠) وفيه عبد الرحمن بن زياد الافريقي وهو ضعيف۔ ويؤيده الآية : فويل للمصلين الذى هم صلاتهم ساهون) وقد فسره الصحابة باضاعة مواقيتها)

٨- وَعَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ الْحُرِّ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:«مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يَّتَدَافَعَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ لَايَجِدُوْنَ اِمَامًا يُصَلِّيْ بِهِمْ». رَوَاهُ اَحْمَدُ وَاَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او سلامه بنت الحر رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «د قیامت د علاماتو نه دا ده چه مسجد والا به یو بل ته دیکے ورکوی داسے امام به نهٔ مومندهٔ

کوی چه دوی ته مونځ أوکړی». (احمدؒ، ابوداوډ).
سلامة بنت الحر: دا د خرشة بن الحر الفزاری خور ده او صحابیه ده صرف دا یو حدیث ترې نقل دے.
تشریح: أَشْرَاطِ: جمع د شَرَط ده، وړو علاماتو ته وائی. او ددے تدافع دوه معنے دی ١– مشهوره معنیٰ دا ده چه مسجد والا به إمامت د خپل ځان نه دفع کوی بل چا ته چه ته مخکښې شهٔ زهٔ ددے أهل نه یم ځکه چه دے به جاهل وی په احکامو د امامت او جائز او ناجائز نه به خبر نهٔ وی. یا دا چه یو بل له به دیکے ورکوی چه ته خلقو ته امامتی أوکړه لیکن څوك أهل به نهٔ وی موجود. ٢– دویمه معنی دا ده چه مسجد کښې به هر سړے بل دیکه کوی چه ته اخوا شه زهٔ مونځ کوم نو پدے کښې به جګړه راپیښیږی لهذا دا به سبب ګرځی ددے چه هیڅ امام به نهٔ موجودیږی. او دا علامه بعینه نن صبا موجوده ده چه ډیر خلق به ځانله ځانله مونځونه کوی لیکن إمامتی به نشی کولے.
امام ابوداوډ پدے حدیث باندے داسے باب تړلے دے: باب فی کراهیة التدافع.
درجة الحدیث: اسناده ضعیف: اخرجه احمد (٣٨١/٦) وابوداود (٥٨١) وابن ماجه (٩٨٢) والبیهقی فی الکبریٰ (١٢٩/٣) فی سنده طلحة ام غراب مجهولة. (التقریب والمیزان) وذکرها ابن حبان فی الثقات)

٩– وَعَنْ أَبِی هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «اَلْجِهَادُ وَاجِبٌ عَلَیْکُمْ مَعَ کُلِّ أَمِیْرٍ، بَرًّا کَانَ أَوْ فَاجِرًا، وَإِنْ عَمِلَ الْکَبَائِرَ، وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَیْکُمْ خَلْفَ کُلِّ مُسْلِمٍ، بَرًّا کَانَ أَوْ فَاجِرًا، وَإِنْ عَمِلَ الْکَبَائِرَ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: او ابوهریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: «په تاسو باندے جهاد د هر أمیر سره واجب دے برابره ده که (هغهٔ أمیر) نیك وی او که بَدْ وی، او اګرکه کبیره ګناهونه کوی، او مونځ په تاسو لازم دے روستو د هر مسلمان نه نیك وی او که بَدْ، او اګرکه کبیره ګناهونه کوی». (ابوداوډ)
تشریح: پدے حدیث کښې دا مسئله ده چه د فاسق او مبتدع پسے مونځ جائز دے او ددے مسئلے تفصیل په دریم جلد (٢٠٧/٣) کښې – چه مُنَوّر دے په نهه دلائلو – تیر شویدے. هغے ته رجوع أوکړه. او د جهاد متعلق جملے دپاره تائید په حدیث د انسؓ مرفوعاً کښې موجود دے: (الجهاد ماض منذ بعثنی الله الی ان یقاتل آخر امتی الدجال) (ابوداود) او امام بخاریؒ باب لګوی: باب الجهاد ماض مع البر والفاجر لقول النبی ﷺ: الخیل معقود

فی نواصیها الخیر الی یوم القیامة) جهاد به د نیك او بد عمله امیر په ملګرتیا کښې کولے شي ځکه نبی ﷺ فرمائی : د آسونو په تندو کښې خیر تر قیامته پورے تړلے شویدے۔ نو دوه خبرے معلومے شوے یو دا چه جهاد نۀ ختمیږی تر دجال راتلو پورے.

او دویمه دا چه که امیر ظالم او فاسق وی نو هم د هغۀ په ملګرتیا کښې به قتال فی سبیل الله کولے شي۔ ترڅو چه هغه انسان ته په معصیت امر نۀ کوی.

دریمه خبره : د جنازے مونځ په تاسو واجب دے یعنی فرض کفائی دے چه دا به په هر مسلمان باندے کولے شی اګرکه کبیره ګناهونو والا وی۔ او دا مذهب د امام مالكؒ، شافعیؒ، ابوحنیفۀؒ او جمهور علماؤ دے۔ امام نوویؒ فرمائی : قاضی عیاضؒ فرمائی : د ټولو علماؤ مذهب دا دے چه په هر مسلمان باندے به جنازه کولے شی که په حدودو کښې قتل شوے وی او که رَجْم شوے وی او که قاتل د نفس وی او که ولد الزنا وی انتهیٰ .

لیکن په دۀ باندے دا تعقیب شویدے چه دعویٰ د اتفاق صحیح نۀ ده ځکه چه امام زهریؒ وائی : په مَرجُوم او قاتل نفسهٖ (ځان وژونکی) باندے به جنازه نشی کولے۔ قتادۀ وائی : په ولد الزنا به مونځ نشی کولے۔ عمر بن عبد العزیزؒ او اوزاعیؒ فرمائی : په فاسق به جنازه نشی کولے۔ ابوحنیفۀؒ فرمائی : باغی او محارب باندے به جنازه نۀ کیږی۔ امام شافعیؒ فرمائی : په قاطع الطریق به نشی کولے۔ (عون المعبود ٤٥٣/٩) باب رجم ماعز)

لیکن حقه خبره دا ده چه هر هغه څوك چه کلمه د شهادت وائی نو د هغۀ دپاره هغۀ حقوق دی کوم چه د مسلمانانو دی او بعض د هغۀ حقوقو نه جنازه ده نو دا په هر ګناهګار کولے شی۔ دارنګه حافظؒ فرمائی : حدیث الباب په بیان د غامدیه کښې حجت دے دپاره د جمهورو چه دا حبلیٰ وه د زنا نه او نبی ﷺ د وضع د حمل نه پس پدے باندے حد قائم کړو او بیا ئے پرے مونځ هم اُوکړو۔ دارنګه مونځ د جنازے مشروع شویدے ددے دپاره چه انسان الله ته سفارش اُوکړی د مسلمان دپاره نو دا د ګناهګار په حق کښې ډیر اَولیٰ دے۔

اګرکه د اَهل علم او صالحین او متقیانو دپاره خاصکر جائز دی چه جنازه اُونکړی په فاسق باندے خاصکرے نمازه، قرضدار، غل، ځان وژونکی باندے، دے دپاره چه خلق ددے کار نه منع شی او ویریږی چه په مونږ به هم څوك مونځ نۀ کوی.

۲ - او دے دپاره چه خلق په دغه شان عمل باندے زړه وَر نشی۔ او دا قول د مالكؒ او احمدؒ او بخاریؒ دے۔ او امام شافعیؒ وائی : نۀ دے مکروه د اهل الفضل دپاره هم۔ او دا د جمهورو قول دے۔ او دلیل په قول د مالك او احمدؒ او بخاریؒ دا دے چه نبی ﷺ په هغه سړی باندے جنازه نۀ ده کړے چه هغه خپل ځان په مشاقص (تیرۀ غشی) قتل کړے وو۔ (اخرجه

الجماعة الا البخاری) او په روايت د نسائیؒ کښې دی : (اما انا فلا أُصلی عليه) يعنی زهٔ پرے مونځ نهٔ کوم) او صحابه ئے د مانځه نه منع نهٔ کړل۔ دارنګه د قرضداری په باره کښې ئے اُوفرمايل : (صلوا على صاحبكم) (تاسو په خپل ملګری مونځ اُوکړئ) (بخاری ۳۰۴/۱)

دا ددے دپاره چه خلقو ته ددے کار کولو نه زجر ملاؤ شی۔ (تحفة الاحوذی ۱۳۱/۳) شرح مسلم (۴۰۵/۳) ترك الصلاة على القاتل) فتح البارى لابن حجر (۴۳۶/۴) الاختيارات العلمية لشيخ الاسلام (۵۲) او دا هم په هغهٔ صورت کښې چه کله د اِمام او د نيکانو خلقو د مانځه په پريخودلو سره جنازه نهٔ پاتے کيږی که دا يَره وه چه نور خلق به هم جنازه اُونکړی نو بيا اَهل الفضل له هُم پکار ده۔ (المنتقیٰ شرح الموطأ ۴۳/۲)

وَاِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ : دا دليل دے چه څوك کبيره ګناهونو ته راتګ کوی نو هغه د اِسلام نه بالکليه نهٔ اُوځی او نيك اعمال ئے نهٔ بربادیږی اګرکه يَره پکار ده چه د انسان ايمان زائل نشی۔ څکه کله نا کله انسان د ګناهونو د نُحُوسَتْ په وجه د اِسلام نه مرتد شی۔ والعياذ بالله۔

درجة الحديث :اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (۲۵۳۳) ورجاله ثقات لكن العلاء بن الحارث كان اختلط ومكحول لم يلق اباهريرة وانظر الى قول الحافظ فى تلخيص الحبير (۳۵/۲) وقال الدارقطنى (ليس فيها شيء يثبت وللبيهقى فى هذا الباب احاديث كلها ضعيفة غاية الضعف واصح ما فيها حديث مكحول عن ابى هريرة على ارساله وقال ابواحمد الحاكم (هذا حديث منكر)

## الفصل الثالث

۱۰ – عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلَمَةَ، قَالَ: كُنَّا بِمَاءٍ مَمَرَّ النَّاسِ، يَمُرُّ بِنَا الرُّكْبَانُ نَسْأَلُهُمْ: مَا لِلنَّاسِ، مَا لِلنَّاسِ؟ مَا هٰذَا الرَّجُلُ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: يَزْعُمُ اَنَّ اللهَ اَرْسَلَهٗ اَوْحٰى اِلَيْهِ، اُوْحِيَ اِلَيْهِ كَذَا. فَكُنْتُ اَحْفَظُ ذٰلِكَ الْكَلَامَ، فَكَاَنَّمَا يُغْرٰى فِيْ صَدْرِيْ، وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَلَوَّمُ بِاِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ. فَيَقُوْلُوْنَ: اُتْرُكُوْهُ وَقَوْمَهٗ، فَاِنَّهٗ اِنْ ظَهَرَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ صَادِقٌ. فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ الْفَتْحِ، بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِاِسْلَامِهِمْ، وَبَدَرَ اَبِيْ قَوْمِيْ بِاِسْلَامِهِمْ، فَلَمَّا قَدِمَ، قَالَ: جِئْتُكُمْ وَاللهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ حَقًّا، فَقَالَ: «صَلُّوْا صَلَاةَ كَذَا فِيْ حِيْنِ كَذَا، وَصَلَاةَ كَذَا فِيْ حِيْنِ كَذَا. فَاِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ اَحَدُكُمْ، وَلْيَؤُمَّكُمْ اَكْثَرُكُمْ قُرْاٰنًا». فَنَظَرُوْا فَلَمْ يَكُنْ اَحَدٌ اَكْثَرَ قُرْاٰنًا مِنِّيْ، لِمَا كُنْتُ اَتَلَقّٰى مِنَ الرُّكْبَانِ، فَقَدَّمُوْنِيْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ، وَاَنَا ابْنُ سِتٍّ اَوْ سَبْعِ سِنِيْنَ، وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ كُنْتُ اِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّيْ. فَقَالَتِ امْرَاَةٌ مِنَ الْحَيِّ : اَلَا تُغَطُّوْنَ عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ ؟! فَاشْتَرَوْا، فَقَطَعُوْا لِيْ قَمِيْصًا. فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرَحِيْ بِذٰلِكَ

الْقَمِيصِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ .

ترجمه : او عمرو بن سلمه ﷺ فرمائي: مونږ د اُوبو په غاړه اُوسيدو ، د خلقو د تيريدو ځائے وو، چه زمونږ خوا کښې به قافلے تيريدلے، نو مونږ به د هغوی نه تپوس نه کول : چه د خلقو دپاره (د يو شخص چه محمد ﷺ دے يو دين ئے راوستلے دے هغهٔ) څهٔ دی؟ او دا دے شخص (محمد ﷺ) صفات څهٔ څهٔ دی ؟ نو هغهٔ خلقو به مونږ ته وئيل : چه هغهٔ (رسول) دعویٰ کوی چه الله هغهٔ راليږلے دے او هغهٔ ته ئے وحی کړے ده (او د قافلے خلقو به د قرآن کريم آيتونه وئيل چه) دا فلانئ وحی هغهٔ ته راځی۔نو ما به (د هغهٔ قافلو والاؤ خبرے داسے حفظ کولے ګويا کښې دا زما د زړهٔ پورے اِنخلی۔(يعنی د قرآن آيتونه به مے زر ياديدل) او عربو به په خپل اسلام راوړو سره د مکے د فتح کيدوانتظار کولو (يعنی دا به ئے وئيل چه که مکه فتح شوه نو مونږ به هم اسلام راوړو) او دا به ئے وئيل : دے (محمد ﷺ) او دهٔ قوم پريدئ که چرے دا په هغوی باندے غالب شو (او مکه ئے فتح کړه) نو دا به رشتينے نبی وی (ځکه د هغهٔ د ظاهری بے سر وسامان کيدو او د مادی کمزورئ باوجود په عربو باندے غالبه کيدل او مکه فتح کول د هغهٔ معجزه ده او معجزه صرف د رشتينی نبی نه صادريدے شی)، نو هرکله چه د مکے د فتح واقعه موجوده شوه (او مکه فتح شوه) نو خلق د اسلام قبلولو ته په جلتئ راغلل او زما پلار د خپل قوم نه په اسلام کښې جلتی اُوکړه او (د تهولونه ړومبے) اسلام ئے راوړو، نو هرکله چه هغهٔ (زما والد) واپس راغلو، وے فرمايل : قسم په الله زهٔ تاسو ته د رشتينی نبی د طرف نه راغلے يم"، او هغهٔ (نبی) فرمائيلی دی : «په فلانی وخت کښې داسے (او دُومره) مونځ اُوکړئ او په فلانی وخت کښې داسے (او دُومره) مونځ اُوکړئ، (يعنی هغهٔ د مانځه اَوقات او کيفيات بيان کړل) او کله چه د مانځه وخت شی نو يو تن دے په تاسو کښې اَذان اُوکړی او کوم چه په تاسو کښې زيات قرآن والا وی (په قرآن ډير پوهه وی) هغهٔ دے امامتی اُوکړی، نو (کله چه د مانځه وخت شو او جماعت تيار شو) نوخلقو (خپل مينځ کښې) اُوکتل چه ما نه زيات قرآن والا څوك نهٔ وو موجود، ځکه چه ما (د مخکښې نه ) قافلو والو نه قرآن زده کړے وو، نو زهٔ ئے مخکښې کړم (او په مانځه کښې ئے زما اِقتداء اُوکړه) او زهٔ (په دغه وخت کښې) د شپږو يا اُووه کالو وم، او زما په بدن باندے صرف يو څادر وو نو کله چه به ما سجده کوله نو هغهٔ څادر به زما د بدن نه راغونډ شو (او زهٔ به ښکاره شوم) نو قوم کښې يوے زنانه اُووئيل : آيا تاسو زمونږ د مخے نه ددے خپل قاری (امام) کوناتی نهٔ پټوئ؟ نو قوم زما دپاره جامه واخسته او قميص ئے راله پريکړو (جوړ کړو) نو زهٔ په هيڅ شی دُومره نهٔ يم خوشحاله شوے څومره چه زهٔ په دغه

قمیص خوشحاله شوم"۔ (بخاریؒ)

تعارف د عمرو بن سلمه : عمرو بن سلمه عام طور د سلمه لام په فتحې سره راځي مګر دا عَمْرو چه د قوم امام جوړ شوے وو ددهٔ د پلار په نوم سلمه کښې د لام کسره ده۔ بني سلِمه د انصارونه یوه قبیله ده۔ حافظ «فتح الباري» کښې فرمائي : د عمرو بن سَلِمه الجَرْمي په صحابیت کښې اختلاف دے بعض روایاتو نه معلومیږي چه دا هم په هغهٔ وفد کښې شامل وو چه نبي ﷺ ته ورغلي وو تقریب کښې وائي : صحابي صغیر نزل البصرة۔(ورکے صحابي دے چه په بصره کښې اُوسیدو)

تشریح : مسائل : ۱- یو انسان په کفر کښې د اسلام خبرے یادے کړي بیا په حالت د اسلام کښې هغهٔ بیانوي نو خیر دے، دا به مقبول وي۔

۲- مسئله ثانیه : د اکثرکم قرآناً نه معلومه شوه چه چا ته قرآن زیات یاد وي نو هغهٔ غوره دے چه امام جوړ شي د هغهٔ چانه چه زیات قرآن ورته یاد نهٔ وي۔ نو دا حدیث هم دلیل دے چه اَقرأ به مقدم وي په اَعْلَم باندے کله چه اَعْلم ته زیات قرآن نهٔ وي یاد۔ څکه دلته ددهٔ پلار اعلم دے څکه اسلام ئې مخکښې راوړیدے، اَحکام ورته ډیر زدهٔ دي لیکن قرآن ورته زیات نهٔ دے یاد۔ نو څکه ئې دا ماشوم مخکښې کړیدے۔ وتقدم قریباً۔

## ۳- المسئلة الثالثة : حکم الصلاة خلف الصبي

آیا د ماشوم امام جوړول جائز دي ؟ پدے کښې اختلاف دے ۱- که صبي مُمیز وي نو مونځ ورپسے کیږي که غیر مُمیز وي نو ناجائز دے۔ او دا قول د حسن بصريؒ، اسحاق بن راهویهؒ، امام بخاريؒ، او شافعيؒ دے چه بالکل جائز دے که نفل وي او که فرائضو کښې وي۔ او په جُمُعه کښې د شافعيؒ نه دوه قوله نقل دي۔ په «کتاب الام» کښې ئې عدم جواز او په «کتاب الاملاء» کښې ئې جواز ذکر کړیدے۔

۲- عطاءؒ، شعبيؒ، امام مالك، اوزاعيؒ، ثوريؒ او امام احمدؒ او ابن الحزمؒ فرمائي : إمامت د صبي مکروه دے۔او دا مذهب د اصحاب الرأی دے۔ او بیا احنافو نه په نفلو کښې دوه روایته دي ۱- مشائخ بلخ د جواز قائل دي او پدے باندے عمل دے په بلخ، مصر او شام کښې ۲- او بعضو منع کړیدے او پدے باندے عمل دے په ماوراء النهر کښې (مرقاة باب الامامة (۳٦٢/٤) ومنية المصلی) او دا د متشددینو قول دے۔

حافظ فتح الباري کښې فرمائي : د امام ابو حنیفه او احمد نه دوه روایته دي مشهور روایت دا دے چه په نوافلو کښې جائز دے، نهٔ په فرائضو کښې۔

د جمهورو دليل : يو حديث دے (يؤم القوم اقرأهم لكتاب الله) دا عام دے صبي او غير صبي دواړو ته شامل دے۔
۲- دا حديث الباب ښۀ واضح دليل دے۔
۳- إجماع د هغۀ صحابه كرامؓ چه عمرو بن سلمهؓ ئے مُقدم كړيدے۔
٤- هر كله چه د ماشوم مونځ ځانله صحيح دے نو امامت ئے هم صحيح دے او اَركان او شرائط د مانځه ئے هم پوره دی۔ (المنار ۲۱۵/۱) للمقبلی
دليل د احنافو : قاعده ده چه صبي متنفل دے او مقتديان مفترضين دی او د امام مونځ متضمن وی مونځ د مقتدی لره نو اقتداء د قوی په ضعيف پسے راځی او دا خو نۀ ده جائز۔ الجواب : دا خبره تاسو بار بار پيژندلے ده چه دا قاعده د ډيرو اَحاديثو خلاف ده لكه چه تشريح ئے مخكښ په باب القراءة (۲٤٠/٤)كښ تيره شويده چه إقتداء د مفترض د متنفل پسے بالكل جائز ده۔ او د امام مونځ جُدا دے او د مقتدی جُدا۔ نو اَصح خبره دا ده چه صَبی كه مُمَيز وی نو مونځ پسے كيږی او دا حديث ئے دليل دے۔
۲- دويم استدلال كوی په قول د ابن مسعودؓ باندے : (لا يؤم الغلام حتى تجب عليه الحدود)۔(هلك به تر هغه وخت پورے امامت نۀ كوی تردے چه بالغ شی)۔
۳- دغه شان ابن عباس ﷺ فرمائی : (لا يؤم الغلام حتى يحتلم) رواهما الاثرم في سننه) او اثر د ابن عباس عبد الرزاق مرفوعاً نقل كړيدے مگر حافظ فتح الباری (۱۸٥/۲)كښ فرمائی : «إسناده ضعيف»۔
الجواب: ددے جواب دا دے چه دا خبره د صحابی قول دے او پدے مسئله كښ اجتهاد له دَخل شته نو دا اِجتهاد د صحابه كرامؓ دے۔ نو پدے وخت كښ به حجت نۀ وی خاصكر ددے مخالف دا حديث د عمرو بن سلمه الجرمیؓ موجود دے۔
٤- ابن الحزمؒ په عدم صحت باندے استدلال چه نبی ﷺ اُمت ته حكم كړيدے چه اَقرأ به اِمامتی كوی لهذا امامتی به هغۀ څوك كوی چه هغۀ ته خطاب متوجه وی او صبی خو مامور نۀ دے ځكه هغۀ مرفوع القلم دے۔ نو امامت نشی كولے ۔ الجواب : ليكن دا استدلال ظاهر الفساد دے ځكه مونږ وايو چه مامور هغۀ خلق دی چه هغوی ته اَمر متوجه دے چه دوی به هغۀ څوك مقدم كوی چه هغۀ متصف وی په ډير يادولو د قرآن۔ لهذا دا اِستدلال ئے باطل شو۔ (فتح الباری)
دارنگه اَحناف اعتراضونه كوی پدے حديث د عمرو بن سلمهؓ باندے وائی : عمرو بن سلمهؓ خو نبی ﷺ امام نۀ دے جوړ كړے بلكه دا په اِجتهاد د صحابه كرامؓ مخكښ

شویدے۔(مرقاة)۔
**الجواب** : ددے کار په زمانه د وحی کښې واقع کیدل دلیل د جواز دے۔ او په هغهٔ زمانه کښې د ناجائز په کولو باندے تقریر نهٔ کیږی خاصکر په مانځه چه دا د اسلام د عظیم اَرکانو نه دے۔ او که دا کار چرته ناجائز وے نو نبی ﷺ ته به وحی شوے وے، لکه څنګه چه ورته په مانځه کښې وحی اُوشوه چه ستا په څپلو کښې ګندګی ده دا اُوباسه۔ دارنګه ابوسعیدؓ او جابرؓ استدلال کړیدے چه صحابه کرامؓ به عَزل کولو او قرآن به نازلیدو نو که عَزل منع وے نو وحی به نبی ﷺ ته ددے په حرمت شوے وے۔ (فتح الباری)
دارنګه دا د یو صحابی اجتهاد نهٔ دے بلکه د تول ګلی (علاقے) اجتهاد دے، یو صحابی هم ترے مخالف نشته، ۲-کله احناف وائی اُوګوره شوافع د ماشوم خبره منی او د ابن مسعودؓ او ابن عباسؓ خبره پریدی۔ (مظاهر حق ١/٤٠٧) ۔
**جواب** دا دے چه دا خبره غلطه ده ځکه چه دلته یو څو د تول کلی اجتهاد دے بله دا چه یوائے اجتهاد نهٔ بلکه دلیل هم ورسره شته او هغه دا چه په دغه حدیث کښې ورسره داسے الفاظ راغی : (ولیؤمکم اکثرکم قرآناً) په تاسو کښې دِ ے امامتی هغهٔ څوك کوی چه قرآن ئے زیات یاد وی) لهذا ددے ماشوم قرآن زیات یاد دے نو دا په نص د حدیث سره مُقدم کول پکار دی او اَحادیثو کښې د ماشوم د اِمامت نه منع نشته۔ بلکه په یؤم القوم اقرأهم لکتاب الله کښې ماشوم هم داخل دے۔
۳- کله وائی : (کما قال الخطابی فی المعالم ١/١٦٩) چه امام احمدؒ به د عمروؓ دا کار ضعیف ګنړلو او وئیل به ئے چه (دَعْهُ لیس بشیءٍ بَیِّن)۔
**الجواب** : دا عمرو بن سلمه صحابی دے او په بعض روایاتو کښې دا هم ذکر شویدی چه دا څپله نبی ﷺ ته راغلے دے۔ او دا حدیث ئے صحیح دے او ظاهر دے په دلالت کښې په صحت د امامت د صبی باندے نو ددے ضعیف ګنړلو هیڅ معنیٰ نشته۔
٤- انور شاه کشمیریؒ په فیض الباری (٢/٢١٨) کښې لاً دا وائی چه په حدیث کښې تقدیم او تاخیر دے او عمرو چه امامتی کوله نو هغه وخت بالغ وو او د اُووه کالو تذکره چه شویده نو دا د قرآن د یادولو زمانه مراد ده۔
**الجواب** : دا خبره بے دلیله ده چه دَهٔ پس د بلوغ نه خلقو ته امامت کړیدے بلکه ددے روایت د بخاری او د روایت د مستدرك (٣/٤٩) نه واضح معلومیږی چه دا د اُووه کالو په عُمر مقدم شویدے۔ لکه الفاظ داسے دی : (فقدمونی وانا ابن سبع سنین) (یعنی زه ئے په داسے حال کښې مقدم کړم چه زما عمر اُووه کاله وو۔) بله دا چه پدے خبره کښې نسبت د

وَهُم او قُصُور دے راوی ته په غیر د حجت او دلیل نه او دا کار غلط دے۔
دارنګه سیاق د حدیث کښې فکر اُوکړه او د قمیص په خوشحالیدو فکر اُوکړه چه دا به کومه زمانه وی؟ آیا غټ سړے قمیص نه اَغوندی؟۔
بلکه دے حدیث کښې دی : (قالت امرأة من الحی الا تغطون عنا است قارئکم) دا لفظ صریح دے خو شیخ انور شاهٔ ځان ړوند کړیدے، تقلید قبیح شے دے۔
٥- بعض وائی : دا حدیث منسوخ دے ځکه چه پدے کښې د ماشوم عورت په مانځه کښې ښکاره شویدے او کشف العورة سره خو مونځ نهٔ کیږی لهذا د ماشوم امامت هم منسوخ دے۔ الجواب : دلته دوه مسئلې دی یو امامت د صبی، بل یے پردے مونځ کول نو د پردے په باره کښې مستقل اَحکام نازل دی چه په مانځه کښې پرده کول واجب دی او بغیر د پردے نه مونځ کول صحیح نهٔ دی او بل د صبی مونځ دے نو ددے په عدم جواز دلیل نشته۔ او دے پردے مانځه باره کښې دلیل د عدم جواز شته۔
دویم دا چه دوی د صحابه کرامؓ به ځادرونو کښې مونځونه کول چه اُوګو سره به ئے تړلی وو نو ددے ماشوم ځادر وړوکے وو چه د سجدے په حالت کښې به راخکلے شو نو د شا ته نه به ښکاره کیدو۔ او مطلقاً مکشوف العورة نهٔ وو۔
دویم دا چه د ماشوم عورت چه ښکاره شویدے نو دا یا په دے وجه چه غریبی وه دومره جامے نهٔ وے یا دا چه د ستر العورة حکم نه خبر نهٔ دی پدے وجه د دوی مونځ باطل شوے هم نهٔ دے۔لهذا دا اعتراض غلط دے۔
٦- کله وائی : دا حدیث منسوخ دے دا په ابتداء د اسلام کښې وو۔ الجواب : دا تَشه دعوی ده چه د دلیل نه عَارِیُ ده، که دا منسوخ شی نو ناسخ ئے کوم دے آیا په اصحاب الرأی باندے وحی راغله چه هغوی دا منسوخ کړو، دوی دے بل داسے صحیح مرفوع حدیث پیش کړی چه په هغے کښې د صبی د امامت نه منع راغلی وی۔ او هر چه اجتهاد د صحابه کرامؓ دے نو هغهٔ ناسخ د مرفوع حدیث نهٔ ګرځی لکه دا مسلمه اصولی قاعده ده۔ بله دا چه کهٔ داسے صورت راپیش شی چه ماشوم قاری وی او په نور قوم کښې ددهٔ په شان څوک نهٔ وی نو که بل څوک مخکښې کوی نو ددے حدیث خلاف راځی چه (یؤم القوم اقرأهم لکتاب الله) نو د احنافو نه دا سوال دے چه دوی به اُوس څه کوی؟۔ فتفکر۔ لهذا په داسے حالتِ راهنه کښې خو دوی له د جواز قول پکار دے۔ راجع المرعاة (٦٨/٤) وفتاوی الدین الخالص (٢٠٨/٥) ونیل الاوطار (٢٠٤/٣)
توضیح اللغات : بِمَاءٍ مَمَرِّ النَّاسِ دا صفت دے د ماء یعنی داسے اُوبه وے (چینه وه)

چه خلق به پرے تیریدل۔ نو دا صیغه د ظرف ده۔ (یعنی ځائے د تیریدو د خلقو)۔
الرُّکْبَانُ : جمع د راکب ده هغه چا ته وائی چه صرف په اُوښانو سوَاره وی۔ بیا پکښ اِتساع شویده نو د هر سُور سرې دپاره استعمالیږی۔
مَا لِلنَّاسِ : یعنی خلقو ته څه راپیدا شوی دی، دا کنایه ده د ظهور د اسلام نه۔ او تکرار پکښ د تعجب دپاره دے۔
مَا هٰذَا الرَّجُلُ ؟: دا کنایه ده د محمد رسول الله ﷺ نه، دے نه معلومیږی چه دوی د رسول الله ﷺ نه ناشنا خبرونه اَوریدلی وو ځکه واقعه نوے وه نو خلق به خبریدل چه مکه کښ یو داسے سړے پیدا شویدے چه د پلار نیکه لاره ئے پریخوستے ده نو ځکه به خلقو د هغه په باره کښ د لاروو نه تپوسونه کول۔
اُوْحِيَ اِلَيْهِ كَذَا : دا بیانونکی به کله کافران وو خو د پیغمبر دعوت باندے پو هه شوی وو او کله به مسلمانان وو نو دے خلقو ته به ئے په چل کښ دعوت اُوکړو۔
(اوحی الیه کذا) دا بیان دے د (اوحی الیه) دپاره۔
ذٰلِكَ الْكَلَامَ : دے نه مراد قرآن دے۔
فَكَاَنَّمَا يُغْرٰى فِيْ صَدْرِيْ : گویا کښ زما سینه پورے کلك انخلی او پیوسته کیږی۔ ځکه د عربو ذهنونه ډیر قوی وو دلته اُوګوره دے ماشوم لا ایمان هم نۀ دے راوړے او قرآن ئے یاد کړیدے۔ یغری د باب تفعیل نه تغریه وائی (الصاق بالغراء) او غراء چیړ او ګنړ ته وائی، یعنی د چیړ او شریشو په شان به زما سینه پورے انختلو۔ او دا لفظ یا په صیغه د مجهول دے د باب تفعیل نه یعنی (يُغَرّٰى) یا د باب افعال نه دے یعنی (يُغْرٰى) یا د باب د سمع نه دے، صیغه د معلوم ده (يَغْرٰى) او د ټولو معنیٰ یوه ده۔
تَلَوَّمُ : اصل کښ تَتَلَوَّمُ دے "تَلَوُّم" انتظار کولو ته وائی۔ یعنی دا اِنتظار به ئے کولو که دا محمد رسول الله ﷺ د کعبے په منجورانو غالب شو نو دا به په حقه وی او که پرے غالب نشو نو دا به په باطله وی او دوی ته دا مسئله معلومه وه چه د کعبے په منجورانو څوك نشی غالبه کیدے مګر هغۀ نبی وی لکه اصحاب الفیل پرے غالب نشو ځکه په باطله وو۔
بُرْدَةٌ : دا هغه څلور قُنجه توره شړۍ ده چه زیړ والے پکښ وی او بانډیچیان ئے اَغوندی۔ په بل روایت کښ دی : (کنت اَؤُمُّهُمْ فِي بُرْدَةٍ مُوْصِلَة فيها فتق) (ما دوی ته امامتی کوله په داسے شړۍ کښ چه په هغے کښ سُوړے وو)
تَقَلَّصَتْ : یعنی ما نه به راغونډه شوه ځکه تنګه وه او سُوری پکښ وو پدے وجه ئے معمولی شان عورت ښکاره شو۔

فَقطَعُوْا لِيْ قَمِيْصًا : دا دِ امامت أُجرَت نهٔ دے بلکه دا يوه هديه وه بلکه د امام د عورت حفاظت ئے کولو۔ اوکه تاله پس د امامت نه څوك هسے هديه درکوی نو دا اخستل جواز لری مگر د امامت أُجرت اخستل نا روا دی چه شرط ورسره أولګوی او که څوك ئے ورنکړی نو بيا پرے تقرير کوی۔ وتقدمت المسألة فی باب الاذان۔

فَرَحِيْ بِذٰلِكَ الْقَمِيْصِ : پدے قميص يو پدے وجه خوشحاله شو چه تَستُّر حاصل شو او د راغوندولو تکليف نه خلاص شو او د عورت د ښکاره کيدو يَره ختمه شوه۔ يا پدے وجه چه نوے جوړه ورته ملاؤ شوه لکه د ماشومانو دا عادت دے چه په نوے جامه خوشحاليږی۔ په روايت د ابوداود کښ دی : (فما شهدت مَجْمَعاً من جَرْمٍ الا کنت امامهم) (زهٔ چه د جَرم قبيلے هرے مَجمعے ته حاضريږم نو زهٔ هغوی ته امامتی کوم) او هغوی ما مخکښ کوی ځکه چه په حديث عمل کوی نو بس دا د اول نه امام وو۔

---

۱۱ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ الْمَدِيْنَةَ، كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ، وَفِيْهِمْ عُمَرُ، وَاَبُوْسَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الْاَسَدِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او ابن عمر رضی الله عنه فرمائی : کله چه رومبنی مهاجرين مدينے ته راغلل، نو هغوی ته به سالم چه د ابوحذيفه رضی الله عنه آزاد کړه غلام وو– مونځ کولو او په هغوی کښ به عمر، او ابو سلمه بن عبد الاسد وو۔ (بخاریؒ)

تعارف د ابوحذيفه : دده نوم مهشم يا هشيم يا هاشم دے ابوحذيفه بن عتبه بن ربيعه بن عبد شمس بن عبد مناف القرشی دے د فضلاؤ صحابه کرامو نه دے او د مهاجرين اولين نه دے دهٔ دوه قبلو ته مونځ کړيدے او دوه هجرتونه ئے کړيدی او ددهٔ اسلام راوړل د رسول الله ﷺ دار الارقم ته د داخليدو نه مخکښ وو، د خپلے بی بی سهله بنت سهل بن عمرو سره ئے حبشے ته هجرت کړيدے بيا رسول الله ﷺ ته راغلو کله چه هغه په مکه کښ وو نو هلته أوسيدو تردے چه مدينے ته ئے هجرت أوکړو۔ بدر، أُحُد، خندق، حُدَيْبِيه او ټولو غزواتو ته حاضر شويدے او په جنگ يمامه کښ د (۵۳ يا –۵۴) کالو په عمر شهيد شويدے۔ او سالم د ابوحذيفه د بی بی غلام وونو هغے بيا آزاد کړو او دا امامتی ئے د آزاديدو نه مخکښ وه۔او دهٔ ته مولیٰ د ابوحذيفه پدے وجه وائی چه هر کله د ابوحذيفه بی بی دا آزاد کړو نو ددهٔ تربيت ابوحذيفه په ذمه واخستو او د هغهٔ سره به أوسيدو او خپل مُتَبَنّٰی ئے جوړ کړو ليکن کله چه آيت نازل شو چه متبنیٰ ته ابن (ځوی) مهٔ وايئ نو دهٔ ته

مولیٰ اُووئیل شو او دا سالم په جنګ یمامه کښ په خلافت د ابوبکر کښ شهید شویدے۔ حافظ ذهبیؒ فرمائی : سالم مولی ابی حذیفة د کبار البدریین نه دے، مشهور، کبیر القدر دے۔ او دهٔ ته سالم بن معقل وئیلے شی او دا د فارس والو نه د اصطخر علاقے وو او بعض وائی دا د عجمو نه وو، د کرمان په قیدیانو کښ نیولے شوے وو او دا په قریشو کښ شمارلے شی ځکه چه ابو حذیفه متبنیٰ جوړ کړے وو او په عجمو کښ شمارلے شی ځکه اصل ئے د عجمو نه وو او په مهاجرینو کښ شمارلے شی ځکه هجرت ئے کړے وو او په انصارو کښ ځکه آزادونکی بی بی د انصارو نه وه او د قراؤ نه شمارلے شی ځکه دا په کښ اقرأ وو۔(یعنی قرآن ئے ډیر یاد وو او بهترین قاری وو) ابن عبد البرّ وائی : دا په موالیو کښ افضل ترین غلام وو او د کبار او خیار الصحابة نه وو۔

تشریح : یعنی کله چه اولنی مهاجرین مدینے ته راغلل د نبیﷺ د راتلو نه مخکښ نو سالم چه غلام وو هغه به امامتی کوله په عُصْبَه علاقه کښ چه دا په (قُباء) کښ ده۔ ددے وجه دا وه چه دهٔ ته قرآن ډیر یاد وو او مزیدار قاری وو۔ او دا ئے وجه د ترجیح هم وه۔نو د حدیث نه دوه مسئلے ثابتے دی۔ یو دا چه اقرأ به مقدم کولے شی په امامت کښ د اَعلم نه دلته عمر او ابوسلمه ډیر عالمان او اشراف موجود دی د سالم نه مګر بیا هم امامت سالم کوی ځکه ده ته قرآن ډیر یاد دے۔ لکه په روایت د بخاریؒ کښ ورسره دا الفاظ دی : (وکان اکثرهم قرآناً)۔

٢- دویمه مسئله دا ده چه د غلام امامتی کول جائز دی۔ فقه حنفی کښ چه دا خبره ده چه امامتی د عَبْد مکروه ده نو دے خبره کښ به یا تاویل اُوکړے شی چه جاهل غلام وی نو هغه اهل د امامت نهٔ دے او که تاویل پکښ اُونکړے شی نو بیا خبره غلطه ده۔ ځکه چه دا ټول انسانان د الله غلامان دی د الله کتاب له اعتبار دے، هغهٔ انسان لره مقدم کوی۔ او دا په یؤم القوم اقرأ هم لکتاب الله کښ داخل دے۔

٢- دویم دا حدیث دلیل دے۔٣- دریم ابن ابی ملیکه وائی : زهٔ او زما پلار او عبید بن عمیر او مسور بن مخرمه او نور ډیر خلق به عائشےؓ ته ورتلو نو هغوی ته ابوعمرو (ذکوان) چه غلام د عائشےؓ وو امامتی کوله او دا لا پدے وخت کښ نه وو آزاد شوے۔ (مسند الشافعی(١٠٩) (٢١٩/١) والسنن الکبری للبیهقی (٨٨/٣) وابن ابی شیبة (٢١/٢) ونیل الاوطار (١٩٩/٣)

٤- اسمعوا واطیعوا وان استعمل علیکم عبد حبشی کأن رأسه زبیبة) الحدیث۔

دا قول د نبی علیه السلام هم دلالت کوی په صحت د امامت د عبد باندے۔

او پدے باندے د صحابه کرامو اجماع ده ځکه چه دهغوی پدے کار کښې مخالف نۀ دے موجود۔ (النيل والاحکام الکبریٰ لعبد الحق ۱۲۵/۲) حافظ فرمائی : د عبد امامت په صحت باندے جمهورو قول کړیدے او امام مالک پکښې اختلاف کړیدے هغه وائی : آزادو ته به غلام امامتی نۀ کوی مګر که غلام قاری وی او آزاد خلق قاریان نۀ وی نو بیا امامتی کولے شی مګر بیا هم په جُمُعه کښې به امامتی نۀ کوی۔ ځکه چه په غلام باندے د جُمُعے مونځ ندے فرض۔انتهیٰ۔ او دے جواز ته ذهاب کړیدے ابوذر، حذیفه، ابن مسعود ، او د تابعینو نه ابن سیرین او حسن، شریح، نخعی، شعبی، او حکم او د فقهاؤ نه ثوری، ابوحنیفه، شافعی، احمد او اسحاق۔

عینی وائی : زمونږ اصحابو امامت د عَبد مکروه ګڼړی ځکه چه عبد په خدمت د مولیٰ مشغول وی (عمدة القاری ۲۲۵/۵۔ الجواب : خبره په هغه صورت کښې ده چه کله په خدمت کښې نۀ وی۔ او دلته احنافو د امام ابوحنیفه هم خلاف کړیدے۔

تعارف د ابوسلمة : دده نوم عبد الله بن عبد الاسد بن هلال بن عبد الله بن عمر بن مخزوم القرشی المخزومی دے د ام سلمه رضی الله عنها خاوند وو او د رسول الله ﷺ رضاعی ورور وو چه دۀ او حمزه او رسول الله ﷺ د ابولهب د وینځے ثُوَیبَه نه تے رودلے دے۔ اول ئے حمزه له بیا رسول الله ﷺ له بیا ابوسلمه له ئے تے ورکړے دے۔ او دده مور برّه بنت عبد المطلب د رسول الله ﷺ ترور وه۔ ابوسلمة هم د خپلے ښځے ام سلمے سره حبشو ته هجرت کړے وو بیا د دوه هجرتونو کولو نه پس بدر ته هم حاضر شو او په جنګ اُحُد کښې زخمی شو بیا ئے زخم جوړ شو مګر بیا رامات شو او د هغے په وجه په جمادی الآخره کښې په سنه (۳هـ) کښې وفات شو۔ او رسول الله ﷺ په مدینه باندے خلیفه مقرر کړے وو په سنه دویم هجری کښې کله چه غزوه د ذِی الْعُشَیْرے ته اُووتلو۔ او دۀ باندے کنیه غالبه ده او رسول الله ﷺ دده د وفات نه پس دده بی بی ام سلمه په نکاح واخسته۔

---

۱۲ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «ثَلَاثَةٌ لَاتُرْفَعُ لَهُمْ صَلَاتُهُمْ فَوْقَ رُؤُوسِهِمْ شِبْرًا: رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُوْنَ وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ، وَأَخَوَانِ مُتَصَارِمَانِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او ابن عباس فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : «درے کسان دی چه د هغوی مونځ د هغوی د سرونو نه یو لویشت نۀ پورته کیږی : (۱) یو هغۀ سړے چه یو

قوم ته امامت کوی او هغوی ئې بد ګنړی. (۲) دویم هغهٔ زنانه چه پداسې حال کښې شپه تیرهٔ وی چه خاوند په هغې باندې غُصه وی. (۳) دریم هغهٔ دوه وُرونه دی چه یو بل سره ئې تعلق کټ کړے وی». (ابن ماجهٔ)

تشریح : شِبْرًا: یعنی د یو لویشتې په اَندازه د دوی مونځ نهٔ پورته کیږی،یعنی نهٔ قبلیږی. اِشاره ده دیته چه ټول اعمال د انسانانو بَره ځی نو الله بَره دے او کوم اعمال چه قبول نشی نو هغه واپس راپریوځی.

بَاتَتْ : یعنی کله چه زنانه د خاوند تابعداری نهٔ کوی د کوم کار اراده چه خاوند د هغې نه کوی او د شرع خلاف نه وی نو پدے وخت کښې دا زنانه بَدْ اخلاقه ده. او بیا ئې باتت ذکر کړو اشاره ده چه غالباً اراده د سړی د شپې وی ورنه تخصیص د شپې نشته. دا بناء بر عادت وئیلے شویدے.

وَاَخَوَانِ : نسبی ورونه وی که دینی. متصارمان : یعنی یو بل سره د درے ورځو نه بَره په ناجائز کَښې ورانه کړے وی او خبرے اترے نهٔ کوی نو د دوی مونځ هم نهٔ قبلیږی. ددے نه هغه صورت مستثنیٰ دے چه د یو بل سره ئې د دینی کار د وجه نه ورانه وی لکه یو ورور مشرك کافر دهری دے، یا ترے څهٔ جرم شویدے لکه دکعب بن مالك واقعه چه د غزوه تبوك نه پاتے شو نو پنځوس ورځے ورسره خبرے بندے وے.

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابن ماجه (۹۷۱) وعزاه المنذری فی الترغيب (۱۷۱/۱) والنووی : انه رواه ابن حبان ايضاً فی صحيحه وقد قال العراقی و النووی اسناده حسن وقال البوصيری فی الزوائد اسناده صحيح ورجاله ثقات.



# باب ما على الامام

## د هغه حقوقو بيان چه په امام باندے لازم وی

يعنی دا باب دے په بيان د حقوقو د مقتديانو کښې په امام باندے۔ ديته حقوق الماموميـن علی الامام وائی او پدے حقوقو کښې اَهَم حق دا دے چه امام به په مانځه کښې تخفيف کوی او داسے تطويل به نهٔ کوی چه خلقو لره د جماعت نه متنفر کړی بلکه د مقتديانو د ضعف، حاجت او مرض وغيره احوالو لحاظ به ساتی۔ او مقدار د اُوږدوالی د مانځه او لنډوالی په راتلونکی حديث کښې ذکر دے۔ او دارنګه په مجلد (٤/ ٢٤٠) (٣/ ٣٧٤،٨٣) کښې ددے زيات تفصيل سره د مثالونو نه تير شويدے۔

الفصل الاول

١ – عَنْ اَنَسٍ، قَالَ: مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ اِمَامٍ قَطُّ اَخَفَّ صَلَاةً وَلَا اَتَمَّ صَلَاةً مِنَ النَّبِيِّ ﷺ، وَاِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ اَنْ تُفْتَنَ اُمُّهٗ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : انس رضی الله عنه فرمائی : ما هيڅرے ديو اِمام نه روستو مونځ نهٔ دے کړے چه هغهٔ ډير سپک مونځ والا وی او کامل مونځ والا وی د نبی ﷺ نه۔ او يقيناً نبی ﷺ به د ماشوم د ژړا آوريدلو نو مونځ به ئے سپک (مختصر) کړو، پدے يَره چه مور به ئے په فتنه کښې واقع شی۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشريح : انس رضی الله عنه فرمائی : ما په دومره اُوږد عمر کښې (د انس عمر ١٠٣ کاله وو) د نبی عليه السلام په شان خفيف او پوره مونځ والا پسے مونځ نهٔ دے کړے۔ يعنی د نبی عليه السلام مونځ به خفيف هم وو او تمام به هم وو۔ او ددے تخفيف او اِتمام او ددے د مقدار تشريح په (ج٤/ص ٢٤٠) (ج٣/ص٣٧٤،٨٣) کښې اُوګوره دلته مختصر صورتونه دا دی :

١ – اتمام په رکوع او سجده کښې وی او تخفيف په قيام او قراءت کښې وی يعنی په رکوع او سجده کښې به ئے پوره پوره اَذکار لوستل البته قيام او قراءت به ئے مختصر کولو کوم چه په احاديثو کښې وارد دی۔

٢ – يا تخفيف په قعده او قراءت کښې وی او اِتمام په باقی اَرکانو کښې۔

٣- بعض علماء ددے حدیث داسے معنیٰ کوی چه کله به نبی ﷺ د صحابه کرامؓ نشاط او رغبت اُولیدو نو اُوګد مونځ به ئے کولو او چه کله به عُذر او داعی د تخفیف موجود وو نو بیا به ئے تخفیف کولو۔ لهذا دا جُدا جُدا مونځونو سره لګی۔

لیکن دا معنیٰ ظاهره نۀ ده بلکه دا په یو مونځ کښې مراد دے چه یو مونځ به نبی ﷺ خلقو ته کولو نو تخفیف به هم پکښې وو او اِتمام به هم وو۔ بیا تخفیف بالاتفاق مستحب دے او په وجوب کښې ئے اختلاف دے۔ د ابن الحزمؒ او ابن عبد البرؒ رأیه دا ده چه واجب دے ځکه رسول الله ﷺ پرے اَمر کړیدے (فلیخفف)۔

٢- جمهور وائی : اَمر د استحباب دپاره دے نو تخفیف مستحب دے او تطویل مکروه دے۔

بیا د تخفیف مقدار څه دے ؟ نو تخفیف یو نسبی امر دے ډیر کرت یو اُوږد مونځ لنډ وی په نسبت د ډیر اُوګد مونځ او لنډ مونځ کله اُوګد وی په نسبت د ډیر لنډ۔ نو فیصله به په څه کوو؟ نو هغه د رسول الله ﷺ مونځ دے چه هغه خفیف هم وو او تَمام هم وو۔ او د هغے اندازه مونږ مخکښې بیان کړیده (٤/ ٢٤٠) چه هغه لس لس کرت تسبیحات د رکوع او سجدے وئیل او هر مانځه کښې چه نبی ﷺ نه کوم سورتونه نقل دی هغه وئیل دا بعینه مختصر مونځ دے امام به ددے نه زیادت نۀ کوی او ډیر اختصار به هم نۀ کوی۔

حافظ ابن رجبؒ په فتح البارى (٥/ ١١٦ کتاب الصلاة) کښې لیکی : د نبی ﷺ د دَور نه روستو بعض خلق داسے راپیدا شو چه هغوی مونځ ډیر مختصر کړو لکه دا کار په کوفے والو کښې پیدا شو او بعضو به ډیر اُوګد والے کولو او دا کار په شام او مدینے والو کښې پیدا شو۔ او سلفو په دواړو باندے اِنکار اُوکړو۔ یزید التیمی التابعیؒ د کوفے د امامانو په تخفیف باندے سخت رد اُوکړو ۔ او عبد الله بن عمر ﷺ به په هغه چا رد کولو چه د نبی ﷺ په مانځه به ئے زیادت کولو فرمایل به ئے : (سجدة من سجود هؤلا اطول من ثلاث سجدات من سجود النبی ﷺ (احمد والطبرانی فی الکبیر واسناده حسن) مجمع الزوائد (٢/ ٧١و ٢١٧)۔ (یوه سجده ددے خلقو د نبی ﷺ د درے سجدو نه هم اُوګده ده)۔ او شام والو ته ئے وئیلی وو چه تاسو هم مونځونه اُوګده کوئ او دعاء ګانې هم ډیرے کوئ)۔

حافظ ابن القیمؒ فرمائی : په مانځه کښې دوه حقه دی یو حق د الله دے چه ډیر اُوږد اُوکړے شی او بل حق العباد دے نو امام به د دواړو لحاظ ساتی، نۀ به داسے مونځ کوی چه د الله حق برباد کړی او هیڅ توجه پکښې اُونکړی او د مقتدیانو د خوښے مطابق مونځ اُوکړی او نۀ به داسے اُوګد کوی چه بندګان په عذاب کړی۔ او ددے معیار نبوی مونځ دے۔

فوائد الحدیث : ١- فیخفف نه معلومیږی چه په مانځه کښې د بل چا رعایت کول

هم جائز دی۔ نو پدے باندے دا مسئله تفریع ده (اطالة الرکوع للجائی) چه راتلونکی ته رکوع اُوګدول چه هغه فضیلت د مانځه لاندے کړی ځنګه دی؟۔

١- جمهور (شافعیؒ، مالك، ابوحنیفةؒ) وائی دا کار ښۀ نه دے (عینیؒ)۔ ٢-امام محمدؒ وائی : زۀ یریږم چه دا کار به ریاء او شرك وی ځکه چه عبادت د غیر الله دپاره اُوشو۔

٣- احمدؒ او اسحاقؒ او ابوثورؒ وائی : (یطیل ما لم یشق علی المامومین) (دومره اُوګدول د مانځه جواز لری چه په مقتدیانو مشقت رانشی)۔ او دے کار ته ریاء نشی وئیلے بلکه دا إعانت دے په خیر باندے (قاله السندیؒ) وهو القول الراجح۔

٤- د شعبیؒ او حسنؒ او عبد الرحمن بن ابی لیلیٰؒ په نزد بالکل جائز دے۔ او پدے کښې د ریاء هیڅ خبره نشته ځکه چه دا عمل د الله دپاره دے او ورسره مسلمان ته د خیر رسولو نیت هم ملګرے شو۔ او ددے مسئلے تفصیل مع الدلائل (٦) مخکښې باب تعجیل الصلاة (١٢٧/٣) کښې تیر شویدے۔ وانظر فتاوی الدین الخالص (٢٣٠/٤) (١٧١/٥) و (٨٨/٣)

٢- فائده :ماشومان مسجد ته راوستل جائز دی، دے دپاره چه په مانځه اَموخته شی۔اویو ضعیف روایت کښې دی : (جَنِّبُوا مساجدنا صبیانکم الخ (زمونږ د مسجد نه ماشومان وړاندے کړئ) نو هغه ضعیف جداً دے۔

٣- یو انسان مونځ اُوګد شروع کړے وی لیکن مینځ کښې څۀ حادثه راپیښه شی نو مونځ مختصرول جائز دی۔ لکه دلته د نبی ﷺ به د اُوګد مونځ اراده وه لیکن د ماشوم د ژړا په وجه به ئے مختصر کړو (بخاریؒ)۔

دے دپاره چه ماشوم ضائع نشی او مورئے په فتنه کښې پرے نه وځی۔ او عمر فاروق ﷺ چه کله اُووهلے شو نو عبد الرحمن بن عوف ﷺ مختصر مونځ خلقو ته اُوکړو۔

٤- حدیث دلیل دے په کمال شفقت د نبی ﷺ په خپلو ملګرو چه د وړو او د غټو او کمزورو لحاظ کوی۔

٥- په مانځه کښې خشوع کول او ددے سره د خلقو خبرے آوریدل کمال دے، ددے په خلاف د بعض تابعینو عمل دے چه هغوی به په مانځه کښې نَشه کیدل۔

٦- په داسے مقام کښې چه بنده په مشقت کښې پرے وځی نو حق د بنده مقدم دے په حق د الله باندے۔

---

٢- وَعَنْ اَبِیْ قَتَادَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِنِّیْ لَأَدْخُلُ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا اُرِیْدُ إِطَالَتَهَا، فَأَسْمَعُ بُکَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ فِيْ صَلَاتِيْ، مِمَّا أَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ اُمِّهٖ مِنْ بُکَائِهٖ ». رَوَاهُ

الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ابوقتاده ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «يقيناً زهٔ په مانځه کښې داخليږم او د مونځ د اُوږدولو اراده لرم نود ماشوم ژړا واورم نو په مانځه کښې اِختصار اُوکړم ددې وجه نه چه ما ته معلوم وي سخت غمجن کيدل د مور ددهٔ په ژړا ددهٔ»۔ (بخاريّ)

تشريح : دا حديث دليل دې چه په مانځه کښې د مقتديانو لحاظ کول ضروري دي مګر په داسې طريقه چه د الله حق هم برباد نهٔ شي۔ او دليل دې چه ماشومان مسجد ته راوستل جواز لري اګرکه ډير وارهٔ وي، او د ماشوم ژړا که د مور سره په مسجد کښې وي يا دا چه مور ئې مسجد کښې وي او ماشوم کور کښې وي او د هغهٔ د ژړا آواز راشي نو مونځ به ئې مختصرولو، دې دپاره چه په مور باندې رحم اُوکړي ځکه نبي ﷺ نبي الرحمة دې، په هغهٔ باندې رحمت زيات غالب وو اګرکه نبي ﷺ ته دا معلومه وه چه ماشوم ته ژړا ډيره فائده ورکوي لکه حافظ ابن قيمؒ فرمائي: د ماشوم ژړا سره د هغهٔ د اَندامونو ورزش کيږي او د هغهٔ کولمې او سينه کولاووي، او دماغ ئې جوش کښې راولي او مزاج ئې ګرموي، او حرارتِ غريزي ئې راپورته کوي، او طبيعت کښې ئې حرکت پيدا کوي، دې دپاره چه فضلجات او فضوليات د دماغو نه دفع کړي۔

او دا مونځ اګرکه اُوږد وي لکه د سحر مونځ وي خو د يو عارض په راتلو سره په هغې کښې تخفيف اَفضل دې۔ (فيض القدير(٢٢/٣) للمناويّ)۔

فائده : د وَجَدَ يَجِدُ (د ضرب نه) مصدر چه کله مَوْجِدَة راشي نو په معنىٰ د غضب (غصې) سره دې او چه کله ئې مصدر وَجْدُ راشي نو په معنىٰ د محبت دې او په ضمه د جيم سره (وُجْد) په معنىٰ د غم او طاقت او مالدارۍ سره راځي او چه مصدر ئې وُجُوْد او وِجْدَان شي نو معنىٰ ئې موندل دي، او وِجادَة د کتابت په طريقه حديث نقل کولو ته وائي يعني د چا د صحيفې نه علم او حديث رانقل کول، چه هغې کښې سماع، اِجازت او مناوله نهٔ وي۔

دا حديث دليل دې چه زنانه هم مسجد ته راتلې شي اګرکه ماشومان ورسره وي۔

او دليل دې چه په مونځ باندې به خلق نشي تنګولې چه ډيرئې اُوګد کړي۔ عمر فاروق ﷺ به فرمائيل : تاسو الله خلقو ته مهٔ مبغوض کوئ ؟ چا ورته اُووئيل دا به څنګه وي ؟ هغه اُوفرمايل : پدې طريقه چه يو اِمام مونځ اُوګد کړي نو مقتديان په مانځه کښې تنګ شي۔ او هغهٔ د مانځه نه نفرت اُوکړي۔ (الاستذکار ٧٨/٢) تحفة الاحوذى (٢٦٩/١) (٢٣/٢)

---

٣- وَعَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «اِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ، فَاِنَّ

فِيهِمُ السَّقِيمَ وَالضَّعِيفَ، وَالْكَبِيرَ. وَاِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمْ لِنَفْسِهٖ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «كله چه يو تن ستاسو نه خلقو ته مونځ كوي نو تخفيف دې كوي ، ځكه په هغوى كښې بيمار، كمزورې او بوډا وي. (نو د هغوى رعايت هم پكار دې) او كله چه يو تن ستاسو ځانله مونځ كوي نو څومره ئې چه خوښه وي اُوږد دې كړي». (بخاريّ ومسلمّ)

تشريح : السَّقِيمَ هغه ته وائي چه مرض پرې راغلې وي او ضعيف هغې ته وائي چه ضعيف الخِلْقَة وي نرې او كمزورې وي. او كبير هغه دې چه عُمرئې ډير وي، بوډا وي. په روايت د مسلمّ كښې ورسره (الصغير) هم راغلې دې.او طبرانيّ كښې ورسره (حامل او مُرضِع) هم راغلې دې. او بل روايت د طبرانيّ كښې ورسره (عابر سبيل) (لاره وې) هم دې.

بيا بعض علماءُ فرمائي : كه په يو ځائې كښې د تخفيف علت منتفي شي يعني مقتديان ټول راضي وي په تطويل باندې او هلته نور مقتديان اصحاب الاعذار نه راځي نو بيا تطويل مكروه نهٔ دې. ليكن علامه ابن عبد البرّ فرمائي : زما په نيز علت د تخفيف مامون نهٔ دې ځكه امام اگركه د خپلو مقتديانو قوت پيژني مگر بيا هم څه پته لگي چه هغوى ته يوه مشغله يا يو ضرورت يا آفت د بول وغيره راپيښ شي لهذا تخفيف پكار دې.

فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاء : يعني په قراءت ، ركوع، سجده، اعتدال او د دوه سجدو مينځ كښې ناسته او تشهد كښې دې اُوګد والې كوي. ليكن دې سره دا قيد دې چه د وخت د خروج خيال به كوي. په روايت د مسلم كښې دي: (فليصل كيف شاء) وسيأتي.(يعني څنگه ئې چه خوښهٔ وي اُوږدې كړي مخفف وي او كه مطوّل وي) ليكن دومره تطويل به نهٔ كوي چه وخت اُوځي يا د كراهت وخت ته اُورسي.

٤– وَعَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ، قَالَ: اَخْبَرَنِيْ اَبُوْمَسْعُوْدٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ: وَاللهِ يَارَسُوْلَ اللهِ! اِنِّيْ لَاَتَأَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مِنْ اَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا، فَمَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ فِيْ مَوْعِظَةٍ اَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ، ثُمَّ قَالَ: «اِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ، فَاَيُّكُمْ مَا صَلّٰى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ، فَاِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ، وَذَا الْحَاجَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او قيس بن ابي حازمّ فرمائي: ما ته ابو مسعود ﷺ خبر راكړې دې چه يو سړي اُووئيل : قسم په الله ! اې د الله رسوله ! زهٔ د سحر مانځه نه روستو پاتې كيږم د وجه د فلاني

نه چه هغهٔ مونږ ته مونځ اُوږد کوی، نو ما رسول الله ﷺ په یو نصیحت کښې سخت غصے والا نهٔ دے لیدلو لکه څنګه چه په دغه ورځ سخت غصه شو، وے فرمایل: «په تاسو کښې بعض خلق (د اُوږد مونځ کولو په وجه) نفرت کښې آچونکی دی، (خبردار) تاسو نه چه کوم شخص خلقو ته مونځ کوی نو آسان مونځ دے کوی ځکه په مقتدیانو کښې کمزورے، بوډا او حاجتمند خلق (هم) وی». (بخاریؒ ومسلمؒ)

تعارف د قیس بن ابی حازم : ابوعبد الله الکوفی ثقه دے او د کبار التابعین نه دے مخضرم دے بعض وائی نبی ﷺ ئے لیدلے دے او دا د عَشره مُبشرو شاګرد دے. د سلو کالو نه ئے عمر زیات وو.(تقریب) او تهذیب کښې دی چه دهٔ جاهلیت دور لاندے کړیدے او نبی ﷺ ته د بیعت دپاره راروان وو چه په لاره کښې خبر شو چه نبی ﷺ وفات شو.او پلار ئے صحابی دے.

تشریح : رَجُلًا : حافظ ابن حجرؒ وائی: ددے نوم ما ته ندے معلوم او چا چه وئیلی دی چه دا حزم بن اُبی بن کعب دے نو خطاء وائی ځکه د هغهٔ واقعه د معاذ بن جبل سره راغلے ده. او هغه په مسجد بنی سلمه کښې وه او په ماسخوتن مانځه کښې وه او دا قصه په مسجد قباء کښې ده او په سحر مانځه کښې ده.

او دلته د فلان (امام) نه مراد اُبی بن کعب دے. او هلته امام معاذ وو.

لکه ددے واقعے تفصیل په مسند ابی یَعلیٰ کښې باسناد حسن راغلے دے. جابرؓ فرمائی : اُبی بن کعب به اَهل قباء ته مونځ کولو نو اُوګد سورت ئے شروع کړو، د هغهٔ سره د اَنصارو نه یو هلك مانځه کښې شامل شو، خو کله چه دهٔ واوریدل چه هغهٔ (امام) اُوګد سورت شروع کړو نو د مانځه نه اُووتلو نو اُبی بن کعب پدے کار غصه شو، نبی ﷺ ته راغلو د هغهٔ هلك شکایت ئے کړو او هغهٔ هلك راغلو د اُبی شکایت ئے کولو نو نبی ﷺ غصه شو تردے چه غصه ئے په مخکښې اُوپیژندے شوه.

بیا ئے اُوفرمایل : «بعض په تاسو کښې نفرت کښې خلق آچوی کله چه تاسو مونځ کوئ نو اختصار کوئ ځکه ستاسو نه روستو ضعیف او بوډا او مریض او حاجتمند خلق وی. (فتح الباری ١٩٨/٢ باب تخفیف الامام) بیا فرق دا دے که د سحر مونځ وو نو اُبیؓ به مراد وی او که د ماسخوتن وی نو مُعاذؓ به مراد وی.

دا حدیث دلیل دے چه کله امام مونځ غلط کوی یا په بے حده اُوګد مونځ باندے عادت وی نو جَمعے ته نهٔ حاضریدل هم جائز دی. ٢- او په دین کښې په یو منکر کار لیدلو باندے غصه کیدل پکار دی. ٣- او د مقتدیانو لحاظ ساتل په تخفیف د مانځه کښې په اَندازه

شرعي سره۔ ٤- او وعيد دے هغه امامانو ته چه كوشش كوي چه خلق د جماعت نه پاتے كړي د وجه د ناروا كارونو نه په مانځه كښ۔

٥- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ: «يُصَلُّوْنَ لَكُمْ فَإِنْ اَصَابُوْا فَلَكُمْ، وَإِنْ اَخْطَأُوْا فَلَكُمْ وَعَلَيْهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.وَ هٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِيْ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي: "تاسو ته به امامان مونځونه كوي نو كهٔ هغوي مونځ په شان سره كوي نو د هغے فائده تاسو له ده (او هغوي له هم ده) او كهٔ هغوي خطاء كوي (بے طريقے مونځ كوي) نو تاسو ته (بيا هم) ثواب ملاوېږي او د هغے ګناه په هغوي باندے به وي"۔ (بخاري) او دا باب د فصل ثاني نه خالي دے۔

تشريح : د مونځ صحيح والے او خطاء والے په دوه طريقو دے : يو د وقت خطاء والے او صحيح والے دے او بل په ارکانو کښ خطاء والے او صحيح والے دے۔

نو پدے کښ اختلاف دے ١- احناف وائي : د وقت خطاء والے دے نو معنیٰ دا ده چه که دا امامان په وخت کښ مونځ کوي او مکروه وخت ته ئے نهٔ اوباسي نو ستاسو مونځ هم اوشو او د امامانو هم اوشو او که هغوي په وخت کښ خطاء شو لکه بني اُميه وغيره به دا کار کولو چه مونځونه به ئے ناوخته کول نو ستاسو مونځ او ثواب اوشو تاسو به الله نهٔ راګيروي او ګناه ئے په هغوي ده۔

٢- شافعيؒ او جمهورؒ وائي : چه د (اصابوا) معنیٰ ده چه وخت هم لاندے کړي او بل (اتموا الرکوع والسجود) (يعني ارکان د مانځه ئے هم پوره طريقے سره اوکړل) او که وقت کښ ئے خطائي کوله يا ارکان ئے پوره طريقے سره نهٔ ادا کول نو بيا به امامان ګناهګار وي او د مقتديانو مونځ اوشو۔ او دا قول راجح دے ځکه چه په حديث عقبه بن عامرؓ کښ دي۔

ابو علي المصري الهمدانيؒ فرمائي : مونږ د عقبه بن عامرؓ سره سفر کولو نو د مانځه وخت راغلو، زمونږ اراده وه چه عقبهؓ به مخکښ کيږي نو هغه اوفرمايل : ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي : (من ام قوماً، فان اتم فله التمام ولهم التمام وان لم يتم فلهم التمام وعليه الاثم) احمد وابوداود وابن ماجه) (صحيح الترغيب (١١٦/١) رقم (٤٨٢) وفي رواية ابن خزيمة وابن حبان : من ام الناس فاصاب الوقت واتم الصلاة فله ولهم ومن انتقص من ذلك شيئاً فعليه ولا عليهم) (چا چه خلقو ته امامتي کوله او صحيح وقت کښ ئے کوله او مونځ ئے هم اتمام سره کولو نو ددهٔ هم صحيح مونځ اداء شو او د مقتديانو هم او چا چه پدے

کښې نقصان کولو نو د مقتدیانو مونځ اُوشو او ګناه ئې په امام ده) دا حدیثونه په دوه مسئلو دلیل شو یو دا چه که امام په وقت او اَرکانو کښې صحیح وو نو د دواړو مونځ صحیح دے او که امام په دواړو کښې خطاء وو نو په امام باندے ګناه ده او د مقتدیانو مونځ صحیح دے۔

## مقتدی چه کله امام پسے مونځ نشی رسولے مونځ جائز نۀ دے

او دویم پدے مسئله دلیل دے چه د مقتدی مونځ جُدا دے او د امام مونځ جُدا دے ځکه چه مقتدی به ځان له اِتمام د اَرکانو کړے وی لهذا د هغۀ مونځ اُوشو او هر چه اِمام دے نو هغۀ په اتمام کښې نقصان راوستو لهذا د هغۀ مونځ اُونۀ شو۔

او دا علماء ددے دواړو دپاره شرطونه وائی : ۱- یو شرط دا دے چه امام به خلیفه یا نائب د خلیفه وی ځکه هغوی ته څوك څۀ نشی وئیلے او که عام امام وی نو تۀ به ئې ددے غوږ نه اُونیسے او راڕوستو به ئې کړے۔ ۲- دویم شرط دا وائی چه مقتدی به ځان له مونځ پوره کولے شی او رکوع او سجده او تعدیل الارکان به کولے شی۔ اګرکه امام ئې پوره طریقے سره نۀ کوی۔ ځکه د امام مونځ جُدا او د مقتدی مونځ جُدا دے۔ چه تا خپل مونځ صحیح اُوکړو نو غاړه دِے آزاده شوه او امام به ګناهګار وی او پدے باندے امام بخاریؒ باب لګولے دے (باب اذا لم یتم الامام واتم من خلفه ۹٦/۱) (یعنی چه مقتدی مونځ پوره پوره کوی او امام اتمام نۀ کوی نو مقتدی مونځ جائز دے)

او که تا چرته رکوع او سجده وریسے نشوه رسولے نو بیا ستا مونځ هم نۀ کیږی۔ نو که وخت کښې ئې خطائی کوله نو دهغے طریقه خو دا ده چه اول به ځانله مونځ اُوکړے بیا به د اِمام سره شریك شے او که اَرکان ئې خراب وو نو که تا صحیح ادا کولے شو نو ستا مونځ کیږی او که تا وریسے ارکان نشو رسولے نو بیا ستا هم نۀ کیږی۔

او اَحناف صرف د وقت د خطائی قید لګوی ځکه هغوی وائی چه مقتدی مطلقاً تابع د امام دے یعنی په صحت او فساد کښې که د امام مونځ صحیح شو نو د مقتدی به هم صحیح وی او که د امام مونځ فاسد شو نو د مقتدی به هم فاسد وی، د مقتدی خپل اتمام له اعتبار نۀ ورکوی۔ او د دواړو مونځ جُدا جُدا نۀ شماری۔ او د امام شافعیؒ په نزد مقتدی تابع د امام دے صرف په موافقت کښې نۀ په صحت او فساد کښې۔

وهو قول مالك واحمد ایضاً۔ وهو الراجح۔ دلائل ئې د (الامام ضامن) حدیث لاندے تیر شویدی۔ (۳۷٤/۳) و (۴۳۰/۲ - باب الغسل)

## الفصل الثالث

٦- عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، قَالَ: آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمُ الصَّلَاةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لَهُ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَهُ: «أُمَّ قَوْمَكَ». قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ شَيْئًا. قَالَ: «اُدْنُهْ، فَأَجْلَسَنِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ، ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ فِيْ صَدْرِيْ بَيْنَ ثَدْيَيَّ، ثُمَّ قَالَ: «تَحَوَّلْ»، فَوَضَعَهَا فِيْ ظَهْرِيْ بَيْنَ كَتِفَيَّ، ثُمَّ قَالَ: «أُمَّ قَوْمَكَ فَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ، فَإِنَّ فِيْهِمُ الْكَبِيْرَ، وَإِنَّ فِيْهِمُ الْمَرِيْضَ وَإِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ، وَإِنَّ فِيْهِمْ ذَا الْحَاجَةِ. فَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ وَحْدَهُ فَلْيُصَلِّ كَيْفَ شَاءَ».

---

ترجمه: عثمان بن ابی العاص ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ چه ما ته آخرنے وصیت کړے دے (هغهٔ دا دے چه) «کله تهٔ خلقو ته اِمامتي کوے نو مونځ ورته آسان کوه» (مسلمؒ) او په یو روایت د مسلمؒ کښې دی: عثمانؓ ته ئے اُوفرمایل: «خپل قوم ته امامتي کوه»، عثمان فرمائی: ما عرض اُوکړو یا رسول الله! زهٔ په خپل زړهٔ کښې څهٔ شك موندهٔ کوم. وے فرمایل: «رانزدے شه!» نو زهٔ ئے خپلے مخے ته کینولم، بیا ئے ورغوے زما په سینه باندے د تیونو ترمینځ کیخودو بیا ئے اُوفرمایل: «شا راواړوه!» نو زما په شان باندے ئے د اُوګو ترمینځ کیخودو بیا ئے اُوفرمایل: «خپل قوم ته اِمامت کوه، او څوك چه یو قوم ته اِمامت کوی نو هغهٔ له پکار دی چه تخفیف اُوکړی، ځکه په هغوی کښې بوډا او په هغوی کښې مریض او په هغوی کښې کمزورے، او په هغوی کښې حاجتمند وی او کله چه یو تن ستاسو ځانله یواځے مونځ کوی نو بیا چه څومره (اُوږد) مونځ کوی خوښه ئے ده».

تشریح: إِنِّيْ أَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ : یو مطلب دا دے چه زهٔ په ځان کښې شرائط د امامت او د هغے د حقوقو پوره کولو طاقت نهٔ وینم ځکه چه زما په سینه کښې وساوس راځی او بل دا چه د قرآن او د علم برداشت مے کم دے خو کله چه نبی ﷺ ورله په سینه او شا باندے لاس راخکلو نو دا مصیبتونه ترے لرے شو او د قرآن او د علم دین په پورته کولو قوی شو.

۲- امام نوویؒ وائی: دا احتمال هم لری چه ددهٔ مقصود دا وی چه زهٔ ویریږم د څهٔ تکبر او اِعجاب نه په زړهٔ کښې کله چه ما خلق مقدم کړی نو الله ترے د نبی ﷺ د لاس په برکت هغه مصیبت ختم کړو.

۳- په روایت د ابن ماجه (۱۱۷۴) رقم (۳۰۴۸) وهو فی الصحیحة (۹۹/۶ رقم ۲۹۱۸) وغیره کښې راځی چه دهٔ کښې پیریے (جِنی) ننوتے وو، وسوسے به ئے وراچولے او قراء

ت به ئې پرې ګډوډ کولو نو نبي ﷺ ته ئې شکايت اُوکړو او هغه ورله په سينه کښې ګوزار ورکولو سَره د سپي د بچي په شان اُوويستلو۔ نو الله ورله شفاء ورکړه۔ او نبي ﷺ ورته تعوذ اُوخودلو په هغې باندې به ئې عمل کولو نو الله ترې دغه پيرې اُوويستلو لکه دا حديث په باب الوسوسه (۲۵) حديث کښې تير شويدې۔ (۲۸۶/۱) طبع ثاني)

---

۷- وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَأْمُرُنَا بِالتَّخْفِيْفِ وَيَؤُمُّنَا بِ (الصَّافَّاتِ). رَوَاهُ النِّسَائِيُّ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ به مونږ ته په تخفيف (د مانځه) باندې حکم کولو او مونږ ته به ئې په سورۀ صافات سره اِمامتي کوله۔ (نسائيؒ)

### امام به په مانځه کښې تخفيف کوي او د تخفيف نه څه مراد دے؟

تشريح : يعني کله چه مونږ امامتي کوو نو مونږ ته د نبي ﷺ دا امر دے چه تخفيف به کوو او د تخفيف نه مراد تخفيف د قراءت دے او خپله به ئې کله نا کله په صافات سورت سره امامتي کوله۔ بيا پدے کښې دا اشکال کيږي چه ددے دواړو جملو منافات ښکاري ځکه چه امت ته امر کوي په تخفيف او خپله تطويل کوي۔
نو ددے جواب دا دے چه د رسول الله ﷺ د تلاوت په اَوريدو کښې مقتديانو ته لذت ملاويدو ترڅو چه سامع به تول حاجت هير کړل او ضعيف به په تولو حالاتو د ضعف کښې قوي شو او هر يو به دا خوښول چه رکعت اُوګد کړي۔ لهذا دا به د هغۀ په حق کښې تخفيف وو۔ نو معلومه شوه چه امام به د مقتديانو د حالت رعايت کوي۔ (سنديؒ)
طيبيؒ وائي : نبي ﷺ اُمت ته په تخفيف باندې امر کوي او خپله تطويل کوي۔ ددے وجه دا ده چه نبي ﷺ کښې يو خصوصيت وو او هغۀ دا چه هغۀ به په لږ وخت کښې ډير آياتونه لوستل چه خلق به نۀ تنګيدل۔انتهىٰ۔
*بعض وائي : دا کار ئې بياناً للجواز کړيدې چه کله نا کله تطويل هم جائز دے۔او ديته امام نسائيؒ اشاره کړيده چه امام دپاره تطويل هم جائز دے اګرکه عامه ذمواري د امام تخفيف دے۔ بعض علماء (حافظ ابن قيمؒ) فرمائي : (فالقرائة بالصافات من التخفيف الذى اَمَرَ به- والله اعلم) (الامامة فى الصلاة ۶۲/۲) څوک چه سحر يا ماښام مانځه کښې سوره صافات کله نا کله وائي نو دا بعينه د تخفيف اندازه ده۔او دا تطويل نۀ دے۔ بلکه ددے نه زيادت کول به تطويل وي، او دا مطلب نۀ دے چه د نبي ﷺ عمل د هغۀ د قول مخالف دے

ځکه نبی ﷺ په ماښام مانځه کښې سورهٔ أعراف هم لوستے دے چه هغه د صافات نه ډیر اُوګد دے۔ او همدا خبره حقه ده۔

فائده : د امام نه چه کوم تخفیف مطلوب دے هغهٔ دوه قسمونو ته تقسیم دے :

١ – یو لازم تخفیف دے، چه د هغهٔ اندازے نه به تجاوز نهٔ کوی کوم باندے چه سنت راغلے دے، کهٔ دے باندے اُوږدوالے اُوکړی نو دا به مُطوِل (خلاف سنت اُوږدونکے) وی، ځکه د (فلیخفف) امر مخالفت ئے اُوکړو۔

٢ – او دویم عارضی تخفیف دے چه په یو مقام کښې یو سبب موجود شی چه هغهٔ د اختصار او ایجاز تقاضا کوی نو د سنت نه په پکښې زیات اختصار اُوکړی لکه نبی ﷺ به د ماشوم ژړا اَوریدو سره مونځ کښې اختصار کولو او دا دواړه قسمه تخفیف سنت کښې راغلے دے۔ (الامامة فی الصلاة ٦٢/٢) للدکتور سعید بن علی بن وهف القحطانی)

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه النسائی (٩٥/٢) و کذا البیهقی (١١٨/٣).



# باب ما علی الماموم من المتابعة وحکم المسبوق

## مقتدي دپاره د امام د تابعدارئ لزوم او د مسبوق د حکم بيان

امام، ماموم، مقتدي، مسبوق، لاحق او مدرك الفاظ استعماليږي. مخکښې د إمام احکام تير شو اُوس د مقتدي أحکام بيانوي. مقتدي او ماموم يو شے دے.
مُدرك هغه شخص دے چه د إمام سره ئے مونځ د أول نه تر آخره پورے موندلے وي، لاحق : هغۀ مقتدي دے چه د اول نه مونځ کښې شريك وي ليکن مينځ کښې ے أودسه شي بيا راشي نو يا باقي مونځ لاندے کړي يا تړے فوت شوے وي. او دغه باقي بيا ځانله کوي.
مسبوق : هغۀ دے چه اول سر د مونځ تړے فوت شوے وي او ناوخته راغلے وي. د لاحق احکام مخکښې په ابتداء د مجلد ثاني کښې تير شوي دي په حديث (لا تقبل صلاة بغير طهور) کښې. هغۀ آسان او واضح دي. او هر چه مقتدي دے نو د هغۀ او د مسبوق حکم بيانوي نو په ماموم باندے د امام متابعت (تابعداري) لازم ده يعني د امام نه به مخکښې والے او ډير روستو والے نۀ کوي.
بيا ئے متابعت لفظ راوړو نه مقارنت اشاره ده چه مقتدي به د امام پسے روستو روستو ځي. او شريك به ورسره يو ځائے هم نۀ ځي او ډير به تړے روستو هم نۀ پاتے کيږي چه امام د رکن نه فارغ شي او دا روستو ورشي بلکه چه امام يو رکن کښې شروع اُوکړه نو مقتدي به ورپسے متصل روستو شروع کوي. چه په دغه رکن کښې امام لاندے کړي.
احنافو ليکلي دي چه په ارکانو کښې کوم فرض يا واجب دي په هغے کښې په مقتدي باندے د امام تابعداري واجب ده، او پدے ارکانو کښې چه کوم سنت وغيره دي نو د مقتديانو دپاره د امام متابعت ضروري نۀ دے، نو بيا ئے پرے دا مسئله تفريع کړيده چه که امام شافعي المذهب وي او رفع اليدين کوي نو حنفي دپاره لاسونه پورته کول ضروري نۀ دي. دارنگه که امام شافعي المذهب وي او په مانځه کښې قنوت نازله وائي.
نو حنفي مقتديانو باندے د هغۀ متابعت لازم نۀ دے. مگر صحيح دا ده چه دا تشريحات د ځان نه د تقليدي جذبے په وجه ايجاد شوي دي، بلکه صاحب الشرع ﷺ په مانځه کښې د امام په تابعدارئ باندے مطلقاً امر کړيدے لهذا امام چه په هر سنت باندے

عمل کوی نو مقتدی به ئې ورسره ضرور کوی او په یو مانځه کښې به تربګنی نهٔ کوی «یو بام او دوه هوا» به نهٔ جوړوی۔

الفصل الاول

۱ – عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كُنَّا نُصَلِّيْ خَلْفَ النَّبِيِّ فَإِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ»، لَمْ يَحْنِ اَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتّٰى يَضَعَ النَّبِيُّ ﷺ جَبْهَتَهُ عَلَى الْاَرْضِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی: مونږ به د نبی ﷺ نه روستو مونځ کولو نو کله چه به هغهٔ « سمع الله لمن حمده » اُوویل: زمونږ نه هیڅ یو تن به خپله ملا نهٔ کړوله تردې چه نبی ﷺ به خپل تندې مبارك په زمکه کیخودو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : لَمْ يَحْنِ : د حَنَا يَحْنُوْ او حَنَى يَحْنِيْ د باب د دَعَا او رَمیٰ نه دې، کړولو او مائل کولو ته وائی۔

## مقتدی به د امام سره مقارنت نهٔ کوی

پدې حدیث کښې داسې عمل ذکر دې چه نن صبا په عام مساجدو کښې دا نشی لیدلې، صحابه فرمائی : نبی علیه السلام به چه کله تندې په زمکه کیخودو نو مونږ به تر هغهٔ وخت پورې ملا نهٔ وکړه کړې بلکه نیغ به ولاړ وو کله چه به نبی علیه السلام سجده اُولګوله بیا به مونږ راروان شو او سجدې ته به راپریوتو۔ ددې نه معلومه شوه چه ټولو صحابه کرامؓ به د امام متابعت کولو، مخکښې والې او ډیر روستو والې به ئې نهٔ کوو او نهٔ به شریك خکته کیدل پورته کیدل۔ علامه عینیؒ فرمائی : ددې حدیث معنیٰ دا ده چه مقتدی به په یو رکن کښې شروع کوی پس د شروع د امام نه په هغې کښې او مخکښې د فارغیدو د امام نه۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائی : دا ډیر واضح دلیل دې په انتفاء د مقارنت کښې۔

ددې مسئلې تفصیل مخکښې په څلورم جلد (ج٤/ص ۲۲۵) کښې سره د دلائلو نه تیر شویدې چه آیا مقتدی به د امام سره مقارنت کوی او که متابعت۔ احناف د مقارنت قائل دی او شوافع د متابعت۔

احناف ددې قسم احادیثو نه داسې جواب کوی چه دا په هغهٔ زمانه کښې وو چه د نبی علیه السلام بدن غټ شوې وو نو یَریدو چه مقتدیان به ترې مخکښې شی ځکه ئې ورته دا اَمر کړې وو چه ما پسې روستو راځئ لیکن دې خبره باندې هیڅ دلیل نشته۔

او دې احادیثو کښې رد دې په ابن الجوزیؒ باندې هُم، هغهٔ وائی : امام چه کله د رکن نه

فارغ شي نو روستو به مقتدي شروع کوي حال دا چه دا خبره په حديث کښ بالکل نشته ځکه دلته داسې ندي وئيل شوي چه نبي ﷺ به سجده اُوکړه بيا به مونږ خکته کيدو بلکه داسې دي کله چه به نبي ﷺ تندے په زمکه کيخودو نو مونږ به خکته کيدو۔
نو دا ظاهره ده چه نبي ﷺ به لا د سجدے نه فارغ شوے نۀ وو چه صحابه کرامؓ به ورسره شامل شو۔ (تحفة الاحوذي ١٣٦/٢)
فائده : حديث دليل دے چه امام ته په مانځه کښ کتل جواز لري دے دپاره چه ارکانو ته په نقل کيدو کښ د امام اتباع اُوکړي۔

---

٢- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَلَمَّا قَضٰى صَلَاتَهٗ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ، فَقَالَ:« اَيُّهَا النَّاسُ ! اِنِّيْ اِمَامُكُمْ فَلَا تَسْبِقُوْنِيْ بِالرُّكُوْعِ وَلَا بِالسُّجُوْدِ وَلَا بِالْقِيَامِ وَلَا بِالْاِنْصِرَافِ، فَاِنِّيْ اَرَاكُمْ اَمَامِيْ وَمِنْ خَلْفِيْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او انس ﷛ فرمائي: (يوه ورځ) مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ اُوکړو، کله چه ئے مونځ پوره کړو نو مونږ ته ئے مخ راواړولو وے فرمايل:«اے خلقو ! زۀ ستاسو امام يم نو ما نه په رکوع، سجده ، قيام او سلام کښ مۀ مخکښ کيږئ، يقيناً زۀ تاسو د مخے او شا نه وينم»۔ (مسلمؒ)
تشريح : دا حديث هم دليل دے چه متابعت پدے احوال مذکوره ؤکښ واجب دے۔
وَلَا بِالْاِنْصِرَافِ : ددے نه مراد يا سلام دے يعني په سلام کښ به د امام نه مقتدي نۀ مخکښ کيږي بلکه کله چه دواړو طرفونو ته امام سلام واړوي نو بيا به مقتدي سلام اړوي۔ ٢- يا مراد دا دے چه د سلام نه روستو به د امام د پاڅيدو نه مخکښ نه پاڅئ۔ وجه دا ده چه کيدے شي امام نه سهوه شوي وي او بيا ورته ياد شي او بيرته ورته راوګرځي نو کۀ مقتدي پاڅيدلے وي نو د هغۀ نه به دا سجده سهوه فوت شي۔ لکه په قصه د ذي اليدين کښ۔ يا ددے وجه نه چه زنانه د سړو نه مخکښ کورونو ته واپس شي لکه دا مخکښ هم تير شويدي۔ مګر اول احتمال ظاهر دے۔
فائدة : ددے ارکانو تخصيص ئے اُوکړو اشاره ده چه په افعالو کښ د امام نه تقديم جائز نۀ دے البته په اقوالو کښ د تقديم جواز ترے ثابتيږي۔

---

٣- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لَاتُبَادِرُوْا الْاِمَامَ : اِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوْا، وَاِذَا

قَالَ (وَلَا الضَّالِّيْنَ) فَقُولُوْا : آمِيْنَ. وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُوْلُوْا: اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. إِلَّا أَنَّ الْبُخَارِيَّ لَمْ يَذْكُرْ : وَإِذَا قَالَ: (وَلَا الضَّآلِّيْنَ).

---

ترجمه : او ابوهريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د امام نه جلتي مۀ کوئ !، کله چه امام تکبير کوي، نو تاسو (هم دهغۀ سره) تکبير وايئ، کله چه امام ولا الضالين اُووئي نو تاسو آمين وايئ، او کله چه امام رکوع کوي نو تاسو (هم) رکوع کوئ، او کله چه امام سمع الله لمن حمده اُووائي نو تاسو وايئ : اللهم (اے الله ! زمونږ ربه ستا دپاره حمدونه دي) (بخاريؒ ومسلمؒ) مګر بخاريؒ دا الفاظ نۀ دي ذکر کړي : (واذا قال ولا الضالين).

تشريح : لَا تُبَادِرُوْا الْإِمَامَ : يعني د امام نه د مانځه په هيڅ حالت کښې مخکښې والے مه کوئ.
دا حديث ددے نفي نۀ کوي چه ګنې مقتدي به سمع الله لمن حمده نۀ وائي بلکه لکه څنګه چه دلته د امام آمين نه دے ذکر نو دغه شان د مقتدي سمع الله لمن حمده نۀ ده ذکر او هغه د نورو احاديثو نه معلوم شويدي لکه چه دا مسئله په (ج ٤/ص ۱۴۰) باب الرکوع کښې تفصيلًا مع الدلائل تيره شويده.
بعض احناف ليکي : دلته ئې د مقتدي فاتحه ذکر نۀ کړه نو معلومه شوه چه مقتدي به فاتحه نۀ وائي. جواب دادے چه دا استدلال ضعيف دے وجه دا ده چه دلته خو د امام آمين هم نۀ دے ذکر او حال دا چه احناف هم وائي چه امام به آمين وائي. بيا که دوي وائي چه د امام آمين د نورو احاديثو نه معلوم دے نو مونږ وايو چه د مقتدي فاتحه هم د نورو احاديثو نه معلومه ده. بله وجه دا ده چه دلته دا مسئله ثابتول مقصود دے چه د آمين مقام کوم يو دے.نو هغۀ د امام د ولا الضالين او آمين وئيلو سره شريك آمين وئيل مسنون دي لکه دا مسئله مخکښې تفصيلًا ذکر شويده.
وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا: په روايت د ابوداود کښې داسے دي : ولا ترکعوا حتى يرکع) (تاسو رکوع ته مۀ ځئ تردے چه هغۀ رکوع ته لاړ شي) علامه عينيؒ او حافظؒ دواړه وائي : دا روايت د ابوداود صريح دے په انتفاء د تقدم او مقارنت کښې.

---

٤ - وَعَنْ اَنَسٍ: اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ رَكِبَ فَرَسًا، فَصُرِعَ عَنْهُ، فَجُحِشَ شِقُّهُ الْاَيْمَنُ، فَصَلّٰى صَلَاةً مِنَ الصَّلَوَاتِ، وَهُوَ قَاعِدٌ، فَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ قُعُوْدًا، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: «اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ، فَاِذَا صَلّٰى قَائِمًا فَصَلُّوْا قِيَامًا، وَاِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوْا، وَاِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوْا، وَاِذَا قَالَ:

سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُوْلُوْا: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا أَجْمَعُوْنَ». قَالَ الْحُمَيْدِيُّ: قَوْلُهُ إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوْا جُلُوْسًا، هُوَ فِيْ مَرَضِهِ الْقَدِيْمِ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَ ذٰلِكَ النَّبِيُّ ﷺ جَالِسًا وَالنَّاسُ خَلْفَهُ قِيَامٌ، لَمْ يَأْمُرْهُمْ بِالْقُعُوْدِ، وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ ﷺ. هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ. وَاتَّفَقَ مُسْلِمٌ إِلٰى أَجْمَعُوْنَ. وَزَادَ فِيْ رِوَايَةٍ: «فَلَا تَخْتَلِفُوْا عَلَيْهِ، وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوْا».

---

ترجمه: او انس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ (يوه ورځ) په آس باندې سُور شو نو د هغهٔ نه راګوزار شو (چه د هغې په وجه ئې) ښې طرف زخمي شو (داسې چه بيا په ولاړه مونځ کولو قادر نهٔ وو) نو د (پنځه) مونځونو نه ئې يو مونځ په ناسته اُوکړو او مونږ د هغهٔ نه روستو په ناسته مونځ اُوکړو، نو کله ئې چه سلام واړولو وې فرمايل: «يقيناً امام دې دپاره مقرر شوې دې چه د هغهٔ اقتداء اُوکړې شي، نو کله چه امام په ولاړه مونځ کوي، تاسو (هم) په ولاړه مونځ کوئ، او کله چه هغهٔ رکوع کوي، تاسو هم رکوع کوئ او کله چه هغهٔ سر پورته کوي (د رکوع نه)، تاسو (هم) سر پورته کړئ او کله چه هغهٔ سمع الله لمن حمده وائي، نو تاسو وايئ: (اې ربه! ستا دپاره حمدونه دي) او کله چه امام په ناسته مونځ کوي نو تاسو (هم ورسره) ټول په ناسته مونځ کوئ (بخاريؒ). امام حميديؒ (د بخاريؒ اُستاذ) فرمائي: د رسول الله ﷺ دا ارشاد چه (کله امام په ناسته مونځ کوي نو تاسو هم په ناسته مونځ کوئ) دا د نبي ﷺ په پخوانۍ بيمارئ کښې وو او دې نه بعد ئې (په مرض الوفات کښې د مرګ نه يوه ورځ مخکښې) نبي ﷺ په ناسته مونځ اُوکړو او خلق د هغهٔ نه روستو ولاړ وو او هغوي ته ئې په ناسته مونځ کولو حکم اُونهٔ کړو او د نبي ﷺ په هغهٔ فعل باندې به عمل کيږي کوم چه آخري وي (يعني اول فعل منسوخ او دويم فعل ناسخ وي) دا الفاظ د بخاريؒ دي او مسلمؒ هم د لفظ "اجمعون" پورې د بخاريؒ موافق دې (يعني دې لفظ پورې بخاريؒ او مسلمؒ دواړو په اتفاق نقل کړيدې) او په يو بل روايت د مسلمؒ کښې دا الفاظ مزيد نقل کړيدي چه (نبي ﷺ دا هم اُوفرمايل:) «د امام خلاف مهٔ کوئ او کله چه امام سجده کوي نو تاسو هم سجده اُوکړئ».

تشريح: فَصُرِعَ عَنْهُ: صُرِعَ د مجهول صيغه ده يعني د آس نه ګوزار شوې وو.

فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ: يعني د هغهٔ د ښي طرف (پونده‌ئ) نه پوستکې اوريدلې وو (زخمي شوې وو) او نبي ﷺ د آس نه دوه کرته پريوتې وو يو. په مکه کښې د هغهٔ آس مشرکانو تيز

کړے وو او بل په پنځم کال د هجرت باندے په مدینه کښې د آس نه پرېوتے وو د کجورے په ستنه باندے. او دا هغه زمانه ده چه په بالاخانه کښې د بی بیانو نه جدا شوے وو. دا دلیل دے چه نبی ﷺ عالم الغیب نهٔ دے او مالك د ضرر او د نفع نهٔ دے.

## امام چه په ناسته مونځ کوی، مقتدیان به هم کینی

فَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ قُعُوْدًا: پدے روایت کښې دا راغلل چه نبی ﷺ په ناسته مونځ کولو او مقتدیان هم ورسره ناست وو او بیا ئے د سلام نه روستو دا اُوفرمایل: « امام ددے دپاره مقرر شویدے چه د هغه اقتداء اُوشی...... نو کله چه هغه په ناسته مونځ کوی نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ اُوکړئ».

او په بخاریؒ باب الصلاة فی السطوح) کښې د حُمید په روایت کښې د انسؓ نه داسے الفاظ نقل دی: (فصلی بهم جالساً وهم قیام) (یعنی نبی ﷺ هغوی ته په ناسته مونځ اُوکړو او هغوی ولاړ وو)- او د سلام نه روستو ئے ورته دغه مذکوره ارشاد اُوفرمایلو- لیکن پدے دواړو روایتونو کښې اختصار شویدے- تفصیل ددے په روایت د عائشةؓ کښې دے چه بخاریؒ وغیره راوړیدے- هغه داسے چه نبی ﷺ په ناسته مونځ کولو او د هغهٔ نه روستو خلق ولاړ وو نو اِشاره ئے ورته اُوکړه چه کینئ- نو هغوی کیناستل او په ناسته ئے هغوی ته مونځ اُوکړو او بیا ئے دغه ارشاد هم ورته اُوفرمایلو- نو پدے روایت د انسؓ کښې آخری حالت ذکر دے چه نبی ﷺ او قوم دواړو په ناسته مونځ اُوکړو- او په بل روایت د انسؓ کښې چه (وهم قیام) (د مقتدیانو د اُودریدو حالت کښې مونځ کول) ذکر دی نو دا په اول حالت کښې وو او آخری حالت ئے نهٔ دے ذکر کړے او عائشےؓ دواړه حالتونه جمع کړیدی- او دغه شان په روایت د مسلمؒ کښې جابر ﷺ جمع کړیدی-

اِنَّمَا جُعِلَ الْاِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهٖ: یعنی امام دے دپاره مقرر شویدے چه د هغه اقتداء به کولے شی او ددے تفصیل ئے په فاذا صلی قائماً الخ سره بیان کړیدے- نو دا دلیل دے چه مقتدی به تابع وی د امام، د هغهٔ نه به مخکښې کیږی هم نهٔ او د هغه سره به برابریږی هم نهٔ او د هغهٔ نه به په ځائے د اُودریدو کښې هم نهٔ مخکښې کیږی- بلکه د هغهٔ د احوالو لحاظ به ساتی او د هغهٔ په شان کار به کوی د هغهٔ د شروع نه روستو- او د هغهٔ مخالفت به هم نهٔ کوی- چه د هغهٔ نه په ارکانو کښې مقدم شی خو دا خاص دے په ظاهری افعالو پورے او باطنی افعالو ته نهٔ دے شامل لکه کلمات نیت وغیره- امام نوویؒ فرمائی: متابعت د امام صرف په افعال ظاهرو کښې واجب دے ځکه چه پدے حدیث کښې تنبیه په همدے ورکړے شویده ځکه چه دلته ئے

رکوع وغیره ذکر کړه اشاره ده چه نیت کښې اتفاق او برابروالے ضروری نهٔ دے ځکه نیت پکښې ندے ذکر کړے. او هغه په نورو دلائلو خارج شویدے لکه قصه د معاذؓ وغیره پرے دلیل دے.انتهیٰ: او بل دلیل دا هم دے چه پدے حدیث کښې حصر د اقتداء صرف په افعالو کښې شویده نهٔ په تولو احوالو کښې لکه امام بے اودسه وی یا پرے نجاست لګیدلے وی او مقتدی ته د هغے معلومات نهٔ وی نو د مقتدی اقتداء ددے امام پسے جائز ده. په صحیح قول کښې د اقوالو د علماؤ نه.(طرح التثریب ۸٦/۳) والمرعاة)

مسائل: --- ۱- د ضرورت په وخت کله رکن ساقطیږی:

پدے حدیث کښې یوه مسئله دا ده چه د ضرورت په وخت کله نا کله د مانځه رکن هم ساقطیږی لکه دلته قیام فرض دے خو کله چه امام مریض وی په ناسته مونځ کوی یا په کشتۍ کښې وی نو مقتدیان به هم ورسره کینی نو دلته د مقتدیانو نه قیام د امام د تابعدارئ د وجه نه ساقط شو اګرکه مقتدیان په قیام باندے قادر وی. نو دا دلیل شو چه مدرك د رکوع مدرك د رکعت دے. کما مرّ.

۲- المسئلة الثانیة: امام چه کله په ناسته مونځ کوی نو آیا مقتدیانو باندے ناسته لازمه ده او که نه؟ ۱- اهل ظواهر (ابن حزمؒ، داود ظاهریؒ) کما فی المحلی (۱۵۵/۳) اوزاعیؒ او اسحاقؒ او ابن المنذرؒ په ظاهر ددے حدیث باندے قول کوی چه د مقتدیانو دپاره کیناستل ضروری، (واجب) دی اګرکه مقتدیان صحیح وی. مګر صرف که یو مقتدی د امام په اړخ کښې اُودریږی او خلقو ته د امام تکبیر اَوروِی نو د هغه اختیار دے که په ناسته مونځ کوی او که په ولاړه.(نیل الاوطار ۲۰۸/۳) باب اقتداء القادر)

۲- امام احمدؒ پکښې تفصیل کوی فرمائی: کله چه د محلے یو راتب (مقرر) امام په ناسته باندے شروع کړی د وجه د هغهٔ مرض نه چه د هغے د زوال اُمید کیدے شی نو بیا مستحب دا ده چه مقتدیان به ورسره په ناسته مونځ کوی اګرکه په قیام باندے قادر وی او که په ولاړه ئے اُوکړو نو هم جائز ده نو دا حکم استحبابی دے.او امر د وجوب دپاره نهٔ دے.او کله چه یو راتب امام په ولاړه مونځ شروع کړو نو په مقتدیانو لازم دی چه په ولاړه به ورسره مونځ کوی برابره ده که امام ته د ناستے حادثه عارضه شی او که نهٔ. لکه دا په هغه احادیثو کښې راغلی دی چه په هغے کښې د نبی ﷺ مرض الوفات ذکر دے. چه ابوبکر صدیقؓ صحابه کرامؓ ته په ولاړه مونځ کولو او نبی ﷺ راغلو د ابوبکرؓ نه ئے امامت واخستو په ناسته باندے نو نبیﷺ صحابه کرامؓ ته حکم اُونکړو چه تاسو کینئ ځکه زهٔ ناست یم. او همدا قول راجح معلومیږی. لکه دیته علامه مبارکفوریؒ په

(مرعاة) کښې ترجيح ورکړيده۔

نو د احمدؒ په نزد دا حکم په هغهٔ وخت کښې دے چه راتب امام به وی هله به کيناستل د مقتديانو مستحب وی بله دا چه د راتب امام دا مرض به داسې وی چه د زائل کيدو اُميد به ئے وی کـه يـو امـام دائم الـمرض وی نـو دا کـار بـه هميشه نهٔ کوی۔ او بل دا حکم د ناستې اِستحبابی دے۔ او دا هم وائی : چـه کـه امام په ولاړه شروع کړې وی او مينځ کښې کينی نو مقتديان به نهٔ کينی۔

٣-امام شافعیؒ ، ابوحنيفهٔؒ او ابويوسفؒ وائی : د ناست امام پسې د هغهٔ مقتديانو چه قادر وی په قيام – مونځ نهٔ دے جائز مګر په ولاړه۔ او دا يو روايت دے د امام مالك نه چه وليد بن مسلمؒ ترے نقل کړيدے۔ د دوی دليل دا دے چه د ناست امام پسې مونځ د مقتديانو په ناسته منسوخ دے۔ او ناسخ ئے د نبیﷺ مونځ دے په مرض الوفات کښې چه خلق ترے روستو ولاړ وو۔ او ابوبكرؓ هم ولاړ وو۔ لکه دا خبره امام شافعیؒ کړيده او امام بخاریؒ د خپل اُستاذ حميدیؒ نه چه د امام شافعیؒ شاګرد دے نقل کړيده۔ او دلته مصنفؒ هم راوړيده۔ ددے جواب به روستو راشی۔

٤-د امام مالكؒ مشهور قول دا دے چه د قادر مقتديانو د ناست امام پسې مونځ نهٔ په ناسته جائز دے او نهٔ په ولاړه۔ او دا قول د امام محمدؒ نه امام طحاویؒ نقل کړيدے۔ مالکيهٔ وائی : د معذور ناست امام پسې د معذورو مونځ يا دمعذور ناست امام پسې د ولاړو خلقو مونځ دا د نبیﷺ خصوصيت دے ځکه چه د نبیﷺ نه په مانځه کښې مخکښې کيدل او د هغهٔ امام جوړيدل نهٔ دی صحيح، نهٔ د عذر په وجه او نهٔ د غير عذر په وجه۔ ليکن دا خبره د دوی مردوده ده ځکه عبد الرحمن بن عوف پسې نبیﷺ مونځ کړيدے دارنګه ابوبکر صديق پسې ئے کړيدے۔ دارنګه د صحابه کرامؓ نه نقل دی چه هغوی په ناسته خلقو ته مونځ کړيدے لکه د هغوی بيان روستو راځی۔

دلائل احمد : د امام احمدؒ قول راجح دے د وجه د راتلونکو دلائلو نه :

١– يو دليل : دا حديث الباب دے چه پدے کښې قانون کلی ذکر دے (واذا صلی جالساً فصلوا جلوساً اجمعون) ٢– دويم حديث د ابو هريرهٔؓ دے : (انما جعل الامام ليؤتم به وفيه ...... : واذا صلی جالساً فصلوا جلوساً اجمعون) (بخاری ١/١٠١)

٣– دليل حديث د عائشهٔؓ دے (اشتکی رسول اللّٰه ﷺ فدخل عليه ناس من اصحابه يعودونه فصلی رسول اللّٰه ﷺ جالساً فصلوا بصلاته قياماً فاشار اليهم ان اجلسوا فجلسوا فلما انصرف قال : انما جعل الامام ليؤتم به فاذا رکع فارکعوا واذا رفع فارفعوا واذا جلس فصلوا

جلوساً (مسلم ١٧٧/١) ـ (يعني كله چه امام په ناسته مونځ كوي نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ اُوكړئ) -- نو پدے حديث كښې امر راغلى دے (فصلوا) چه د ناست امام پسے به په ناسته مونځ كولے شى)

٤- دليل: حديث د جابرؓ كښې دا دى: (اشتكى رسول الله ﷺ فصلينا وراءه وهو قاعد وابوبكر يسمع الناس تكبيره فالتفت الينا فرآنا قياماً فاشار الينا فقعدنا فصلينا بصلاته قعوداً فلما سلّم قال: كدتم آنفاً تفعلون فعل فارس والروم يقومون على ملوكهم وهم قعود فلا تفعلوا وأتموا بائمتكم ان صلى قائماً فصلوا قياماً وان صلى قاعداً فصلوا قعوداً) (مسلم ١٧٧/١) النسائى (١٣٣/١) وابوداود (٩٦/١)

(يعني مونږ د رسول الله ﷺ سره مونځ كولو چه هغۀ ناست وو او ابوبكر به خلقو ته د هغۀ تكبير اُورولو نو مونږ ته ئے اُوكتل چه مونږ ولاړ وو، اِشاره ئے اُوكړه (كينئ) مونږ كيناستو نو د هغۀ سره مو په ناسته مونځ اُوكړو كله ئے چه سلام اُوګرځولو، وے فرمايل: «تاسو نزدے وئ چه د روم او د فارس والو په شان كار مو كړے وے چه هغوى خپلو بادشاهانو باندے ولاړ وى او بادشاهان ئے ناست وى نو دا كار مه كوئ. بلكه د خپلو امامانو اقتداء كوئ كه هغه په ولاړه مونځ كوى نو تاسو هم په ولاړه او كه هغه په ناسته مونځ كوى نو تاسو هم په ناسته مونځ كوئ») (مسلمؒ).

٥- دليل: عبد الله بن عمرؓ فرمائى: (ان رسول الله ﷺ كان فى نفر من أصحابه فقال: اَلَسْتُمْ تعلمون اَنِّيْ رسول الله ﷺ اليكم؟ قالوا: بلى نشهد انك رسول الله! قال: الستم تعلمون انه من اَطَاعَنِيْ فقد اَطَاعَ الله ومن طاعة الله طاعتى، قال: فان من طاعة الله ان تطيعونى ومن طاعتى ان تطيعوا اُمَرَائَكُمْ فان صلوا قعوداً فصلوا قعوداً) صحيح ابن حبان (٢٧٢/٣) قال شعيب الارناؤوط وحسين سليم اسد: اسناده حسن) (ومسند ابى يعلى، ومشكل الاثار للطحاوى)

(يعني زما د طاعت نه دا ده چه تاسو د خپلو اميرانو تابعدارى اُوكړئ كه هغوى په ناسته مونځ كوى نو تاسو هم ورسره په ناسته مونځ اُوكړئ) (ابوحاتمؒ فرمائى: دے حديث كښې واضح بيان دے چه كله امام په ناسته مونځ كوى نو د مقتديانو مونځ به هم په ناسته وى او دا بعينه د الله هغۀ طاعت دے چه هغه پرے بندګانو ته حكم كړيدے).

٦- دليل: د صحابه كرامو عمل پس د رسول الله ﷺ نه او د هغوى فتوىٰ لكه چه رابه شى.

د احنافو او شوافعو سره دليل نشته سِوىٰ ددے نه چه دا وائى دا حكم منسوخ دے او ديته د امام بخاريؒ ميلان هم دے چه هغه په خپل صحيح كښې د خپل اُستاذ (حميديؒ) نه

نقل کړيدی چه دا حديث (اذا صلی جالساً فصلوا جلوسا) منسوخ دے ځکه دا په پخوانی مرض کښې وو چه ددے نه روستو نبی ﷺ روغ شوے وو او بيا په مرض الوفات کښې نبی ﷺ په ناسته مونځ کولو او خلق د هغه نه روستو ولاړ وو هغوی ته ئے په ناسته حکم اُونکړو لکه دا په روستو حديث د عائشةؓ کښې راروان دے۔ او دا قانون دے چه د نبی ﷺ آخری فعل به اخستے شی لهذا دغه حکم منسوخ شو۔

ليکن دا دليل د ډيرو وجو نه ضعيف دے:

اوله وجه: دا خبره ياد لرل پکار دی چه فعل ناسخ د قول نهٔ کرځی نود (فصلوا جلوساً حکم اګرکه مقدم دے ليکن دا قول دے او د اُمت دپاره قانون کلی دے او عامه تشريع ده او د نبی ﷺ د مرض الوفات عمل فعل دے۔ لهذا قانون کلی څنګه په يوه واقعه جزئيه باندے منسوخ کړے شی۔

صاحبؒ د فيض البارى وائی: د نسخ خبره زړهٔ پورے نهٔ اِنخلی ځکه حديث په ډير اجزاؤ د تشريع عام او ضابطه کليه باندے مشتمل دے نو په مينځ کښې يو جزء ته منسوخ وئيل او نوروته نه وئيل او بيا په واقعه جزئيه سره چه ډير احتمالات لری دا مفضی کيږی اضطراب ته او هيڅ تشفی پکښې نشته۔ او دا چه مونږ په نسخ باندے حمل کړيدے صرف پدے وجه چه د مذهب حفاظت اُوشی ورنه که داسے نهٔ وی نو د دواړو حديثونو جمع حاصليږی په مذهب دا حمدؒ باندے او هيڅ حاجت نسخ ته نهٔ راځی بلکه (احنافو له خو د نسخ خبره نهٔ ده پکار ځکه) احنافو خو په مسئله د استقبال او استدبار کښې حديث د ابو ايوبؓ واخستو او دائے اُووئيل چه پدے کښې تشريع عام ده نو ددے په خلاف ئے په جزئی واقعو هيڅ باك اُونهٔ کړو او دائے اُووئيل چه دا داسے واقعات دی چه حالت ئے واضح نهٔ دے نو دغه شان دِ دلته هم اُووائی، د دواړو په مابين کښې هيڅ فرق نشته چه داسے اُووائی: فصلوا جلوساً حکم تشريع عام ده او حديث د مرض الوفات يوه جزئی واقعه ده۔

(مرعاة المفاتيح ٤/ ٨٩)

هاؤ! صحيح ده، دا نسخ به هله ثابتيدلے چه يو قولی حديث موجود وے چه په هغے کښې د مقتديانو د ناستے نه نهی راغلے وے۔ او حال دا چه پدے باره کښې هيڅ قسم صحيح روايت نشته او کوم اثر د شعبیؒ چه عبد الرزاق (٢/ ٤٦٣) ذکر کړيدے مرفوعاً: (لا يؤمن رجل بعدی جالساً) (ما نه روستو دِے څوك په ناسته امامتی نهٔ کوی) نو يو خو دا واضح نهٔ دے۔ بل دا ضعيف مرسل دے۔ په سند کښې ئے جابر جعفی دے۔

امام ابو حنيفةؒ فرمائی: (ما رأيت اکذب من جابر الجعفی – طبقات الحفاظ للسيوطی

الطبقة الرابعة) او صحيح مرسل معتبر نهٔ دے مګر په شرطونو، پاتے لا دا چه ضعيف هم وی۔ امام ابن حبان پدے روایت باندے سخت رد کرپدے۔ اُوګوره صحيح ابن حبان (٢٧٢/٣)

او کومو علماؤ چه دا وئيلی دی چه د (اذا صلی جالساً) دا معنیٰ ده چه په تشهد کښې د امام سره کينئ او اختلاف ترے مه کوئ نو ابن دقيق العيدؒ وائی : سیاق د حدیث ددے معنیٰ نه انکار کوی او دا بعيده معنیٰ ده، او که دغه معنیٰ وے نو بيا به ئے داسے وئيلی وے : (واذا جلس فاجلسوا) لکه د مخکښې په شان اذا رکع فارکعوا) نو هر کله ئے چه د مخکښې نه ئے الفاظ جُدا کړل او داسے ئے اُوفرمايل : (اذا صلی جالساً فصلوا جلوساً) ظاهره شوه چه ددے نه مراد ټول مونځ دے۔ او ددے تائيد دا حديث د انسؓ دے چه (فصلينا وراء ه قعوداً) (چه مونږ د نبی ﷺ پسے په ناسته مونځ اُوکړو) فتدبر۔

٢- دويمه وجه : په حديث د جابرؓ کښې علت هم ذکر دے چه نبی ﷺ اُوفرمايل :« نزدے وئ چه تاسو د فارس او روم والو په شان کار کړے وے» يعنی چه امام ناست وی او مقتديان ورپسے ولاړ وی نو دا خو د روم او فارس (کفارو) سره مشابهت دے، لهذا هر کله چه علت مشابهت شو نو اُوس دا علت نهٔ منسوخ کيږی۔

٣- بله وجه دا ده چه په دغه حديث د عائشهؓ کښې په صريح صحيح متصل حديث کښې دا نهٔ دی ثابت چه صحابه کرامؓ د مرض الوفات په مانځه کښې د نبی ﷺ نه روستو په ولاړه مونځ کړے وی۔ بلکه کوم روايت د عائشهؓ چه نصب الرايه (٤٢/٢) کښې ذکر دے چه (والناس يصلون بصلاة ابی بکر والناس قيام خلف ابی بکر) چه خلق د ابوبکر نه روستو ولاړ وو) نو دا په کتاب المعرفة د بيهقی (٣٥٥/٢) کښې راغلے دے ليکن معلق دے د ابراهيم نخعیؒ نه، او هر چه مُسند حديث دے نو په هغے کښې د مقتديانو د قيام ذکر نشته۔ او حافظ ابن حجرؒ چه د امام شافعیؒ نه دا خبره نقل کړيده چه د مقتديانو قيام په روايت د (ابراهيم نخعیؒ عن الاسود عن عائشة) کښې راغلے دے او دا ئے په مصنف د عبد الرزاق کښې د ابن جريج عن عطاء نه صراحةً موندلے دے ۔نو يو خو حديث د عائشهؓ معلق دے او روايت د عطاء مرسل دے امام احمدؒ فرمائی : په مرسلاتو کښې د حسن او عطاء نه ډير ضعيف مرسلات نشته ځکه دا دواړه د هر چا نه اخذ کوی۔

علی بن المدينیؒ فرمائی : (کان عطاء يأخذ من کل ضرب) (عطاء به د هر قسم نه اخذ کولو)۔ يحيی بن سعيد القطان فرمائی : (مرسلات مجاهد احب الينا من مرسلات عطاء بکثير، کان عطاء يأخذ من کل ضرب) (ميزان الاعتدال ٧٠/٣) تهذيب التهذيب (١٨٢/٧)

سير اعلام النبلاء (۸۶/۵)

بلکه ابن حزمؒ او ابن حبانؒ فرمائي : چه د ابوبکرؓ نه ما سوئ د صحابه کرامؓ په ولاړه مونځ کول د نبي ﷺ پسے بالکل نۀ دي ثابت۔ او ابن حبانؒ ورله په دليل کښې د جابرؓ حديث کوم چه رقم (۵) کښې تير شو (فعل فارس والروم والا) ذکر کړيدے چه دا په مرض الوفات کښې وو ځکه چه پدے کښې د ابوبکر تکبير ذکر دے او دا هله کيږي چه خلق په مسجد کښې وي او ګڼړ وي او هر چه مخکنے مرض وو نو هغه خو د عائشےؓ په بالاخانه کښې وو۔ يو څو کسان صحابه کرامؓ وو۔ مګر حافظ ابن حجرؒ وئيلي دي چه دا په اول مرض کښې وو، نۀ په مرض الوفات کښې۔

او د ابن حبانؒ د خبرے تائيد په دغه مرسل روايت د عطاء کښې هم شته چه په هغے کښې ورسره متصل داسے راغلي دي : (وصلى الناس وراء ه قياماً فقال النبي ﷺ : لو استقبلت من امرى ما استدبرت ما صليتم الا قعوداً، فصلوا صلاة امامكم ما كان ان صلى قائماً فصلوا قياماً وان صلى قاعداً فصلوا قعوداً) نو دا روايت د ابن حبان خبره قوي کوي چه دا په مرض الوفات کښې وو۔

۴- وجه : علامه سنديؒ په حاشيه د بخاري (۸۸/۱) کښې بله وجه دا ذکر کړيده چه پدے حديث د عائشة کښې کوم چه په مرض الموت کښې دے هيڅ دليل نشته چه صحابه کرام ولاړ وو آؤ، دا ثابته ده چه ابوبکر ولاړ وو او شايد چه هغه د ضرورت د آواز آورولو دپاره ولاړ وو۔ او دا خبره دے نۀ وئيلے کيږي چه په بعض رواياتو کښې راغلي دي چه صحابه کرامؓ ولاړ وو ځکه بيا خو مدار د نسخ په دغه رواياتو شو نه په هغه روايت کوم چه صاحب الصحيح يا اصحاب الصحاح ذکر کړيدے نو بيا به په دغه رواياتو کښې کتلے شي چه آيا په هغے کښې ددے حديث (فصلوا جلوساً) په شان قوي حديث شته او که نۀ؟ ليکن دوي چه کوم روايات ذکر کړيدي نو هغۀ ددے حديث سره په قوت کښې برابر نۀ دي بلکه ورته رانزدے هم نۀ دي لهذا په دغه رواياتو سره ددے حديث نسخ نشي کيدے۔ (ځکه د نسخ شرط پکښې نشته) او کوم خلق چه دا خبره کوي چه د ابوبکرؓ په امامت کښې خلق د ابوبکرؓ سره ولاړ وو کله چه نبي ﷺ راغلو او کيناستو نو څوک چه وائي صحابه نۀ دي ولاړ نو هغه دے دليل پيش کړي نو دا خبره ددۀ صحيح نه ده ځکه څوک چه د نسخ دعوئ کوي نو هغۀ به دليل پيش کوي چه آؤ صحابه کرامؓ ولاړ وو ځکه اصل خو دا ده چه مخکنے حکم صحابه کرامؓ ته شوے وو چه ماپسے به د روم او فارس والو په شان نۀ اُودريږئ) نو ددے حکم د تقاضا مطابق صحابه کرامؓ ناست دي۔ انتهىٰ بتغيريسير)

۵- بله وجه دا ده چه دا قانون دے چه نسخ ته رجوع به هله کولے شي چه جمع د دواړو

حدیثونو متعذر شی او دلته هیڅ تعارض نشته بلکه د امام احمدؒ په قول دواړه جمع کیدے شی۔ چه دا په دوه حالتونو بناء شی څنګه چه امام احمدؒ وئیلی دی۔

٦- بله وجه دا ده چه پدے حکم باندے خلور صحابه کرامؓ عمل کړیدے او پدے باندے فتوے ورکړیدی لکه جابر بن عبد الله ٢- ابو هریره ٣- اسید بن حضیر ٤- او قیس بن قهد رضی الله عنهم ـ لکه د هغوی بیل بیل روایت په ابن ابی شیبه او عبد الرزاق کښی دے او پنځم قیس بن مهران۔ ٦- او انس بن مالك كما ذكره ابن بطال عن عبد الرزاق (طرح التريب (٨٦/٣) وفتح البارى (١٣٧/٢) او فتاوى الدين الخالص (٢٣٩/٥) کښی اُوګورئ۔

امام ابن حبانؒ او ابن حزمؒ دواړو پدے مسئله کښی د اجماع دعوٰی کړیده۔

او ابن حبانؒ فرمائی : ددے صحابه کرامؓ مُخالف نۀ دے موجود لهذا پدے باندے اجماع د صحابه کرامو ده۔ صحيح ابن حبان (٢٧٢/٣) دیته اجماع سکوتی وائی۔ دارنګه د هغوی موافقت بیا تابعینو هم کړیدے۔لکه جابر بن زید او ابو الشعثاء او عطاء (رحم الله الجمیع) پدے فتوٰی ورکړیده او د هیڅ یو تابعی نه ددوی خلاف نۀ دے ثابت۔ ګویا کښی د تابعینو هم ددے په اجازت باندے اجماع ده۔ نو د هغه چا خبره خطاء شوه چه وائی کیدے شی دغه صحابه کرامؓ ته نسخ نۀ وی رسیدلی۔

امام ابن حبانؒ لیکی : اول پدے امت کښی پدے مسئله کښی اختلاف مغیره بن مقسم کړیدے چه دا د نخعی شاګرد وو او د هغه نه حماد واخستو او بیا د هغه نه ابو حنیفهؒ واخستو او بیا د ابو حنیفهؒ نه د هغهٔ اصحابو (شاګردانو) دا مذهب خور کړو۔

او د ابوبکر ﷺ اُودریدل د ضرورت په وجه وو چه هغهٔ خلقو ته تکبیر آورول وو۔

او صاحب مرعاة (٩١/٤) نور هم ډیر وجوه د بطلان د نسخ دپاره ذکر کړیدی۔ او ددے مسئلے تفصیل علامه ابن حزمؒ په محلیٰ (١٥٥/٣) او امام ابن حبانؒ په صحیح ابن حبان (٢٧٣/٢) کښی کړیدے۔

خلاصه : لهذا ثابته شوه چه امام کله معذور وی او په ناسته مونځ کوی نو مقتدیان به ورسره کینی اګرکه د هغوی ضرورت نۀ وی او همدا بعینه د سنت موافق طریقه ده۔

## فوائد الحديث الباقية :

١- د امام متابعت واجب دے نو د امام د تکبیر تحریمه د فراغت نه پس به تکبیر کوی، که د امام د فراغت نه مخکښی ئے شروع اُوکړه نو مونځ ئے صحیح نۀ دے۔ څکه امام مانځه ته نۀ داخلیږی مګر پس د فراغت د تکبیر نه نو د هغه پسے اقتداء په مینځ د هغه کښی، دا اقتداء

ده د هغه چا پسې چه په مانځه کښې نۀ وی۔ په خلاف د رکوع او سجدې وغیره نه چه امام په رکوع کښې شروع شي نو روستو به مقتدي رکوع ته ورځکته کیږي۔ که د هغه سره یو ځائې ځکته شي یا ترې مخکښې شو نو ګناهګار دے اګرکه مونځ ئې باطل نۀ دے۔

٢- په آسونو باندې سوریدل جواز لري او د هغې په اخلاقو تجربه کول او که څوك د هغې نه پریوځي نو د هغه دپاره به اقتداء موجوده وي۔

٣- نبي ﷺ باندې هغه بیماریانې او تکلیفونه راتلې شي کوم چه عام بشر ته رسیږي او په دې کښې د هغۀ په مرتبه کښې هیڅ نقصان نۀ راځي بلکه مرتبه ئې پرې نوره هُم زیاتیږي۔ ٤- کله چه انسان زخمي شي یا د آس نه پریوځي یا اکسډنټ اُوکړي نو د هغه بیمار پُرسي کول پکار دي۔ ٥- د عجز په صورت کښې په ناسته مونځ جائز دے۔

٦- کله چه امام مریض وي او خلق د هغۀ تپوس له ورشي او د مانځه وخت شي نو په کور کښې هم مونځ کولے شي۔ دلته صحابه کرام د نبي ﷺ تپوس له راغلي دي او نبي ﷺ ورته په ناسته مونځ کړیدې او هغوی ئې هم ځان سره کینولي دي۔

٧- مسئله : بعض خلق ددې حدیث نه غلط استدلال کوي چه که امام رفع الیدین، آمین بالجهر، جلسه د استراحت نۀ کوي نو مقتدي به ئې هم نۀ کوي ځکه «انما جعل الامام لیؤتم به» راغلي دے۔ لکه دا خبره عبد الله عزام کړیده او ددې حواله ئې په شیخ البانیؒ باندې ورکړې ده۔

لیکن دا خبره غلطه ده د یوځو وجونه او هغۀ دا دي چه : ١- د دغه اعمالو ثبوت په سنت کښې ثابت دے لهذا که امام په دغه عمل نۀ کوي نو مقتدي ئې کولے شي ځکه چه نبي هر چا ته اجازت ورکړے دے د هغې د کولو۔ او دلته اقتداء په ارکانو کښې ده نۀ په شخصي اعمالو کښې۔ او په دې کښې د امام مخالفت نۀ راځي لکه مثلاً یو انسان په سجده کښې یوه دعاء وائي او امام بله وائي او امام دعاء د استفتاح یوه دعاء وائي او مقتدي بله وائي دارنګه مقتدي رفع الیدین اُوکړي، او امام ئې نۀ کوي نو دا د هغۀ مخالفت نۀ دے بلکه دا به مخالفت هله وے چه نبي پکښې اجازت نۀ وے ورکړے۔

٢- دارنګه دا ثابته شویده چه د امام مونځ جدا دے او د مقتدي مونځ جدا دے نو که امام بعض سنت اعمال په مانځه کښې نۀ کوي نو مقتدي له ئې کول پکار دي او په ارکانو او انتقالاتو کښې به ترې مخالفت نۀ کوي۔

---

٥- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ، جَاءَ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ، فَقَالَ: مُرُوا

اَبَابَكْرٍ اَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ، فَصَلّٰى اَبُوْبَكْرٍ تِلْكَ الْاَيَّامَ. ثُمَّ اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَجَدَ فِيْ نَفْسِهٖ خِفَّةً فَقَامَ يُهَادٰى بَيْنَ رَجُلَيْنِ وَرِجْلَاهُ تَخُطَّانِ فِي الْاَرْضِ، حَتّٰى دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَلَمَّا سَمِعَ اَبُوْبَكْرٍ حِسَّهٗ، ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ، فَاَوْمَأَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنْ لَا يَتَأَخَّرَ، فَجَاءَ حَتّٰى جَلَسَ عَنْ يَسَارِ اَبِيْ بَكْرٍ، [وَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ] يُصَلِّيْ قَائِمًا، وَكَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ قَاعِدًا، يَقْتَدِيْ بِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَالنَّاسُ يَقْتَدُوْنَ بِصَلَاةِ اَبِيْ بَكْرٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لَهُمَا : يُسْمِعُ اَبُوْبَكْرٍ النَّاسَ التَّكْبِيْرَ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائي: كله چه رسول الله ﷺ ډير زيات بيمار وو، نو (يوه ورځ) بلال راغلو هغهٔ ته ئې د مانځه خبر وركولو (چه يا رسول الله ! د مانځه وخت برابر دے) نو نبي ﷺ اُوفرمايل : «ابوبكر ته حكم اُوكړئ چه هغهٔ خلقو ته مونځ اُوكړي، نو ابوبكر صديقؓ په دغه ورځو كښې (اُوولس ) مونځونه خلقو ته اُوكړل۔ بيا (يوه ورځ) نبي ﷺ په خپل نفس كښې خفت (چُستي) محسوس كړه نو هغهٔ (د مانځه دپاره مسجد ته) راپاڅيدو چه د دوه سړو ترمينځ راخكلے شو (چه د هغوی په اُوګو باندے ئے لاس ايخودے وو) او (د كمزورتيا په وجه) د هغهٔ خپې (مباركې) په زمكه باندے كرښے راخكلے۔ تردے چه مسجد ته داخل شو نو كله چه ابوبكر صديقؓ د هغهٔ د راتلو آواز محسوس كړو، نو شروع شو چه روستو كيدو (دے دپاره چه رسول الله ﷺ امامت اُوكړي) نو رسول الله ﷺ ورته اشاره اُوكړه چه نهٔ دِے روستو كيږي، نو نبي ﷺ راغلو تردے چه د ابوبكرؓ كس طرف ته كيناستو نو ابوبكر صديقؓ به په ولاړه مونځ كولو او رسول الله ﷺ به په ناسته مونځ كولو، ابوبكرؓ به د رسول الله ﷺ د مانځه اقتداء كوله او خلقو به د ابوبكر صديقؓ د مانځه اقتداء كوله۔ (بخاريؒ او مسلمؒ) او په يو روايت د دواړو كښې دی: ابوبكر صديقؓ به خلقو ته تكبير اَورولو(ځكه چه رسول الله ﷺ د كمزورتيا په وجه آواز خلقو ته نشو رسولے)۔

تشريح : ثَقُلَ : د كرم نه دے مصدر ئے ثِقَلٌ دے لكه د صِغَرٌ په شان، په معنیٰ د درنيدو سره دلته ترے مراد مريض كيدل او آخري درجے ته ضعف رسيدل دی۔

فَصَلّٰى اَبُوْبَكْرٍ تِلْكَ الْاَيَّامَ : اولس (١٧) مونځونه ابوبكر اُوكړل۔ دا امامتِ صغریٰ اهل سنتو دليل ګرځولے دے په خلافت د ابوبكر صديق باندے پس د وفات د نبي ﷺ نه لكه چه دا خبره علي بن ابي طالبؓ ذكر كړے وه۔ چه نبي ﷺ مونږ له ابوبكر په مانځه كښې نائب مقرر كړو نو مونږ به ئے د خپلو دنياوی كارونو دپاره ولے نهٔ مقررو؟۔

وَجَدَ فِيْ نَفْسِهٖ خِفَّةً : يعني نبي عليه السلام په بعض دغه ورځو كښې په نفس كښې

طاقت اُوموندو ظاهر دا ده چه دا د جمعرات ورځ وه او د ماسپښين مونځ وخت وو د وفات نه پنځه ورځې مخکښې حالت وو۔
يُهَادٰى : مهادادة ديته وائي چه د دوه کسانو په مينځ کښې روان وي په هغوي باندې ئې تکيه اچولې وي او مزل کښې ئې کوږ والے وي د وجه د ډير ضعف نه۔يو لاس ئې د يو کس په اوګه وي او بل لاس د بل په اُوګه۔
بَيْنَ رَجُلَيْنِ : ددې رجلين نه عباس بن عبد المطلبؓ او علي بن ابي طالبؓ مراد دي لکه فصل ثالث کښې راځي۔په روايت د ابن حبان کښې باسناد حسن دي : چه د بريرةؓ او نُوبَه په مابين کښې راووتو۔ امام نوويؒ د دواړو تطبيق داسې کړيدې چه د کوټې نه مسجد ته ددې دواړو په مابين کښې راوتے وو او بيا ترې عباسؓ او عليؓ اُونيولو۔او په مسلم کښې دي چه د فضل بن عباسؓ او عليؓ په مابين کښې وو نو دا په هغه حالت کښې چه د ميمونې د کوټې نه د عائشېؓ کوټې ته رانقل کيدو۔ او مينځ تعارض پکښې نشته والحمد لله۔ يا واقعات مختلف دي۔
جَلَسَ عَنْ يَسَارِ اَبِيْ بَكْرٍ : دا د امام ځائے دے۔ او دا دليل دے چه نبي ﷺ پدې حالت کښې امام جوړ شوځکه چه امام سره که مقتدي اُودريږي نو ښي طرفته به اُودريږي او امام به ګس طرفته وي۔
فوائد الحديث : ١-امام لره د مانځه خبر ورکول جائز دي او دا په تثويب کښې نۀ داخليږي۔ ٢- په امامت کښې اَعْلَم مقدم کول هم جواز لري کله چه څۀ ناځه قرائت ورته ياد وي۔ ٣- رسول الله ﷺ بَشَر دے، عجز پرے راغلے دے، د ځان نه ئې نشي دفع کولے نو د مشرکانو نه به څۀ دفع کړي۔
٤-(فاومأ) په همزې سره۔ دے نه معلومه شوه چه د بهر نه فتح ورکول هم جائز دي۔
٥- د ابوبکر چپ طرفته اُودريدو نه معلومه شوه چه کله د مقتدي نه امام جوړ شي او امام نه مقتدي نو خيرې دے کله چه رکعت نۀ وي شوے او دا کار هله پکار دے چه د مسجد امام راتب وي او افضل وي او دلته د ابوبکر خضوع ده چه روستو شو دا د مشرانو ادب او احترام دے۔ -- ٦- ابوبکر دلته د امر په ځائے د ادب نه کار اخستے دے نو داسې مقام کښې به (الادب فوق الامر) باندې عمل وي۔
٧-که ځائے تنګ وي نو د امام سره اُودريدل هم جواز لري۔
٨- کله چه د امام آواز باقي مقتديانو ته نۀ رسي نو د مکبر دپاره جائز دي چه په جهر سره تکبير اُوکړي چه نورو ته آواز اُورسوي۔
٩- د مکبر د آواز تابعداري جائز ده او د آواز آورونکي او آوريدونکي دواړو مونځ صحيح

دي۔ او پدې کښې مالکيه خلاف کوي او تفصيلات بيانوي چه هيڅ دليل پرې نشته۔
۱۰ – د مقتدي دپاره د امام د مَوْقِف (ځائې د اُودريدو) نه مخالفت کول هم جائز دي چه کله ضرورت وي لکه دهغهٔ آواز خلقو ته رسوي دلته ابوبکر ولاړ دے او نبي ﷺ ناست دے۔
۱۱ – د جماعت تاکيد پکښې ذکر دے چه په دومره سخت حالت کښې نبي ﷺ بيا هم جماعت ته حاضريږي اګرکه مرض سبب دے دپاره د پريخودلو د جماعت۔ طبريؒ وائي: پدے کښې تنبيه ده روستو امامانو ته چه په اَدنیٰ عذر سره جماعت ترك نهٔ کړي۔ او نبي عليه السلام په داسې حالت کښې هم ځان معذور اُونهٔ ګڼړلو او مسجد ته راروان شو۔
او په دے کار باندے سلف صالحينو هم عمل کړيدے ★– د ربيع بن خيثمؒ باره کښې دي : دهٔ ته فالج رسيدلے وو او د دوه کسانو په مابين کښې به مسجد طرفته راروان کړے شوے وو، چا ورته اُووئيل : تهٔ خو معذور ئے، (په تا باندے د جماعت پابندي نشته) نو هغهٔ به فرمايل : صحيح ده، ليکن زهٔ د مؤذن نه آورم چه حي الصلاة حي الفلاح وائي، او چا چه دا واوريدله نو هغهٔ دے مانځه ته حاضر شي اګرکه په ګونډو او ټُليدو سره وي۔
★ – ابوعبد الرحمن السلميؒ به مريض وو او مسجد ته به وړے شو۔
★– سفيان فرمائي: سويد بن غفلهٔ د يو سل شپږ ويشتو (۱۲٦) کالو په عمر وو او بيا به هم (مسجد ته) د مانځهٔ دپاره تلو۔ ★– ابو اسحاق الهمدانيؒ به د دوه کسانو ترمينځ راخکلے شو او مسجد ته به روان کړے شوے وو کله چه به د مانځه نه فارغ شو نو خپله به نشو پاڅيدلے تردے چه بل چا به پاڅولو۔ ★– سعيد بن المسيبؒ فرمائي: د ديرشو کالو نه مؤذن اذان نهٔ دے وئيلے مګر زهٔ په مسجد کښې يم۔ (شرح البخاري لابن بطال جزء۳٦۲/۳)
۱۲ – فضيلت د ابوبکر صديقؓ په نورو صحابه کرامؓ باندے چه نبي ﷺ دهٔ کښې اَهليّت ليدلو ځکه ئے دا د صحابه کرامؓ امام جوړ کړو او پدے کښې اشاره ده ددهٔ خلافت ته۔
۱۳ – بعض مقتديان د بعضو پسے اقتداء کولے شي۔ لکه قول د عائشهؓ دے چه ابوبکر د نبي ﷺ پسے اقتداء کوله او مقتديانو د ابوبکرؓ د مانځهٔ اقتداء کوله۔ اګرکه پدے کښې بعض علماء وائي چه دلته ابوبکر خلقو ته آواز رسولو نو د هغهٔ د آواز اقتداء وه باقي نيت د اقتداء د نبي ﷺ پسے وو صرف دا رهنما وو۔
۱٤ – ابوبکر صديق پدے رضا نهٔ وو چه د نبي ﷺ امام شي لکه نبي ﷺ چه کله په بني عمرو بن عوف (اهل قباء) کښې د يو جنګ کښې د اصلاح دپاره لاړو او کله چه بيرته راغلو نو بلال ابوبکر ته د جماعت کولو درخواست اُوکړو، کله چه نبي عليه السلام راغلو ابوبکر په مانځه کښې مشغول وو نو خلقو ابوبکر ته لاسونه پړقول شروع کړل کله

چه ابوبکر اُوکتل نو روستو کیدو نو نبی علیه السلام ابوبکر ته اشاره اُوکړه چه مونځ خلقو ته اُوکړه۔ مه روستو کیږه نو هغه الحمد لله اُووئیله او روستو شو او نبی علیه السلام جَمعه اُوکړه بیا ترے روستو نبی علیه السلام تپوس اُوکړو ته ولے روستو شوے کله چه ما تاته اِشاره اوکړه نو هغه اُوفرمایل : (ماکان ینبغی لابن ابی قحافة ان یصلی بین یدی النبی ﷺ) (بخاری ٣٧٠/١ کتاب الصلح) ۔(د ابوقحافه ځوی له څهٔ پکار ! چه د نبی ﷺ نه مخے ته مونځ کوی)

١٥- احناف او شوافع ترے دا استدلال کوی چه مقتدیان ولاړ دی او امام ناست دے۔ لیکن جواب دا دے چه د مقتدیانو اُودریدل صراحةً په حدیث کښ نشته۔ بلکه صرف د ابوبکر صدیق اُودریدل صراحةً راغلی دی۔

١٦- د عاجز امام امامتی قادرینو ته جائز ده۔ خلافاً للمالکیة وقد تقدم۔

١٧- پدے کښ اختلاف دے چه کله نبی ﷺ راغلو نو آیا ابوبکر صدیقؓ په خپله امامتئ باقی پاتے شو او که نبی ﷺ امام جوړ شو۔ راجح دا ده چه ابوبکر صدیقؓ مقتدی شو او امامت نبی ﷺ ته نقل شو۔ اوکومو روایاتو کښ چه دا راغلی دی چه ابوبکر امام وو نو هغے کښ بعض ضعیف دی او بعض صحیح دی مگر په هغے کښ راویانو تصرف د الفاظو کړیدے۔ د ابوبکر اول حالت پکښ ذکر شویدے او په صحیحینو کښ صرف د امامت د نبی ﷺ تذکره شویده او دا متعدد واقعات نهٔ دی لکه څنګه چه ابن حبانؒ، بیهقیؒ او ابن حزمؒ ددے قائل دی۔ بلکه یو مونځ دے څکه په مرض الموت کښ نبی ﷺ په مسجد کښ صرف دا یو مونځ کړیدے۔ کما قال الحافظ ابن حجر نقلًا عن الامام الشافعیؒ او دا قول ابوالحسن المبارکفوریؒ په (مرعاة المفاتیح ٩٤/٤) کښ تفصیلًا راجح کړیدے وکذا البسام فی توضیح الاحکام (٢٥٥/٢)۔

## آیا د امامت په دوران کښ امامت کښ تغییر کول جائز دی؟

١٨- پدے کښ اختلاف دے چه آیا د مانځه په دوران کښ امامت کښ تغیر کول جائز دی؟ یعنی یو امام مونځ شروع کړے دے او بل راغلو نو آیا دغه راتلونکے شخص امامتی اخستے شی لکه دغه مخکنی صورت کښ نبی ﷺ امامتی اخستے ده؟ نو پدے کښ علامه ابن عبد البرؒ فرمائی : چه د علماؤ پدے اجماع ده چه مذکوره صورت د رسول الله ﷺ د خصائصو نه دے یعنی بل چا له دا جائز نهٔ ده چه دغه شان په امامت کښ تغیر اُوکړی۔ لیکن امام شافعیؒ پدے کښ اختلاف کړیدے او وئیلی ئے دی چه د مذکوره

صورت په شان امام او اقتداء جائز ده۔

۱۹ – کشرانو له پکار دی چه کله مشر راشي او جَمعه لا ولاړه نهٔ وي چه هغهٔ ته په صف کښې ځائے ورکړي یا خپله راروستو شي۔ او د غوره انسان یا مشر قدر او اکرام اُوکړي۔

۲۰ – اشاره قائمقام د نطق (خبرو) ده او نبیﷺ په اشاره باندے اِکتفاء اُوکړه پدے کښې دا احتمال شته چه یا ئے د آواز د کمزورتیا په وجه کړے وي یا دا چه پدے کښې تنبیه ده چه څوك په مانځه کښې وي نو د خبرو په ځائے هغهٔ ته اشاره کول ډیر اولیٰ او مناسب دی۔

---

۶– وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اَمَا یَخْشَی الَّذِیْ یَرْفَعُ رَأْسَهٗ قَبْلَ الْإِمَامِ اَنْ یُّحَوِّلَ اللهُ رَأْسَهٗ رَأْسَ حِمَارٍ». مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول اللهﷺ اُوفرمایل : «آیا نهٔ یَریږی (یعنی اُوډِ یَریږی) هغهٔ شخص چه د امام نه مخکښې سرپورته کوی ددے نه چه الله به ددهٔ سر د خرهٔ د سر په شان اُوګرځوی»۔ (بخاریؒ و مسلمؒ)

## د امام نه مخکښې سر پورته کولو کښې شکل مسخ کیدل حقیقي دی که مجازی؟

تشریح : اَمَا یَخْشَی :همزه استفهامیه او ما نافیه ده او دا استفهام د انکار دپاره دے یعنی آیا نهٔ یریږی، یعنی یَره ورله پکار ده۔ بیا ددے مطلب دا دے چه څوك دا کار کوی نو هغهٔ ددے مستحق دے چه شکل ئے مسخ شي او دا ضروری نهٔ ده چه خامخا به دا عذاب ورته رسی۔ نو که الله ئے ترے اَړوی دا به د الله مَحض فضل وی، ورنه دا انسان د شکل د بدلیدو مستحق دے۔

نو پدے سره تاویل د ابن دقیق العیدؒ رد کیږی چه هغه وائی دا په حقیقت نهٔ دے حمل ځکه چه ډیر خلق د امام نه مخکښې سر اُوچتوی او بیا هم نهٔ مسخ کیږی۔

بل روایت کښې ورسره «صورته صورة حمار» هم ذکر دے۔او په روایت د ابن حبان کښې دی : «ان یحول الله رأسه رأس کلب» (سر به ئے د سپی شی) بل روایت کښې «وجهه وجه حمار» راغلیے دے۔ او دا یا په ظاهر حمل دے او دا د هغهٔ نورو اَحادیثو سره منافات نهٔ لری چه دا اُمت به نهٔ مسخ کیږی ځکه هغه په مجموعی طور باندے نشته او شخصی عذابونه راتلیے شي لکه حدیث کښې دی : (ویمسخ آخرین قردة و خنازیر الی یوم القیامة) (بخاری فی المغازی) (تر قیامته پورے به الله څهٔ کسان مسخ کوی شادوګان او خنزیران به ترے جوړوی) پدے اُمت کښې به مسخ او قَذف وی او دا به په منکرین د تقدیر کښې وی۔ددے

وجه نه بعض حواشی او شروحو والو ته دا شك واقع شویدے نو ظاهری معنیٰ ئے نهٔ ده مراد کړے بلکه وائی : معنوی مسخ مراد ده چه زړهٔ به ورله الله بل طرفته واړوی او کم عقل به ئے کړی څکه خرموصوف دے په بَلادَت باندے۔

لیکن راجح دا ده چه دا حمل دے په حقیقت باندے او پدے امت کښ هم مسخ راتلے شی او ډیرو خلقو باندے چه نهٔ راځی نو دا د الله مَحْض احسان دے۔

## د شکل بدلیدو عجیب واقعه

او ددے په باره کښ ملا علی القاریؒ یوه واقعه نقل کړیده چه بعض محدثین دمشق ته د یو مشهور شیخ خواته د تعلم الحدیث (د حدیث د زدهٔ کړے) دپاره راغلو۔نو شیخ ئے اُوموندلو چه د پردے نه شاته به ئے دهٔ ته حدیثونه وئیل، او مخ به ئے ورته نهٔ ښکاره کولو کله چه ددهٔ وخت د هغه سره اُوګد شو او ددهٔ حرص ئے په احادیثو اُولیدو نو پرده ئے لرے کړه شاګرد چه اُولیدل تعجب ئے اُوکړو نو اُستاذ ورته اُووئیل : اے بچیه ! اُویَریږه، دا حال د هغهٔ چا دے چه د امام نه مخکښ ځی څکه ما باندے چه کله دا حدیث راتیر شو نو ما بعید اُوګنړلو او د امام نه مخکښ لاړم نو څکه راسره دا کار اُوشو۔

ملا علی القاریؒ وائی : شاید چه دا کار ددهٔ سره پدے وجه اُوشو چه دهٔ استبعاد کړے وو، ورنه په نفس تقدم د امام نه دا کار نهٔ دے شوے۔بیا وائی ډیره ظاهره دا ده چه دا سخت وعید دے او ددے حقیقت به یا په برزخ او قبر کښ ښکاره کیږی یا په اُور کښ۔ چه الله به ده له په قبر کښ یا جهنم کښ دغه شان شکل ورکوی۔

او دا هم ممکن ده چه دا مسخ متعلق وی د عدم خشیت سره چه مقارن وی د مخالفت سره۔ یعنی یو انسان د امام مخالفت هم کوی او ورسره یَریږی هم نهٔ نو پدے سره د ابن دقیق العیدؒ قول رد شو۔انتهیٰ۔ (مرقاة المفاتیح ۲۵۳/٤)

مګر پدے کښ راجح دا ده چه دا په خپل حقیقت بناء دے او بلادت او کم عقلتیا پدے کار کښ پخپله شته۔ او دارنګه د ابن حبانؒ روایت چه په هغے کښ ئے د سپی مثال ورکړے دے نو پدے سره مجاز ختم شو څکه چه دوی کوم مناسبت ذکر کړیدے د خر او ددے سرې په مابین کښ هغهٔ اُوس نشته۔ دارنګه دا په صیغه د مستقبل راغلے دے که صرف بلادت مراد وے نو داسے به ئے وئیلی وے (فرأسه رأس حمار) او د قبر او جهنم حال خو مونږ ته معلوم نه دے هغے کښ به هم وی او په حدیث کښ د هغے څه قرینه هم نشته۔ لهذا دا په دنیا کښ هم مراد دے نو حدیث کښ ډیر وعید پروت دے چه ځان ساته چه تا نه دا کار

اُونشی هسې نه چه مخ او شکل دِې بدل نشي۔
نو حدیث دلیل دې چه د امام نه مخکښې سر پورته کول حرام دي او ددې په حکم کښې د امام نه رکوع ته مخکښې تلل او تولو انتقالاتو کښې تقدیم کول حرام دي۔ او د ابن عمرؓ نه نقل دي چه مونځ ئې باطل دې او دا یو روایت دې د امام احمدؒ نه او دا مذهب د اهل ظاهرو دې، ځکه هغوی وائي : نهي تقاضا د فساد کوي۔(المغنی) (فتح الباری لابن رجب (۹۰/۵)
بیا ئې پدې روایت کښې د حمار سره تشبیه ورکړه ځکه چه خر په کم عقلتیا مشهور دې او دا په جهالت کښې ضرب المثل دې۔نو څوك چه په جهالت باندې عبادت کوي او د امام نه سر مخکښې وړي نو دا د خر په شان دې چه خر هم بغیر د څهٔ مقصد نه سر ختکه پورته کوي، پدې وجه الله د هغهٔ عالم چه په علم باندې فائده نهٔ اخلي او عمل پرې نهٔ کوي تشبیه ورکړې د خر سره چه دا هم د بار شوي کتابونو نه فائده نهٔ اَخلي۔

## الفصل الثانی

۷– عَنْ عَلِيٍّ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ:«اِذَا اَتٰى اَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ وَالْإِمَامُ عَلٰى حَالٍ، فَلْيَصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ الْإِمَامُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

ترجمه : او علی او معاذ بن جبل رضی الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « کله چه یو تن په تاسو کښې مانځه ته راشي او امام په یو حالت کښې وي، نو څهٔ چه امام کوي نو دهٔ له پکار دي چه دا هم هغهٔ شان اُوکړي » (ترمذیؒ داحدیث نقل کړیدې او وئیلي ئې دي چه دا حدیث غریب دې)۔

تشریح : دا یو جامع حدیث دې، قاعده کلیه پکښې ده چه تهٔ کله صف ته راوُرسیدې نو بس د امام سره به په هر حال کښې شاملیږې صبر به نهٔ کوې چه دا خو لا په سجده کښې دې بلکه چه هغهٔ په هر ځائې کښې وي نو تهٔ به ورسره داخلیږې ځکه په مانځه کښې کیدې شي همدغه ځائې الله ته قبول وي نو تا نه به فوت شي۔دارنګه پدې سره فضیلت د دغه عمل ملاویږي او اتباع د امام باندې عمل راځي او دارنګه د کوم وخت نه چه مسجد ته داخل شي نودغه عمل ته د مُبادرت او جلتي کولو فضیلت درته حاصلیږي۔
بیا که امام په سجده کښې وي نو تهٔ به هم سجده کښې شاملیږې۔ دارنګه که هغهٔ تشهد کښې ناست دې نو تهٔ به ورسره (اللهم صل) هم وائې، دعاګانې به هم وائې د امام په تابعداریٔ کښې مګر که په حالت د قیام یا رکوع کښې ئې اُوموندو بیا دغه رکعت اُوشو (او دلائل ئې مخکښې په

مسئله «مدرك د ركوع مدرك د ركعت دے» كښې تير شويدى)۔ او كه د قعود او د سجدے حالت وو نو بيا ركعت نۀ دے شوے ليكن ثواب به وِے كيږى ځكه د امام تابعدارى ضرورى ده۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه الترمذى (٥٩١) واسناده فيه الحجاج بن ارطاة وهو مدلس وقد عنعنه) لكن رواه ابوداود (٥٠٦) من طريق اخرى عن عبد الرحمن بن ابى ليلىٰ قال حدثنا اصحابنا ......) ويعنى بالاصحاب الصحابة كما صرح بذلك فى رواية ابن ابى شيبة) واسناده صحيح۔ صححه احمد شاكر فى حاشيته على سنن الترمذى) والالبانى فى صحيح الجامع ص (٢٦١)۔

٨- وَعَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : « اِذَا جِئْتُمْ اِلَى الصَّلاةِ، وَنَحْنُ سُجُوْدٌ، فَاسْجُدُوْا وَلَاتَعُدُّوْهُ شَيْئًا، وَمَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلاةَ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷛ فرمائيلى دى : رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «كله چه تاسو مانځه ته راشئ او مونږ په سجده وو، نو تاسو (هم) سجده كښې شامل شئ او هغۀ (د ركعت نه) مۀ شمارئ او چا چه ركوع (د امام سره) اُوموندله نو هغۀ پوره ركعت اُوموندلو»۔ (ابوداوُد)
تشريح : دا حديث د مخكنۍ جملې دپاره دليل دے چه د امام سره په هر ځائے كښې مونځ كونكے شامل شى نو هغه ركعت به نۀ شمارى ترڅو چه قيام او ركوع كښې شامل شوے نۀ وى۔ او دليل دے چه مقتدى دپاره د امام د راپورته كيدو انتظار نۀ دے پكار بلكه امام چه په هر مقام كښې وى نو شامليدل ورسره پكار دى۔
وَمَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً : دلته د ركعت نه مراد يا ركوع ده او د صلاة نه مراد ركعة دے۔ يعنى چا چه امام په ركوع كښې لاندے كړو او ركوع ئے ورسره اُوكړه نو دۀ ركعت لاندے كړو نو دا دليل دے چه مُدرك د ركوع مُدرك د ركعت دے۔ وهو الحق۔ او قرينه دا ده چه مخكښې سجده ذكر ده نو د ركعت نه مراد به ركوع وى۔ بله دا چه مخكښې د سجدے حكم ئے بيان كړو چه د هغے په موندلو ركعت نۀ موندے كيږى نو اُوس د ركوع حكم بيانوى چه ددے په موندلو ركعت موندلے حسابيږى۔ او ددے تائيد په بل روايت د ابوداوُد كښې داسے دے : (من ادرك الركوع فقد ادرك الركعة) (توضيح الاحكام ٢٨٧/٢) او همدا واضح مطلب دے۔
٢- بعض معنىٰ كوى : چا چه ركعت د مانځه اُوموندلو نو هغۀ د امام سره مونځ اُوموندلو يعنى ثواب د جماعت ورته حاصل شو۔ دا تاويل دے او قرينه پرے نشته او د ماقبل جملے سره ئے مناسبت هم نشته۔ او بله دا چه ثواب په ركعت لاندے كولو باندے موقوف نۀ دے بلكه كه آخرى سجده يا التحيات كښې د سلام نه مخكښې امام اُومومى نو

هم ثواب د جماعت ورته حاصليږي۔
٣- بعض داسې وائي : من ادرك ركعة اى فى الوقت فقد ادرك الصلاة اى فقد وجبت عليه الصلاة ۔(يعني چا چه په وقت کښې يو رکعت اُوموندلو نو هغه مونځ اُوموندلو يعني مونځ پرې واجب دې۔(يعني مثلاً حائضه زنانه چه يو رکعت په وقت کښې لاندې کړو نو مونځ پرې لازم شو) ليکن دا معنیٰ هم ظاهره نۀ ده۔ پدې هم دليل نشته۔
طيبيؒ وائي : دا حکم د جُمعې په باره کښې دې چه ثواب د جماعت نۀ ملاويږي ترڅو چه رکعت ئې نۀ وي لاندې کړې۔انتهیٰ۔ او د امام مالك مذهب دا دې : چه فضيلت د جماعت نۀ حاصليږي مگر په پوره رکعت لاندې کولو سره، برابره ده که جُمعه وي او غير جُمعه وي۔ ليکن پدې دواړو خبرو دليل نشته۔ بلکه د سلام نه مخکښې چه امام سره شامل شي نو بس فضيلت ورته حاصل دې۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف وبسند آخر صحيح : اخرجه ابوداود (٨٩٣) والدارقطني (٣٤٧/١) رقم (٢) وفيه يحيى بن ابى سليمان وهو لين الحديث واخرجه الحاكم (٢١٦/١) وقال صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبى انظر الصحيحة (١١٨٨)

---

٩- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ صَلّٰى لِلّٰهِ اَرْبَعِيْنَ صَلاَةً فِيْ جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْاُوْلٰى، كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَتَانِ: بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او انس ﷛ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «چا چه د جَمعې سره د الله دپاره څلويښت مونځونه اُوکړل (داسې) چه تکبيرِ اُولیٰ لاندې کړي، نو هغۀ له دوه قسمه براءته (نجات) اُوليکلې شي، يو براءت (نجات) د اُور نه او بل براءت (نجات) د منافقت نه»۔ (ترمذيؒ)
تشريح : د براءة من النفاق : معنیٰ دا ده چه په دنيا کښې به ئې الله د منافقانو د عمل کولو نه اُوساتي او د مخلصينو د عمل توفيق به ورکړي او په آخرت کښې به ئې د منافق په شان عذابونو نه اُوساتي، او دۀ له به گواهي کولې شي چه دا منافق نۀ دې ځکه منافقان مانځه ته په سُستئ پاځيږي او دا د هغوی مخالف دې۔(طيبيؒ)۔
يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْاُوْلٰى : تکبير اُولیٰ څه ته وائي : څوك وائي : چه اول رکعت لاندې کړي په رکوع کولو سره۔ ٢- بعض وائي : تکبير اُولیٰ ديته وائي چه د امام د تکبير نه مخکښې صف کښې اُودريږي۔ او د امام سره شريك الله اكبر اُوکړي۔

٣- بعض وائی : څانله رکوع کافی نۀ ده بلکه معمولی قیام لاندے کول هم ضروری دی۔ ٤- راجح دا ده چه تکبیر اُولیٰ دیته وائی چه د فاتحے د شروع نه مخکښ مخکښ شامل شی نو دۀ تکبیر اُولیٰ لاندے کړو څکه چه چا نه فاتحه فوت شی نو هغه نه خیر کثیر فوت شو۔ نو که چا دا نۀ وی لاندے کړی نو څنګه به دۀ تکبیر اُولیٰ لاندے کړے وی۔ او په دویم تفسیر په طریق اَولیٰ په تکبیر اُولیٰ کښ داخل دے۔ (فتح العزیز شرح الوجیز ٤/ ١٧٤) للامام ابی القاسم عبد الکریم بن محمد الرافعی متوفی (٦٢٣ھ)

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه الترمذی (٢٤١) والبیهقی فی الشعب (٣/ ٦١/ رقم ٢٦١٢) (٢٨٧٢) وحسنه الالبانی فی صحیح الجامع الصغیر (٦٣٦٥) وصححه بمجموع الطرق فی الصحیحة برقم (٢٦٥٢) (٦/ ١٥١)

---

١٠- وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ وُضُوْءَ هُ، ثُمَّ رَاحَ، فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلُّوْا، اَعْطَاهُ اللهُ مِثْلَ اَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا وَحَضَرَهَا، لَایَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَیْئًا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنِّسَائِیُّ.

ترجمه : او ابو هریره ﷛ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : « چا چه اَودس اُوکړو او ښائسته اَودس ئے اُوکړو بیا (د مانځه په اِراده مسجد ته) روان شو او (هلته ئے) خلق اُوموندل چه مونځ ئے کړے وو، نو الله تعالیٰ به هغۀ ته برابر اَجر د هغۀ چا ورکړی چه دا مونځ ئے کړے او دے ته حاضر شویدے، او ددۀ ثواب ورکول به نۀ کموی د مونځ کونکو د اجرونو نه هیڅ شے»۔ (ابوداوُدؒ، نسائیؒ)

تشریح : دا حدیث د نیت د اَهمیّت بیان کوی چه مُؤمن ته په نیت باندے د عمل ثواب ملاویږی۔ تا ته پته نشته چه د مانځه وخت پوره دے او که نۀ ؟ چه ته لاړے، جُمعه شوے وه نو تا ته الله پوره پوره اجر درکوی۔ خو شرط دا دے چه تقصیر ددۀ د طرفنه نۀ وی۔ او دۀ ته اَجریو د نیت په وجه ورکولے شی، دویم پدے وجه چه دۀ ته د جُمعے په فوت کیدو باندے اَفسوس رسیدلے دے۔ بعضؒ وائی : په نیت باندے اَصل ثواب دے او په تَحَسُّر او اَفسوس باندے مُضَاعَفْ اَجر دے۔

امام سندیؒ فرمائی : ظاهر د حدیث دا دے چه فضیلت د جماعت موقوف دے پدے چه دجماعت دپاره د هغے مطابق سعی اُوکړی او پدے کښ کوتاهی اُونکړی برابره ده که بیا جماعت لاندے کړی او که نۀ، نو چا چه د جماعت یو جزء لاندے کړو اګرکه په تشهد کښ

وی نو دا په طریقه اَولیٰ باندے مُدرك د جماعت دے، او دا اَجر او فضیلت په اِجتهاد نهٔ معلومیږی لهذا د هغهٔ چا په قول هیڅ اعتبار نشته چه د هغهٔ قول پدے باب کښ د حدیث مخالف وی۔ آه۔ مطلب دا چه چه په نفس سعی سره دومره اَجر ملاویږی نو چا چه په تشهد وغیره کښ قبل السلام لاندے کړو نو په طریق اولیٰ به ورته دغه اَجر ملاویږی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اجرجه ابوداود (٥٦٤) والنسائی (١١١/٢) واحمد (٣٨٠/٢) والحاكم (٢٠٨/١) وقال صحيح على شرط مسلم ووافقه الذهبي وصححه الالبانی فی صحيح الجامع (٦٠٣٩)

١١ – وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ وَقَدْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ، فَقَالَ: «اَلَا رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ عَلٰى هٰذَا فَيُصَلِّيَ مَعَهُ؟» فَقَامَ رَجُلٌ فَصَلّٰى مَعَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی: یو سړے راغلو پداسے حال کښ چه رسول الله ﷺ مونځ کړے وو، نو وے فرمایل : « آیا (په تاسو کښ) داسے څوك نشته چه پدے سړی صدقه اُوکړی چه دهٔ سره مونځ (جَمعه) اُوکړی؟ » نو یو سړے (ابوبکر صدیق رضی الله عنه) راپاڅیدو او دهغهٔ سره ئے مونځ اُوکړو۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ)

تشریح : دے ته ئے صدقه ځکه اُووئیله چه که دا یواځے مونځ اُوکړی نو یو درجه ثواب ئے کیږی او که جَمعه اُوکړی نو شپږویشت درجے زیاتیږی لهذا دا زیاتی ثواب هغهٔ ته ورکول، په هغه باندے صدقه شوه۔

بیا په روایت د احمد (٨٥/٣) کښ راځی چه دا د ماسپښین مونځ وو او دغه شخص یو ځل د رسول الله ﷺ سره مونځ کړے وو، دوباره ئے دے سړی سره اُوکړو۔

## دویمه جمعه د بل مسلمان سره د احسان کولو دپاره جائز دی

بیا پدے حدیث کښ مسئلے دی : ١– یو دا چه یو انسان فرض جَمعه اُوکړی نو د بل مسلمان سره د اِحسان کولو په طور دویمه جَمعه هم کولے شی۔ کهٔ امام وی او که مقتدی، او دا به دهٔ دپاره نفل وی۔ او د مسلمان سره اِحسان وی۔ او دے سړی باندے صدقه ابوبکر صدیق کړے ده۔ لکه دا په روایت د ابن ابی شیبة کښ ذکر دی۔ اول کښ نبی ﷺ د هغه سړی نه تپوس اُوکړو چه اے فلانیه ! د مانځه نه څه شی ایسار کړے؟ نو هغه یو علت ذکر کړو، بیا هغهٔ اُودریدو چه مونځ ئے کولو نو نبی ﷺ دغه اِرشاد اُوفرمایلو۔

٢– دویم دا چه دوه کسانو باندے جماعت منعقد کیږی یو به امام شی او بل به مقتدی۔

کله چه یو شخص د بل شخص سره مونځ اُوکړی لکه خپله زوجه یا خادم یا ځوی وغیره وی نو دهٔ ته فضیلت د جماعت حاصلیږی چه هغهٔ اووه ویشت یا پنځه ویشت درجے ثواب دے پدے شرط چه دا مانځه ترے په مسجد کښ د عذر په وجه فوت شوے وی۔

۳- المسئلة الثالثة : په یو مسجد کښ د دوباره جَماعت کولو حکم

دا حدیث امام ترمذیؒ دلیل گرځولے دے د جماعتِ ثانیه دپاره په مسجد کښ۔ نو جماعتونه په دوه قسمه دی ۱- یو د لارے مساجد دی چه د هغے دپاره څهٔ خاص امام او مؤذن نهٔ وی یا ورله مقرر وی مگر خاص مقتدیان ئے نهٔ وی او هر سړے په دغه لاره تیریږی، مونځونه پکښ کوی۔ نو پدے کښ تقریباً په اتفاق د علماؤ سره بار بار جَمعے کول جواز لری۔

۲- دویم د محلے او علاقے مساجد دی نو پدے کښ دوباره جَمعه کولو کښ اختلاف دے

۱- احناف وائی : دویمه جَمعه مکروه ده۔ او دا قول د محدثینو هم دے۔

دلائل : ۱- یو خو په دے کښ تفریق الکلمة راځی یعنی د مسلمانانو وحدت ته نقصان رسی او مسلمانانو کښ اختلافات پیدا کیږی۔ ۲- دویم په مسلمانانو کښ گسَل او سُستی پیدا کیږی چه خلق به اول جماعت ته نهٔ راځی او وائی به چه دویمه جَمعه به ځانله اُوکړو۔ او پدے کښ تقلیل د جماعت هم راځی۔ ۳- قوی دلیل : ابوبکره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ د مدینے د اطرافونه راروان وو، اراده د مانځه ئے وه، نو خلق ئے اُوموندل چه مونځ ئے کړے وو نو کور ته لاړو او خپل اَهل ئے راجمع کړو او هغوی ته ئے مونځ اُوکړو۔ (الطبرانی فی الکبیر والاوسط ورجاله ثقات مجمع الزوائد (۴۵/۲) نو وائی که دویمه جَمعه په مسجد کښ جائز وے نو نبی علیه السلام به کور کښ نه کولے۔

٤- دلیل: مخکښ حدیث تیر شویدے چه نبی ﷺ فرمائی : (لقد هممت ان آمر رجلاً فیصلی بالناس ثم آمر رجالاً فیحتطبوا حطباً الحدیث (متفق علیه)

ددے حدیث نه استدلال داسے دے چه که دویمه جَمع جائز شی نو نبی ﷺ چه د مانځه نه متخلفین خلقو ته لاړ شی او هغوی له کورونه سیزی نو هغوی به ورته وائی چه مونږ که اَولے جَمعے له لاړ نشو نو دویمه جَمع به اُوکړو ځکه دویمه جَمع هم جائز ده نو آیا د نبی ﷺ حجت به په دوی قائم شی؟۔ نو دا لوئی دلیل دے چه دویمه جَمع نه ده جائز۔

۵- دلیل : اثر ابن مسعودؓ : ابن مسعودؓ د دوه ملگرو سره د کور نه مسجد ته راروان شو نو خلق ورله مخے ته ورغلل چه مونځ ئے کړے وو نو ابن مسعودؓ واپس شو او دغه ملگرو ته ئے په کور کښ مونځ اُوکړو۔ (المعجم الکبیر للطبرانی باسناد جید)

نو اُوګوره ابن مسعودؓ ته چه که هغه ته په یو مسجد مشروعیت د تعدد د جماعاتو معلوم وے نو دا ملګری به ئے ځان سره نناباسلی وے او جماعت به ئے کړے وے۔ لیکن ددهٔ نه مخالف عمل هم ثابت دے روستو راځی۔

٦- حسن بصریؒ فرمائی : صحابه کرامؓ نه به چه کله جَمع فوت شوه نو هغوی به یواځے مونځونه کول۔ (ابن ابی شیبة و سنده قوی تمام المنة ص ١٥٦)

امام شافعیؒ فرمائی : مونږ ته دا یاد دی چه د اصحابوؓ د رسول الله ﷺ نه د یو ډلے نه مونځ د جَمعی فوت شو نو هغوی یواځے اُوکړو سره ددے نه چه هغوی په مسجد کښ په دویمه جَمع کولو باندے قادر وو لیکن بیا هم هغوی دا کار نهٔ دے کړے ځکه چه هغوی دا مکروه ګنړله چه په یو مسجد کښ دوه کرت جَمع اُوکړی۔(کتاب الام) ۔

لیکن حسن بصریؒ خپله تصریح کړیده چه دوی به ځکه یواځے مونځ کولو چه د بادشاه نه به یَریدل (تحفة الاحوذی (٧/٢) باب ماجاء فی الجماعة)

او دوی جواب کوی ددے روایت د باب نه چه دا د دویمے جَمعے صورت نهٔ دے ځکه وائی چه زمونږ اختلاف په دے کښ دے چه د امام او مقتدی دواړو نه جمع شوی وی یعنی د دواړو فرض مونځ وی او دلته خو یو متصدق (نفلی مونځ کونکے) دے او بل متصدق علیه (فرضی مونځ کونکے) دے۔

مګر ددے نه شیخ عبد الرحمن مبارکفوریؒ په شرح د ترمذی کښ داسے جواب کړیدے « هرکله چه ددے حدیث نه دا معلومه شوه چه د یو مفترض او یو متنفل په جماعت سره ثواب حاصلیږی نو د دوه مفترضینو په جماعت سره به په طریق اولیٰ ثواب حاصلیږی او ځوك چه په دے کښ فرق کوی نو هغه باندے بیان لازم دے۔او بله دا چه د تکرار د جماعت د جواز نه بالکل منع نهٔ ده راغلے، نهٔ د دوه مفترضینو او نه د یو مفترض او متنفل۔ نو د یو متنفل او مفترض جماعت جائز ګنړل او د دوه مفترضینو جائز نه ګنړل بے ځایه خبره ده، او د صحابو د عمل خلاف ده »۔ لکه روستو به راشی۔ (تحفة الاحوذی ٢٥٣/١) باب ماجاء فی الجماعة الخ۔ ...... ٧- او بل په دے باندے دلیل حدیث دے : (من صلی لله اربعین یوماً یدرك التکبیرة الاولی) کما مرّ۔

٢- قول ثانی دا دے چه تکرار د جماعت بالکل جائز دے۔ او دا قول د ابن مسعود، انس بن مالك رضی الله عنهما او حسنؒ او عطاءؒ دے او دا مذهب د احمدؒ او اسحاقؒ او اشهبؒ دے۔ او د هر هغه چا دے چه جماعت ته واجب وائی او یا ئے شرط ګنړی د صحت د مانځه دپاره۔

دلائل الجواز ۱- دلیل : احادیث عامه دی : حدیث کښې دی : (صلاة الجماعة تفضل علی صلاة الفذ ...... الحدیث متفق علیه) : نو ظاهر ده چې حدیث دلیل دے چه دویمه جَمعه کول بهتر دی د یوائې مونځ کولو نه. دارنګه : (صلاة الرجل مع الرجل ازکی من صلاته وحده) نو معلومیږی چه جَمعه کول پکار دی چه ډیر خیر ملاؤ شی.

۲- دلیل : خصوصی دلیل دا حدیث الباب دے : چه پدے کښې صورت د دویمې جَمعې جوړ شویدے اګرکه یو متصدق دے او بل متصدق علیه دے. لهذا ددے په کراهت باندے قول کول صحیح نهٔ شو.

۳- دلیل: اثر انس بن مالك ﷺ : انس بن مالك د شلو غلامانو سره یو مسجد ته راغلو چه په هغې کښې مونځ شوے وو، ورته ئے اُوفرمایل : تاسو مونځ کړے ؟ هغوی اُووئیل نهٔ. نو اذان او اقامت ئے اُوکړو او د جَمعې سره ئے مونځ اُوکړو. (بخاری معلقاً باب فضل صلاة الجماعة ۸۹/۱ وعبد الرزاق (٥١٣/١) باب الرجل یصلی فی المصر والبیهقی ٦٩/٣)

علامه ابن حزمؒ فرمائی : پدے کښې د انس بن مالكؓ نه هیڅ صحابی مخالف نهٔ دے موجود. (المحلی ٢٣٨/٤)

اول قول والا ددے نه داسے جواب کوی چه کیدے شی انسؓ دوباره جَمع په هغه مسجد کښې کړی وی چه د هغې ډپاره امام راتب او مؤذن نهٔ وو. او په دغسے مسجد کښې خو بالاتفاق باربار جماعت جائز دے. (تمام المنه ص ١٥٥) او پدے باندے دلیل روایت د بیهقیؒ او مسند ابی یعلیٰ دے چه انسؓ دا کار په مسجد د بنی ثعلبه کښې کړے وو. (مسند ابی یعلی٣١٥/٧) وقال معلقه: حسین سلیم اسد : اسناده صحیح. والمطالب العالیة ٦٢/٢) صحیح موقوف) او دا مسجد په لاره کښې دے په مدینه کښې نهٔ دے.

٤- اثر ابن مسعود : عبد الله بن مسعودؓ یو مسجد ته راداخل شو چه په هغې کښې خلقو مونځ کړے وو، نو ابن مسعود علقمه، مسروق او اسود ته جَمع اُوکړه. (ابن ابی شیبة ١١٣/٢- باب فی القوم یجیئون- وسنده صحیح)

او دوی جواب ورکوی مانعینو ته د حدیث د ابوبکرهؓ نه چه اول خو دا حدیث ضعیف دے یو په سند کښې ئے معاویه بن یحیی ابو مطیع الاطرابلسی الصدفی متکلم فیه راوی دے چه بعض علماؤ ورته ضعیف وئیلے دے دارقطنی په متروکینو کښې ذکر کړیدے. مګر که صحیح ثابت شی لکه شیخ البانیؒ دے حدیث ته حسن وئیلے دے. (تمام المنة ص ١٥٥) نو بیا هم ددے نه استدلال نشی کیدے په کراهت د تکرار د جماعت د ډیرو وجو نه یو دا چه پدے حدیث کښې دا نهٔ دی ذکر چه په کور کښې ئے اهل ته مونځ اُوکړو بلکه

احتمال لري چه مونځ ئې هغوی ته په مسجد کښې کړے وي او کور ته ددے دپاره راغلي وي چه اهل راجمع کړي۔ لهٰذا پدے وخت کښې دا حدیث بیا دلیل شو د استحباب د جماعت په هغه مسجد کښې چه امام او مؤذن او محله لري او مونځ پکښې یو کرت شوے وي۔او دلیل د کراهت نۀ گرځي۔

۲- دویم که اُومنو چه رسول الله ﷺ اهل ته په کور کښې مونځ اُوکړو نو ددے نه بیا هم په مسجد کښې د دویم جماعت کراهت نۀ معلومیږي بلکه صرف ددے نه دا ثابتیږي چه یو کس یو مسجد ته راغلو چه په هغے کښې مونځ شوے وي نو دۀ له جائز دي چه په هغه مسجد کښې مونځ اُونکړي او د هغے نه اُوځي او کور ته لاړ شي خپل اهل ته جمع اُوکړي۔او هر چه دا خبره چه دۀ دپاره دا جائز نۀ ده چه په دغه مسجد کښې دویمه جَمع اُوکړي او دا مکروه ده نو حدیث پدے خبره دلالت نۀ کوي۔ لکه څنگه چه حدیث په مسجد کښې په کراهت د یواځے مونځ کولو هم دلالت نۀ کوي۔

بلکه علاوه لا دا چه که ددے حدیث نه کراهت د تکرار الجماعة ثابت شي پدے وجه چه نبي ﷺ په مسجد کښې مونځ نۀ دے کړے نو بیا خو به ددے نه ثابت شي کراهت د یواځے مونځ کولو په هغه مسجد کښې چه یو کرت پکښې جمع شوی وي ځکه نبي ﷺ په مسجد کښې نۀ منفرداً مونځ کړے دے او نۀ د جماعت سره۔

دارنگه که یواځے مونځ په هغه مسجد کښې چه جَمع پکښې شوی وي جائز وے نو نبي ﷺ به په کور کښې مونځ نۀ غوره کولے په هغۀ مانځه باندے چه په غوره مسجد کښې کیږي پس د مسجد حرام نه (المرعاة ١٠٥/٤) ۔ یعني دے نه خو دا هم معلومیدے شي چه یواځے فرض مونځ په مسجد کښې نۀ کیږي ځکه چه نبي ﷺ غوره مکان پریخودو او کور ته لاړو هلته ئې مونځ اُوکړو،که په مسجد کښې یواځې مونځ جائز وے نو بیا به ئې په مسجد کښې کړے وے۔ لهٰذا په حدیث کښې دا خبره نشته چه دویمه جَمع مکروه ده۔

۳- المحاکمة والقول الثالث : پدے کښې تحقیقي قول (چه پدے سره جمع د ټولو دلائلو راځي) دا دے چه د محلے په مسجد کښې حتی الوسع د تکرار د جماعت نه ځان ساتل پکار دي ځکه د نبي ﷺ په زمانه کښې صحابه کرامؓ کښې داسے عمل چا بار بار نۀ دے کړے او پدے کښې بیا خلق سُستیږي، او د مسلمانانو تفرق پیدا کیږي او د جماعت د مشروعیت مقصد او حکمت خرابیږي۔ لیکن یو سړے چه د جماعت سخت پابند دے چه کله ترے جَمع نۀ ځي مګر یو کرت ترے جَمع لاړه نو د هغه دپاره دوباره جمع کول که په کور کښې وي او که په مسجد کښې وي جائز دي۔ لهٰذا جواز محمول دے په ضرورت باندے

او داسے به نهٔ وي جائز چه يو انسان كور كښ قهوے سكى او بيا وائي چه كه جمع لاړه نو ځانله به جمع اُوكړو دا خو بالكل نهٔ ده جائز، بلكه دا به يوائے مونځ كوي. او ددے په اَحاديثو كښ هيڅ دليل او نمونه نشته. او په دے كار به نبي ﷺ دده كور سيزي. او دا قول راجح دے او تطبيق د تولو احاديثو كوي فكر پكښ اُوكړه.

درجة الحديث : اسناده صحيح: اخرجه احمد (٥/٣) والدارمي (٣١٨/١) وابوداود (٥٧٤) والترمذي (٢٢٠) والحاكم (٢٠٩/١) راجع الارواء (٥٣٥)

## الفصل الثالث

١٢ – عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلٰى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: اَلَا تُحَدِّثِيْنِيْ عَنْ مَرَضِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ؟ قَالَتْ : بَلٰى، ثَقُلَ النَّبِيُّ ﷺ، فَقَالَ: «اَصَلَّى النَّاسُ؟» فَقُلْنَا: لَا، يَارَسُوْلَ اللهِ! وَهُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ. فَقَالَ: «ضَعُوْا لِيْ مَاءً فِي الْمِخْضَبِ». قَالَتْ: فَفَعَلْنَا، فَاغْتَسَلَ، فَذَهَبَ لِيَنُوْءَ، فَاُغْمِيَ عَلَيْهِ، ثُمَّ اَفَاقَ، فَقَالَ: «اَصَلَّى النَّاسُ؟» فَقُلْنَا: لَا، هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَارَسُوْلَ اللهِ! قَالَ: «ضَعُوْا لِيْ مَاءً فِي الْمِخْضَبِ». قَالَتْ : فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوْءَ، فَاُغْمِيَ عَلَيْهِ، ثُمَّ اَفَاقَ، فَقَالَ: «اَصَلَّى النَّاسُ؟» فَقُلْنَا: لَا، هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَارَسُوْلَ اللهِ! قَالَ: «ضَعُوْا لِيْ مَاءً فِي الْمِخْضَبِ، فَقَعَدَ فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوْءَ فَاُغْمِيَ عَلَيْهِ، ثُمَّ اَفَاقَ، فَقَالَ: «اَصَلَّى النَّاسُ؟» قُلْنَا: لَا، هُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ يَارَسُوْلَ اللهِ! وَالنَّاسُ عُكُوْفٌ فِي الْمَسْجِدِ يَنْتَظِرُوْنَ النَّبِيَّ ﷺ لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ، فَاَرْسَلَ النَّبِيُّ ﷺ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ: «بِاَنْ يُّصَلِّيَ بِالنَّاسِ»، فَاَتَاهُ الرَّسُوْلُ، فَقَالَ: اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَأْمُرُكَ اَنْ تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ، فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ – وَكَانَ رَجُلًا رَقِيْقًا – يَا عُمَرُ! صَلِّ بِالنَّاسِ. فَقَالَ لَهٗ عُمَرُ: اَنْتَ اَحَقُّ بِذٰلِكَ. فَصَلّٰى اَبُوْبَكْرٍ تِلْكَ الْاَيَّامَ. ثُمَّ اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَجَدَ فِيْ نَفْسِهٖ خِفَّةً، وَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ اَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ، وَاَبُوْبَكْرٍ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ، فَلَمَّا رَآهُ اَبُوْبَكْرٍ ذَهَبَ لِيَتَاَخَّرَ، فَاَوْمَاَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ ﷺ بِاَنْ لَّا يَتَاَخَّرَ. قَالَ: «اِجْلِسَانِيْ اِلٰى جَنْبِهٖ». فَاَجْلَسَاهُ اِلٰى جَنْبِ اَبِيْ بَكْرٍ، وَالنَّبِيُّ ﷺ قَاعِدٌ.

وَقَالَ عُبَيْدُ اللهِ: فَدَخَلْتُ عَلٰى عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، فَقُلْتُ لَهٗ : اَلَا اَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا حَدَّثَتْنِيْ بِهٖ عَائِشَةُ عَنْ مَرَضِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ؟ قَالَ: هَاتِ. فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَدِيْثَهَا فَمَا اَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا، غَيْرَ اَنَّهٗ قَالَ: اَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِيْ كَانَ مَعَ الْعَبَّاسِ؟ قُلْتُ: لَا. قَالَ: هُوَ عَلِيٌّ (رَضِيَ

اللهُ عَنْهُ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبيد الله بن عبد الله فرمائي: چه زهٔ (يوه ورځ) د ام المؤمنين عائشه رضی الله عنها په خدمت کښ حاضر شوم او هغې ته مې عرض اُوکړو چه آيا تهٔ ما ته د نبی ﷺ د بيمارئ حال نهٔ بيانوې؟ (په کوم کښ چه هغهٔ آخری ځل مسجد ته د مانځه دپاره راوتلے وو) هغې اُوفرمايل : آؤ، (ولې نهٔ ! نو واوره ! ) نبی ﷺ زيات بيمار شو نو (د مانځه په وخت ئې) تپوس اُوکړو چه آيا خلقو مونځ کړے دے؟ مونږ اُووئيل: نهٔ يا رسول الله ! خلق ستاسو انتظار کوی، نو هغهٔ اُوفرمايل : (ښهٔ) ما دپاره خانك کښ اُوبه کيدئ، عائشهؓ فرمائی: چه مونږ خانك کښ اُوبه کيخودے، نو هغهٔ غسل اُوکړو نو شروع شو چه راپاځيږی مگر (د کمزورئ په وجه پرے) بے هوشی راغله، بيا رابيدار شو، وے فرمايل : « آيا خلقو مونځ کړے دے؟ » مونږ اُووئيل: نهٔ، هغوی ستاسو انتظار کوی يارسول الله !، وے فرمايل: «ما له خانك کښ اُوبه کيږدئ» عائشهؓ فرمائی : کيناستو نو غسل ئے اُوکړو بيا شروع شو چه راپاځيږی ليکن بے هوشی پرے راغله بيا رابيدار شو، وے فرمايل: « آيا خلقو مونځ کړے دے؟ » مونږ اُووئيل: نهٔ هغوی ستا انتظار کوی يارسول الله ! هغهٔ اُوفرمايل :«ما دپاره خانك کښ اُوبه کيدئ » نو کيناستو غسل ئے اُوکړو بيا شروع شو چه راپاځيږی ليکن بے هوشی پرے راغله، بيا رابيدار شو، وے فرمايل :« آيا خلقو مونځ کړے دے ؟ » مونږ اُووئيل: نهٔ، هغوی ستاسو انتظار کوی يارسول الله! او خلق په مسجد کښ ناست وو، انتظار ئے د نبی ﷺ کولو دپاره د ماسخوتن مانځه، نو نبی ﷺ ابوبکر صديق پسے (قاصد، بلال) اُوليږلو چه خلقو ته مونځ اُوکړی نو ابوبکر ته آستاذے (قاصد) راغلو، ورته ئے اُوفرمايل : رسول الله ﷺ تا ته حکم کوی چه تهٔ خلقو ته مونځ اُوکړهٔ ! نو ابوبکر صديق اُوفرمايل : –او ډا نرم انسان وو– اے عمرا تهٔ خلقو ته مونځ اُوکړه، عمرؓ ورته اُوفرمايل : ته پدے (امامت) باندے زيات حقدار ئے، نو ابوبکر صديقؓ دغه ورځو کښ مونځونه اُوکړل بيا نبی ﷺ په خپل طبيعت کښ آرام اُوموندلو او د دوو سړو په مابين کښ ماسپښين مانځه ته راووتو چه يو پکښ عباس وو۔ او ابوبکر صديقؓ خلقو ته مونځ کولو، هرکله چه ابوبکر صديقؓ نبی ﷺ لره اُوليدو نو شروع شو چه روستو کيدو نو نبی ﷺ ورته اشاره اُوکړه چه روستو نهٔ شی، نبی ﷺ (هغهٔ دوه کسانو ته) اُوفرمايل: «ما ددے ابوبکر اړخ ته کينوئ» نو هغهٔ دواړو د ابوبکر اړخ ته کينولو، او نبی ﷺ په ناسته مونځ کولو۔ او عبيد الله فرمائی: زهٔ په عبد الله بن عباس باندے ورداخل شوم نو ما هغهٔ ته اُووئيل : آيا زهٔ تا ته نهٔ پيش کوم هغهٔ حديث چه ما ته عائشےؓ په باره د بيمارئ د رسول الله

ﷺ کښې بیان کړیدے نو هغهٔ اُوفرمایل : راوړه ! نو ما په هغهٔ باندے د عائشهؓ حدیث پیش کړو نو ابن عباسؓ د هغے نه د هیڅ خبرے انکار اُونکړو البته دائے اُوفرمایل: آیا عائشهؓ تا ته د هغهٔ شخص نوم بیان کړے دے کوم چه د عباسؓ سره وو؟ ما اُووئیل : نهٔ، ابن عباسؓ اُوفرمایل : هغهٔ علی ﷺ وو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

عبید الله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود دا د فقهاء سبعو نه دے او په کبار التابعین کښې شمار دے۔

تشریح : اَلْمِخْضَبِ : په کسره د میم خانك ته وائی چه جامے په کښې وینځل شی دیته اِجانه او مِرگن هم وائی۔ او دا خانك د تانبے وو لکه په روایت د ابن خزیمهٔ کښې ذکر دی۔ لینوء : دا د قام یقوم په وزن دے لفظاً او معنیً۔ (کرمانیؒ) یعنی په تکلیف او مشقت سره پاڅیدل۔

په انبیاؤ باندے الله بیماری پدے وجه راولی چه د هغوی اَجرونه زیات شی او نورو خلقو ته د هغوی په احوالو تسلی ملاؤ شی او دے دپاره چه خلق د هغوی په وجه په فتنه کښې واقع نشی عبادت ئے شروع نهٔ کړی ځکه چه د هغوی په لاسونو باندے ناشنا کارونه او معجزات ښکاره کیږی۔

او قاضی حسینؒ نقل کړی دی : چه په انبیاؤ باندے بے هوشی صرف یو ساعت دوه ساعته راتلے شی او میاشت دوه میاشتو ته نهٔ رسی لکه د جنون په شان۔ او بے هوشی یوه بیماری ده، ددے په انبیاؤ باندے راتلل ممکن دی، هرچه جنون (لیونتوب) دے نو د هغے راتلل پرے ممکن نهٔ دی ځکه هغهٔ نقصان دے او انبیاء الله تعالیٰ په پوره کمال سره کامل کړی وی، او دا ځکه چه په اِغماء (بے هوشئ) کښې عقل مغلوب وی (صرف پرده پرے راغلی وی) او په جنون کښې مسلوب (بیخی زائل) وی او د انبیاؤ نه عقل نشی مسلوب کیدے۔

عُکُوْفٌ : جمع د عاکف ده (ای مجتمعون مقیمون) (خلق راجمع وو د مانځه دپاره) ۔ "عُکُفٌ" په اصل کښې په یو ځائے کښې ایساریدل، بندیدل او لازمیدو ته وائی۔ دا حدیث صریح دلیل دے چه دا د ظهر مونځ وو او کوم خلق چه وائی دا د سحر مونځ وو استدلال کوی په روایت د ابن عباسؓ چه نبی ﷺ قراءت د هغه ځائے نه شروع کړو کوم ځائے ته چه ابوبکر رسیدلے وو نو دا استدلال صحیح نهٔ دے یو خو دے روایت کښې ابواسحاق السبیعی مختلط مدلس راوی دے او عنعنه ئے هم کړیده۔ بله دا چه کیدے شی چه نبی ﷺ د هغهٔ نه دا آیت اوریدلے وی کله چه د ابوبکر خواته نزدے شو، او نبی ﷺ به هم کله نا کله په سری مونځ کښې یو آیت مقتدیانو ته اَورولو۔

ثُمَّ ذَهَبَ لِیَنُوْءَ ناء ینوء په معنیٰ د مشقت او تکلیف سره پاڅیدلو سره دے۔

ثم افاق : درے ځل افاقه او درے ځل پرے بے هوشي راغلې ده۔
فوائد الحديث : ۱- د رسول الله ﷺ نفي د علم الغيب معلوميږي ځکه تپوس کوي (آيا خلقو مونځ کړے دے؟)۔ ۲- انتظار د راتب امام به کولے شي اګرکه لږ وخت واوږي دا په هغه صورت کښې چه امام حاضر وي په کوټه کښې او که امام غائب وي نو بيا بل څوك مخکښې کيدے شي۔ او دلته نبي ﷺ کمره کښې حاضر وو۔
۳- بيا نبي ﷺ ولې لامبل ؟ نو ددے وجه دا ده چه پدے سره بے هوشي زائل کيږي او د بے هوشۍ نه بعد غسل کول سنت طريقه ده، اودس خو پرے ضرور ماتيږي۔
ددے نه دا هم معلومه شوه چه د هر نشائي څيز (نسوار، چرس، افيون) خوراك نه پس اودس کول پکار دي۔
په روايت د بخاري (باب الغسل والوضوء في المخضب) کښې راغلي دي چه نبي ﷺ صحابه کرامؓ ته حکم اُوکړو چه ما باندے د اُوه مشکيزو نه اُوبه راواړوئ چه د هغے مزي کولاؤ شوي نۀ وي، او په روايت د طبراني کښې دي چه د مختلفو کوهيانو نه وے۔
پدے کښې حکمت کيدے شي - والله اعلم- دا وي چه په بعض بيماريانو کښې کله په مريض باندے يخے اُوبه واړولے شي نو هغۀ ته قوت راواپس کيږي او نبي ﷺ - سيد الاطباء دے نو کيدے شي چه هغۀ ته دا معلومه وه چه پدے بيمارۍ کښې ما له اُوبه ښے دي، نو ځکه ئے دا آمر اُوکړو او پدے وجه هغۀ راپاڅيدو او خلقو ته اُووتلو او مونځ ئے اُوکړو او خطبه ئے ورته اُوئيله۔ او د اُووه عدد تخصيص ئے اُوکړو، کيدے شي چه پدے عدد باندے ئے برکت حاصلولو ځکه چه په شريعت کښې ددے عدد دپاره په ډيرو کارونو کښې دخل دے، او چه د مشکيزو خولے بندے وي نو هغۀ اُوبه ډيرے صفا وي د خلقو لاسونه ورسره نۀ وي لګيدلي، او د مختلفو کوهيانو نه وي نو کيدے شي چه دا هم هغۀ ته خپل علاج ښکاره کيدو۔ نو ګويا کښې دا يوه نسخه شوه د هغۀ بيمار دپاره چه بې هوشي پرے ځي راځي۔
٤- پدے کښې نفي د تصرف د نبي ﷺ دے چه د خپل ځان اختيار هم نۀ لري د ځان نه بے هوشي نشي لرے کولے پدے وجه ئے درے ځل لامبل نو«يارسول الله مدد» يا «اغثني يارسول الله» وئيل سُو چه شرك دے۔
۵- ابوبکر صديق اعلم الصحابه وو ځکه ئے هغه امامت ته مخکښې کړو نو هغۀ احق بالامامة دے۔ ٦- او ابوبکر صديقؓ ګمان کړيدے چه امر د وجوب دپاره نۀ دے بلکه صرف د هغۀ تکريم مقصود دے نۀ دا چه صرف ابوبکر به متعين وي نو هغۀ ځکه عمرؓ ته خطاب کوي چه تۀ امامتي اُوکړه لهذا دا اصولي قاعده هم معلومه شوه چه کله قرينه

صارفه موجوده وي نو بيا امر د وجوب دپاره نهٔ وي۔ او دا د صحابه کرامؓ فهم دے۔
يَا عُمَرُ ! صَلِّ بِالنَّاسِ : امام نوويؒ وائي : بعضو پدے کښې دا تاويل کړيدے چه دا ئے د تواضع دپاره عمر ته اُووئيل ليکن دا خبره ضعيفه ده بلکه ددے عذر هغهٔ دے کوم چه مخکښې ذکر شو چه ابوبکر رقيق القلب او ډيرے ژړا والا وو، نو يَريدو چه خلقو ته به د ژړا په وجه آواز اُونهٔ رسوي۔
حافظ ابن حجرؒ فرمائي: دا احتمال هم شته چه ابوبکر صديقؓ د امامتِ صغرىٰ نه امامتِ کبرىٰ فهم کړے وي او هغهٔ ته معلومه وي چه په امامتِ کبرىٰ کښې خو ډيره خطره ده او د عُمر قوت ورته معلوم وو نو پدے وجه ئے عمرؓ ددے دپاره غوره کړے وي۔
او ددے تائيد دا دے چه د بيعت په وخت ئے خلقو ته اُوفرمايل چه د عمرؓ سره بيعت اُوکړی يا د ابوعبيده بن الجراحؓ سره۔ بيا وائي : ظاهر دا ده چه ابوبکرؓ په هغهٔ بحث مباحثه باندے خبر نهٔ وو کوم چه د عائشےؓ او د نبي ترمينځ شوے وه، او ددے امر نه ئے فهم کړی وي مقصود د نبي ﷺ دهٔ ته د امامت کار سپارل دي برابره ده کهٔ هغهٔ ئے پخپله کوي او که ځانله خليفه نيسي۔ انتهىٰ۔
۷- مفضول (غوره) ته چه کله فاضل (ډيرغوره) يوه مرتبه پيش کړی نو هغهٔ به ئے نهٔ قبلوي بلکه هغهٔ به ئے فاضل ته پريدی کله چه مانع نهٔ وي موجود۔
۸- مخامخ صفت کول جائز دي کله چه هغهٔ انسان په اعجاب او فتنه کښې نهٔ واقع کيږي۔ ۹- امام ته چه کله د جماعت د حاضريدو نه يو عذر راپيښ شي او اراده لري چه نائب مقرر کړي نو افضل به منتخب کوي۔
۱۰- بيا عائشےؓ د علي ﷺ نوم ولے نهٔ دے اخستے ؟ نو بعض شيعه ګان وائي چه ددهٔ سره ئے کينه وه لکه د واقعه د افك نه معلوميږي مګر دا خبره غلطه ده ځکه د صحابه کرامؓ صفت الله کړيدے (اشداء على الكفار رحماء بينهم) هغوی صفا زړونو والا وو، يو بل سره ئے کينے نه ساتلے، کينه ساتل خو د بے ايمانه خلقو کار دے۔ نو صحيح دا ده چه بل جانب د نبي ﷺ ته ډير کسان وو لکه فضل بن عباس، اُسامه بن زيد او عليؓ وو نو په طريقه د اختصار ئے د هغوی نه تعبير په "رجل آخر" سره اُوکړو۔
۱۱- بعض باطل پرست ددے حديث نه استدلال کوي چه پدے مانځه کښې نبي عليه السلام چه کله امام شو نو ابوبکر چه کوم ځائے ته رسيدلے وو د هغهٔ ځائے نه ئے مونځ شروع کړو لهذا نبي ﷺ خو فاتحه اُونهٔ وئيله نو بس فاتحه وئيل فرض نهٔ دی۔
**الجواب** : دا جاهلانه استدلال دے، ځکه پدے حديث کښې د فاتحے مسئله نشته او بل

طرفته فاتحه وئیلو دپاره نصوص موجود دی نو په متشابهاتو استدلال کول او نصوص پریخودل د باطل پرستو زائغینو طریقه ده۔
٢- دویم دا چه احناف هم فاتحې ته واجب وائی لهذا هغوی به څۀ جواب کوی چه نبی ﷺ خو فاتحه اُونۀ وئیله نو مونځ ئې ناقص شو العیاذ بالله۔ فما هو جوابکم فهو جوابنا۔
٣- بله دا چه یو د نبی ﷺ امر دے امت ته او بل ئې عمل دے که بالفرض اُومنو چه فاتحه ئې نۀ ده وئیلې نو بل طرفته اُمت ته ئې دا حکم دے چه فاتحې نه بغیر مونځ نۀ کیږی۔
١٢- حدیث نه معلومه شوه چه د امام په جانب کښې د مقتدی اُودریدل جائز دی اګر که روستو صفونه موجود وی۔
١٣- بے هوش انسان له -کله چه رابیدار شی- غسل کول مستحب دی او اُودس به ضرور کوی۔ (فتح الباری لابن رجب (٥/٨١)

---

١٣- وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، اَنَّهُ کَانَ یَقُوْلُ: مَنْ اَدْرَكَ الرَّکْعَةَ فَقَدْ اَدْرَكَ السَّجْدَةَ، وَمَنْ فَاتَتْهُ قِرَآءَةُ اُمِّ الْقُرْآنِ فَقَدْ فَاتَهُ خَیْرٌ کَثِیْرٌ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

ترجمه : او د ابو هریره رضی الله عنه په باره کښې منقول دی چه هغۀ به فرمایل : چا چه رکوع اُوموندله (د امام سره) نو یقیناً چه هغۀ سجده اُوموندله، (رکعت ئې اُوشو) او چا نه چه قرائت د فاتحې فوت شو نو د هغۀ نه ډیر خیر فوت شو۔ (امام مالك)
تشریح : مطلب دادے چه چا د امام سره رکوع لاندے کړه نو هغۀ سجده هم لاندے کړه په طریق اولیٰ سره یعنی د هغۀ دا سجده به معتبره وی کله ئې چه رکوع لاندے کړی وی لهذا رکعت ئې اُوشو۔ نو د رکعت نه مراد رکوع ده۔ او د سجدے خپله معنیٰ ده۔
یا د سجدے نه مراد رکعت دے۔ یعنی چا چه رکوع کښې امام لاندے کړو نو هغۀ رکعت لاندے کړو۔ او دغۀ رکعت ئې صحیح دے۔
بعض وائی : د رکعت نه خپله حقیقی معنیٰ مراده او د سجدے نه مراد مونځ دے یعنی چا چه رکعت لاندے کړو نو هغه مونځ لاندے کړو یعنی فضیلت ورته حاصل شو لیکن اول قول غوره دے دا حدیث دلیل دے چه د ابو هریره رضی الله عنه مذهب هم دا دے چه مُدرك د رکوع مُدرك د رکعت دے۔
درجة الحدیث : اسناده معضل : اخرجه مالك فی الموطأ (١/١١) وهو من البلاغات۔ ولکن بلاغات مالك کلها متصلة غیر اربعة کما فی التمهید (٢٤/١٦١)

١٤ – وَعَنْهُ، اَنَّهُ قَالَ: اَلَّذِيْ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَخْفِضُهُ قَبْلَ الْإِمَامِ، فَإِنَّمَا نَاصِيَتُهُ بِيَدِ الشَّيْطَانِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: هغهٔ شخص چه د امام نه مخکښ سر پورته کوي او خکته کوي نو د هغهٔ تندے د شيطان په لاس کښ دے۔ (مالك)

تشريح : يعني کوم کس چه د امام نه په انتقال د ارکانو کښ مخکښ والے او روستو والے کوي نو تندے ئے د شيطان په لاس کښ دے دا يا په حقيقت باندے حمل دے يعني شيطان واقع کښ په دهٔ کښ داسے تصرف کوي او يا مجاز دے يعني شيطان ئے د الله په خلاف آماده کوي۔

نو په دے کښ وعيد دے چه څوك دا کار کوي نو هغهٔ د شيطان تابع دے۔ او هغه انسان خو ډير بے وقوف دے چه د امام نه سر مخکښ خکته کوي پورته کوي ځکه چه دا خو هسے هم د امام نه سلام مخکښ نشي اړولے نو څه له تادي کوي او که نه امام ته فتح ورکوي چه شابه تادي کوه۔ زهٔ درنه مخکښ کيږم۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (٩٢/١) وفي اسناده مليح بن عبد الله السعدي اورده ابن ابي حاتم (٤٦٧/١/٤) و لم يذكر فيه جرحاً ولا تعديلاً فهو ثقة عنده كما هو اصطلاحه.



# باب من صلی صلاة مرتين

## بيان د هغهٔ چا چه دوه ځل مونځ اُوکړی

د راتلونکو حديثونو نه معلوميږی چه تکرار د مانځه شته يا خو د جَمعے د لحاظ او حفاظت په وجه او يا د مسجد د حق د وجه نه او دلته مقصود دا دے چه په کور کښې يواځے فرض مونځ اُوکړی يا په مسجد کښ د جَمعے سره په اقتداء د امام کښ اُوکړی او بيا يو مسجد ته لاړ شی چه هلته جَمع کيږی نو دهغوی سره مونځ اُوکړی برابره ده که امام جوړ شی او که مقتدی۔ نو دا سببی مونځ دے۔ ځکه سبب ئے يا مسجد دے او يا آهميت د جماعت دے۔ او دا تکرار اُوس هم شته، منسوخ نهٔ دے۔ بيا کوم مونځونه به مکرر کولے شی او کوم نه ؟ نو دا په احاديثو کښ پخپله راځی :

الفصل الاول

١ – عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ ﷺ، ثُمَّ يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : جابر ﷺ فرمائی: معاذ بن جبل (ﷺ) به د نبی ﷺ سره مونځ کولو بيا به خپل قوم ته راغلو نو هغوی ته به ئے (همدغه) مونځ کولو۔ (بخاریؒ و مسلمؒ)

تشريح : ددے حديث تشريح په باب القراءة فی الصلاة (٢٤١/٤) کښ تفصيلاً ذکر شويده لګ هغے ته هم رجوع پکار ده۔ بعينه همدا حديث دے۔ او دا خبره هم ذکر شويده چه اقتداء د مفترض د متنفل پسے بالکل جائز ده شپږ دلائل ذکر شويدی او دارنګه د معاذ دا دويم مونځ نفل وو او اول مونځ ئے چه نبی ﷺ سره کړے وو، هغهٔ فرض وو نو د نکتو او حواشيو خبره به درته غلطه ښکاره شی چه وائی دا دويم مونځ ئے فرض وو او اول مونځ ئے نفل وو۔ احنافو ته پدے حديث کښ لويه مسئله پيښه ده، قاعده ئے ماته شويده۔ انظر المرعاة ايضاً (١١٤/٤)

سندیؒ په حاشيه د نسائی کښ فرمائی : دلالت ددے حديث په جواز د اقتداء د مفترض د متنفل پسے واضح دے، او ددے نه جواب ډير مشکل دے۔ او احناف چه کوم جوابونه کړی هغهٔ ناتمام دی۔ انتهیٰ۔

او حديث دليل دے چه تکرار په مانځه کښې جائز دے، اګرکه يو انسان په مسجد کښې د جماعت سره مونځ کړے وی۔ او زياته تشريح به ئے راشی۔

---

٢- وَعَنْهُ، قَالَ: كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ ﷺ الْعِشَاءَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى قَوْمِهِ فَيُصَلِّي بِهِمُ الْعِشَاءَ وَهِيَ لَهُ نَافِلَةٌ. رَوَاهُ...... الشَّافِعِيُّ وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ وَالطَّحَاوِيُّ وَالدَّارِقُطْنِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الْكُبْرٰى.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائی : معاذ به د نبی ﷺ سره د ماسخوتن مونځ کولو بيا به خپل قوم ته واپس شو نو هغوی ته به ئے د (همدغه) ماسخوتن مونځ کولو چه دا (دويم مونځ) به د هغهٔ دپاره نفل وو۔ (شافعیؒ، عبد الرزاقؒ، طحاویؒ، دارقطنیؒ، بيهقیؒ)

دا حديث صريح رد دے په نکتو او حواشيو والو باندے چه اول مونځ د معاذ نفل ګڼړی او حال دا چه دے حديث ته نهٔ ګوری۔ دارنګه روستو حديث کښې امر راغلے دے چه روستنے مونځ نفل اُوګرځوئ۔ "خودغرض راحافظه نباشد" مصداق دے۔

عجيبه خبره دا ده چه خپله بے دليله قاعده جوړه کړی بيا د صحابه کرامؓ عمل د خپل ځان تابع کوی او خپلے قاعدے ته ئے په تاويلات بارده ؤ راړوی۔ دا د دوی دين دے او دا د دوی د دين خدمت دے۔ حواشی او شروح دا زور لګوی چه احاديث څنګه خپل مذهب ته راتاؤ کړی څکه د دوی مذهب خو د احاديثو نه ډير بعيد دے نو د تاويلاتو يو اَنبار اُولګوی او د صحيح احاديثو په مقابله کښې بعيد او ضعيف استدلالات او ضعيف احاديث او د تابعينو آراء راوړاندے کړی۔ ولا حول ولا قوة الا بالله والله المستعان، تر اُوسه پورے مونږ مسلمانان د الله او رسول خبرو ته تابع نهٔ شو؟ نو آيا دا به د مرګ نه پس منو؟۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه الشافعی فی المسند (٣٠٦) وعبد الرزاق (٢٢٦٥- ٢٢٦٦) فی المصنف والطحاوی فی شرح معانی الآثار (٤٠٩/١) والدارقطنی (٢٧٤/١رقم ١) والبيهقی فی الکبری (٨٦/٣)

الفصل الثانی

٣- عَنْ يَزِيْدَ بْنِ الْاَسْوَدِ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ حَجَّتَهُ، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ صَلَاةَ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ، فَلَمَّا قَضٰى صَلَاتَهُ وَانْحَرَفَ فَإِذَا هُوَ بِرَجُلَيْنِ فِي آخِرِ الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّيَا مَعَهُ، قَالَ: عَلَيَّ بِهِمَا، فَجِيْءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا. فَقَالَ: «مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا ؟» فَقَالَا: يَارَسُوْلَ اللهِ! إِنَّا كُنَّا قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا. قَالَ: «فَلَا تَفْعَلَا، إِذَا صَلَّيْتُمَا فِي رِحَالِكُمَا،

ثُمَّ أَتَيْتُمَا مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا مَعَهُمْ، فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : يزيد بن الاسود رضي الله عنه فرمائي: زۀ د نبي ﷺ سره د هغۀ حج ته حاضر شوم او د هغۀ سره مې په مسجد الخيف کښې د سحر مونځ اُوکړو، کله ئې چه مونځ ختم کړو او راواوړيدو، نو دغه وخت کښې د دوه سړو سره ملاؤ شو چه د خلقو په آخر کښې ناست وو او د نبي ﷺ سره ئې مونځ نۀ وو کړے، نبي ﷺ اُوفرمايل : «دا دواړه کسان ما ته راولئ!» نو دواړه راوستے شو چه (د نبي ﷺ د هيبت په وجه د هغوی) د ملا (شا) غوښې رپيدلے، ورته ئې اُوفرمايل : «تاسو ما سره د مونځ کولو نه څۀ منع کړئ؟» هغوی دواړو اُووئيل : اے د الله رسوله! مونږ په خپلو کورونو کښې مونځ کړے وو، وے فرمايل : «آينده دا کار مۀ کوئ، کله چه تاسو خپلو کورونو کښې مونځ اُوکړو بيا تاسو د جماعت والا مسجد ته راغلئ نو د هغوی سره شريك مونځ کوئ دا به ستاسو دپاره نفل وي»۔ (ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ)

تشريح : دا حديث دليل دے د جمهورو چه د جَمعے د خاطره د سحر مونځ هم دوباره کول جواز لري۔ ☆- احناف پدے حديث عمل نۀ کوي وائي چه دا حديث مضطرب دے څکه په بعض رواياتو کښې صلاة الصبح ذکر دے او بعضو کښې صلاة الظهر ذکر دے۔

الجواب :کوم روايت کښې چه صلاة الظهر راغلے دے نو هغه امام محمد په کتاب الآثار (١٩)کښې ذکر کړے او مسند ابي حنيفة ص(٨١) کښې هم راغلے او هغه ضعيف روايت دے۔ هيثم مرسلًا نقل کړيدے۔ او دا روايت قوي دے لهذا هيڅ اضطراب نشته۔

٢- دويم اعتراض کوي چه دا منسوخ دے۔ الجواب : دا په حجة الوداع کښې نبي ﷺ بيان کړيدے او ددے نه روستو نبي ﷺ (٨١) ورځې پس وفات شويدے۔ نو ناسخ ئې کوم ځائے راغلو۔ ٣- دارنګه دا اعتراض کوي چه دا حديث دومره قوي نۀ دے او احاديث د نهي عن الصلاة في الاوقات الثلاثة متواتر دي۔

الجواب : منو دا خبره چه احاديث د نهي متواتر دي ليکن دلته تعارض نشته څکه هغه احاديث متواتره محمول دي په نوافل مطلقهؤ باندے او دا حديث محمول دے په صلاة سببي باندے څکه دلته سبب موجود دے چه هغه جماعت حاضريدل دي۔

نو دے سره د دوی دا اعتراض هم ختم شو چه وائي احاديث د نهي مُحرم دي او دا حديث مُبِيح دے او عند التعارض مُحرم مُقدم وي په مُبِيح باندے نو مونږ وايو صغرئ صحيح ده ليکن کبرئ نۀ منو څکه چه دلته د سره تعارض نشته نو مقدم کول او مؤخر کول خو فرع

د تعارض ده۔ څکه چه حرام نوافل مطلقه دي او مباح دا صلاة سببي دي۔ لکه دوی هم ددې احاديثو د نهي نه ډير استثناءات کړيدي چه د هغې بيان په دې کتاب (١٧٢/٣) او (٥٥٢/٤-٥٥٥) کښ اُوکوره۔

فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ :

## اختلاف دے چه کوم مونځ نفل حسابيږي او کوم فرض ؟

١- يو قول دا دې چه اول مونځ فرض دې او دويم نفل دې او همدا قول راجح دې۔

٢- قول ثاني دا دې چه اکمل کوم وي نو هغه به فرض وي۔

٣- قول ثالث : مخکنې نفل او روستو به فرض وي۔ ٤- قول رابع : عبد الله بن عمرؓ فرمائي : د الله خوښه ده چه کوم فرض حسابوي او کوم نفل۔ لکه د هغه حديث روستو راروان دې۔ ليکن ظاهر دا ده چه که تا د اول مونځ د فرضو نيت کړې وي نو هغه به فرض وي او دويم به نفل وي۔ دلته هم وائي چه د جماعت سره اداء شوې مونځ به نفل شي۔

تُرْعَدُ : د باب افعال (اِرْعَادٌ) نه دې، د مجهول صيغه ده مجردئې رِعْدَةٌ دې، په معنى د رپيدلو او اضطراب سره۔ او فرائص جمع د فريصة ده د شا غوښې ته وائي۔ او دا رپيدل د نبي عليه السلام د رعب په وجه وو څکه چا کښ څومره تقوىٰ وي نو هغومره پکښ رعب وي۔

مَسْجِدِ الْخَيْفِ : دا مسجد په منىٰ کښ د غره په لمن کښ دې، خيف د غره نه لاندې سختې زمکې ته وائي چه کږه وي۔

## مسئله : تكرار الجماعة :

بيا پدې حديث کښ مسئله د اعادې د مانځه ده د جماعت سره نو پدې کښ دوه صورتونه دي (١) اول صورت : چه يو انسان په وقت کښ د جمعې سره مونځ اُوکړي بيا په بل مسجد کښ جماعت لاندې کړي په وقت کښ۔ نو پدې وخت کښ به د هغوی سره اِعاده د مانځه کوي په راجح قول کښ يا وجوباً اعاده ده يا استحباباً، ظاهر عدم وجوب دې څکه چه روستو مونځ نفل دې۔ او کله چه د مسجد نه ماسوىٰ جماعت اُومومي نو بيا پرې اِعاده نشته۔ او ددې دپاره ډير دلائل دي۔ ١- يو دليل حديث د امامت د معاذ بن جبل ﷺ مخکښ تير شو چه دا د هغهٔ دپاره نفلي مونځ وو۔ او دا نص دې په مسئله کښ څکه نبي ﷺ هغهٔ ددې تکرار د جماعت نه منع نهٔ کړو۔ نو دليل شو په استحباب د اعاده باندې۔ ٢- دويم دليل : دا حديث الباب دې چه پدې کښ د مسجد جماعة قيد ذکر دې۔

٣- دريم دليل : صحابه کرامؓ هم داسې عمل کړيدې۔ لکه انس بن مالك ﷺ فرمائي :

مونږ ته ابوموسیٰ اشعریؓ په مِربد کښې د سحر مونځ اُوکړو بیا مونږ جامع مسجد ته لاړو نو اقامت د مانځه اُوشو، هلته مو د مغیره بن شعبهؓ سره (بیا) مونځ اُوکړو۔ (السنن الکبریٰ للبیهقی ۳/۳۰۳) المغنی لابن قدامة (۲/۵۲۱) والمجموع (۴/۲۲۳) دارنګه که د مانځه إعاده اُونکړی نو بیا پرے تهمت لګی چه د مانځه نه پټ شو۔

او کوم حدیث د ابوداود (۱/۹۳) کښې چه ابن عمرؓ فرمائی: (لا تصلوا الصلاة مرتین) (یو مونځ دوه ځل مهٔ کوئ) نو هغهٔ محمول دے په هغهٔ صورت باندے چه إعاده د مانځه په نیت د فرضو اُوکړی نو هغهٔ صحیح نهٔ ده او کله چه نیتونه جُدا جُدا وی چه اول فرض او دویم نفل وی نو بیا جائز ده او د هغے نه منع نشته۔ بلکه اثبات دے لکه (فانها لکما نافلة) راغلی دے۔ ۲- دویم دا چه هغهٔ محمول دے په غیر د مسجد باندے لکه په هغے باندے د بَلاط لفظ دلالت کوی۔ یعنی ابن عمر دا جماعت لاندے کړے وو خو په غیر د مسجد نه او مونږ وئیلی وو چه د مسجد نه ماسویٰ کښې د جماعت سره إعاده نشته ځکه ددے نه خو بیا دا لازمیږی چه مثلًا د ماسپښین مونځ درے او څلور کرته اعاده شی او دا کار په شریعت کښې مکروه دے۔ کما قال شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ فی الفتاوی (۲۳/۲۶۰)

(۲) دویم صورت دا دے چه اول ئے یواځے (منفرداً) مونځ کړے وی او بیا جماعت اُومومی نو په دهٔ باندے واجب دی چه اعاده د مانځه به کوی او دا حکم په ټولو مونځونو کښې دے اګرکه فجر او مغرب او عصر وی۔ او همدا راجح قول دے۔

دلیل ئے دا حدیث الباب دے چه دے دوه کسانو په کور کښې مونځ کړے دے بیا ئے جماعت لاندے کړے دے او هغے کښې نهٔ دی شامل شوی نو نبی ﷺ منع کړل او حکم ئے ورته اُوکړو چه دوباره مونځ به کوئ (فصلیا معهم)۔

علامه شوکانیؒ فرمائی: (ثم اتیتما مسجد جماعة) دے کښې ئے د (مسجد جماعة) قید اُولګولو نو ظاهر دا ده چه دا حکم خاص دے په هغهٔ جماعتونو پورے چه مساجدو کښې کولے شی نهٔ هغهٔ چه بهر د مساجدو نه کولے شی۔ نو دلته به مطلق حمل وی په مقید باندے۔ (نیل الاوطار: ٤/ ٤٣٦) باب الرخصة فی اعادةالخ)

علامه خطابیؒ فرمائی: پدے حدیث کښې د فقه نه دا خبره ده چه چا په کور کښې مونځ اُوکړو بیا د جماعت سره مخامخ شو نو دهٔ باندے لازم دی چه د هغوی سره به مونځ کوی په پنځو مونځونو کښې چه هر مونځ وی، او دا مذهب د شافعیؒ، احمدؒ او اسحاقؒ دے۔ او امام مالکؒ د مغرب مونځ کښې إعاده مکروه ګنړی او ابوحنیفةؒ په فجر او عصر او مغرب کښې إعاده مکروه ګنړی۔ لیکن ظاهر د حدیث حجت دے په دوی باندے۔ ځکه حدیث

(فليصل معه) مطلق راغلي دے۔ هر مونځ ته شامل دے۔ انتهیٰ (معالم السنن ۱۶٤/۱)

علامه مناویؒ فرمائي: (فهذا تصريح بعدم الفرق بين وقت الكراهة وغيره) (دا (فصليا معهم) تصريح ده پدے چه د كراهت او غير كراهت وقت هيڅ فرق نشته) (فيض القدير ۵۰۲/۱)

او دا حديث تخصيص راولی په عموم د هغۀ احاديثو كښ چه دلالت كوی په كراهت باندے۔ ځكه دا حديث په آخری ژوند د نبی ﷺ كښ په حجة الوداع كښ وئيلے شوے دے۔ (تحفة الاحوذی۲۱۸/۲) باب اذا دخل) (والمرعاة ۱۱۸/٤)

علامه سندیؒ فرمائي: «دا قول (فصليا معهم) تصريح ده پدے چه دا حكم اوقاتو د كراهت ته هم شامل دے، او دا حكم د اوقاتو د كراهت نه په علاوه پورے خاص كولو نه سانع دے ځكه د علماؤ اتفاق دے پدے چه ددے حديث مورد صلاة الفجر دے او استثناء د مورد، د عموم نه صحيح نۀ وی، او پدے حكم باندے د نسخ گمان هم ممكن نۀ دے ځكه دا په حجة الوداع كښ راغلے دے۔(حاشية النسائی ۱۱۳/۲ - كتاب الامامة)

۲- دویم دليل: روستو فصل ثالث كښ د بسر بن محجن حديث دے۔ هلته ئے اُوگوره۔ هغے كښ دا الفاظ دی: (اذا جئت المسجد و كنت قد صليت فاقيمت الصلاة فصل مع الناس وان كنت قد صليت) (يعنی اگركه تا مونځ كړے وی خو چه مسجد ته راغلے نو د خلقو سره په مانځه كښ شركت كوے) او دا حكم وجوبی دے او ټولو مونځونو ته شامل دے۔

او هر چه اثر د ابن عمرؓ دے چه هغه فرمائي: «كه تا په خپل كور كښ مونځ اُوكړو او بيا په مسجد كښ د امام سره مونځ لاندے كړے نو د هغۀ سره مونځ كوه سوئے د فجر او مغرب نه ځكه دا دوه كرته نۀ كيږی». (عبد الرزاق ٤۲۲/۲) ونحوه فی الموطأ (۱۱۶/۱)۔

نو دا روايت اگركه صحيح دے ليكن دا د ابن عمر ﷺ رأيه ده او د مرفوع احاديثو خلاف ده۔ لهذا عمل به په مرفوع احاديثو وی كوم چه مخكښ تير شو۔

ملا علی القاریؒ دا روايت دارقطنی ته په طريقه د رفع منسوب كړيدے ليكن دا د هغۀ غلطی ده، دا په دارقطنی كښ نشته۔ مونږ هم ډيره تتبع اُوكړه او دغه شان تتبع شيخ ابوالحسن المباركفوری هم كړيده او هغۀ دا د اُوهامو د علی القاری نه شمارلے دے۔ (المرعاة (۱۲۶/٤)۔ او اعلاء السنن (۲۸۷/٤) كښ ئے الاحكام الكبرىٰ د عبد الحق الاشبيلی ته منسوب كړيدے ليكن هلته هم دا روايت بعد التتبع نۀ ملاويږی او دا رفع شاذ ده۔ دارنگه كوم روايت د علیؓ كښ چه راغلی دی چه مابنام سره به يو ركعت يو ځائے كوی دے دپاره چه څلور ركعاته نفل جوړ شی نو دا روايت هم ضعيف دے، حارث راوی پكښ ضعيف دے۔ (ابن ابی شيبة (۲۷۶/۳) لهذا مابنام به هم كوی او درے ركعاته نفل

هم په داسې موقعه كښې شته. انظر فتاوى الدين الخالص (١٩٢/٥) والمرعاة (١١٨/٤) او ددې مسئلې لګ تفصيل ددې كتاب په (١٥٠/٣) باب تعجيل الصلاة (١٤) حديث لاندې اُوګوره.

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه عبد الرزاق (٤٢١/٢) رقم (٣٩٣٤) واحمد (١٦٠/٤) والدارمي (٣١٨،٣١٧/١) وابوداود (٥٧٥) والترمذي (٢١٩) والنسائي (١١٢/٢-١١٣) وابن حبان (٤٣٤) والحاكم (٢٤٤/١-٢٤٥)

## الفصل الثالث

٤- عَنْ بُسْرِ بْنِ مِحْجَنٍ عَنْ اَبِيهِ، اَنَّهُ كَانَ فِيْ مَجْلِسٍ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَاُذِّنَ بِالصَّلاةِ، فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَصَلّٰى، وَرَجَعَ، وَمِحْجَنٌ فِيْ مَجْلِسِهٖ، فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَا مَنَعَكَ اَنْ تُصَلِّيَ مَعَ النَّاسِ؟ اَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ؟ » فَقَالَ : بَلٰى، يَارَسُوْلَ اللهِ! وَلٰكِنِّيْ كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِيْ اَهْلِيْ. فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:«اِذَا جِئْتَ الْمَسْجِدَ، وَكُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ، فَاُقِيْمَتِ الصَّلاةُ، فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَاِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

ترجمه : او بسر بن محجنؓ د خپل والد نه روايت نقل كوي چه هغهٔ د رسول الله ﷺ سره په يو مجلس كښې وو نو د مانځه دپاره اذان اُوشو، نو رسول الله ﷺ پاڅيدو مونځ ئې اُوكړو، او (كورته) واپس شو او محجن (رض) په مجلس كښې وو، نو دهٔ ته رسول الله ﷺ اُوفرمايل :« تهٔ څهٔ منع كړې ددې نهٔ چه تهٔ د خلقو سره مونځ اُوكړې؟ آيا تهٔ مسلمان سړې نهٔ ئې؟ »هغهٔ اُووئيل: آؤ (ولې نهٔ) يارسول الله! ليكن ما په خپل كور كښې مونځ كړې وو. نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل :«كله چه تهٔ مسجد ته راشې او تا په كور كښې مونځ كړې وي او اقامت د مانځه اُوشي نو د خلقو سره مونځ كوه اګركه تا مخكښې مونځ كړې وي». (مالكؒ، نسائيؒ).

تشريح : فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ : دا حكم هم وجوبي دې چه څوك يواځې مونځ اُوكړي او بيا جَمعه لاندې كړي نو ضرور به د جماعت سره شامليږي او دا عام دې هر مانځه ته او د نهي د احاديثو سره ئې هيڅ تعارض نشته ځكه دا مستثنىٰ او خاص دې د هغه احاديثو نه كما مرّ مراراً.

وَاِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ : دا دوه احتماله لري يو دا چه يواځې ئې مونځ كړې وي. دويم دا چه د جماعت سره ئې مونځ كړې وي ليكن اول احتمال ظاهر دې ځكه غالب دا ده چه د خلقو

عادت دا وی چه کور کښې مونځ کوی نو هغهٔ یواځې وی، او دا حدیث دلیل دے چه کله انسان ځانله مونځ کړے وی، او یو مسجد ته داخل شی او جماعت ولاړ وی یا تیار وی نو دا به ورسره ضرور شاملیږی او که دهٔ د جماعت سره مونځ کړے وی او مسجد ته داخل شی او مسجد کښې لا اذان نهٔ وی شوے، یا اذان شوے وی لیکن لا جماعت نهٔ وی اُودریدلے نو دهٔ دپاره د دغه مسجد نه وتل جائز دی. مګر که حصار شو او دغه دویمه جَمعه ئے کړه نو دا ورله مستحب ده. او دا په ټولو مونځونو کښې کولے شی وهو الحق.

اَلَسْتَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ؟ : دا حدیث هم علماؤ دلیل ګرځولے چه څوك مونځ نهٔ کوی نو هغهٔ مسلمان نهٔ دے.

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك فى الموطأ (١٣٢/١) والنسائى (١٣٧/١)

---

٥- وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ اَسَدِ بْنِ خُزَيْمَةَ، اَنَّهُ سَأَلَ اَبَا اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِىَّ، قَالَ: يُصَلِّيْ اَحَدُنَا فِيْ مَنْزِلِهِ الصَّلَاةَ، ثُمَّ يَأْتِيْ الْمَسْجِدَ، وَتُقَامُ الصَّلَاةُ، فَأُصَلِّيْ مَعَهُمْ فَأَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ. فَقَالَ اَبُوْاَيُّوْبَ: سَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ النَّبِيَّ ﷺ، قَالَ: « فَذٰلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَاَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او د بنی اسد بن خزیمه د یو سړی نه روایت دے چه هغهٔ د ابوایوب انصاری ﷺ نه تپوس اوکړو: چه په مونږ کښې یو تن په خپل کور کښې مونځ کوی بیا مسجد ته راځی او (ګوری چه ) هلته مونځ ولاړ دے نو آیا زهٔ به د هغوی سره (دوباره) مونځ کوم؟، زهٔ ددے نه په زړه کښې یو شك محسوس کوم (یعنی زما دپاره به دوباره مونځ بهتر وی او کهٔ نهٔ ؟) نو ابوایوب انصاریؓ ورته اُوفرمایل : چه مونږ د رسول الله ﷺ نه ددے په باره کښې تپوس کړے وو، نو هغهٔ فرمایلی وو چه : (دا دوباره مونځ کول) « ددهٔ دپاره د جماعت حصه ده»(مالكؒ، ابوداودؒ)

تشریح : ددے سړی مطلب دا وو چه زهٔ په کور کښې یواځې مونځ اُوکړم بیا مسجد ته راشم او مونځ تیار وی نو آیا زهٔ د هغوی سره مونځ کولے شم او کهٔ نهٔ ؟ زما په زړهٔ کښې ددے نه شك دے؟ نو ابوایوب ورته ترغیب ورکړو چه آؤ دے کار کښې ستا دپاره ډبل اجر دے.

فَأَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ شَيْئًا : ددے شی نه مراد یا شك دے. یعنی شك مے دے چه دا به زما دپاره فائده وی او که ضرر ؟. یا مراد راحت دے یعنی په دوباره مونځ کولو مے زړهٔ خوشحاله شی. نو ورته اُووئیل شو چه پدے کار سره ستا دپاره د جماعت نه حصه شوه یعنی دا بهتر کار دے،

یا دا چه ته ځکه خوشحاله شوے، چه ډیر خیر دے راجمع کړو۔ لیکن اول مطلب غوره دے۔

فَذٰلِكَ لَهٗ سَهْمُ جَمْعٍ : یعنی حصه د راجمع کولو شوه ځکه چه دوه مونځونه ئې راجمع کړل۔ یا د جمع نه جماعت مراد دے یعنی د جماعت د حصے ثواب ئې هم اُوشو او د ځانله مونځ هم۔ بعض وائی : د جمع نه مراد فوج او جیش دے لکه (سیهزم الجمع) او (یوم التقی الجمعان) کښې راغلی دے۔ یعنی ددهٔ دپاره حصه د لښکر شوه او حصه د لښکر خو غنیمت وی یا اَجروی نو ددهٔ دپاره دا غنیمت شو او اجر د غازی فی سبیل الله شو۔ (ابن عبد البرؒ)

بعض وائی : جمع نه مراد مزدلفه ده یعنی دومره حصه د اجرئې حاصله کړه لکه څوك چه په مزدلفه کښې شپه تیره کړی۔ (باجیؒ)

درجة الحديث : اسناده ضعيف ومعناه صحيح مما تقدم وما تاخر : اخرجه ابوداود (٥٧٨) مرفوعاً وفي اسناده مجهول وهو الرجل الاسدى واما مالك فقد اخرجه في الموطأ (١٣٢/١) لكن عنده موقوف فاطلاق عزوه اليه لا يخفى ما فيه۔

---

٦- وَعَنْ يَزِيْدَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: جِئْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ فَجَلَسْتُ وَلَمْ اَدْخُلْ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ. فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَآنِي جَالِسًا، فَقَالَ: «اَلَمْ تُسْلِمْ يَا يَزِيْدُ؟» قُلْتُ: بَلٰى، يَارَسُوْلَ اللهِ! قَدْ اَسْلَمْتُ. قَالَ: «وَمَا مَنَعَكَ اَنْ تَدْخُلَ مَعَ النَّاسِ فِي صَلَاتِهِمْ؟» قَالَ: إِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي مَنْزِلِي، اَحْسِبُ اَنْ قَدْ صَلَّيْتُمْ. فَقَالَ: اِذَا جِئْتَ الصَّلَاةَ فَوَجَدْتَ النَّاسَ، فَصَلِّ مَعَهُمْ وَاِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ، تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً وَهٰذِهِ مَكْتُوْبَةٌ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او یزید بن عامر رضی الله عنه فرمائی: زهٔ رسول الله ﷺ ته په داسے حال کښې راغلم چه هغهٔ په مانځه کښې وو نو زهٔ کیناستم او د هغوی سره په مانځه کښې داخل نهٔ شوم؟ هرکله چه رسول الله ﷺ سلام اُوګرزولو، زهٔ ئې (یو طرفته جُدا) ناست اُولیدم، وے فرمایل : « اے یزید ! آیا تهٔ مسلمان نهٔ ئې ؟» ولے نهٔ، اے د الله رسوله ! ما اسلام راوړے دے، وے فرمایل : « (نو بیا) څهٔ منع کړے چه د خلقو سره په مانځه کښې داخل شے؟» ما عرض اُوکړو: ما په خپل کور کښې مونځ کړے وو، دا خیال مے کولو چه تاسو به مونځ کړے وی، وے فرمایل : «کله چه تهٔ مانځه ته راشے او خلقو اُوموبے چه مونځ کوی نو د هغوی سره مونځ کښې شامل شه، او کهٔ چرته تا مونځ کړے وی نو دغه (د جماعت سره مونځ) به ستا دپاره نفل کیږی او دا (کور کښې مونځ) به ستا دپاره فرض کیږی»۔ (ابوداودؒ)

تعارف د يزيد بن عامر : يزيد بن عامر بن الاسود العامري ابوحاجز السوائي۔ تقريب کښې وائي دا صحابي دے او صرف دا يو حديث ترے نقل دے۔ او دا د مشرکانو په ډله کښې حنين ته حاضر شوے وو، روستو بيا مسلمان شو۔

تشريح : رَآنِيْ جَالِسًا : يعني په غير د هيئت د مانځه نه ناست وم نو وے پيژندلم چه مونځ کښې نۀ يم شريك شوے۔

تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً وَهٰذِهٖ مَكْتُوْبَةٌ : يعني دا دويم د جماعت سره مونځ به نفل او زياتي شي او دغه مونځ چه يواځے دِے کړے دا به فرض شي۔ او دا احتمال د نورو مخکنو احاديثو په بناء راجح دے۔ لکه حديث د محجن يا حديث د يزيد بن الاسود شو يا حديث د ابوذر شو چه په باب تعجيل الصلاة کښې تير شوے دے۔ بعضو برعکس قول کړيدے۔ او دا حديث ئے په دليل کښې پيش کړے دے ليکن جواب دا دے چه دا احتمال د نورو احاديثو په بناء مرجوح دے۔ او بله دا چه دا حديث سنداً دومره قوي هم نۀ دے۔

او کوم روايت د دارقطني کښې چه صراحةً داسے راغلي دي (وليجعل التى صلى في بيته نافلة) (کور کښې ئے چه کوم مونځ کړے دے هغۀ دِے نفلي اُوګرځوي) نو امام دارقطني پخپله او بيهقيؒ وئيلي دي چه دا روايت شاذ او مردود دے ځکه د ثقاتو نه مخالف دے۔ لکه دا خبره حافظ په تلخيص (۱۲۲) کښې او حافظ زيلعي په نصب الرايه (۱۵۰/۲) کښې نقل کړيده۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف ومعناه صحيح: اخرجه ابوداود (۵۷۷) صححه الالباني في المشكوة (۱۱۵۵) وضعفه في ضعيف ابي داود (۴۸۹) وفي اسناده نوح بن صعصعة وهو مستور وقال الدارقطني حاله مجهولة۔

---

۷- وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، اَنَّ رَجُلًا سَأَلَهٗ، فَقَالَ: اِنِّيْ اُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ، ثُمَّ اُدْرِكُ الصَّلَاةَ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الْاِمَامِ، اَفَأُصَلِّيْ مَعَهٗ؟ قَالَ لَهٗ: نَعَمْ. قَالَ الرَّجُلُ: اَيَّتُهُمَا اَجْعَلُ صَلَاتِيْ ؟ » قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَذٰلِكَ اِلَيْكَ؟ اِنَّمَا ذٰلِكَ اِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ. يَجْعَلُ اَيَّتَهُمَا شَآءَ. رواه مالك.

---

ترجمه : او د ابن عمر ﷺ په باره کښې منقول دي چه د هغۀ نه يو سړي تپوس اُوکړو وے فرمايل : زۀ په خپل کور کښې مونځ کوم، بيا په مسجد کښې د امام سره مونځ لاندے کوم نو آيا زۀ به د هغۀ (امام) سره مونځ کوم ؟ ابن عمرؓ اُوفرمايل : آؤ، هغۀ سړي اُوئيل : چه ددے نه کوم يو به زۀ خپل (فرض) مونځ ګرزوم؟ ابن عمرؓ اُوفرمايل : آيا دا کار تا ته سپارلے شوے دے؟ (نۀ بلکه) دا کار خو الله ته سپارلے شوے دے د هغۀ خوښه ده چه کوم (فرض)

ګرځوي۔ (مالك)

تشریح : د ابن عمرؓ رأیه هم دا ده چه دویم مونځ کښې به هم شرکت کوے۔ او جواب ئې دا ورکړو چه د الله خوښه ده چه کوم یو په فرضو بانديے قبلوي او کوم یو په نفلو بانديے۔ خو فقهي مسئله دا ده چه اول په تا بانديے فرض وو او تا نه د هغې مطالبه کيدله او هغه تا اُوکړو۔ بله دا چه تا د هغې د کولو په وخت د فرضو نیت کړے وو او دار مدار د اعمالو په نیتونو دے۔ او دا دویم خو ته د جماعت د خاطره کوے نو دا نفل دے۔ (تاویل مختلف الحدیث ۲۳۸/۱ – ابن قتیبة الدینوریؒ)

او ابن عمرؓ جواب ورکړو چه الله ته پته ده ځکه چه اصل حقیقت د قبلیدو خو الله ته معلوم دے، د هغې علم ئې بندګانو ته نۀ دے ورکړے چه زۀ فلانے قبلوم او فلانے نۀ قبلوم، کله الله فرض قبلوي او نفل نۀ قبلوي او کله برعکس وي، کله په نوافلو کښې د فرضو نه زیات طاقت وي چه په اخلاص او زیاته توجه سره اُوشي۔ نو ځکه ئې هغۀ ته په تفویض الی الله سره جواب اُوکړو۔

بعض علماء داسے وائي چه د ابن عمرؓ مقصد دا وو چه ما ته پته نشته چه کوم یو به فرض حساب وي او کوم یو به نفل ځکه د هغۀ اوله کښې شك وو او روستو ئې د شك نه رجوع کړے ده او دا ئې وئیلي دي چه دویم به نفل او اول به فرض حسابوي۔ لکه دا روایت علي القاري په شرح د مسند ابي حنیفة کښې نقل کړے او د هغۀ نه ابن عبد البرّ نقل کړیدے۔ لکه دا دویم روایت د هغۀ د نورو مرفوع صحیح احادیثو موافق دے۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح علی شرطهما : اخرجه مالك في الموطأ (۱۳۳/۱)

---

۸– وَعَنْ سُلَيْمَانَ مَوْلٰى مَيْمُوْنَةَ، قَالَ: اَتَيْنَا ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبَلَاطِ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ. فَقُلْتُ: اَلَا تُصَلِّيْ مَعَهُمْ ؟ فَقَالَ : قَدْ صَلَّيْتُ، وَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ:«لَا تُصَلُّوْا صَلَاةً فِيْ يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او سلیمان چه د میمونہؓ آزاد کرده غلام دے فرمائي : زۀ (یوه ورځ) ابن عمرؓ ته په بلاط مقام کښې راغلم چه خلقو (هغۀ وخت په مسجد کښې) مونځ کولو، نو ما ورته عرض اُوکړو : آیا تۀ د خلقو سره مونځ نۀ کوے......؟ ابن عمرؓ اُوفرمایل :ما مونځ کړے دے او ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلي دي چه فرمایل ئې :«تاسو په یوه ورځ کښې یو مونځ دوه ځل مۀ کوئ»۔ (احمدؒ، ابوداوُدؒ، نسائيؒ)

تشریح : دا حدیث چا دلیل ګرځولے دے چه د جماعت سره دوباره مونځ کول صحیح نهٔ دی۔ لیکن دا استدلال صحیح نهٔ دے ځکه چه د ابن عمرؓ د مخکنئ فتوے نه معلومه شوه چه دوباره مونځ به کوی نو ددے روایت یو څو مطلبه دی :

۱ - یو دا چه یو فرض مونځ دوه ځله د فرضو په نیت کول صحیح نهٔ دی ځکه چه فرضو کښې تکرار شریعت نهٔ دے وئیلے۔ او کله چه اول مونځ فرض حساب شی او دویم نفل نو دیته خلق دا نهٔ وائی چه دهٔ دا مونځ دوه ځل اُوکړو۔ لهذا دیته نهی نهٔ ده شامله۔ ځکه چه دا دواړه مختلف دوه مونځونه شو یو فرض او بل نفل۔ (تاویل مختلف الحدیث ص (۲۲۳۸) (والمرعاة ۱۲٦/٤)

علامه ابن عبد البرؒ په الاستذکار کښې د احمد بن حنبلؒ او اسحاق بن راهویهٔ نه ددے معنیٰ داسے نقل کړیده : چه یو سړے فرض مونځ یو ځل اُوکړی بیا د هغے نه فارغ کیدو سره سمدست په همدغه وخت کښې دوباره د فرضو په طریقه کوی، او کله چه یو انسان دویمه جمعٔ کوی د نفل په طریقه، د نبی ﷺ د امر اقتداء کوی چه هغهٔ پدے باندے اَمر کړیدے نو دیته په ورځ کښې د یو مونځ دوه ځل اعاده نهٔ وائی۔ ځکه اولنے مونځ فرض دے او دویم نفل دے لهذا دا اِعاده نهٔ شوه۔ انتهیٰ۔

۲ - دویم دا چه دا محمول دے په هغه صورت باندے چه یو انسان یو ځل جَمعه اُوکړی او بیا د مسجد نه بهر جماعت اُوومی نو هغه باندے لازم نهٔ ده چه ددے خلقو سره شریك شی۔ ځکه احادیثو کښې د «مَسْجِدُ جَمَاعَةٍ» قید راځی چه انسان مسجد ته لاړ شی نو هله به دویمه جَمع کښې شریك کیږی او دلته دا مسجد نهٔ دے بلکه بلاط یو بهر ځائے دے۔

۳ - یا دا چه د نسائی او ابوداود د ترجمة الباب نه داسے معلومیږی چه دا روایت د ابن عمرؓ حمل دے په هغه صورت چه اول مونځ ئے هم د جَمعے سره کړیدے او بیا ئے دا جماعت اُوموندلو نو په دهٔ باندے لازم نهٔ ده چه دوه ځل مونځ اُوکړی۔

مګر دا جواب بعید دے ځکه مخکښې وئیلے شویدی چه کهٔ مخکښې ئے د جماعت سره مونځ کړے وی نو هم دوباره مونځ به کوی۔

٤ - بعض وائی : دا محمول دے په هغهٔ صورت چه مونځ سببی نهٔ وی او دلته دا دویم مونځ سببی دے ځکه چه سبب ئے جماعت دے ځکه چه سړی یواځے مونځ کړے دے نو کله چه جماعت حاضر شو نو سبب موجود شو لهذا دا به کوی دے دپاره چه فضیلت د جماعت هم ورته حاصل شی لکه دا خبره علامه خطابیؒ په معالم السنن (۱/۱٦٦) کښې کړیده، او وئیلی ئے دی چه پدے سره توفیق د اخبارو ترمینځ راځی او د هغوی ترمینځ

اختلاف ختمیږی۔ والله اعلم۔

بلاط : په اصل کښې یو قسم کانړی دی چه په زمکه کښې لګولے شی قاموس کښې دی : دا هغه خوئے هواره زمکے ته هم وائی او هغه کانړو ته هم وائی چه په کور کښې خوروله شی۔ او اُوس نوم ګرځیدلے دے د یو ځائے دپاره په مدینه کښې۔

حافظ په مقدمه د فتح الباری کښې فرمائی : دا هغه ځائے دے چه عمر فاروق د خلقو د خبرو اترو دپاره د مسجد نه بهر جوړ کړے وو۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۱۹/۲-٤۱) وابوداود والنسائی وصححه الدارقطنی والبیهقی وابن خزیمة وقال النووی : اسناده صحیح۔

---

۹- وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَكَانَ يَقُوْلُ: مَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ اَوِالصُّبْحَ، ثُمَّ اَدْرَكَهُمَا مَعَ الْإِمَامِ، فَلَايَعُدْ لَهُمَا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه : او نافع رحمه الله فرمائی: عبد الله بن عمر ﷺ به فرمایل : چا چه د ماښام او صبا مونځ اُوکړو او بیا ئے دا دواړه مونځونه د امام سره اُوموندل نو هغهٔ دِے دا مونځونه دوباره نهٔ کوی۔ (مالكؒ)۔

تشریح : مخکښې مونږ اووئیل چه دا د ابن عمرؓ رأیه ده چه چا د ماښام او سحر مونځ اُوکړو او بیا ئے د امام سره اُوموندی نو دا به دوباره نهٔ کوی۔ ځکه چه د ماښام او سحر نه روستو نفل نهٔ کیږی۔ او کیدے شی چه دهٔ ته هغه عام حدیثونه نهٔ وی رسیدلی کوم چه مخکښې تیر شو۔ علی کل حال دا مقابله د هغهٔ مرفوع احادیثو نشی کولے۔

او دا احادیث د نهی د احادیثو د عموم تخصیص کوی۔ لهٰذا ددے د احادیثو د نهی سره هیڅ قسم تعارض نهٔ شته۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك فی الموطأ (۱۳۳/۱) باسناد صحیح علی شرطهما.

OOOOOOOO

# باب السنن وفضائلها

## د سنتو او د هغې د فضائلو بیان

سُنَن جمع د سُنت ده، دلته مراد د سنن نه هغه مونځونه دي چه ماسِویٰ د فرائضو نه وي او په ورځ او شپه کښې د فرائضو سره کولے شي. برابره ده واجب وي او که سنت وي. او د فقهاؤ په اصطلاح کښې سنن په دوه قسمه دي : ۱- سنن مؤکد رواتب : چه په هغې باندے نبي ﷺ دوام کړے وي مګر یو کرت دوه کرته ئے پریخي وي.

۲- سنن غیر مؤکد (مندوب) دا هغه دي چه نبي ﷺ په هغې باندے همیش والے نۀ وي کړے.دویم دا چه سنت مؤکد هغه دي چه قولًا په هغې باندے تاکید راغلے وي او غیر مؤکد هغۀ دي چه قولًا تاکید پرے نۀ وي راغلے.بیا سنن رواتب د احنافو په نزد (۱۲) دولس دي.

۲- او شوافع بلکه اکثر علماء فرمائي : چه لس رکعاته دي څکه دوی د ماسپښین نه مخکښې دوه رکعاته سنت مني لیکن تحقیق دا دے چه د ماسپښین نه مخکښې دوه رکعاته هم شته او څلور هم. خو دا په غیر د ورځے د جُمعے نه څکه چه د جُمعے په ورځ مخکني سنت اختلافي دي کما یأتي في موضعه.

بیا سنت او نوافل د فرائضو نقصان پوره کوي پدے وجه ددے ډیر اهتمام پکار دے، نبي ﷺ ئے هم ډیر اهتمام کړیدے، لکه حدیث کښې دي نبي ﷺ فرمائي : د قیامت په ورځ به اول حساب د بنده سره د هغۀ د مانځه کیږي که هغۀ پوره اداء کړے وو نو پوره به ورله لیکلے شي او پوره ئے نۀ وي اداء کړے نو الله به ملائکو ته اُوفرمائي : اُوګوریٔ آیا تاسو زما د بنده څه تطوع (نوافل اوسنن) وینیٔ ( نو کۀ هغۀ وي) په هغې سره به ددۀ فرائض پوره کړي بیا به زکوة هم په دغه طریقه وي او بیا به باقي اعمال هم په دغه طریقه اخستے شي. (احمد، ابوداود، ابن ماجه، حاکم)

فائده : ابن دقیق العیدؒ په شرح العمدة کښې د مخکنو او روستنو سنتو مقررولو حکمت ذکر کړیدے چه په مخکنو سنتو کښې یوه لطیفه مناسبه معنیٰ پرته ده او هغۀ دا چه انسان د دنیا په کارونو مشغول وي نو نفس ته یو داسے کیفیت حاصل وي چه په عبادت کښې د زړه د حاضریدو نه هغۀ حالت بعید وي او زړۀ کښې هغۀ خشوع نۀ وي کوم چه د عبادت روح دے نو کله چه د فرضو نه مخکښې سنت اُوکړے شي نو نفس په عبادت

باندے اُنس (اموخت) حاصل کړي او داسے یو کیفیت او حالت پیدا شي چه هغهٔ خشوع ته نزدے وي نو په فرائضو کښ به په بښائسته حالت داخل شي چه کهٔ دا سنت نهٔ وے نو دهٔ ته داسے حالت نشو حاصلیدلے ځکه نفس چه په څهٔ کښ مصروف وي نو د هغهٔ شي کیفیت اخلي، خاصکر کله چه دا مصروفیت زیات یا اُوږد شي، او کله چه د مخکښې حالت منافي کار راشي نو ډیر کرت د مخکښې حالت اثر ختموي یا ئے ضعیف کوي. او هرچه روستنی سنت دی نو وجه دا ده چه وارد شویدي چه نوافل جبیره ده د نقصان د فرائضو نو کله چه فرض واقع شي نو مناسب ده چه ددے نه روستو ورپسے هغهٔ شے واقع شي چه هغهٔ جبیره د نقصان اُوګرځي کهٔ چرته دغه نقصان واقع شوے وي. انتهیٰ.

## فائده ثانیه : فرض، واجب، سنت، نفل، مندوب او مستحب پیژندل

د فقهاؤ اصطلاحات د زیادتِ توضیح دپاره بیانوو چه قارئینو ته زیاته فائده حاصله شي. فقهاء فرمائي : مشروعات څلور اقسام دي : فرض، واجب، سنت او نفل. هغهٔ شے چه د هغے کول اَولیٰ وي د ترک نه او په ترک باندے ئے منع راغلے وي، نو که دا په قطعي دلیل ثابت وي دا فرض شو او که په ظني دلیل ثابت وي نو دا واجب دی- (لیکن دا اصطلاح د فقهاءِ احنافو ده. جمهور علماء فرض او اواجب دواړه په یوه معنیٰ ګڼړي). او که ترک ئے منع نهٔ وي نو که په هغے باندے نبي ﷺ یا د هغه نه روستو خلفاءِ راشدینو همیش والے کړے وي دا سنت دی او که همیش والے نهٔ وي نو بیا مندوب او نفل دی.

او سنت دوه قسمه دي، سنة الهدی : چه د هغے په پریخودلو اساءت او کراهیت لازمیږي او سنة الزوائد چه د هغے په ترک دا نهٔ لازمیږي. او سنن هُدیٰ هغهٔ مؤکد سنن دي چه واجبو ته نزدې دي چه ددے تارک ته د ګمراهئ نسبت کولے شي، ځکه ددے په ترک سره د دین استخفاف او سپکاوے لازمیږي په خلاف د سنت زوائد چه دا د شعائر الدین او مکملات د دین نه نهٔ دي، او په خلاف د نفل ځکه چه دا د فرائض، واجباتو، او سننو نه علاوه زیاتي مشروع شویدي. نو نفل هغهٔ ته وائي چه په هغے باندے عمومي یا خصوصي دلیل د ندب (استحباب) راغلے وي او نبي ﷺ په هغے باندے مواظبت نهٔ وي کړے. پدے وجه دا د سنت زوائدو نه خکته درجے والا دی. او کله نفل ذکر کیږي او مراد ترے نه عامه معنیٰ وي چه شاملیږي سنن رواتبو ته هم لکه علماء داسے وائي : باب الوتر والنوافل. یا د حج په باره کښ وائي : (حج نافلة) ځکه نفل زیاتي ته وائي او دا هم په فرائضو زیات دي او سره ددے نه چه دا د عام شعائرو د دین نه دی.

ملا علی القاریؒ فرمائی : سنت، نفل، تطوع، مندوب، مستحب او مرغب فیه دا ټول الفاظ مترادفه دی او معنیٰ ئې یوه ده، دیته وائی چه شارع د هغې کولو ته ترجیح ورکړی وی د هغې په پریخودلو باندې او د هغې پریخودل هم جائز وی، اګرکه بعض مسنون به مؤکد وی د بعضو نه۔ انتهیٰ۔ راجع المرعاة (۱۲۷/٤)۔

## الفصل الاول

۱ - عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ :«مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً، بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ : أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ، وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ : أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ: «مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلهِ كُلَّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ، إِلَّا بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ - أَوْ إِلَّا بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ».

---

ترجمه : ام حبیبه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : « چا چه په ورځ او شپه کښې دولس رکعاته اُوکړل د هغهٔ دپاره به په جنت کښې کور جوړ کړے شی، څلور مخکښې د ماسپښین نه او دوه روستو د هغې نه او دوه رکعاته روستو د ماښام نه او دوه رکعاته روستو د ماسخوتن نه او دوه رکعاته مخکښې د سحر مانځه نه»۔ (ترمذیؒ) او په یو روایت د مسلمؒ کښې دی : ام حبیبےؓ اُوفرمایل : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمایل ئې : «نشته یو بنده مسلمان چه د الله دپاره په هره ورځ کښې دولس رکعاته نفل مونځ اُوکړی چه فرض نهٔ وی مګر هغهٔ دپاره به الله یو کور په جنت کښې جوړ کړی »۔ یا ئې داسې فرمائیلی دی : «مګر د هغهٔ دپاره به په جنت کښې کور جوړ شی»۔

## تعارف د ام المؤمنین أم حبیبه رضی الله عنها :

د ابوسفیان ﷺ لور او د معاویهؓ خور او د نبی ﷺ بی بی ده او نوم ئې رَمْلَه دے۔ بعض وائی : هِنْدَ دے۔ اول قول مشهور دے۔ پخوانۍ مسلمانه ده او د مور نوم ئې صفیه بنت ابی العاص بن امیه وو، چه د عثمان حقیقی ترور وه، ام حبیبه د رسول الله ﷺ د بعثت نه (۱۷) کاله مخکښې پیدا شویده۔ (اصابه رقم (۱۱۱۹۱)

اوله نکاح ئې د عبید الله بن جحش سره اُوشوه کوم چه د حرب بن امیه حلیف وو۔ د خپل خاوند سره مسلمانه شوه او د خپل خاوند سره ئې حبشې ته هجرت اُوکړو، هغه ترے

بیا نصرانی (عیسائی) شو، ام حبیبه ته ئې هم دعوت ورکړو لیکن هغهٔ په اسلام باندې مضبوطه پاتې شوه او هغهٔ ترې بیا په حبشو کښې مړ شو. د عدت د ختمیدو نه پس رسول الله ﷺ عمرو بن اُمیه ضمری ﷺ نجاشی ته د ام حبیبه د نکاح په غرض اُولیږلو، کله چه هغهٔ نجاشی ته اُورسیدو نو نجاشی د خپلې وینځې په ذریعه ام حبیبې ته خبر ورکړو چه رسول الله ﷺ ما ته ستاسره د نکاح کولو دپاره خط لیکلے دے، ام حبیبې خالد بن سعید اموی ﷺ خپل وکیل مقرر کړو، ځکه چه دا ئې نزدے خپلوان وو. کله چه ماښام شو نو نجاشی جعفر بن ابی طالب او د هغهٔ ملګری کوم چه حبشو کښې وو راجمع کړل او خپله ئې نکاح اُووئیله او د رسول الله ﷺ د طرف نه ئې څلور سوه دیناره مهر ادا کړو، او ولیمه ئې هم اُوکړه، او دا ئې اووئیل : د انبیاؤ دا طریقه ده چه کله نکاح اُوکړی نو ولیمه کوی. د نکاح نه روستو ئې ام حبیبه ئې په کشتئ کښې کینوله او روانه ئې کړه او د مدینې په بندرګاه باندې ئې کوزه کړه، په هغهٔ وخت کښې رسول الله ﷺ په خیبر کښې تشریف فرما وو، دا اووم (٧) یا (٦) هجری وو. پدے وخت د ام حبیبې رضی الله عنها عمر (٣٦) یا (٣٧) کاله وو. السنن الکبری (معرفة الصحابة لابی نعیم ٢٢/٢٨٤)

**وفات :** ام حبیبه رضی الله عنها د خپل وړور امیر معاویه د خلافت په زمانه کښې په سنه (٤٤) یا (٤٢) هجری کښې وفات شویده، او په مدینه کښې دفن شویده. او پدے وخت د (٧٣) کالو په عمر وه.

د اول خاوند نه ئې دوه اولاد پیدا شویدی ١- عبد الله او حبیبه. حبیبه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ په تربیت کښې راغله او داود بن عروه بن مسعود ته منسوب شوه کوم چه د ثقیف قبیلې رئیس اعظم وو.

**حلیه :** ډیره ښائسته وه. په صحیح مسلم کښې د ابو سفیان قول دے : (عندی احسن العرب واجمله ام حبیبة) (صحیح مسلم : ٦٤٠٩) (ما سره د ټولو عربو د ښائسته او جمیل زنانو نه ام حبیبه موجوده ده) ام حبیبه (٦٥) روایات اُمت ته نقل کړیدی.

**اخلاق :** د ام حبیبه رضی الله عنها ایمانی جوش ته فکر اُوکړه چه د مکې د فتح نه مخکښې کله چه د هغې پلار ابو سفیان د کفر په حالت کښې وو (د صلح حدیبیه زمانه وه) مدینې ته ددے کور ته راغلو (ډیره موده شویده چه دا لور ئې نهٔ ده لیدلے) نو د رسول الله ﷺ بستره خوره وه نو هغهٔ اراده د کیناستو اُوکړه، پدے کښې ام حبیبه رضی الله عنها په جلتئ سره هغهٔ بستره ددهٔ نه اُوچته کړه، ابو سفیان اووئیل : لورے ! آیا بله ښائسته بستره راچوے او که نهٔ څه وجه ده ؟ هغې اُوفرمایل : دا د رسول الله ﷺ بستره ده او تهٔ مشرك ئې. (ناپاك ئې) ابو سفیان

اووئیل : (لقد اصابكِ بعدی شر) تا ته زما نه روستو شر رسیدلی دے۔ (خرابه شوے ئے)۔
ام حبیبہؓ به په حدیث بانـدے ډیر په سختئ سره عمل کولو او نورو ته به ئے هم ددے تاکید کولو، ابوسفیان ﷺ چه کله وفات شو نو دے په ائنگو باندے خوشبوئی اُولګوله او وے وئیل : د رسول الله ﷺ حکم دے چه د درے ورځو نه زیات غم به په مړو باندے نشی کولے مګر صرف په خاوند باندے څلور میاشتے او لس ورځے۔ که دا نۀ وے نو زمونږ خوشبوئی ته څه حاجت ؟ !۔ (بخاری)

تشریح : ام حبیبه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ نه یو ځل دا واوریدل چه څوك دولس رکعاته هره ورځ نفل مونځ کوی، هغۀ دپاره به جنت کښ کور جوړیږی۔ نو دا فرمائی : (فما برحتُ اُصَلِّیهِنَّ بَعْدُ) (زۀ دا همیشه کوم) نو ددے اثر دا شو چه د هغے شاګرد او ورور عنبسه وائی : ما دا هیڅکله نۀ دی پریخی، او د عنبسه شاګرد، عمرو بن اَوس وائی ما دا هیڅکلے نۀ دی پریخی او د عمرو شاګرد، نعمان بن سالم وائی : نزدے نۀ یم چه دا پریدم۔ یعنی تولو به په خپله خپله زمانه کښ ضرور دا مونځونه کول۔ (مسند احمد ٦/ ٣٢٧) رقم ٢٦٧٧٥) صحیح علی شرط مسلم قاله شعیب الارناووط) (وانظر سیر الصحابیات ص (٧٧)

فوائد الحدیث : ۱ – ددے سنتو ډیر فضائل دی یو دا چه انسان ته جنت ملاویږی۔
۲ – ددے سنتو همیشه دپاره پریخودلو څۀ حکم دے نو ددے مسئلے تفصیل په اول جلد ددے کتاب کښ اُوګوره (کتاب الایمان – لا ازید علی هذا ولا انقص) لنده دا چه څوك دا همیشه نۀ کوی نو ددۀ جنت نۀ دے خوبښ او قلیل المبالات بالدین دے (په دین کښ بے باکه دے)۔

## په سنن رواتبو کښ د غوره والی ترتیب

بیا پدے سنن رواتبو کښ د غوره والی ترتیب څۀ دے ؟ نو پدے کښ راجح دا ده چه اول مؤکد سنت، وتر دی بیا سنة الفجر دی بیا د ظهر دی او باقی بیا برابر دی۔
۱ – بعض وائی : اول سنة الفجر بیا مغرب بیا سنة الظهر او سنة العشاء دا دواړه په فضیلت کښ برابر دی۔ او دا قول د حنابلوؒ دے۔
۲ – شوافعؒ وائی : د وترو نه بعد ډیر افضل سنة الفجر دی بیا باقی سنن بیا تراویح دی۔
۳ – احنافو نه دوه روایته دی یو دا چه د سنة الفجر نه بعد تول برابر دی مګر اصح دا ده چه څلور قبل الظهر آکد دی (البحر)۔ ۲ – دویم قول دا دے چه سنة الفجر اتفاقاً آکد دی بیا څلور رکعاته د ماسپښین نه مخکښ او بیا باقی تول برابر دی۔ (الدر المختار، فتح القدیر)۔
٤ – او د مالکیه ؤ په نزد صرف سنة د فجر مرغوب دی (یعنی د مستحب نه بره او د

سنتو نه په تاکيد کښې لاندے دی) او باقی ټول تطوعات او نوافل دی۔
او دوی وائی چه څۀ د عدد معين تحديد هم پکښې نشته بلکه افضل به پکښې هغه وی چه احاديثو کښې د هغې فضيلت راغلے وی لکه څلور د ماسپښين نه مخکښې او څلور روستو او څلور د مازيګر نه مخکښې او شپږ د ماښام نه بعد۔
(الفقه على المذاهب الاربعة ٥٠٥/١) والمرعاة (١٢٩/٤)۔
بيا د (من صلى) نه مراد دا نۀ دے چه څوك يوه ورځ او شپه کښې صرف دا دولس رکعاته اُوکړی نو بس دۀ ته به دا فضيلت حاصل وی بلکه ددے سره هميش والے مراد دے۔ چه پدے به ئے هميش والی کړے وی۔ لکه روستو راروان حديث د ترمذیؒ او نسائیؒ کښې د (من ثابر) لفظ دے يعنی څوك چه پدے سنتو هميش والے اُوکړی۔

---

٢- عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِيْ بَيْتِهِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ فِيْ بَيْتِهِ، قَالَ: وَحَدَّثَتْنِيْ حَفْصَةُ : اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ حِيْنَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : ابن عمر ﷛ اُوفرمايل : ما د رسول الله ﷺ سره د ماسپښين نه مخکښې دوه رکعاته (سنت) کړی دی، او دوه رکعاته د ماښام نه روستو په خپل کور او دوه رکعاته د ماسخوتن مانځه نه روستو په کور کښې (کړيدی)۔ ابن عمرؓ فرمائی : او ما ته (زما خور) حفصےؓ دا بيان کړی دی چه رسول الله ﷺ به د صبا د راختو په وخت دوه رکعاته مختصر کول۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشريح : د ماسپښين نه مخکښې د سنتو مقدار

جمهور علماء وائی د ماسپښين نه مخکښې دوه رکعاته سنت دی او دا حديث ئے دليل ګرځولے دے۔ نو ددے حديث او د مخکنی حديث ظاهره کښې تعارض ښکاری۔ نو ددے تطبيق کښې مختلف اقوال دی هر چا د خپل مذهب او رائے مطابق تطبيق کړيدے :
١- احناف وائی : څلور رکعاته سنت دی او دا دوه رکعاته تحية المسجد دی او نبی ﷺ څلور رکعاته په کور کښې کړيدی او مسجد کښې ئے دا دوه رکعاته اُوکړل نو ابن عمرؓ ګمان اُوکړو چه دا ګنے سنت دی۔
ليکن دا جواب غلط دے ١- يو خو په دے کښې په صحابی بدګمانی ده او د ثقه خلقو نه

قصداً د خطائی نسبت دے۔ ۲- بله دا چه بخاریؒ کښ دی ابن عمرؓ فرمائی : (حفظت من رسول الله ﷺ عشر رکعات) یعنی ما دا خبره (ښه) یاده کړیده۔ او احناف ورته وائی نۀ (بل اخطأت واسأت الظن) (نه خطاء ئے او ستا ګمان غلط دے) دا د صحابه کرامؓ قدر دے؟ !!۔

۲- بعض داسے تطبیق کوی چه نبی ﷺ به په کور کښ څلور رکعاته کول او په مسجد کښ دوه رکعاته تحیة المسجد کول نو عائشےؓ څلور لیدلی دی او ابن عمرؓ دوه او دا قانون دے چه په زیادت به عمل وی۔ لیکن دا هم د مخکښ په شان بے دلیله خبره ده۔

۳- جمهور علماء ئے داسے تطبیق کوی چه عائشےؓ چه څلور رکعاته ذکر کړیدی چه دا به نبی ﷺ نۀ پریخودل نو د هغے نه مراد صلاة الزوال دے نۀ سنت او سنت دوه دی۔ ددے وجه نه ابن عمرؓ ته هغۀ معلوم دی لیکن هغه ئے په صلاة الزوال حمل کړیدی نۀ په سنتو۔ او دا تطبیق ابن القیمؒ په زاد المعاد (۸۱،۸۰/۱) کښ راجح کړیدے۔

نو ددے څلورو رکعاتو سبب زوال د نمر او انتصاف النهار دے او دوه رکعاته سنت شو۔

قسطلانیؒ وائی : د وجه د حدیث د ثوبان نه چه مُسند بزار کښ راغلے دے : چه نبی ﷺ به دا مستحب ګڼړله چه د نصف النهار نه پس مونځ اُوکړی، او دا به ئے فرمایل چه دا یو داسے ساعت دے چه د آسمان دروازے پکښ کولاویږی او الله خلقو ته په رحمت سره ګوری انتهیٰ۔ او دا روایت په مسند احمد، ترمذی، طبرانی فی الاوسط کښ هم راغلے دے۔

لیکن دا تطبیق هم راجح نۀ دے ځکه چه دلته خو عائشےؓ داسے نۀ دی وئیلی : (لایدع اربعاً بعد الزوال) (چه د زوال نه بعد به ئے څلور رکعاته نۀ پریخودل) ظاهر دا ده چه دا څلور د ظهر د متعلقاتو نه دی۔ او د زوال مونځ جُدا دے۔

٤- بعض وائی : چه کور کښ به ئے څلور کول او مسجد کښ به ئے دوه کول۔ او حافظ ابن قیمؒ دیته اَظهر وئیلی دی۔ زاد المعاد (۸۰/۱)۔

٥- پدے کښ راجح او ظاهر دا ده چه (تارة یصلی اربعاً وتارة یصلی رکعتین) کله به ئے څلور کول او کله به ئے دوه۔ او عائشےؓ په څلورو لیدلے او ابن عمرؓ په دوه رکعاتو۔ او پدے کښ د اُمت دپاره سهولت دے چه کله ضرورت وی، بدن کښ سُستی یا مرض وی نو دوه اُوکړه او که عام حالت وی نو ډیر عبادت پکار دے۔

ابن جریر الطبریؒ فرمائی : (الاربع کانت فی کثیر من احواله والرکعتان فی قلیلها) څلور به ئے ډیر کول او دوه کله نا کله۔ او همدا خبره ظاهره ده ځکه په څلورو رکعاتو کښ احادیث ډیر زیات راغلی دی چه صاحب المرعاة (۱۳۱/٤) راجمع کړیدی۔

وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا : د ماسپښین نه روستو څلور هم شته لیکن دوه په هغے کښ نفل دی او

فضیلت ئې دا راغلې دے چه څوك دا څلور ركعاته اُوكړي نو الله به ئې د اُور نه خلاص كړي۔ (فصل ثاني كښې راځي)

وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ : او دا دوه ركعاته د اذكارونه پس نزدے كول پكار دي، لكه روستو حديث راروان دے (انهما ترفعان مع الفريضة) دا د فرضو سره پورته كولے شي) او كور كښې كول بهتر دي او لنډ كول پكار دي چه په اول ركعت كښې (قل يا ايها الكافرون) او دويم ركعت كښې (قل هو الله احد) اووئيلے شي او همدا سنت عمل دے۔

فِيْ بَيْتِه، : يعني دا دوه ركعاته په كور كښې بهتر دي اګركه كله نا كله په مسجد كښې كول هم جواز لري۔ كما سيأتي۔

۲- وَعَنْهُ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَايُصَلِّيْ بَعْدَ الْجُمُعَةِ حَتّٰى يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ فِيْ بَيْتِه». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائي: نبي ﷺ به د جُمعے مانځه نه روستو مونځ نهٔ كولو تردے چه واپس به شو او په كور كښې به ئې دوه ركعاته اُوكړل۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

بَعْدَ الْجُمُعَةِ : لفظ نه معلومه شوه چه قبل الجمعه سنت موكد نشته۔

مسئلة :

آيا د جُمعے مانځه نه مخكښې څلور يا دوه ركعاته سنت مؤكد راتب شته ؟

۱- احناف وائي : قبل الجمعه څلور ركعاته شته۔ استدلال كوي په حديث د ابن مسعودؓ باندے مرفوعاً : (انه كان يصلي اربعاً قبل الجمعة) (طبراني في الاوسط : ٤١١٦) نصب الراية ۲۰٦/۲) والضعيفة (۱۰۱٦/۳ ) دا روايت مرفوعاً ضعيف دے۔:

۱-انقطاع ده د ابوعبيده او ابن مسعود ترمينځ۔ ۲-خصيف راوي ضعيف دے۔۳-عتاب بن بشير مختلف فيه دے۔ ٤- عتاب بن بشير په رفع كښې خطاء شويدے۔ او موقوفاً صحيح دے لكه څنګه چه محمد بن فضيل نقل كړيدے۔(يعني ابن مسعودؓ به دا څلور ركعاته كول)۔ او بل دا قياس كوي په ظهر مانځه باندے چه د هغې نه مخكښې څو څلور شته نو دلته به هم وي۔ او د دوی سره نور احاديث ټول ضعيف او باطل دي چه قابل د استدلال نه دي۔ فتاوی الدين الخالص (۳۱۵/٥) او زمونږ رساله « د جُمعے مانځه نه مخكښې د سنتو حيثيت» كښې ئې اُوګوره۔

جواب : په عباداتو كښې څو قياسونه نهٔ چليږي ځكه مَبْنىٰ د عباداتو په نقل دے۔نهٔ په

قیاس او د جُمعې آحکام د ماسپښین د مانځه نه جُدا جُدا دي نو قیاس پکښې نۀ چلیږي۔ او هر چه اثر د ابن مسعودؓ دے، نو دا دلالت نۀ کوي پدے خبره چه بس همدا څلور سنت موکد دي د ماسپښین د سنتو په شان څکه چه په مرفوع احادیثو کښې ددے سنتو هیڅ تذکره نشته او د صحابي په عمل باندے سنت والے نۀ ثابتیږي او دا حدیث موقوف بمنزلة المرفوع هم نۀ ګرځي څکه چه ابن مسعودؓ عمل کړیدے په عموم ددے قول د نبي ﷺ چه (فصلی ما قدر له) یعني څوك چه جُمعې مانځه ته راشي او هر څومره مونځ چه ورله مقرر وي نو هغه اُوکړي (نو دۀ ته به د یوے هفتے ګناهونه معاف شي) نو دلته ابن مسعودؓ ځان دپاره څلور مقرر کړل او خپلو ملګروته ئے هم په دے حکم اُوکړو چه دا څلور کوئ۔ (عبد الرزاق : ٥٥٢٥) والترمذی (١١٢/١) آثار السنن (٣٠٢/١)

او ابن مسعودؓ چرته هم دا نۀ دي وئیلي چه دا رسول الله ﷺ کړیدي یا ئے دا فرمائیلي دي۔ بلکه خپل ځان له ئے دا عمل مقرر کړے وو۔ دارنګه عبد الله بن عمرؓ به دولس رکعاته کول او څلور، ابن عباس به اته او لس رکعاته کول، او جابرؓ به دوه رکعاته د جُمعې د مانځه نه مخکښې کول۔ نو که د ابن مسعودؓ په عمل سنت ثابتیږي نو پکار ده چه ددے صحابه کرامو په عمل هم سنت والے ثابت شي نو بیا پکار ده چه لس او اتو او کمو زیاتو ته هم سنت موکد اُووئیلے شي؟ «باء ك تجر وباء لا تجر»۔

٢- ائمه ثلاثه ؤ (د جمهورو) مذهب دا دے چه د جُمعې د مانځه نه مخکښې سنت مؤکد نشته او نفس مونځ شته چه هرڅومره وي۔ او هغه په درجه د نوافلو کښې دے۔ لکه دا خبره شیخ الاسلام په مجموعة الفتاوی (١٨٨/٢٤-١٨٩) او ابن القیمؒ په زاد المعاد (١٤٧/١-١٤٩) کښې مُحققه کړیده بلکه کوم علماء چه رد د بدعاتو کوي نو هغوی دا په خپلو کتابونو کښې د بدعاتو نه شمارلي دي۔ لکه ابوشامةؒ یو مسجد ته لاړو او خلقو دا سنت کول نو هغه ددے په تردید کښې کتاب اُولیکلو (الباعث علی انکار البدع والحوادث) دارنګه عبد السلام الخضريؒ دیته په (السنن والمبتدعات ص (٨٠) کښې بدعت وئیلے دی۔

اُوس مختصر دلائل واوره :

١- اول دلیل : په هیڅ صحیح حدیث کښې دا خبره چرته نشته چه نبي ﷺ پدے کیفیتِ مُرَوَّجه سره سنت کړي وي او نۀ دا د خلفاءِ راشدینؓ نه او نۀ د نورو صحابه کرامو نه ثابت دي۔ نو هرکله چه ددے عظماؤ نه ثابت نه شو نو بس دا بدعت شو۔

٢- دلیل : نبي ﷺ د جُمعې مانځه ته راتلونکي ته ترغیب ورکړے دے په مطلق مونځ کولو چه هرڅومره ورله الله مقرر کړي وي (فصلی ما قدر له) او عدد ئے پکښې نۀ دے ذکر

کړے نو که چرته دا سنت ثابت وے نو ضرور به ئے فرمایلی وے. لهذا د الله او رسول نه مخکښې کیدل نۀ دی پکار. (بخاری ۱/۱۲۱) مسلم (۱/۲۸۳) امام نوویؒ ددے حدیث لاندے لیکی: پدے حدیث کښې دا مسئله ده چه د نوافل مطلقه ؤ دپاره هیڅ حد نشته)

۳- نبی ﷺ به د اذان نه روستو سَمدستی خطبه شروع کوله او د خطبے نه بعد به د منبر نه راکوز شو بیا به بلال اقامت شروع کړو او خلقو ته به ئے مونځ اُوکړو. نو کوم وخت کښې ئے سنت اُوکړل. (مجموع الفتاوی (۲٤/۱۸۸) زاد المعاد (۱/۱٤۷) او حافظ ابن قیمؒ فرمائی: څوك چه دا وائی چه بلال به کله د اذان نه فارغ شو نو صحابه کرامؓ به دوه رکعاتو ته پاسیدل نو دا اجهل الناس بالسنة (د سنتو نه لوئی جاهل) دے.

٤- دلیل: د مسلمانانو اکثرو امامانو پدے باندے قول نۀ دے کړے او نۀ عام محدثینو دا په اهتمام ذکر کړی دی لکه مالك، شافعی، احمد، اسحاق، ابن تیمیه، ابن قیم او عام اهل الحدیث والسنة (رحمهم الله) دیته سنت نۀ وائی نو که دا سنت موجود وے نو دے علماؤ خو به ذکر کړی وے. امام بخاریؒ باب تړی «باب سنة الجمعة القبلية والبعدية» او بیا ئے حدیث د ابن عمرؓ راوړیدے، اشاره کوی چه مخکنی سنت پکښې نشته. او د قائلین د سنیت ددے سنتو سره څه ثبوت هم نشته. لکه حافظ ابن حجرؒ فتح الباری (۲/۳٤۱) کښې فرمائی: د جُمعے نه مخکښې د سنتو په باره کښې نور احادیث راغلی دی لیکن هغۀ ضعیف دی او هر چه مطلق مونځ دے نو هغه په صحیح احادیثو ثابت دے. ملخصاً. (تحفة الاحوذی ۱/۳۷۰-۳۷۱) او په تلخیص الحبیر (۲/۷٤) کښې فرمائی: اصح ما ورد پدے باب کښې حدیث د ابن عباسؓ دے او هغه تا اُویېژندو چه باطل دے. انتهیٰ.

۵- دا مزعوم سنت علماؤ په بدعاتو کښې ذکر کړیدی لکه ابوشامه په الباعث (۹) کښې او عبد السلام په السنن والمبتدعات (۸۰) کښې او شیخ الاسلام په مجموعة الفتاوی (۲٤/۱۸۸-۱۸۹) کښې ذکر کړیدی.

٦- عام ائمه کرامو او محدثینو په خپلو کتابونو کښې نۀ دی ذکر کړی لکه کتب ستته او مسند احمد، سنن کبریٰ د بیهقی، معرفة السنن والآثار د بیهقی، مصنف عبد الرزاق، ابن ابی شیبه وکنز العمال او شرح السنة وغیره کتابونو کښې دا چرته نۀ ملاویږی.

۷- احناف د سنت مؤکده تعریف داسے کوی: (السنة ما واظب علیها النبی ﷺ وخلفاءه الراشدون من بعده (تنظیم الاشتات ۱/٤۰۳) وغیره. (چه نبی ﷺ او خلفاء راشدینو په هغے همیش والے کړے وی) نو نبی ﷺ او خلفاء راشدینو پدے سنتو کوم ځائے همیش والے کړیدے؟ حال دا چه د هغوی نه په صحیح سند بالکل ثبوت نشته. باقی تفصیل دپاره

فتاوی الدین الخالص (۳۰۹/۵-۳۱۸) ته رجوع اُوکړه.

المسئلة الثانية : روستنی سنت د جمعې په دې حدیث کښې دوه راغلل چه په کور کښې به ئې کول او روستو حدیث د ابو هریرهؓ کښې څلورو باندې نبی ﷺ حکم کړیدې. نو ددې وجه نه ددې په تطبیق کښې علماء مختلف دی.

۱- راجح دا ده چه دوه جائز دی او څلور بهتر دی. یو خو د څلورو په باره کښې حدیث قولی دې او بل پدې کښې کثرت د عبادت دې. امام نوویؒ هم فرمائی : پدې احادیثو کښې استحباب دې د روستنو سنت د جمعې او تیزی ده پدې باندې او اقله درجه دوه رکعاته دی او اکمله درجه څلور دی. شرح مسلم (۲۸۸/۱)

۲- اسحاق بن راهویهؒ، شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او حافظ ابن القیمؒ فرمائی : که مسجد کښې ئې کوی نو څلور به کوی او که کور کښې کوی نو دوه به کوی.

(الترمذی ۱۱۸/۱) وزاد المعاد (۴۱۹/۱)

نو دوی جَمع د حدیثونو پدې طریقه کړیده چه د څلورو رکعاتو حدیث مطلق دې د کور قید پکښې نشته او حدیث د رکعتینو مقید دې په کور کښې کولو باندې. نو دوه رکعاته به حمل شی په کور کښې کولو باندې او څلور به حمل شی په مسجد باندې. لیکن دا جَمع ضعیفه ده. وجه دا ده چه حدیث د ابو هریرهؓ مطلق دې د مسجد قید ورسره نشته نو په مسجد پورې خاص کول دلیل غواړی. ځکه الفاظ داسې دی : (من كان منكم مصلياً بعد الجمعة فليصل اربعاً) دویم دا چه ابن عمرؓ ددې حدیث الرکعتین راوی دې او هغهٔ به په مسجد کښې دوه رکعاته کول بیا به ئې ترې روستو څلور رکعاته کول. (سنن الترمذی ۱۱۸/۱)

۳- دریم تطبیق : امام شوکانیؒ فرمائی : دوه رکعاته د نبی ﷺ خصوصیت دې او څلورو باندې ئې اُمت ته حکم کړیدې. لهذا اُمت به څلور کوی مسجد وی که کور. او نبی ﷺ به خپله کور کښې دوه رکعاته کول.

۴- امام نسائیؒ په ترجمة الباب کښې اشاره کوی چه دوه رکعاته خاص دی د امام پورې او څلور رکعاته د هغهٔ چا دپاره دی چه مسجد کښې مونځ کوی.

۵- احناف پکښې لا دا وائی چه څلور رکعاته سنت دی او دوه رکعاته همیشه ندی شوی.

ظاهر د حدیثو دا دې چه څلور رکعاته په مسجد او کور کښې پکار دی مګر که کور ته لاړ شی نو دوه هم جائز دی.

او په عدد ددې سنتو کښې اختلاف دې. ۱- د حنابلو په نزد اقل دوه رکعاته دی او اکثر شپږ رکعاته دی. ابن قدامهؒ په «المغنی» کښې د امام احمدؒ نه نقل کړیدی چه هغه

فرمائی: که خوښه ئې شي نو د جُمعې نه روستو دې دوه رکعاته اُوکړي او که خوښه ئې وي نو څلور دې اُوکړي او په بل روايت کښې شپږ راغلي دي. (المغنی ۲۱۹/۲)

۲- شوافعؒ وائي: مؤکد پکښې دوه رکعاته دي او مستحب څلور رکعاته دي.

۳- مالکيهٔ وائي: دوه رکعاته دي او په کور کښې دي او په مسجد کښې ئې د امام او مقتديانو دپاره مستحب نهٔ ګڼړي اګرکه جائز دي. المدونة الکبرئ (۳۳٦/۱و۳۹۹)

٤- احناف وائي: څلور رکعاته سنت دي او دليل کښې حديث د ابو هريرهٔ پيش کوي.

٥- شپږ رکعاته دي او دا قول امام احمدؒ او ابويوسفؒ غوره کړيدے او د علي بن ابي طالبؓ او عبد الله بن عمرؓ نه نقل دے. چه ابن عمرؓ به روستو دوه رکعاته اُوکړل بيا به ئې څلور کول (ابوداود ۱٦۲/۱) روستو به هم راشي). اګرکه امام ابويوسفؒ وائي: بهتره دا ده چه اول څلور اُوکړي بيا دوه اُوکړي. دے دپاره چه نفل د فرضو سره مشابه نه شي.

مګر صحيح خبره دا ده چه شپږ رکعاته په صحيح صريح حديث سره د نبي ﷺ نه نهٔ قولاً ثابت دي او نهٔ فعلاً او نهٔ تقريراً بلکه دا د ابن عمرؓ عمل دے. او کوم حديث کښې چه وائي چه دا به نبي ﷺ کول نو هغې نه مراد روستنے عمل يادوي چه هغه کور کښې دوه رکعاته کول دي. لکه روستو به حديث کښې تشريح راشي. (تحفة الاحوذي ٦۲/۲)

دے اختلاف ته فکر اُوکړه پدے کښې رد دے په تقليد باندے چه ددے امامانو اقوال محتاج دي احاديثو ته. نو کله به د يو امام خبره د حق موافق وي او کله د بل.

---

٤- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ ﷺ عَنْ تَطَوُّعِهِ، فَقَالَتْ: كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا، ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ، ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْعِشَاءَ، وَيَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ فِيهِنَّ الْوِتْرُ، وَكَانَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا، وَلَيْلًا طَوِيلًا قَاعِدًا، وَكَانَ إِذَا قَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَائِمٌ، وَكَانَ إِذَا قَرَأَ قَاعِدًا رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ، وَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَزَادَ أَبُوْدَاوُدَ: ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الْفَجْرِ.

---

ترجمه: او عبد الله بن شقيق رحمه الله فرمائي: ما د عائشې رضي الله عنها نه د رسول الله ﷺ د نفل مانځه متعلق تپوس اُوکړو، نو هغې اُوفرمايل: رسول الله ﷺ به زما په

کوټه کښې د ماسپښین نه مخکښې څلور رکعاته کول، بیا به وتلو او خلقو ته به ئې مونځ کولو بیا به راداخل شو نو دوه رکعاته به ئې اُوکړل، او هغۀ به خلقو ته د ماښام مونځ کولو بیا به راداخل شو نو دوه رکعاته به ئې اُوکړل، بیا به ئې خلقو ته د ماسخوتن مونځ کولو او زما کوټې ته به راداخل شو نو دوه رکعاته به ئې کول، او هغۀ د شپې نه (د تهجد) نهه رکعاته مونځ کولو چه په هغې کښې به وتر (هم) وو، او نبي ﷺ به د شپې اُوږد مونځ کولو کله په ولاړه او اُوږده شپه په ناسته او کله چه به هغۀ قرائت په ولاړه کولو نو رکوع او سجده به ئې (هم) په ولاړه کوله او کله چه به ئې قرائت په ناسته کولو نو رکوع او سجده به ئې (هم) په ناسته کوله او کله چه به صبا راوختلو نو دوه رکعاته (سنت) به ئې اُوکړل. (مسلمؒ) او ابوداود دا الفاظ زیات نقل کړی دی: بیا به مانځه ته وتلو او خلقو ته به ئې د سحر مونځ کولو.

تشریح: وَكَانَ اِذَا قَرَأَ: دا کان د دوام دپاره نۀ دے بعض عام احوالو کښې مراد دے.

فائده: د نفلو د اداء کولو کیفیات په احادیثو کښې څلور راغلی دی:

۱- یو دا چه ټول په ولاړه اداء کړی ۲- دویم دا چه ټول په ناسته اُوکړی نیمائی اجر پکښې دے. او دا دواړه پدے حدیث کښې ذکر دی. ۳- اول نه ئې په ناسته شروع کړل بیا به اُودریدو، بعض قراءت به ئې په ولاړه اُوکړو (دیرش یا څلویښت آیاتونه) بیا ئې د ولاړے نه رکوع او سجده اُوکړه. (حدیث عائشة متفق علیه) السنن الکبری (۴۸۹/۲)

۴- څلورم د دریم صورت مُخالف دے چه اول نه ولاړ وی بیا مینځ کښې کینی او بعض قرائت په ناسته اُوکړی او په ناسته رکوع او سجده اُوکړی. لیکن دا صورت احادیثو کښې نۀ دے روایت شوے. خو جُمهور علماء ددے په جواز باندے قائل دی. بلکه عام اَحادیثو کښې داسے نقل دی: (اول نه ناست وی صرف رکوع او سجدے ته پاڅیږی)

په څلورم صورت کښې اول مونځ قوی شو او آخر کمزورے شو. دا د جمهورو علماؤ په نزد جائز دی. او بعض سلفو ترے منع کړیده لیکن هغه خطاء شویدی. (نوویؒ، شوکانیؒ) ابویوسفؒ او محمدؒ او بعض مالکیۀ وائی: که اول نه ولاړ وی نو کیناستل ورله مکروه دی، ځکه اول قوی او آخر ئې ضعیف شو. مګر دا عقلی وجوهات دی څۀ دلیل پرے نشته. ظاهر دا ده چه نفلو کښې اجازت دے. مګر په منقوله طریقه باندے عمل کول ضرور افضل او اولیٰ دی. راجع المرعاة (۱۳٦/٤) والنیل (۱۰۱/۳) باب جواز التنفل جالساً

---

۵- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ ﷺ عَلٰى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ اَشَدَّ

تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ په هیڅ شی د نوافلو سخت لحاظ (او محافظت او مداومت) کونکے نهٔ وو څومره چه چه به ئے د سحر په دوه رکعاتو (مداومت او محافظت) کولو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : اَشَدَّ تَعَاهُدًا: یعني ددے دوه رکعاتو ډیر لحاظ کونکے وو۔ تردے چه په مسند د ابوداود طیالسی کښې دی چه په سفر او حضر کښې به ئے نهٔ پریخودل ۔او که پاتے به شو نو قضاء به ئے راوړله۔حسن بصریؒ وائی : دا واجب دی او مرغینانیؒ وئیلی دی : چه دا یو روایت د امام ابوحنیفةؒ هم دے۔

راجح قول د جمهورو دے چه دا سنت دی ځکه دلته ئے نوافلو سره ددے نه تعبیر کړیدے۔ دارنگه په حدیث د مثابرة کښې ئے دا د نورو سنتو سره یوځائے ذکر کړیدی۔

لیکن بعض نوافل ډیر مؤکد وی او بعض دومره مؤکد نهٔ وی۔ ددے تاکید ډیر دے لیکن د جماعت اُودریدو وخت کښې به ئے نهٔ کوی۔ لکه دا خبره مخکښې ذکر شویده۔

---

٦– وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«رَكْعَتَا الْفَجْرِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : د سحر دوه رکعاته د دنیا او مافیها نه غوره دی۔ (مسلمؒ)۔

تشریح : د سحر په سنتو کښې دومره کمال دے نو په فرضو کښې به څومره کمال وی۔

مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا معنیٰ دا ده چه تا ته دنیا او مافیها ملاؤ شوه او د سحر سنت دِ اُونهٔ کړل نو تا دومره خیر راجمع نهٔ کړو او که دنیا درنه فوت شوه خو د سحر سنت دِے اُوکړل نو ډیر خیر دِے جمع کړو۔ شاه ولی الله فرمائی : دا دوه رکعاته د دنیا او مافیها نه ځکه غوره دی چه دنیا فانی ده او ددے نعمتونه د کدورت او سترې والی نه خالی نهٔ وی او ددے دوه رکعاتو ثواب باقی دے هیڅ کدورت به پکښې نهٔ وی۔ (حجة الله)۔

٢– دویمه راجحه معنیٰ دا ده چه د سحر سنت چا اُوکړل نو دا د هغهٔ دنیا او ما فیها نه غوره دی چه د الله په لار کښې خرچ شی (ای خیر من الدنیا وما فیها ان تنفقها فی سبیل الله) لکه دا معنیٰ په بل روایت د مشکاة (جلد ثانی) کښې راغلے ده لیکن هغهٔ د جهاد په باره کښې ده۔ دا معنیٰ ځکه راجح ده چه هسے خو ټوله دنیا الله ته غوره نهٔ ده، او یو سبحان الله د

دنیا او مافیها نه غوره ده.

۷- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ : «صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ، صَلُّوا قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ»، قَالَ فِي الثَّالِثَةِ : «لِمَنْ شَاءَ» كَرَاهِيَةَ اَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبد الله بن مغفل ﷺ فرمائي : نبي ﷺ فرمائيلي دي : « د ماښام مانځه نه مخکښ دوه رکعاته اُوکړئ، د ماښام مانځه نه مخکښ دوه رکعاته اُوکړئ، په دريم ځل ئې اُوفرمايل : د چا چه خوښه وي». (راوي فرمائي دا اختيار ئې ځکه ورکړو) د وجه د بد ګنړلو ددې نه چه خلق ددې دوه رکعاتو نه لازمه طريقه جوړه نهٔ کړي. (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : حديث نه معلومه شوه چه د غروب الشمس نه پس او د مانځه د ماښام نه مخکښ دا دوه رکعاته مستحب دي او سنت مؤکد او راتب نهٔ دي.

۲- پدې به داسې التزام نشي کيدې چه خلق ترې سنت راتبه جوړ کړي او ددې په پريخودلو خلق ګناهګار ګنړي لکه حديث کښ دا علت راغلې دې. (توضيح الاحکام ۱۸۳/۲).

۳- دا دوه رکعاته ماښام مونځ د اول وخت نه نهٔ روستو کوي. د امام نوويؒ قول دې : څوك چه دا وائي : ددې سنتو په کولو سره د اول وخت نه د مغرب تاخير راځي نو دا يو فاسد خيال دې چه مقابل د سنت دې، بلکه دا په معمولي وخت کښ کيږي چه مونځ پرې د اول وخت نه نه اُوځي.شرح مسلم (تحفة ٤٦٧/١)

٤- دا دوه رکعاته د سنت په درې واړو اقسامو ثابت دي نبي ﷺ پرې امر هم کړيدې او خپله ئې هم کړيدي او صحابه کرامؓ ئې ددې په کولو ليدلي دي او نهٔ ئې دي منع کړي. بلکه په اُووه ديرش (۳۷) رواياتو دا مسئله مونږ مخکښ ډير تفصيل سره په (۳۵٤/۳) کښ تحقيق کړيده هغه ضرور اُوګوره.

٥- حديث نه قاعده اصولي معلومه شوه چه امر د وجوب دپاره وي مګر کله چه قرينه صارفه د وجوب موجوده شي نو بيا به د استحباب وغيره دپاره وي. ځکه کله ئې چه دا اُووئيل (صلوا قبل المغرب) نو ددې کول به واجب وي ليکن روستو ئې چه (لمن شاء) اُووئيل پدې کښ ئې ثابته کړه چه دا امر اختياري او استحبابي دې او فرض او واجب نهٔ دې. او د (سنة) نه مراد طريقه لازمه ده.نهٔ د فقهاؤ اصطلاحي سنت.

۸- وَعَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ

فَلْيُصَلِّ اَرْبَعًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِيْ اُخْرٰى لَهٗ، قَالَ: «اِذَا صَلّٰى اَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيُصَلِّ بَعْدَهَا اَرْبَعًا».

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «څوك چه تاسو نه د جُمعے د مانځه نه روستو مونځ كوی نو څلور ركعاته دِے اُوكړی» (مسلمؒ) او په بل روايت د مسلمؒ كښې دی : وے فرمايل: «كله چه يو تن په تاسو كښې د جُمعے مونځ اُوكړی نو د هغے نه روستو دِے څلور ركعاته اُوكړی».

تشريح : دا امر د وجوب دپاره وو ليكن مخكښې د حديث د ابن عمرؓ نه جواز د دوه ركعاتو هم معلوميږی لهٰذا دا امر د وجوب دپاره نۀ شو بلكه د استحباب دپاره شو نو څلور ركعاته پس د جُمعے نه مستحب او دوه جائز۔امام نوویؒ فرمائي : كله ئے چه اُوفرمايل : « فليصل اربعاً »نو پدے كښې ئے تيزی وركړه په كولو ددے دوه ركعاتو ليكن كله ئے چه «من كان منكم مصلياً » اُووئيل نو تنبيه ئے وركړه چه دا سنت دی او واجب نۀ دی۔ او د حديث باقي تشريح مخكښې ذكر شوه۔

## الفصل الثانی

۹ – عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ:«مَنْ حَافَظَ عَلٰى اَرْبَعِ رَكْعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَاَرْبَعٍ بَعْدَهَا، حَرَّمَهُ اللهُ عَلَى النَّارِ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : ام حبيبه رضی الله عنها فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد آوريدلے دے : «چا چه د ماسپښين نه مخكښې په څلور ركعاتو محافظت اُوكړو او په څلور ركعاتو روستو د ماسپخين نه نو الله تعالیٰ به ئے په اُور باندے حرام (بند) كړی»۔ (احمدؒ، ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ)۔

تشريح : مَنْ حَافَظَ : دا يا دعاء ده يا اخبار دے ؟ بعض علماء وائي دا جمله خبريه ده او بعض وائي : جمله دعائيه ده يعني نبی ﷺ فرمائي : څوك چه پدے څلور ركعاتو پابندی اُوكړی نو الله دِے ئے په اُور باندے حرام كړی۔ بهرحال كه خبروی نو د پيغمبر اخبار هم صادق دے، همدغه شان به كيږی او كه دعاء وی نو د هغهٔ دعاء هم عند الله مقبول ده۔

لهٰذا كه چا ته الله توفيق وركړو او د ماسپښين نه مخكښې او روستو ئے څلور څلور ركعاته پابندئ سره اُوكړل نو دهٔ ډير خير راجمع كړو او كه چا دوه دوه ركعاته مخكښې او روستو اُوكړل نو دهٔ راتگ اُوكړو په ادنیٰ درجه د سنتو باندے۔

حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ: یعنی پدے اته رکعاته مونځ انسان بالکل د اُور نه خلاصیږی خو که موانع نهٔ وو موجود یعنی نور گناهونه شرك وغیره ورسره نهٔ وو۔ او مؤبداً وغیره قیدونو لګولو ته ضرورت نشته ځکه تابید خو د توحید په وجه هم منفی دے۔ بلکه مطلب دا دے چه پدے عمل کښ دومره طاقت دے، چه انسان د اُور نه ساتی۔

بیا دا څلور رکعاته مخکنی خو سنت دی او هرچه روستنی څلور رکعاته دی نو دا دوه سنت دی او دوه نفل دی۔ بیا مخکنی خو به په یو سلام کولے شی خو آیا روستنی به په یو سلام کولے شی او که په دوه سلامونو؟ نو ظاهر دا ده چه دا به په جُدا جُدا سلامونو کولے شی ځکه حدیث کښ دی: (د ورځے مونځ دوه دوه رکعاته وی) (اخرجه ابوداود، وابن حبان فی صحیحه) مګر کوم چه احادیثو کښ په یو سلام راغلی وی نو هغهٔ به په یو سلام کولے شی۔ (المرعاة ١٤٤/٤)

لکه دے روستو حدیث کښ د ماسپښین مخکنی سنت په یو سلام راغلی دی۔

درجة الحدیث: اسناده صحیح: اخرجه احمد (٣٢٦/٦) وابوداود (١٢٦٩) والترمذی (٤٢٧) والنسائی (٢٦٥/٢) وابن ماجه (١١٦٠) والحاکم (٣١٢/١)

---

١٠– وَعَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ الْاَنْصَارِیِّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «اَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ لَیْسَ فِیْهِنَّ تَسْلِیْمٌ تُفْتَحُ لَهُنَّ اَبْوَابُ السَّمَاءِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه: او ابوایوب انصاری رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: «د ماسپښین نه مخکښ څلور رکعاته چه په هغے کښ سلام نهٔ وی دے ته د آسمان دروازے کولاویږی»۔ (ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)

تشریح: د ماسپښین نه مخکښ څلور رکعاته په یو سلام باندے کول په درے احادیثو سره ثابت دی یو دا حدیث دے۔ او دا حسن یا صحیح حدیث دے۔ دویم عبد الله بن مسعودؓ فرمائی: (اربع قبل الظهر لا یسلم بینهن الا ان یتشهد (ابن ابی شیبة (١٩٩/٢) (د ماسپښین نه مخکښ څلور رکعاته دی چه مینځ کښ به سلام نهٔ اړوی مګر تشهد به پکښ وائی)۔

٣–دریم عائشهؓ فرمائی: (ان النبی ﷺ کان لا یدع اربعاً قبل الظهر ورکعتین قبل صلاة الغداة) (بخاری ١٥٧/١) (نبی ﷺ به د ماسپښین نه مخکښ څلور او د سحر مانځه نه مخکښ دوه رکعاته نهٔ پریخودل) نو دا هم دلیل دے چه دا متصل وو ځکه د فصل خبره پکښ نشته۔ نو کوم علماء چه دا وائی چه دوه دوه رکعاته افضل دی۔ نو د هغوی سره

صریح دلیل نشته سوئ ددے نه چه وائی : صلاة اللیل والنهار مثنیٰ مثنیٰ حدیث دے (نسائی ۲٤٦/۱ صححه الالبانی)

**الجواب :** پدے روایت کښې د نهار لفظ اکثرو ائمه ؤ معلول گرځولے دے۔(فتح الباری) نسائی وائی دا خطاء دے ځکه دا علی بن عبد الله الازدی روایت کړیدے وهو لیس بذاك (او هغهٔ قوی نهٔ دے) او هغه پدے متفرد دے د نورو اصحابو د ابن عمرؓ نه لیکن که صحیح شی او همدا حقه ده لکه شیخ البانیؒ په عامو کتابونو کښې صحیح گرځولے دے۔

(الروض النضیر: ۵۲۲) بسبب الطرق وبعض الشواهد) وصحیح ابی داود (۱۱۷۲)

نو بیا ددے نه دا سنت مستثنیٰ دی یعنی دا د نفلو په باره کښې دے او هرچه سنن رواتب دی نو هغه په یو سلام هم راغلی دی۔ او کوم روایت کښې چه دا دی چه نبیﷺ به چه کله نمر زائل شو پابه ځیدو او څلور رکعاته به ئے اوکړل (یفصل بینهن بالتسلیم) (مینځ کښې به ئے سلام اړولے) نو هغهٔ ضعیف دے ابواسحاق السبیعی مدلس راوی پکښې عنعنه کړیده (عبد الرزاق (٦۳/۳) رقم (٤۸۰٦) الترمذی (۳۲٦/۱) بشرح التحفة)۔

او که صحیح شی نو بیا امام ترمذیؒ د هغے صحیح معنیٰ د اسحاق بن ابراهیم نه نقل کړیده چه مینځ کښې به ئے تشهد اوستلو۔ (ترمذی ۹۸/۱) او د سلام نه مراد سلام د تشهد دے۔

پدے کښې راجح دا ده چه د ماسپښین نه مخکښې څلور رکعاته په یو سلام افضل دی او په دوه سلامونو سره جائز دی۔ علامه عبد الرحمن المبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی کښې فرمائی : ما د ماسپښین نه مخکښې څلور رکعاتو کښې د فصل او وصل په باره کښې هیڅ صحیح صریح مرفوع حدیث نهٔ دے موندلے نو که په یو سلام ئے کوی او که په دوه سلامونو دواړه جائز دی۔ (تحفة)۔

مگر مونږ وایو چه په یو سلام سره بهتر دی حسن حدیثو نه پکښې تا اُولیدل د ابوداود او بیهقی وغیره او صلاة اللیل والنهار مثنیٰ مثنیٰ والا روایت صریح نهٔ دے۔ نو د سید سابقؒ دا خبره چه د هر دوه رکعاتو نه پس سلام بهتر دے– بهتره نه ده۔ (فقه السنة ۱٦۷/۱) د هغهٔ د نظر نه دا دلائل نهٔ دی تیر شوی۔ او نور دلائل په فتاوی الدین الخالص (۳۰۳/۵)کښې اُوګوره۔

۲- **دویم مطلب** ددے روایت علماؤ داسے بیان کړیدے چه ددے نه مراد د زوال څلور رکعاته دی او د ماسپښین سنت ترے نهٔ دی مراد ځکه په روایت د ابن ماجه کښې داسے الفاظ دی : (کان یصلی قبل الظهر اربعاً اذا زالت الشمس، لایفصل بینهن بتسلیم، وقال ان ابواب السماء تفتح اذا زالت الشمس) انتهیٰ۔

او د حافظ عراقیؒ او حافظ ابن قیمؒ عبارت مخکښې بیان شو چه هغهٔ فرمائی: دا څلور رکعاتـه مستقل مونځ دے چه رسول الله ﷺ بـه د زوال نـه روستو کولو او ددے سبب انتصاف النهار او زوال الشمس دے او د هغې راز هم مخکښې بیان شو۔ چه انتصاف النهار مقابل دے د انتصاف اللیل لکه څنګه چه د نصف اللیل نه روستو نزول الٰهی کیږی نو دغـه شان د زوال الشمس نه روستو د آسمان دروازے کولاویږی نو دا دواړه وقتونه د رحمت او قرب الٰهیٰ دی۔ یو کښې الله راکوزیږی او بل کښې د آسمان دروازے کولاویږی۔ لیکن اول مطلب واضح دے ځکه چه په روایت د ترمذی فی الشمائل او طبرانی فی الکبیر والاوسط کښې دی: چه نبی ﷺ بـه پدے بانـدے همیش والے کولو او حال دا چه د زوال نه روستو مانځه باندے دوام نهٔ دے نقل۔ والله اعلم۔ راجع المرعاة (۱٤٦/٤)

**تُفْتَحُ لَهُنَّ**: فتح کنایه ده د ښائسته قبلیدو نه۔

درجة الحدیث: اسناده حسن: اخرجه ابوداود (۱۲۷۰) وابن ماجه (۱۱۵۷) وفیه عبیدة بن معتب قال الحافظ فی التقریب ضعیف واختلط بآخرة وحسنه الالبانی فی صحیح سنن ابی داود (۱۱۳۱) انظر صحیح الجامع رقم (۸۸۵) واخطأ فی ضعیف ابن ماجه فضعفه قال الذهبی فی المیزان (۲۵/۳) قال شعبة: اخبر عبیدة قبل ان یتغیر وهنا حدث عنه شعبة فتدبرا وله فی البخاری حدیث واحد ذکره تعلیقاً فی الاضاحی۔ وقد رواه البیهقی (٤۸۹/۲) من وجه آخر وفیه شریك ولکن تابعه سفیان وفی الطریق الثالث بکیر وهو ممن لیس به بأس فالحدیث حسن او صحیح۔

---

۱۱ – عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ اَرْبَعًا بَعْدَ اَنْ تَزُوْلَ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ، وَقَالَ: اِنَّهَا سَاعَةٌ تُفْتَحُ فِيْهَا اَبْوَابُ السَّمَاءِ، فَاُحِبُّ اَنْ يَّصْعَدَ لِيْ فِيْهَا عَمَلٌ صَالِحٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه: عبد الله بن سائب ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ به د ماسپخین نه مخکښې او د زوال نـه روستـو څلور رکعاته کول او دا به ئے فرمایل: «دا یـو داسـے وخت دے چه پدے کښې د آسمان دروازے کولاویږی، نو زما خوښه ده چه زما دپاره پدے کښې نیك عمل اُوخیژی»۔ (ترمذیؒ)

تشریح: ددے نـه مراد یا څلور رکعاته د زوال دی چه د نبی ﷺ دا خـواهش وو چه پدے وخت کښې الله تـه ددهٔ عمل پورته شی ځکه چه د آسمان دروازے کولاوے وی۔ لکه حافظ عراقی او حافظ ابن قیمؒ فرمائی: دا مستقل سنت دی چه نبی ﷺ بـه د زوال نه روستو کول او سبب ئے نصف النهار او زوال الشمس دے۔ او راز ئے دا دے چه د زوال وخت د نصف النهار وخت دے او دا نصف النهار مقابل دے د نصف اللیل او په نصف اللیل کښې خو الله

آسمان د دنیا ته راکوزیږي او په نصف النهار کښې د آسمان دروازې کولاویږي نو دواړه وختونه د الله د قرب او رحمت دي۔ انتهیٰ۔ یا ددې نه د ماسپښین سنت مراد دي۔ او همدا ظاهر ده ځکه پدې وخت کښې د نبي ﷺ نه اته یا شپږ رکعاته نقل نهٔ دي۔ علامه عراقیؒ دیته سنت د زوال وائي او ملاعلي القاريؒ دیته سنهٔ د ظهر وائي۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٤١١/٣) والترمذي (٤٧٨)

---

١٢ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «رَحِمَ اللهُ امْرَأً صَلّٰى قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعًا». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او ابن عمر فرمائي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي : « الله دې په هغهٔ سړي رحم اُوکړي چه د مازیګر نه مخکښې څلور رکعاته مونځ اُوکړي»۔ (احمدؒ، ترمذیؒ)

تشریح : د مازیګر نه مخکښې څلور رکعاته سنت مؤکد نهٔ دي ځکه « رحم الله» لفظ وئیلو سره ئې دې ته اشاره اُوکړه چه دا لازم نهٔ دي لهذا دا څلور رکعاته مستحب دي او ډیر خیر پکښې دې، د الله رحمت ورسره حاصلیږي، دا که په یو سلام سره وي او کهٔ په دوه سلامونو سره لیکن په دوه سلامونو سره بهتر دي لکه روستو حدیث نه معلومیږي۔

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود الطيالسي (١٩٣٦) واحمد (١١٧/٢) وابوداود (١٢٧١) والترمذي (٤٣٠) وابن خزيمة (١١٩٣) وابن حبان (٢٤٥٣- الاحسان) وحسنه ابن خزيمة وابن حبان في صحيحيهما وكذا الالباني في صحيح الترمذي (٤٣٠) وغيره۔

---

١٣ – وَعَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ، يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيْمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِيْنَ، وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُؤْمِنِيْنَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او علي ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به د مازیګر نه مخکښې څلور رکعاته کول، چه د هغې په مینځ کښې به ئې په مقربین ملائکو او د هغوی نه روستو په مسلمانانو او مومنانو باندې سلام اچولو سره جدا والې کولو۔ (ترمذیؒ)

تشریح : دا څلور رکعاته په دوه سلامونو دي او دا څلور بهتر دي روستو روایت کښې دوه هم راغلي دي نو هغه په بعض احوالو محمول دي نو اختیار دې کله دوه کوه او کله چه وخت زیات وي نو بیا څلور کوه، خو څلور بهتر دي ځکه چه دې سره رحم د الله

حاصلیږي۔
بِالتَّسْلِيْمِ : يعنى د سلام په وخت کښې دا سنت طريقه ده چه نيت د ملائکو او مؤمنانو به کوی۔ ليکن بعض علماء وائی : ظاهر دا ده چه څلور په يو سلام دی او مراد د تسليم نه تسليم التشهد دے ځکه کور کښې خو مؤمنان او مسلمانان موجود نهٔ وو او دا معنیٰ امام ترمذیؒ د اسحاق بن ابراهيم بن راهويهؒ نه نقل کړيده۔ او امام بغویؒ کړيده۔
او دليل په وصل باندے حديث د عبد الله بن مسعودؓ دے هغهٔ فرمائی : (کنا اذا صلينا قلنا السلام على الله قبل عباده، السلام على جبريل) او دا سلام خو په تشهد کښې وی لهذا دلته هم سلام د تشهد مراد دے۔ او دا ظاهر د حديث دے اګرکه پدے کښې بعض علماؤ دا تاويل هم کړيدے چه حضور د ملائکو او مؤمنانو د سلام په وخت ضروری نهٔ دے بلکه استحضار په زړه کښې کافی دے۔ انتهیٰ۔
درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٨٥/١) والترمذی (٤٢٩) والنسائی (١١٩/٢- ١٢٠) وابن ماجه (١١٦١)

١٤ - وَعَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او علی ؓ فرمائی: رسول الله ﷺ به د مازيګر نه مخکښې دوه رکعاته (نفل) کول۔ (ابوداودؒ)
تشريح : پدے حديث کښې دوه رکعاته راغلل او مخکښې څلور راغلل نو د دواړو ترمينځ هيڅ تعارض نشته، انسان د دواړو عملونو ترمينځ اختيارمند دے که هريو کوی ځکه چه ادنیٰ درجه دوه رکعاته دی او څلور افضل دی۔
درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (١٢٧٢) قال النووی فی المجموع (٨/٤) اسناده صحيح، ولکن قال الالبانی اسناده حسن لکن بلفظ اربع رکعات وهذه الرواية شاذة (تمام المنة ٢٤١) وبيانه فی ضعيف ابی داود (٢٣٥)

١٥ - وَعَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «مَنْ صَلّٰى بَعْدَ الْمَغْرِبِ سِتَّ رَكْعَاتٍ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيْمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوْءٍ عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَانَعْرِفُهُ اِلَّا مِنْ حَدِيْثِ عُمَرَ بْنِ اَبِىْ خَثْعَمٍ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ اِسْمَاعِيْلَ يَقُوْلُ: هُوَ مُنْكِرُ الْحَدِيْثِ، وَضَعَّفَهُ جِدًّا.

ترجمه: او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائيلي دي : «چا چه د ماښام نه روستو شپږ رکعاته أوکړل چه د هغې په مابين کښې د ګناه خبره أونۀ کړي نو دا به ددۀ دپاره د دولسو کالو د عبادت برابر شي»۔ (دا روايت ترمذيؒ نقل کړے او وئيلي ئې دي : دا حديث غريب دے مونږ ئې صرف د عمر بن ابي خثعم د حديث نه پيژنو او ما د محمد بن اسماعيل (بخاريؒ) نه أوريدلي دي چه هغه فرمائي : دا راوي منکر الحديث دے او دا ئې ډير ضعيف ګڼړلے دے۔

تشريح : پدے شپږو رکعاتو کښې دوه سنت او څلور نفل داخل دي۔ دا خبره ياده کړه ! چه د ماښام د مانځه نه پس د مانځه عدد په صحيح احاديثو کښې نۀ دے راغلے او دے وخت کښې د مانځه فضيلت شته، ديته صلاة بين العشائين وائي۔ قرآن کښې هم ورته اشاره ده۔ انس بن مالك ﷺ فرمائي : صحابه کرامؓ به د ماښام نه ماسخوتن مانځه پورے مونځونه کول نو دا آيت (تتجافي جنوبهم عن المضاجع) نازل شو ـ تفسير الطبري (۱۷۹/۲۰ - وابن کثير۲٦٥/٦ بسند صحيح)

درجة الحديث : اسناده ضعيف جداً : اخرجه الترمذي (٤٣٥) وابن ماجه (١٣٧٤) وقد ضعفه الالباني في السلسلة الضعيفة (٤٦٩)

---

١٦ - وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : «مَنْ صَلّٰى بَعْدَ الْمَغْرِبِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي: رسول الله ﷺ فرمائي : « چا چه د ماښام نه روستو شل رکعاته أوکړل الله تعالى به دۀ له په جنت کښې کور جوړ کړي»۔ (ترمذيؒ) ـ

تشريح : پدے شلو کښې هم دوه رکعاته سنت داخل دي۔ او دے کښې کيدے شي تراويح مراد وي۔ اګرکه پدے وخت کښې عبادت کول شته خو پس د سنتو نه عدد د رکعاتو معلوم نۀ دے۔ جامع الصغير (٤/١) کښې په صحيح سند سره حديث راځي عبد الله بن عمروؓ فرمائي : مونږ رسول الله ﷺ سره د ماښام مونځ أوکړو څوك لاړل او څوك مسجد کښې پاتے شو نو نبي ﷺ په جلتئ سره راغلو وے فرمايل :

ابشروا معشر المسلمين هذا ربكم قد فتح باباً من ابواب السماء يباهي بكم الملائكة يقول : هؤلاء عبادي قضوا فريضة وهم ينتظرون اخرى (صحيح سنن ابن ماجه (١٣٣/١)

(خوشحاله شئ اے مسلمانانو! ستاسو رب د آسمان يوه دروازه کولاوه کړے او په تاسو سره په ملائکو فخر کوي وائي : دا زما بندګان دي چه فريضه ئے ادا کړه او د بل فرض په

انتظار دی)۔ لهذا دا ډیر بهترین وخت دے، فائده ترے اخستل پکار دی۔ عام انسانانو نه په خوراك سكاك او خبرو اترو كښ تیر شی۔ او هرچه د شلو رکعاتو خبره ده نو هغه ضعیفه ده ځکه روایت ئے ضعیف دے لهذا څو مره چه وسع وی ځان دپاره دے مقرر کړی۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف جداً : اخرجه الترمذی (عقب الحديث ٤٣٥) معلقاً واخرجه ابن ماجه موصولاً (١٣٧٣) وفی اسناده يعقوب بن الوليد المدائنی قال احمد كان من الكذابين الكبار يضع الحديث و كذبه غيره ايضاً راجع كلام البوصيری فی الزوائد۔

---

١٧ – وَعَنْهَا، قَالَتْ: مَا صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الْعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَيَّ، إِلَّا صَلَّى أَرْبَعَ رَكْعَاتٍ أَوْ سِتَّ رَكْعَاتٍ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ هیڅ کله د ماسخوتن مونځ نهٔ دے کړے چه ما کره راننوتے وی مګر څلور رکعاته یا شپږ رکعاته مونځ ئے کړے دے۔ (ابوداوٌد)۔

تشريح : يعنی نبی ﷺ به د ماسخوتن مانځه نه پس چه زما کوټے ته راغلو نو ضرور به ئے کله څلور رکعاته نفل کول او کله شپږ رکعاته۔ پدے کښ دوه رکعاته سنت دی او دوه رکعاته نفل دی۔ او یا دوه سنت او څلور نفل دی۔ او وتر به ئے د تهجدو وخت کښ کول۔ او په روایت د مسلم کښ دی : عائشه فرمائی: نبی ﷺ چه به زما کوټے ته د ماسخوتن مانځه نه روستو داخل شو نو دوه رکعاته به ئے کول)۔

نو ددے د ماقبل سره تعارض نشته ځکه دا په مختلفو احوالو باندے محمول دی، څومره به چه نبی ﷺ ته آسان وو هغهٔ به ئے کول۔ او حدیث دلیل دے چه د ماسخوتن سنت (او دغه شان نور سنن) په کور کښ افضل دی۔

او محمد بن نصر المروزیؒ چه کوم روایت د ابن عباسؓ نه مرفوعاً نقل کړیدے چه نبی د ماسخوتن مونځ اُوکړو بیا ئے څلور رکعاته اُوکړل تردے چه مسجد کښ زما او د هغهٔ نه علاوه څوك پاتے نهٔ شو) چه ددے نه معلومیږی چه دا ئے په مسجد کښ کړیدی نهٔ په کور کښ۔

نو ددے جواب دادے چه دغه روایت ضعیف دے په سند کښ ئے المنهال بن عمرو مختلف فيه راوی دے، او که بالفرض ثابت شی نو دا ئے یا بیاناً للجواز مسجد کښ کړیدی۔ یا کیدے شی چه څهٔ ضرورت ورته راپیښ شوے وی چه هغهٔ د مسجد سره متعلق وو۔

درجة الحديث : اسناده حسن لغيره: ومعناه صحيح اخرجه ابوداود (١٣٠٣) واورده المزی

فی تحفة الاشراف (١١/٤٢٠) رقم الحدیث (١٦١٤٣) وعزاه للنسائی واخرجه البیهقی فی الکبریٰ (٢/٤٧٧) وفی اسناده مقاتل بن بشیر العجلی قال الذهبی لا یعرف۔ولکن فی الباب عن ابن عباس عند البخاری وغیره : قال : بت فی بیت خالتی میمونة الحدیث وفیه ......فصلی النبی العشاء ثم جاء الی منزله فصلی اربع رکعات ثم نام الخ وهذه الاربع سنة العشاء البعدیة کما قال محمد بن نصر فی قیام اللیل، وصحح الالبانی حدیثا فی الاربع بعد العشاء فی صحیح الترغیب والترهیب برقم (٥٩١)۔

١٨- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «(اِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿) الرَّكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ، وَ(أَدْبَارَ السُّجُوْدِ ﴿) الرَّكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : «د ادبار النجوم (د ستورو د پریوتو وخت کښ د تسبیح وئیلو) نه د سحر نه مخکښ دوه رکعاته (یعنی د سحر سنت) مراد دی او ادبار السجود (د سجدو نه روستو تسبیح وئیلو) نه د ماښام نه روستو دوه رکعاته (سنت) مراد دی»۔ (ترمذیؒ)

تشریح : یعنی څوک چه د سحر سنت اُوکړی او د ماښام نه روستو دوه رکعاته سنت اُوکړی نو دۀ په دوه آیتونو عمل اُوکړو چه یو کښ حکم دے (ومن اللیل فسبحه وادبار النجوم) (ق :آخری یت) اوبل حکم دے (ومن اللیل فسبحه وادبار السجود) (الطور : ٤٠) اِدبار په دواړو ځایونو کښ منصوب علی الحکایة دے۔او اصل کښ منصوب دے په فسبحه باندے۔ او دا روایت د صحابه کرامو نه موقوفاً ثابت دے۔

د ادبار معنیٰ ده تلل او شا راړول یعنی روستو د ستورو پریوتو نه۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف مرفوعاً : اخرجه ابن جریر الطبری فی تفسیره (٢٧/٢٣) فی تفسیر الآیة (٤٩) من سورة الطور والترمذی (٣٢٧٤) وقال حدیث غریب لا نعرفه الا من حدیث رشدین بن کریب وضعفه الحافظ فی التقریب) قال الالبانی فی الضعیفة (٥/١٧٧)رقم (٢١٧٨): الصواب انه موقوف وان رشدین وَهِمَ فی رفعه وقد رواه محمد بن نصر فی قیام اللیل ص (٢٩) عن عمر بن الخطاب وعلی بن ابی طالب والحسن بن علی وعن اصحاب رسول الله ﷺ موقوفاً علیهم۔ انتهیٰ وهو بمنزلة المرفوع فان قول الصحابی فی شان النزول یرفع الحدیث۔

## الفصل الثالث

١٩- عَنْ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اَرْبَعُ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ، بَعْدَ

الزَّوَالِ، تُحْسَبُ بِمِثْلِهِنَّ فِيْ صَلَاةِ السَّحَرِ، وَمَا مِنْ شَيْءٍ اِلَّا وَهُوَ يُسَبِّحُ اللهَ تِلْكَ السَّاعَةَ، ثُمَّ قَرَأَ: ﴿ يَتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِلّٰهِ وَهُمْ دَاخِرُوْنَ﴾ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ. ..............................................

ترجمه : او عمر فاروق ﷺ فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی دی چه فرمایل ئے :«د زوال نه روستو او د ماسپښین نه مخکښ څلور رکعاته (په ثواب او فضیلت کښ) د تهجدو د مانځه په شان شمارلے شی، او نشته یو شے مگر هغهٔ د الله دپاره په دغه وخت کښ تسبیح (پاکی) وائی بیائے دا آیت تلاوت کړو : یتفیؤ الخ (د تمامو څیزونو سوری کږیږی پداسے حال کښ چه الله ته سجده کونکی دی او دوی عاجزی کونکی دی)»۔ (ترمذیؒ، بیهقیؒ)

تشریح : ددے مانځه نه مراد یا صلاة الزوال دے او همدا ظاهر ده او ددے راز مخکښ ذکر شو۔ او یا د ماسپښین څلور رکعاته دی۔

صَلَاةِ السَّحَرِ : طیبیؒ دا حمل کړیدے د سحر په سنت او فرضو باندے یعنی څوك چه د زوال څلور رکعاته اُوکړی نو دا به په ثواب کښ دومره زیات شی چه د سحر د سنت او فرضو هومره اَجر به ئے اُوشی۔ او سحر مونځ چونکه په زیات فضیلت باندے مشهور دے نو پدے وجه ئے د هغے سره تشبیه ورکړه۔

لیکن ظاهره دا ده چه سحر په خپل حقیقت باندے چه پیشمنی وخت ته وائی مخکښ د راختلو د صبا نه (یعنی د شپے آخری شپږمه حصه) نو مراد ددے نه تهجد دی یعنی د زوال دا څلور رکعاته د تهجدو په شان دی په درجه او ثواب کښ لهذا تهجد څومره مشقت والا مشکل مونځ دے او زیات اجر لری نو دغه شان دا څلور رکعاته هم اجر لری۔

او ددے تائید د ابن مسعودؓ نه داسے نقل دے هغهٔ فرمائی : لیس شيء یعدل صلاة اللیل من صلاة النهار الا اربعاً قبل الظهر الخ رواه الطبرانی فی الکبیر قال الهیثمی وفیه بشیر بن الولید الکندی وثقه جماعة وفیه کلام وبقیة رجاله رجال الصحیح انتهیٰ۔

(یعنی د ورځے په نفلی مونځونو کښ د شپے د مانځه برابر هیڅ مونځ نشته مگر د ماسپښین نه مخکښ څلور رکعاته دی) او دا هم نقل دی چه ابن مسعودؓ به د زوال نه پس اته رکعاته مونځ کولو او دا به ئے وئیل چه دا د اته رکعاتو د قیام اللیل سره برابر دی۔ (سفر السعادة) او دا موقوف بمنزلة المرفوع دے۔او پدے باره کښ بل حسن مرفوع حدیث په السلسلة الصحیحة (۱۴۳۱) کښ راغلے دے : (اربع رکعات قبل الظهر یعدلن بصلاة السحر)

ومصنف ابن ابی شیبة (١٦/٢) (څلور رکعاته د ماسپښین نه مخکښ د تهجد و برابر دی)

يَتَفَيَّؤُا : یعنی مائله کیږی سوری د هر شی ښی او ګس طرفته۔ ددے آیت مناسبت ددے مخکښ ارشاد سره دا دے چه آیت کښ دا دی چه د الله د عظیم کائناتو سوری ښی او ګس طرف ته مائله کیږی او د الله تعالیٰ د حکم تابع وی او خاصکر د زوال په وخت کښ ددے هبوط (خکته کیدل) ښکاره کیږی او فناء طرف ته رجوع کوی نو نبی ﷺ اشاره اُوکړه چه مصلی پدے وخت کښ د ټولو کائناتو سره په خضوع د خالق کښ موافق کیږی لهذا دا وقت د خضوع او د افتقار دے نو دا برابر شو د وقت د پیشمنی سره چه هغهٔ وخت حق تعالیٰ شانه د تجلی او د استغفار وخت او محل دے۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف والحديث صحيح: اخرجه الترمذی (٣١٢٨) وقال حديث غريب لا نعرفه الا من حديث علی بن عاصم قلت: وعلی بن عاصم ضعيف لسوء حفظه واصراره علی خطئه وشيخه فيه يحيی البكاء ضعيف ايضاً لكن قد مر الحديث الصحيح برواية عبد الله بن السائب رقم (١١) بهذا المعنی ايضاً۔

---

٢٠ – وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَا تَرَكَ رَسُولُ اللهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ عِنْدِيْ قَطُّ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: قَالَتْ: وَالَّذِيْ ذَهَبَ بِهِ مَا تَرَكَهُمَا حَتّٰى لَقِيَ اللهَ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ ما سره د مازیګر مانځه نه روستو هیڅ کله دوه رکعاته نهٔ دی پریخودی۔ (بخاری ومسلم) او په روایت د بخاریؒ کښ دی : عائشه فرمائی: قسم په هغهٔ ذات چه نبی ﷺ ئے وفات کړیدے، هغهٔ دا دوه رکعاته نهٔ دی پریخودی تردے چه الله سره ملاؤ شو۔

تشریح دا حدیث واضح دلیل دے چه دا دوه رکعاته د مازیګر مانځه نه روستو مستحب دی خو پدے شرط چه نمر پورته ولاړ وی او د مازیګر مونځ وختی شوے وی۔ او دا د نبی ﷺ خصوصیت نهٔ دے بلکه پدے باندے مداومت د هغهٔ خصوصیت وو او نفس دا مونځ کول مستحب عمل دے او ددے د احادیث النهی سره څهٔ تعارض هم نشته ځکه احادیث النهی محمول دی په ناوخته کولو باندے او دا محمول دی په اول وخت کښ کولو باندے فتدبر۔ او صحابه کرامؓ هم پدے باندے عمل کړیدے۔ لکه ددے مسئلے تفصیل په باب اوقات النهی (٥٦٢/٤) کښ اوفتاوی الدين الخالص (١٩٦/٣) کښ اُوګوره۔

۲۱- وَعَنِ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، قَالَ: سَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْعَصْرِ، فَقَالَ: كَانَ عُمَرُ يَضْرِبُ الْاَيْدِيَ عَلٰى صَلَاةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ، وَكُنَّا نُصَلِّيْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ. فَقُلْتُ لَهُ: اَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْهِمَا ؟ قَالَ: كَانَ يَرَانَا نُصَلِّيْهِمَا فَلَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او مختار بن فلفل رحمه الله فرمائی: ما د انس بن مالك ﷺ نه د مازيگر مانځه نه روستو د نوافلو متعلق تپوس اُوکړو، نو هغهٔ اُوفرمايل: عمر فاروقؓ به د مازيگر مانځه نه روستو(نفل) مونځ کولو باندے لاسونه (د خلقو) وهل، او مونږ به په زمانه د رسول الله ﷺ کښې د نمر پريوتو نه روستو د ماښام مانځه نه مخکښې دوه رکعاته کول، ما ورته عرض اُوکړو: آيا رسول الله ﷺ به دا دوه رکعاته کول؟ وے فرمايل : نبی ﷺ به مونږ ليدلو چه مونږ به دا دوه رکعاته کول نو نهٔ به ئے مونږ ته (وجوبی) حکم کولو او نهٔ به ئے منع کولو۔ (مسلمؒ)

تعارف د مختار بن فلفل : مختار بن فلفل المخزومی د عمرو بن حريث مولیٰ دے۔ امام احمدؒ، ابن معينؒ، ابو حاتمؒ، عجلیؒ، نسائیؒ او يعقوب بن سفيانؒ ورته ثقه وئيلے دے۔ او ابو داوُدؒ وائی : ليس به بأس۔

تشريح : دا حديث هم ښهٔ واضح دليل دے چه دا دوه رکعاته سنت عمل دے او د عمر د وهلو وجه مونږ مخکښې وئيلے وه چه د هغهٔ منع د مصلحت په بناء وه، هغه به فرمايل : ما ته ښهٔ پته ده چه دا رسول الله ﷺ کړيدی ليکن زهٔ يريږم چه خلق به ئے د نمر پريوتو وخت کښې کوی نو په ناروا کښې به اَخته شي۔ وقد مر فی (٥٦٣/٤) انظر مجمع الزوائد (٢٢٣/٢)

فَلَمْ يَأْمُرْنَا : يعنی وجوباً امرئے مونږ ته نهٔ کولو ورنه امرئے خو کړيدے۔

او حديث دليل دے چه تقرير د نبی ﷺ هم دين دے او پدے سره هم سنيت او مشروعيت د يو عمل ثابتيږی۔ ځکه نبی ﷺ چه يو کار اُووينی او د هغے نه منع اُونکړی نو دا دليل دے چه دا عمل جائز او مشروع دے۔

---

۲۲- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كُنَّا بِالْمَدِيْنَةِ، فَإِذَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ، اِبْتَدَرُوا السَّوَارِيَ، فَرَكَعُوْا رَكْعَتَيْنِ، حَتّٰى اِنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيْبَ لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ، فَيَحْسِبُ اَنَّ الصَّلَاةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُصَلِّيْهِمَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي: مونږ په مدينه کښې وو، ( د هغهٔ وخت حال دا وو چه) کله به مؤذن د ماښام د مانځه دپاره اذان اُوکړو نو خلقو به ستنو ته (د سُترے جوړولو دپاره) ورمنډه کړه، او دوه رکعاته به ئے اُوکړل، تردے چه کهٔ يو مسافر سړے به مسجد ته داخل شو نو دا گمان به ئے کولو چه (گنې) مونځ شوے دے، د وجه د کثرت د مونځ کونکو نه۔ (اکثرو به دوه دوه رکعاته کول نو مسافر به گمان اُوکړو چه مونځ شويدے او دا روستنی سنت کيږی) (مسلمؒ)

تشريح : اِبْتَدَرُوا السَّوَارِیَ : دا دليل دے چه سُتره د واجباتو نه ده او بغير د سُترے نه مونځ کول ناجائز دی۔ او دے دوه رکعاتو له صحابه کرامؓ ډير اهتمام ورکولو نو هغهٔ کسان ډير محرومه دی چه ددے نه انکار کوی او ددے نه د مزعومه مذهب په وجه ځان محروم کړی۔ او د مسئلے تحقيق مخکښې (۳/۵٤۳) کښې تير شويدے۔

---

۲۳ – وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: أَتَيْتُ عُقْبَةَ الْجُهَنِيَّ، فَقُلْتُ: أَلَا أُعَجِّبُكَ مِنْ أَبِیْ تَمِيْمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ؟ فَقَالَ عُقْبَةُ: إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ. قُلْتُ: فَمَا يَمْنَعُكَ الْآنَ؟ قَالَ: الشُّغْلُ. رَوَاهُ الْبُخَارِیُّ.

ترجمه : مرثد بن عبد الله رحمه الله فرمائي : زهٔ عقبه بن عامر جهنی ﷺ خوا ته راغلم، ما ورته عرض اُوکړو: آيا زهٔ تا د ابوتميم نه په تعجب کښې نهٔ اَچوم چه هغهٔ د ماښام مانځه نه مخکښې دوه رکعاته کوی؟ عقبهٌ اُوفرمايل: مونږ به دا مونځ په زمانه د رسول الله ﷺ کښې کولو۔ ما اُووئيل: نو اُوس څهٔ خبرے منع کړے ئے (چه دا مونځ نهٔ کوے)؟ هغهٔ اُوفرمايل : د دنيا مشغوليت۔ (بخاریؒ)

تعارف د مرثد بن عبد الله : مَرْثَدُ : بن عبد الله الْيَزَنی، يَزَن يوه قبيله ده په حِمْيَر کښې دده کنيه ابو الخير المصری ده، ثقه او فقيه راوی دے۔ تهذيب التهذيب کښې دی چه دا به د عقبه بن عامر نه نهٔ جدا کيدو او دا په خپله زمانه کښې د مصر والو مفتی وو، عجلیؒ وائی : مصری تابعی، ثقه دے۔ ابن شاهينؒ فرمائي : دا د مصريانو په نزد داسے وو لکه علقمهؒ د کوفيانو په نزد۔ او دا رشتينی انسان وو، يعقوب بن سفيانؒ ورته ثقه وئيلی دے۔ او عقبه بن عامر د مصر والی وو۔

تعارف د ابوتميم : ابوتميم : ددهٔ نوم عبد الله بن مالك الجيشانی المصری په کنيه مشهور دے اصل ئے د يمن نه دے، تابعی کبير ثقه مخضرم دے، د نبی ﷺ په زمانه کښې

په اسلام مشرف شویدے۔او په یمن کښ ئے د معاذ بن جبل نه قرآن کریم وئیلے دے۔بیا د عمر په زمانه کښ راغلو نو فتح د مصر ته حاضر شو او بیا هلته اُوسیدو۔ ابن یونسؒ فرمائی : د نبی د زمانے لاندے کولو په وجه دا یو جماعت د علماؤ په صحابه کرامؓ کښ شمیرلے دے۔په سنه (۷۷ھ) کښ وفات شویدے۔

تشریح : أَلَا أُعَجِّبُكَ : یعنی زۀ تا په تعجب کښ نه اَچوم۔ دا تعجب څکه کوی چه چا یو عمل نۀ وی لیدلے نو د هغے نه تعجب کوی۔

الشُّغُلُ: یعنی اُوس په حکومتی (د مسلمانانو په اصلاحی)کارونو مشغول یو نو وزګار نۀ یو۔ د جواب حاصل دا دے چه دا دوه رکعاته په دین کښ شته او زمونږ نۀ کول دلیل د عدم نۀ دے۔ او کله چه انسان مشغول وی نو نفلونه بل وخت ته پریخودے شی۔

دا حدیث دلیل دے چه دا دوه رکعاته مستحب دی او د نبی ﷺ په زمانه کښ شویدی او د هغۀ نه روستو هم شویدی نو پدے کښ په قاضی ابوبکر العربیؒ رد دے چه هغه وائی د صحابه کرامؓ نه روستو چا نۀ دی کړی دلته ابوتمیم تابعی دے او دا دوه رکعاته ئے کړیدی (حافظ ابن حجرؒ)۔

٢٤ – وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَتٰى مَسْجِدَ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ، فَصَلّٰى فِيْهِ الْمَغْرِبَ، فَلَمَّا قَضَوْا صَلَاتَهُمْ رَآهُمْ يُسَبِّحُوْنَ بَعْدَهَا، فَقَالَ: «هٰذِهٖ صَلَاةُ الْبُيُوْتِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ. وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ، وَالنَّسَائِيِّ: قَامَ نَاسٌ يَتَنَفَّلُوْنَ، فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ :«عَلَيْكُمْ بِهٰذِهِ الصَّلَاةِ فِي الْبُيُوْتِ».

ترجمه : او کعب بن عجره ﷺ فرمائی: نبی ﷺ (یوه ورځ) د بنی عبد الاشهل مسجد ته تشریف راوړو، او په هغے کښ ئے د ماښام مونځ اُوکړو، کله چه خلقو (فرض) مونځ اداء کړو، وے لیدل چه د هغے نه روستو (سُنت) مونځ کوی، وے فرمایل : «دا مونځ (خو) د کورونو دے»۔ (ابوداودؒ) او په یو روایت د ترمذیؒ او نسائیؒ کښ دی : څۀ کسان پاڅیدل نفلونه ئے کول، نو نبی ﷺ اُوفرمایل : « په تاسو لازم دی چه دا مونځ (سنت یا مطلقاً نفلونه) په (خپل خپل) کورونو کښ اُوکړئ»۔

تعارف د بنی عبد الاشهل : بنی عبد الاشهل : دا د اَوس قبیلے د اَنصارو نه یوه ډله ده، عبد الاشهل بن جشم بن الحارث بن الخزرج الاصغر بن عمرو بن مالك بن الاوس بن حارثة۔

تشریح : هٰذِهٖ صَلَاةُ : پدے هذه کښ یا اشاره ده د ماښام سنتو ته یا مطلق نفلو او سنتو ته۔ لیکن اول احتمال ډیر قریب دے، لهذا بیا د حدیث نه دا فائده معلومه شوه چه ټول

نوافل او سنت په کور کښې افضل دي ليکن د مابنام سنت په کور کښې ډير افضل دي۔ او ددې تائيد په حديث د رافع بن خديج کښې په ابن ماجه کښې راغلې دے : (اركعوا هاتين الركعتين في بيوتكم (زاد المعاد (۲۹۸/۱) وسنده حسن (صحيح ابن ماجه برقم ۹۵٦) (۱۹۲/۱) (دا دوه رکعاته په کور کښې کوئ)

فِي الْبُيُوْتِ: يعني دا دوه رکعاته کور کښې افضل او مستحب دي ځکه چه د رياء نه په کښې انسان وړاندې وي، او اخلاص ته ډير قريب وي اگرکه په مسجد کښې هم کله نا کله جائز دي روستو حديث کښې راځي۔ او ددې نه چه کوم لزوم معلوميږي نو دا لزوم استحبابي دے۔ او پدے کښې اولیٰ او افضل طرفته ارشا دے۔

او دليل دے چه صحابه کرامؓ به د مابنام نه روستو نوافل کول اگرکه خاص عدد ئے نه دے معين۔ او د معتکف دپاره په مسجد کښې کول افضل دی هيڅ کراهت پکښې نشته۔

فائده : د مسجد نسبت يو قوم ته جائز دے اگرکه يو شخص ته مناسب نۀ دے ځکه پدے کښې خطره د رياء ده۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه النسائي (۱۹۸/۳) والترمذی (٦٠٤) وابو داود (۱۳۰۰) وفی الاسناد اسحاق بن كعب بن عجرة وهو مجهول الحال كما فی التقريب وباقی رجاله ثقات لكن يشهد له رواية محمود بن لبيد اخرجه احمد (٤٢٨/٥) وصححه الالبانی فی الجامع الصغير (٤٠٨٤) ____________________

٢٥- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُطِيْلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ حَتّٰى يَتَفَرَّقَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ. رَوَاهُ اَبُوْ دَاوُدَ.

---

ترجمه : او ابن عباس ؓ فرمائي: رسول الله ﷺ به (کله) د مابنام نه روستو په دوه رکعاتو (سنتو) کښې اُوږد قراءت کولو تردے چه مسجد والا به (خپل خپل مونځ کولو نه پس) خوارۀ شو۔ (ابوداودؒ)

تشريح :كان د دوام دپاره نۀ دے بلکه دا عمل کله کله وو ځکه په باب القراءة فی الصلاة کښې په حديث د ابن مسعودؓ کښې تير شويدي چه نبی ﷺ به دا مختصر کول، په اول رکعت کښې به ئې (قل يا ايها الكافرون) او دويم کښې (قل هو الله احد) لوستلو۔ نو دا په بعض اَوقاتو باندې محمول دی۔

دويم : حديث دليل دے چه په مسجد کښې ددے رکعتينو کول هم جائز دی۔ اگرکه کور کښې بهتر دی۔ او په مسجد کښې کولو باره کښې ډير دلائل دی۔يو حديث کښې دی چه

نبی ﷺ تهوله ورځ بیان اُوکړو او مانځه ته به صرف راکوزیدو او بیا به منبر ته ختلو۔ نو معلومیږی چه سنت ئے هم مسجد کښ کړیدی۔ دویم په سنن کبریٰ د نسائیؒ کښ باسناد جید روایت دے: حذیفهؓ فرمائی: ما د نبی ﷺ سره د ماښام مونځ اُوکړو نو هغه تر ماسخوتن پورے مونځونه اُوکړل۔ (قال المنذری اسناده جید فی الترغیب ۲۰۵/۱ وصححه الالبانی) والمرعاة (۱۳۳/٤) وبوب الطحاوی باب السنن فی المسجد)۔

لهذا دا محمول دی په باب د جواز باندے، بعض دا محمولوی په حالت د اعتکاف باندے او بعض وائی: احتمال شته چه نبی ﷺ په کور کښ کړی وی او ابن عباسؓ پرے د کور نه خبر شوے وی ځکه د هغهٔ کور د مسجد سره متصل وو د دواړو ترمینځ صرف یو دیوال وو، او په دے دیوال کښ مسجد طرفته دروازه وه۔ لیکن اوله خبره غوره ده۔

دعاء بعد السنة ئے هم نهٔ ده کړے لهذا ددے التزام بدعت دے۔

درجة الحدیث: اسناده فیه مقال: اخرجه ابوداود (۱۳۰۱) فی سنده یعقوب بن عبد الله الاشعری ابوالحسن القُمّی قال النسائی: لیس به بأس، وخرج له البخاری تعلیقاً فی الطب وقال الطبرانی: کان ثقة وذکره ابن حبان فی الثقات وضعفه الدارقطنی) قال فی التقریب: صدوق یهم وقال الذهبی فی (ذکر من تکلم فیه وهو موثق ۲۰۲/۱): انه صالح الحدیث قال الدارقطنی: لیس بالقوی) وفیه جعفر بن ابی المغیرة وهو ایضاً صدوق (تقریب) وروی الطبرانی فی الکبیر عن ابن عباس ان النبی ﷺ کان یصلی بعد المغرب رکعتین یطیل فیهما القرائة حتی یتصدع اهل المسجد ذکره الهیثمی فی المجمع (۲۳۰/۲) وقال فیه یحیی بن عبد الحمید الحمانی وهو ضعیف) وکان یحیی بن معین حَسَنَ القول فی یحیی۔ الجرح والتعدیل (۱٦۹/۹)

---

۲٦- وَعَنْ مَكْحُوْلٍ يَبْلُغُ بِهِ، اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «مَنْ صَلّٰى بَعْدَ الْمَغْرِبِ قَبْلَ أَنْ يَّتَكَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ» - وَفِيْ رِوَايَةٍ - «أَرْبَعَ رَكْعَاتٍ، رُفِعَتْ صَلَاتُهٗ فِيْ عِلِّيِّيْنَ» . مُرْسَلًا.

---

ترجمه: او مکحول (تابعی) رحمه الله دا حدیث نبی ﷺ ته رسوی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «چا چه د ماښام نه روستو، مخکښ د (د دنیاوی) خبرو نه دوه رکعاته - او په یو روایت کښ دی: څلور رکعاته اُوکړل نو د هغهٔ مونځ به علیین (مقام قبولیت) ته اُوچت کړے شی»۔ (دا روایت مرسل دے)۔

مکحول د شام دمشق انتهائی لوئی عالم دے مشهور تابعی دے، کنیه ئے ابو عبد الله ده مګر اِرسال به ئے ډیرکولو۔ وقد مر تعارفه فی (۵۷۲/۱ - باب الاعتصام)

تشریح : ددے روایت نـه معلومیږي چه د ماښام دا دوه رکعاته د فرضو پسے متصل او د اَذکارو نه روستو کول پکار دي۔ او پدے باندے راتلونکے حدیث د حذیفهؓ هم دلیل دے۔
عِلِّيِّيْنَ : جمع د عِلي ده په اووم آسمان کښې يو مقام دے چه هغے ته اعمال د نیکانو او روحونه د هغوی پورته کیږی۔ مګر ظاهر دا ده چه دا مفرد صیغه ده خو په وزن د جمع دے۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف : اورده ابن نصر فى قيام الليل (ص ٣١) فيه ابوصالح كاتب الليث وفيه ضعف واورده المنذرى فى الترغيب والترهيب (٢٠٥/١) وقال ذكره رزين ولم اره فى الاصول واسناده منقطع۔

۲۷– وَعَنْ حُذَيْفَةَ نَحْوَهُ، وَزَادَ : فَكَانَ يَقُوْلُ: عَجِّلُوْا الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، فَإِنَّهُمَا تُرْفَعَانِ مَعَ الْمَكْتُوْبَةِ». رَوَاهُمَا رَزِيْنٌ، وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ الزِّيَادَةَ عَنْهُ نَحْوَهَا فِيْ «شُعَبِ الْإِيْمَانِ».

ترجمه : او د حذیفهؓ (هم) ددے په شان روایت نقل دے، او هغهٔ زیاتی کړیدی : چه نبی ﷺ به فرمایل :«د ماښام نه روستو دوه رکعاته په جلتئ (متصل) کوئ ځکه دا دوه رکعاته د فرض (مانځه) سره (د قبولیت مقام ته) پورته کیږی»۔ دا دواړه روایتونه رزین بن معاویهؒ نقل کړی دی او بیهقیؒ زائد الفاظو لره د حذیفه نه ددے په شان په شعب الایمان کښې نقل کړی دی۔
تشریح : عَجِّلُوْا : يو معنی دا ده چه دا دوه رکعاته مختصر کوئ او بل متصل ئے کوئ۔ دا روایت هم دلیل دے چه د ماښام دوه رکعاته سنت به په جلتئ سره کولے شی۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه البيهقى فى الشعب (٢٨٠٤) وفى اسناده عبد الرحيم بن زيد العمى ضعيف هو وابوه واخرجه ابن عدى فى الكامل (١٠٥٧/٣) فى ترجمة زيد بن الحوارى۔

۲۸– وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ: إِنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ أَرْسَلَهُ إِلَى السَّائِبِ يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ رَآهُ مِنْهُ مُعَاوِيَةُ فِي الصَّلَاةِ. فَقَالَ: نَعَمْ، صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ فِي الْمَقْصُوْرَةِ، فَلَمَّا سَلَّمَ الْإِمَامُ قُمْتُ فِيْ مَقَامِيْ، فَصَلَّيْتُ، فَلَمَّا دَخَلَ أَرْسَلَ إِلَيَّ، فَقَالَ: لَاتَعُدْ لِمَا فَعَلْتَ، إِذَا صَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ فَلَا تَصِلْهَا بِصَلَاةٍ حَتّٰى تَكَلَّمَ أَوْ تَخْرُجَ، فَإِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَمَرَنَا بِذٰلِكَ أَنْ لَانُوْصِلَ بِصَلَاةٍ حَتّٰى نَتَكَلَّمَ أَوْ نَخْرُجَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عمرو بن عطاءؒ (تابعی) فرمائی : نافع بن جبیر (تابعیؒ) دهٔ (یعنی عمرو) لره

سائب بن یزید (صحابیؓ) ته اُولیږلو دے دپاره چه د هغهٔ نه تپوس اُوکړی په باره د یو شی کښې چه معاویهؓ ددهٔ نه په مانځه کښې لیدلے وو، (او هغه ئې منع کړے وو) (نو عمرؓ د سائب خوا ته ورغلو او د هغهٔ شی تفصیل ئې معلوم کړو) نو هغوی اُوفرمایل : آؤ (یو ځل) ما د امیر معاویه ؓ سره په مَقصُوره کښې د جُمعے مونځ اُوکړو کله چه امام سلام واړولو نو زهٔ (په هغهٔ ځائے کښې کوم ځائے چه ما د جُمعے فرض مونځ کړے وو) اُودریدم، او (د فرض او سنتو ترمینځ د هیڅ جدائے کولو نه بغیر) مے مونځ اُوکړو، نو امیر معاویهؓ (د مانځه د فراغت نه بعد) خپل ځائے ته ننوتو نو ما پسے ئے یو شخص راولیږلو وے وئیل : اُوس چه دِ کوم کار اُوکړو دا کار بیا مهٔ کوه۔ (یعنی کوم ځائے چه فرض اُوکړے نو په هم دغه ځائے بغیر د اِمتیاز کولو نه سنت مهٔ کوه) کله چه ته د جُمعے مونځ اُوکړے نو د بل مونځ سره ئے مهٔ پیوسته کوه تر دے چه تهٔ کومے خبرے اُوکړے یا (د مسجد نه اُووځے۔ځکه رسول الله ﷺ مونږ ته په دے باندے حکم کړے دے چه مونږ به یو مونځ د بل سره نهٔ یو ځائے کوو تر دے چه مونږ خبرے اُوکړو یا (د مسجد نه) بهر شو۔ (مسلمؒ)

**تعارف د عمر بن عطاء** : عمر بن عطاء : بن ابی الخُوار المکی د بنی عامرو مولیٰ دے، ثقه تابعی دے۔ په بعض نسخو کښې عمرو دے لیکن هغه خطاء دے۔

او نافع بن جبیر بن مطعم النوفلی المدنی ابو محمد۔ د طبقه وسطیٰ د تابعینو نه ثقه فاضل تابعی دے۔ په سنه (۹۹ھ) کښې وفات دے۔

**تشریح** : اَلْمَقْصُوْرَةِ : دا په مسجد کښې یوه کوټنۍ وه چه بادشاهانو دپاره جوړه شوے وه۔ اول دا معاویه بن ابی سفیان ؓ جوړه کړے وه کله چه عمر او علی رضی الله عنهما شهیدان شو نو معاویه ؓ ته خطره اُوشوه چه دا خلفاء خو خلق وژنی نو د دوی د حفاظت دپاره ئے په مسجد کښې یوه کوټه جوړه کړه د اول صف په ځائے ئے دیوال اُووهلو نو پدے کښې به یو امام اُودریدو او یو څو کسان د هغه سره او نور خلق به روستو اُودریدل، نو دلته سائبؒ وائی چه زهٔ هم د معاویهؓ سره په دغه مقصوره کښې اُودریدلم۔

## مقصوره جوړول څه حکم لري ؟

بیا پدے کښې اختلاف دے چه آیا دا مقصوره څه حکم لري؟ قاضی عیاضؒ فرمائی : مقصوره ډیرو سلفو جائز کړیده او پدے کښې ئے مونځونه کړیدی چه بعض د هغوی نه حسنؒ، قاسم بن محمدؒ، سالمؒ وغیره دی۔

ابن عمرؓ، شعبیؒ، اسحاقؒ او احمدؒ ئے مکروه گنړی۔ عبد الله بن عمرؓ باره کښې راځی چه

دے به کله په مقصوره کښې وو او مونځ به اُودریدو نو مسجد ته به راوتو۔
بیا قاضیؒ فرمائی : د جُمعې مونځ هم پکښې صحیح دے، خو په دے شرط چه هر چا دپاره مباحه وی او که په بعضو خلقو پورے خاص وی او نور خلق ورته نهٔ پریدی نو بیا په کښې د جُمعې مونځ صحیح نهٔ دے ځکه دا بیا د مسجد د حکم نه بهر ده۔
نَتَکَلَّمَ : تکلم نه مراد ذکر اذکار وغیره دی۔
دا حدیث دلیل دے چه سنت د فرضو پسے متصل کول مکروه دی او دا یو سبب دے دهلاکت بنی اسرائیلو۔ نو دا رد دے په احنافو چه هغوی لیکلی دی چه د اللهم انت السلام الخ نه پس به متصل سنتو ته پاځیږی۔ او دوی اذکار د سنتو نه پس کوی او دا د سنت خلاف ده۔
مخکښې مونږ وئیلی وو چه څوك فرض مونځ اُوکړی نو ځائے بدلول مستحب دی او یا د سنت او فرضو ترمینځ په ذکر اذکارو سره فاصله راوستل پکار دی۔ دے دپاره چه صورت د نفلو د صورت د فرضو نه جدا شی، او دے دپاره چه د سجدے ځایونه ئے ډیر شی۔ او دا فصل په خبرو هم جائزدے اگرکه په مکان بدلولو سره زیات افضل دے۔ او دا حکم ځان له د جُمعې پورے خاص نهٔ دے۔
او حدیث دلیل دے چه په مسجد کښې سنت کول هم جواز لری اگرکه په کور کښې بهتر دی دلته (حتی نتکلم) مسجد ته شاملیږی۔ او نخرج کښې کور ته اشاره ده۔

---

۲۹ – عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ، إِذَا صَلَّى الْجُمُعَةَ بِمَكَّةَ تَقَدَّمَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ يَتَقَدَّمُ فَيُصَلِّيْ اَرْبَعًا. وَإِذَا كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ صَلَّى الْجُمُعَةَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى بَيْتِهٖ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ، وَلَمْ يُصَلِّ فِي الْمَسْجِدِ. فَقِيْلَ لَهٗ. فَقَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَفْعَلُهٗ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ. وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ صَلّٰى بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ اَرْبَعًا.

---

ترجمه : او عطاء رحمه الله فرمائی : چه ابن عمر ﷺ به چه کله په مکه کښې د جُمعې مونځ اُوکړو نو (کوم ځائے چه به ئے فرض اُوکړل نو د هغے نه به) مخکښې شو، او دوه رکعاته به ئے اُوکړل، او د هغے نه بعد به بیا مخکښې شو نو څلور رکعاته به ئے اُوکړل، او کله چه به مدینه کښې وو نو (د هغهٔ دا معمول وو چه) د جُمعې (فرض) مونځ به ئے اُوکړو نو خپل کور ته به واپس شو، (هلته به ئے) دوه رکعاته اُوکړل او په مسجد کښې به ئے (د فرض

نه علاوه هیڅ) مونځ نهٔ کولو، کله چه ددهٔ نه ددے (کور کښې مونځ کولو باره کښې) تپوس اُوشو نو هغه اُوفرمايل : رسول الله ﷺ به داسے کول۔ (ابوداودؒ) او په روايت د ترمذیؒ کښې دی :عطاءؒ فرمائی: ما ابن عمرؓ اُوليدو چه د جُمعے مانځه نه ئے روستو دوه رکعاته اُوکړل بيا ئے ددے نه روستو څلور اُوکړل۔

تشريح : يَفْعَلُهٗ : (يعنی نبی ﷺ به داسے عمل کولو او زهٔ ئے هم کوم د هغهٔ د تابعدارئ دپاره) ظاهر ددے روايت نه دا معلوميږی چه نبی ﷺ به د دواړو حرمينو ترمينځ فرق کولو، په مکه کښې به ئے په مسجد کښې د جُمعے نه روستو شپږ رکعاته کول او په مدينه کښې به ئے په کور کښې د جُمعے نه بعد دوه رکعاته کول او په مسجد کښې به ئے نهٔ کول۔ ليکن دا جمله د ابن عمرؓ ددواړو عملونو سره متعلق نهٔ ده ځکه چه په مکه کښې خو په نبی ﷺ باندے د جُمعے مونځ فرض نهٔ وو دا خو په مدينه کښې فرض شويدے او که مکے ته نبی ﷺ راغلے وی نو بيا خو هغهٔ مسافر دے او مُسَافر باندے سنت نهٔ وی۔ نو دا د دويم عمل د ابن عمرؓ سره لګی۔ يعنی مدينه کښې به ابن عمرؓ د جُمعے روستنی دوه رکعاته سنت په کور کښې کول او بيا به ئے دا نبی ﷺ ته منسوب کول چه هغه به داسے کار کولو۔ (قاله العراقی رحمه الله)

او دا حديث په ظاهر کښې دليل دے د ابويوسفؒ دپاره چه هغه وائی د جُمعے مانځه نه روستو شپږ رکعاته سنت دی۔ ليکن هغه هم پوره طريقے سره پدے عامل نهٔ دے ځکه ابن عمرؓ خو به دوه مخکښې کول او هغه وائی چه څلور مخکښې کول پکار دی دے دپاره چه سنت د فرضو سره مشابه نهٔ شی۔

ليکن مخکښې تير شويدی چه شپږ رکعاته سنت د نبی ﷺ نه قولاً او فعلاً نهٔ دی ثابت۔ بلکه دوه يا څلور دی او هر چه نوافل دی نو هغه چه هرڅو مره کوی خوښه ئے ده۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابو داود (۱۱۳۰) ورواية الترمذی اسنادها رجاله ثقات فهو صحيح لولا ان فيه عنعنة ابن جريج.



# باب صلاة الليل

## د شپې د مانځه بيان

### تهجد کوم وقت کيږي ؟

صلاة الليل تهجد او قيام الليل يو شے دے۔ چه ددے وخت شروع کيږي د ماسخوتن مانځه نه تر صبا راختلو پورے، نو ددے درے واړو ترمينځ شرعي فرق نشته۔ يو دے قيام رمضان، د هغې نه مراد تراويح دي او هغه هم په صلاة الليل کښ داخليږي۔

بعض وائي : صلاة التهجد خاص هغۀ مونځ ته وائي چه په آخر د شپه کښ وي او د خوب نه پس وي۔ لکه امام طبريؒ د تهجد معنیٰ کوي : (التهجد السهر بعد نومة) (تهجد : د خوب نه پس بے خوبي کول دي)۔ ابن فارسؒ لغوي فرمائي : مُتَهَجِّد هغه چا ته وائي چه د شپے مونځ کوي۔ کراعؒ وائي : تهجد خاص صلاة الليل ته وائي (فتح الباری ٤/٩٥)

او اصل کښ هَجَدَ يَهْجُدُ د اضدادو نه دے خوب ته هم وائي او بے خوبئ ته هم وائي۔ نو مُتهجّد معنیٰ ده تارك النوم۔ (خوب پريخودونکے)۔

ليکن د احاديثو نه داسے معلوميږي چه نبي ﷺ به د تهجدو مونځ د خوب نه پس کولو۔ نو دغه وخت ئے بهتر دے او نور د ټولے شپے په هره حصه کښ مونځ کول جائز دي۔ او دا په قيام الليل او صلاة الليل کښ داخليږي۔ که يو انسان د شپے نشي رابيداريدے نو هغۀ دپاره د ماسخوتن نه روستو هم تهجد جائز دي۔ او دلائل د جواز ئے په فتاوى الدين الخالص (٥/٤٧٧) کښ اُوګوره، عائشهؓ فرمائي : نبي ﷺ به د ماسخوتن نه تر سحره پورے يو لس رکعاته مونځ کولو چه په هر دوه رکعاتو کښ به ئے سلام اَړولو (متفق عليه) نو دا بعد النوم او قبل النوم دواړو ته شامليږي۔ (المرعاة ٤/١٦٤)۔

دارنګه تراويح د ماسخوتن پسے متصل کيږي۔ او نبي ﷺ هم کله کله قبل النوم کړيدي۔ (قيام الليل لابن نصر– تمام المنة ص ٢٥١)

علامه شوکانيؒ وائي: د خوب نه پس ځکه بهتر دي چه دا د فرض او نفلو ترمينځ فاصله راوستونکے دے او دارنګه پدے سره يو نشاط او تازګي پيدا کيږي د سحر مانځه دپاره۔ (نيل الاوطار٣/٧١)

دارنګه پدے کښې مشقت زیات دے ددے وجه نه اَجرئے هم زیات دے۔
بیا دا تهجد د مومن صفت دے او یوه شعبه ده د شُعَبُو د ایمان نه او په بخاري کښې ددے په باره کښې (٦٦) احادیث راغلي دی۔ الفتح (١٦٨/٤)

## حکم صلاة اللیل -- د تهجدو څه حکم دے؟

د عام علماؤ په نزد دا نفل دی۔ ۲- احناف اوحنابله وغیره وائي سنت دی۔ او دا د سنت رواتبو نه زیات مؤکد دی او همدا قول ظاهر دے۔ ځکه په قرآن کریم کښې صلاة اللیل د مؤمنانو صفت خودلے شوے دے۔او نبي ﷺ د هغهٔ چا بدی بیان کړیده چه دا نهٔ کوی۔
دارنګه په ترك ددے ئے عذاب وئیلے دے لکه په حدیث الرؤیا کښې راځي چه قاري د قرآن ته عذاب ورکولے شو، سر به ئے ورله په کاڼړي چخني کولو، پدے وجه چه د ورځے به ئے پرے عمل نهٔ کولو او د شپے بسه ئے پرے قیام نهٔ کولو۔ نو په ترك د تهجدو ئے عذاب ورکړیدے۔ په ترك د نوافلو هم کله عذاب وی او دا د الله د حق د وجه نه وی۔ ځکه الله ته دا حق حاصل دے چه د بنده نه تپوس اُوکړی چه ولے دِے غفلت کښې شپے تیرولے۔
دارنګه څوك چه دا نهٔ کوی نو شیطان د هغه په غوږونو کښې مُتیازے کړے وی۔
نبي ﷺ او صحابه کرامؓ به سفراً او حضراً نهٔ پریخودل او عام سنن ئے پریخي دی۔
او حدیث د مسلم کښې دی : تپوس اُوشو؟ (ای الصلاة افضل بعد المکتوبة ؟ قال صلاة اللیل) (د فرض مانځه نه پس کوم مونځ بهتر دے؟ وے فرمایل : د شپے مونځ) لهذا دا حدیث او دا دلائل واضح دلالت کوی چه تهجد د عامو سننو په نسبت ډیر مؤکد سنت دی۔ (ابن کثیر سورة الاسراء) (الاقناع ٩٧/١) الشرح الکبیر (٧٦٣/١) الفروع لابن مفلح (٣١٣/٣)

## آیا تهجد په نبي ﷺ او په امت فرض وو؟

بیا اختلاف دے چه په نبي ﷺ او اُمت باندے دا فرض وو او که نهٔ وو؟ :
١- اوله رأیه دا ده چه په نبي ﷺ او امت دواړو دپاره واجب وو بیا ئے وجوب منسوخ شو په آیت ﴿ وَمِنَ اللَّيۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ﴾ باندے۔ او په ﴿ عَلِمَ اَنۡ سَيَكُوۡنُ مِنۡكُمۡ مَّرۡضٰى﴾ (المزمل)۔لهذا اُوس مستحب دی۔
۲- امام شافعي رحمه الله د (فاقرأوا ما تیسر من القرآن) په ضمن کښې استدلال کړیدے چه د رسول الله ﷺ د سنتو نه صرف همدا ثابت دی چه د پنځو مونځونو نه علاوه هیڅ مونځ فرض نهٔ دے۔ لکه حدیث کښې دی : (خمس صلوات افترضهن الله)

۲- دريمه رأيه دا ده چه د اُمت په حق کښې د تهجدو د مانځه وجوب منسوخ شو او د نبي ﷺ په حق کښې ئے وجوب باقي پاتے شو۔ او دے قول ته ابونصر القشيريؒ مشهور وئيلي دے۔ (تفسير القرطبي سورة المزمل)
حسن بصريؒ او ابن سيرينؒ فرمائي: «دا فرض دی اګر که د ګډے د لشلو په مقدار وخت وی»۔ (تفسير القرطبي وابن کثير)
علامه شوکانيؒ فرمائي: راجح دا ده چه د قيام الليل وجوب د نبي ﷺ او د هغه د تول اُمت نه منسوخ شويدے۔ او ددے دليل د صحيحينو هغه حديث دے چه په هغے کښې يو سائل د نبي ﷺ نه تپوس اُوکړو چه آيا پنځو مونځونو نه علاوه په ما باندے نور کوم مونځ فرض شته؟ نو نبي ﷺ جواب ورکړو چه نهٔ، مګر دا چه ته نفلي مونځ اُوکړے۔
او د نبي کريم ﷺ نه ددے د وجوب ساقطيدو دليل د سورة الاسراء آيت (۷۹) ﴿وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ﴾ (د شپے په وخت کښې تهجد مونځ کوه چه دا به ستا دپاره نفل مونځ وی) (تفسير فتح القدير للشوكاني (٣٤٤/٧) وتفسير تيسير الرحمن (١٦٦١) للشيخ لقمان۔ او همدا خبره راجحه ده۔
بيا دلته درے بابونه دی اول باب کښې احکام بيانوی۔ ۲- دويم باب کښې قيام الليل د پاڅيدو وخت کښې ذکرونه او آداب بيانوی او دريم باب کښې فضائل او ترغيبات د تهجدو بيانوی۔ او پدے قيام الليل باندے علماؤ کتابونه ليکلی دی۔ ۱- قيام الليل د ابن نصر المروزيؒ ۲- رهبان الليل۔ ۳- کتاب التهجد للبخاريؒ ٤- التهجد وقيام الليل لابن ابي الدنيا متوفي (۲۸۱ هـ)۔ ۵- فضل قيام الليل والتهجد للآجري۔ ٦-بغية المتطوع في صلاة التطوع لمحمد بن عمر بن سالم بازمول (۱٤۱۳ هـ) ۷- دارنګه کتاب التهجد للاندلسي۔

## الفصل الاول

۱- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُصَلِّي فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَّفْرُغَ مِنْ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى الْفَجْرِ إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً، يُسَلِّمُ مِنْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَيُوْتِرُ بِوَاحِدَةٍ، فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ مِنْ ذٰلِكَ قَدْرَ مَا يَقْرَأُ أَحَدُكُمْ خَمْسِينَ آيَةً قَبْلَ أَنْ يَّرْفَعَ رَأْسَهُ. فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ، وَتَبَيَّنَ لَهُ الْفَجْرُ، قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلٰى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ حَتّٰى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ لِلْإِقَامَةِ، فَيَخْرُجُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ به د ماسخوتن مانځه د فراغت نه تر صبا راختلو پورې یولس رکعاته مونځ کولو، هر دوه رکعاتو نه پس ئې سلام اړولو او یو رکعت وتر به ئې کولو، نو یوه سجده به ئې ددې نه دومره اندازه (اُوږده) کوله لکه یو تن چه د سر پورته کولو نه مخکښې پنځوس آیتونه لولی، بیا کله چه به موذن د صبا د اذان وئیلو نه غلې شو او صبا به راخکاره شو نو پابه ځیدو مختصر شان دوه رکعاته (سنت) به ئې اُوکړل، بیا به په ښی اړخ باندې ډډۀ اُولګوله تردې چه مؤذن به ورته د اقامت دپاره راغلو (یعنی د تکبیر د اجازت حاصلولو دپاره) نو نبی ﷺ به مانځه دپاره (مسجد ته) تشریف راوړو. (بخاریؒ ومسلمؒ).

تشریح : - فوائد الحدیث : ۱- کان د دوام دپاره نۀ دې بلکه اکثریت دپاره دې. ځکه چه بل روایت د عائشةؓ کښې دیارلس رکعاته هم راغلی دی. ۲- یو سړے د شپې نشی راپاځیدلے او د ماسخوتن نه بعد نوافل اُوکړی نو ددۀ هم د تهجدو آجر کیږی.

۳- عجیبه فائده دا ده چه خلق وائی نبی ﷺ شل تراویح کړیدی او دا یولس رکعاته ئې تهجد کړیدی او مفتی رشید احمد ددې خبرې صفت کوی چه دا فرق خلقو نۀ دې پیژندلے. (فتاوی رشیدیه). الجواب : دې حدیث نه خو دا ثابت شو چه نبی ﷺ د ماسخوتن نه سحر پورې یولس رکعاته کړیدی او دا د نبی ﷺ عام عادت وو نو که ته ورته تهجد وې او که قیام اللیل نو که څوك زیات ثابتوی نو دې دلیل پیش کړی چه شل ئې بیل اُوکړل او تهجد ئې یولس اُوکړل. او دا تر قیامته پورې نشی راوړلے باذن الله.

## د نفل خلور رکعاتو نیت تړل جائز دی خو بهتر نه دی

۴- یسلم نه معلومیږی چه خلور رکعاته نیت تړل هم جواز لری لیکن افضل دا ده چه دوه دوه جُدا جُدا اُوکړی لهذا کوم خلق چه دا وائی چه دا بدعت دې نو دا صحیح نۀ ده. لکه ابن قدامه په مغنی (۱/۷۹٦) کښې لیکی : « د شپې تطوع او نوافل صرف دوه دوه جائز دی او دا قول د اکثرو اهل علمو دې او استدلال کوی په صلاة اللیل مثنیٰ مثنیٰ روایت باندې الخ » نو دا خبره ئې خطاء ده ځکه چه د مثنیٰ مثنیٰ معنیٰ خو دا نۀ ده چه خلور او زیات په یو سلام کول ناجائز دی. بلکه د نبی ﷺ نه زیادت هم نقل دې. ابن نصر المروزیؒ په قیام اللیل (۱۲۷) کښې فرمائی : دوه دوه رکعاته کول مستحب دی او واجب نۀ دی ځکه چه نبی ﷺ پنځه، اُووه او نهه رکعاته په یو سلام هم کړیدی. (لکه ددې دلائل به روستو راشی) نو پدې کښې رد دې د احنافو پدې خبره چه وائی : د شپې په

مونځونو کښې د اته رکعاتونه زیادت په یو سلام نهٔ دے جائز۔ امام نوویؒ فرمائی : د شپې او د ورځې په نوافلو کښې جائز ده چه څلور رکعاته په یو سلام اُوکړی۔ شرح مسلم (۱/۲۵۷) او دلیل د ثبوت د څلورو رکعاتو په یو سلام باندے په حدیث د عائشهؓ کښې په صحیحینو کښې راغلے دے۔ (ماکان رسول الله ﷺ یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدیٰ عشرة رکعة یصلی اربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن الحدیث) بخاری (۱/۱۵٤) (یعنی نبیﷺ به د څلورو رکعاتو نیت تړلو)۔لکه پدے کښې حدیث کښې ظاهر احتمال همدا دے۔

او ددے نه بله فائده دا معلومیږی چه د نبی او صحابه کرامؓ نه دا نهٔ دی ثابت چه هغوی د وترونه علاوه په نوافلو کښې په یو سلام د څلورو نه زیاتو نیت تړلے وی مگر صرف د ابوذر نه بیهقی (۲/٤۸۹) او دارمی (۱/۳٤۱) نقل کړیدی چه هغهٔ ډیر رکعاتونه اُوکړل، د سلام نه روستو ترے احنف بن قیس رحمه الله تپوس اُوکړو، تا څو رکعاته اُوکړل، جفت وو که تاک؟ هغهٔ اُوفرمایل : کهٔ ما ته پته نهٔ وی نو الله ته خو پته شته۔ ما د خپل خلیل ابوالقاسم ﷺ نه آوریدلی دی چه نشته یو بنده چه د الله دپاره سجده اُوکړی مگر الله به د هغهٔ درجه اُوچتوی او په هغے سره به د هغهٔ گناه ختموی (وسنده صحیح) کما فی ارواء الغلیل (۲/۲۰۹) نودا د هغهٔ اجتهاد دے۔ او خصوصی پدے مسئلهٔ ئے حدیث مرفوع پیش نهٔ کړو، لهذا پدے سره د امام نوویؒ قول باطل شو کوم چه سید سابقؒ په فقه السنة (۱/۱٦۳) کښې نقل کړیدے چه مطلق نوافلو کښې د هرڅومره رکعاتو نیت تړل جائز دی اگرکه زر رکعاته وی۔ دا خبره ځکه خطاء ده چه نفل عبادت دے او مبنیٰ د عبادت په توقیف ده او نبی علیه السلام داسے عمل چرته هم نهٔ دے کړے۔ والله اعلم۔

## مستقل یو رکعت وتر جائز دے

۵- یُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ : ددے نه ثابته شوه چه مستقل یو رکعت وتر کول هم سنت کښې راغلی دی۔ لکه مصنف عبد الرزاق او ابن ابی شیبه وغیره کښې دی : عثمان بن عفان او تمیم الداری په یو رکعت کښې قرآن کریم ختم کړے وو۔ او حدیث (نَهٰی رسول الله ﷺ عن البُتَیْرَاء) د عثمان بن محمد بن ربیعه متکلم فیه راوی په وجه ضعیف دے۔ابن القطان وائی : دده په حدیثو باندے وَهُم غالب دے۔ او که اُومنو چه ثابت دے نو بیا ددے صحیح معنیٰ هم شته چه بُتَیْرَاء هغه مونځ دے چه رکوع او سجده او تعدیل د ارکانو په کښې اُونهٔ شی۔ او دا حدیث د عائشهؓ صریح دلیل دے په فصل د یو رکعت د دوه رکعاتو نه ځکه مخکښې «یسلم من کل رکعتین» ذکر شو او «یوتر بواحدة» مستقل حکم شو۔

لهذا دغه ضعيف حديث ددے قوي حديث معارض نشي گرځيدے۔ نو پدے سره د طحاويؒ د خبرے غلطيدل واضح شو چه هغه وائي : ددے يو رکعت نه مراد هغه دے چه ماقبل دوه رکعاتو سره پيوسته وي، لهذا دا هسے تشه دعوه ده او هيڅ دليل پرے نشته بلکه دليل ددے په خلاف دے چه تا اُوپيژندو۔

او مزيد تفصيل به روستو باب الوتر کښې راشي ان شاء الله۔

فَيَسْجُدُ السَّجْدَةَ : ددے نه مراد هغه سجده ده چه په مانځه کښې دننه وي يعني دغه اُوږدو رکعاتونو کښې به ئې سجده هم دومره اُوګده کوله۔ او د وترو نه روستو مستقله يوه سجده کول ترے ندی مراد لکه چه دا فهم امام نسائيؒ کړيدے۔

ثُمَّ اضْطَجَعَ : دا ډډۀ به ئې په کور کښې لګوله، د ډډۀ لګولو يوه فائده دا ده چه د قيام الليل د تَعَب او ستړي والي نه استراحت اُوکړي او فرضو ته په نشاط او رغبت سره تيار شي۔ يا دا چه د نفل او فرضو ترمينځ فاصله راشي په ډډۀ لګولو سره۔

---

۲ - وَعَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي، وَإِلَّا اضْطَجَعَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائي : نبي ﷺ به چه کله د سحر دوه رکعاته (سنت) اُوکړل، نو کۀ زۀ به بيداره وم، ما سره به ئې خبرے کولے اوکۀ زۀ به اُوده وم نو ډډۀ به ئې اُولګوله۔ (مسلمؒ)

تشريح : ظاهر دا ده چه کله به نبي ﷺ د عائشهؓ سره د سنتو نه روستو خبرے اترے اُونکړے نو بيا به ئې ډډۀ لګوله او کله چه به ئې هغې سره خبرو کښې ځان مشغول کړو نو بيا به ئې دا ډډۀ نۀ لګوله لکه دے خبرے ته امام بخاريؒ او ابن خزيمهؒ ميلان کړيدے۔ ځکه چه ابن خزيمه داسے ترجمة الباب لګولے دے (الرخصة فی ترك الاضطجاع بعد رکعتی الفجر) و پدے کښې رد دے په بعض صوفيه ؤ باندے چه وائي : د سحر د سنتو نه روستو به خبرے نۀ کوي۔ او کوفيان ئې هم مکروه ګڼړي۔ (قاضي عياضؒ)۔ او دا خبره ياد لره چه ددے نه فضول خبرے نۀ دي مراد بلکه مباحے د ضرورت خبرے مراد دي۔

او ددے نه بعض علماؤ استدلال کړيدے چه دا ډډۀ لګول سنت نۀ دي۔

ليکن جواب دا دے چه کله کله پريخودلو نه استدلال په عدم استحباب باندے صحيح نۀ دے۔

## د سحر سنتو نه روستو اضطجاع (ډډه لګول) څه حکم لري؟

۱- شوافع او حنابله، فقهاءِ سبعه، او یو جماعة د صحابه کرامؓ فرمائي : دا ضَجْعَه سنت ده لیکه څنګه چه حدیث کښې راغلے ده۔ ۲- احناف او امام مالکؒ وائي سنت نهٔ ده بلکه مباح ده، که د استراحت دپاره وي نو جواز لري او که د عبادت په طور وي نو صحیح نهٔ ده۔ بلکه دا د نبيﷺ عادتي طریقه وه د استراحت دپاره به ئې کوله۔

۳- ابن حزمؒ په کښې غلو کړیده چه دا ډډهٔ لګول فرض دي او بغیر ددے نه صلاة الفجر نهٔ صحیح کیږي۔ دلیل دا وائي : چه د ابو هریرةؓ مرفوع حدیث کښې نبي ﷺ پدے امر کړیدے : (اذا صلی احدکم الرکعتین قبل الصبح فلیضطجع علی یمینه) المحلی بالآثار ۱۹٦/۳) طرح التثریب (۳۱٥/۳) او امر خو د وجوب دپاره دے۔

٤- قول رابع : د بعضِ سلفو رأیه دا ده چه کور کښې مستحب ده او مسجد کښې نهٔ ده پکار ۔ او دا د ابن عمرؓ نه نقل دے۔ او د هغهٔ نه دا ثابت دي چه په مسجد کښې به چا دا ډډهٔ لګوله نو هغه به ئې په کاڼو ویشتو۔ (ابن ابی شیبة - سبل السلام ۲٥٥/۲) المرعاة (۱٦٦/٤)

٥- قول خامس : که د شپے تهجد ئې کړي وي نو بیا دا ډډهٔ مستحب ده او که تهجد ئې نهٔ وي کړي نو د سحر سنتو نه پس صحیح نهٔ ده۔ او دا قول د ابن عربيؒ دے۔

٦- بعض ورته بدعت وائي، او دا د ابراهیم نخعيؒ نه نقل دي چه هغه به دیته ضَجْعَةُ الشیطان وئیله۔ او دغه شان ابن مسعودؓ ته هم منسوب دي چه هغه به دا بده ګڼړله (طرح التثریب ۳۱۷/۳) حافظ ابن حجرؒ فرمائي : ابن مسعودؓ ځکه بده ګڼړله چه هغه ته ددے په امر باندے حدیث نهٔ وو رسیدلے، یا دا چه هغهٔ ددے د وجوب او لزوم نه منکر وو لکه څنګه چه د هغهٔ آخر دکلام پدے دلالت کوي لکه هغهٔ فرمائي: (ما بال الرجل یَتَمَعَّكُ کَمَا یَتَمَعَّكُ الدابة والحمار، اذا سَلَّمَ فَقَدْ فَصَلَ) (فتح الباری ۱٥۳/٤)

(یعني څهٔ وجه ده چه یو سړے د خر او حیوان په شان په زمکه ارغړي بلکه کله چه سلام اُوګرځوي نو بس جدائي راغله (د سنت او فرضو ترمینځ) او ابن عمرؓ ته هم حدیث نهٔ وو رسیدلے ځکه هغهٔ په ابو هریره باندے تعجب کولو او دا به ئې فرمایل (اکثر ابو هریرة علی نفسه) (ابو هریره ډیر حدیثونه بیانوي) لیکن ابو هریره چه پدے خبره خبرشو نو وے فرمایل : چه دے کښې زما څهٔ نقصان چه دوي نه هیر شوي دي او ما یاد کړي دي۔

(صحیح ابی داود :۱۱۲۳)

پدے کښې راجح قول دا دے چه دا سنت طریقه ده د(فلیضطجع) امر د استحباب دپاره

دې۔ ځکه نبي ﷺ کله نا کله پرېښې هم ده۔لکه دا حديث الباب د مسلم شو۔ او دا امر مطلق دې مسجد او کور دواړو ته شامل دې۔ نو بس کوم ځائې کښې چه د سحر سنت اُوکړې هلته دِې اضطجاع هم لګوي۔ که کور کښې ئې سنت اُوکړل هلته دِې لګوي او که مسجد کښې ئې اُوکړل نو مسجد کښې دِ ډډه لګوي او د نبي ﷺ نه چه دا ندی نقل چه هغه مسجد کښې کړې وي نو ددې وجه دا ده چه هغه به دا سنت په کور کښې کول لهذا هلته به ئې ډډه هم لګوله۔

(راجع تحفة الاحوذی ۱/۵۸ ٤ والمرعاة ٤/۱٦٦) (بغية المتطوع ص ۱/۸)

دا رنګه اصحاب صفه مسجد کښې اُوسيدل هغوی به په مسجد کښې عمل کولو کما فی حديث ابی هريره۔

## نبي عليه السلام دوه قسمه ډډه لګولې ده

ليکن دا خبره اُوپېژنه چه نبي عليه السلام دوه قسمه ډډه لګولې ده: ۱- يو د وترو نه بعد او دا په بعض احاديثو کښې راغلې ده نبي ﷺ اَحياناً کړېده، ددې وجه نه عام احاديثو کښې ددې بيان نشته۔ په بخاري (۱/۳۰) و (۱/۱۳۵) باب الوتر کښې راغلې ده: په روايت د ابن عباس کښې: (فصلی رکعتين ثم رکعتين ثم رکعتين ثم رکعتين ثم رکعتين ثم اوتر ثم اضطجع حتی اتاه المؤذن فقام فصلی رکعتين خفيفتين ثم خرج فصلی الصبح)

نو دا دليل دې چه د وترو نه بعد ئې دا ډډهٔ لګولې ده د استراحت دپاره)

وکذا فی رواية عائشة عند مسلم (۱/۲۵۳)

۲- دويمه ډډهٔ د سنة الفجر نه روستو ده او پدې باره کښې ډير اَحاديث راغلي دي۔ او دغه مخکښې اختلاف هم پدې کښې دې۔ او دا پدې حديث الباب کښې هم ذکر ده او دې روستو روايت کښې هم راځي۔ او پدې باره کښې دا وئيلې شي چه دا مستحب ده او په عام اوقاتو کښې ئې کول پکار دي مګر کله نا کله د سنت او فرضو ترمينځ په خبرو اَترو او ذکر اذکار سره هم فصل راوستل جائز دي۔ او ددې تفصيل په فتاوی الدين الخالص (۵/۲۹٤) کښې هم اُوګوره۔

---

۳- وَعَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه: او عائشه رضي الله عنها فرمائي: نبي ﷺ به چه کله د سحر دوه رکعاته (سنت) اُوکړل نو په ښي طرف به ئې ډډهٔ اُولګوله۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشریح : د عائشهؓ نه دا اِضطجاع دوه قسمه نقل ده نو ددے وجه نه بعض علماؤ وئیلی دی چه اوّله اضطجاع راجحه ده۔ لیکن شوکانیؒ فرمائی : چه دا خبره مُسلم نهٔ ده، بلکه خبره برعکس ده۔ مگر صحیح دا ده چه دواړه بیل بیل محلونه دی او د یو بل نفی پکښ نشته۔ او عائشهؓ دواړه عملونه د نبیﷺ نقل کړیدی۔

بیا په ښی طرف باندے ئے څکه ډډهٔ لګوله چه ګس طرف باندے اُوده کیدو سره انسان باندے مستغرق (ژور) خوب راځی څکه زړه په ګس طرف کښ دے کله چه انسان په ګس طرف پریوزی نو زړه ته راحت ملاؤ شی او کله چه په ښی طرف وی نو زړه زوړند وی، نو انسان مستغرق خوب نهٔ کوی۔ لیکن نبیﷺ ددے نه مستثنیٰ دے څکه د هغهٔ زړه د سترګو په اُودهٔ کیدو نهٔ اُوده کیدو۔

او دا حدیث دلیل دے چه د سنتو د صبا نه روستو دا قسم ډډهٔ وهل مستحب دی۔ او ددے نه مسجد ته تلل نهٔ کافی کیږی۔ لکه ابو هریره ﷺ چه کله مرفوع حدیث ذکر کړو چه په هغے کښ امر وو په اضطجاع باندے نو مروان بن الحکم ورته اُووئیل : آیا مسجد ته تلل د یو تن دپاره نهٔ کافی کیږی تردے چه دا په ښی طرف ډډهٔ اُولګوی؟ (مقصد دا چه فصل د سنت او فرضو خو پدے هم راځی چه کور کښ سنت اُوکړه او بیا مسجد ته روان شه) نو ابو هریره اُوفرمایل : نهٔ۔ (فتح الباری) (صحیح ابی داود (١١٢٣) ٢٣٥/١ بسند صحیح)

---

٤– وَعَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، مِنْهَا الْوِتْرُ، وَرَكْعَتَا الْفَجْرِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبیﷺ به د شپے نه دیارلس رکعاته مونځ کولو، ددے نه به وتر او دوه رکعاته د صبا وو۔

تشریح : ددے روایت د ماقبل روایت د عائشهؓ سره منافات نشته څکه دلته ورسره د سحر سنت هم شامل شویدی نو دیارلس شویدی او مخکښ یولس ذکر وو۔

## د رسول اللهﷺ د شپے د مانځه مختصر کیفیات

پدے حدیث کښ د شپے د مانځه بعض کیفیات ذکر دی چه دا ټول کیفیات تقریباً (٢٢) دی چه دیارلس کیفیات علامه ابن حزمؒ په المحلی (٨٤،٨٠/٢) کښ ذکر کړیدی او حافظ ابن قیمؒ اُووه ذکر کړیدی او دا دتنوع د عبادت د قبیلے نه دی مسلمان مُتبع السنة له پکار دی چه علی حسب الاحوال پدے ټولو عمل اُوکړی۔ کوم چه ډیر شوی وی هغه ډیر

اُوکړی او کوم چه کم شوی وی هغه کم اُوکړی۔ چه هغه تفصیلًا په فتاوی الدین الخالص (٤٧٩/٥) کښې ذکر دی مختصر دا دی :

۱-دیارلس رکعاته کول، په هر دوه رکعاتو سلام اَړول، او یو رکعت وتر کول (عن ابن عباس : بخاري (۱/۳۰) و (۱/۱۵۵) کتاب التهجد وابوداود (۱/۱۳۹)

۲- یو لس رکعاته کول په هر دوه رکعاتو سلام اَړول او یو رکعت وتر کول۔ نو لس تهجد او یو وتر شو۔ (مسلم (۱/۲٥٤ برواية عائشة)

۳-اته رکعاته کول په هر دوه رکعاتو سلام بیا پنځه رکعاته وتر په یو سلام کول او مینځ کښې قعده نهٔ کول۔ نو د وترو سره دیارلس رکعاته شو (نسائی ۱/۲٥۰) برواية عائشة) المحلی (۱/۸۲)۔

٤- یولس رکعاته کول څلور څلور په یو یو سلام او درے وتر کول۔ (بخاری ۱/۱٥٤) برواية عائشة)

٥-دیارلس رکعاته کول هر دوه رکعاته پس سلام او آخر کښې درے رکعاته وتر)

٦- اته رکعاته تهجد په هر دوه رکعاتو سلام اړول او آخر کښې درے رکعاته وتر۔

۷-شپږ رکعاته کول او بیا درے وتر۔ ۸- څلور رکعاته کول او درے وتر۔ ددے دلیل ابوداود (۱/۱٦۲) برقم (۱۲۱٤) کښې دے د مشکاة باب الوتر یولسم (۱۱) حدیث دے۔ اُوګوره (عن عبد الله بن ابی قیس قال : قلت لعائشة بکم كان رسول الله ﷺ یوتر به (ای یتهجد ؟ قالت : باربع وثلاث ، وست وثلاث وثمان وثلاث وعشر وثلاث الحديث) وسنده صحيح)

۹- نه رکعاته په یو سلام کول او په اتم رکعت قعده کول او حمد او دعاء ګانے وئیل بیا بغیر د سلام اړولو نه نهم رکعت ته پاڅیدل او بیا کیناستل او حمد وئیل او سلام اړول۔ بیا دوه رکعاته په ناسته یا په ولاړه کول۔ (مسلم ۱/۲٥٦ برواية عائشة

۱۰- اُووه او دوه رکعاته کول۔ (مسلم ۱/۲٥٦- عن عائشة

۱۱- صرف اُووه رکعاته په یوه قعده او یو سلام کول او نور هیڅ نهٔ کول۔

۱۲-اووه رکعاته کول او په شپږم رکعت قعده کول بیا تشهد او دعاء وئیل بیا اُووم رکعت ته پاڅیدل بیا کیناستل او سلام ګرځول۔ او بیا دوه رکعاته په ناسته کول۔ (نسائی ۱/۲٥۰عائشة)

۱۳-اته رکعاته کول او یو رکعت وتر۔ (بخاری ۱/۱۳٥) مسلم (۱/۲٥۷) ابن عمر)

۱٤- شپږ رکعاته کول په هر دوه رکعاتو سلام اړول او یو وتر کول۔ (المصدر السابق)

۱٥-د ماسخوتن مانځه نه پس څلور رکعاته کول بیا اُوده کیدل بیا د شپے راپاڅیدل او

پنځه رکعاته په یو سلام او یوه قعده کول بیا آخر کښې دوه رکعاته کول۔
(بخاری ۱/۲۲ – ابن عباس)

۱۶– څلور رکعاته کول، هر دوه رکعاته پس سلام اړول او یو وتر کول۔ (بخاری۱/۱۳۵) (۱/۲۵۷)

۱۷–پنځه رکعاته په یوه قعده او یو سلام فقط۔ (نسائی ۱/ ۲۵۰ ابوداود (۱۳۳۸عائشة)

۱۸–ماسخوتن نه پس اُوده کیدل بیا راپاڅیدو سره مسواك وهل او (ان فی خلق السموات) (سورۀ آل عمران آخری رکوع) لوستل بیا دوه رکعاته کول قیام، رکوع او سجده پکښې ښۀ اُوږدۀ کول، بیا اُوده کیدل بیا پاڅیدل دوه رکعاته کول بیا اُوده کیدل بیا دوه رکعاته کول (درے کرتے چه دا شپږ رکعاته شی) بیا درے وتر کول۔ (نو ټول نهه رکعاته شی) (مسلم ۱/۲٦۱ ابن عباسؓ)

۱۹– فقط درے رکعاته کول په دوه رکعاتو سلام گرځول بیا یو رکعت وتر کول۔ (بخاری ۱/۱۳۵) مسلم (۱/۲۵۷) ابن عمرؓ

۲۰– درے رکعاته په یوه قعده او یو سلام۔ او ددے تفصیل به راشی ان شاء الله۔

۲۱– درے رکعاته په دوه قعدو او یو سلام۔ دا کیفیت په صحیح صریح مرفوع حدیث کښې نۀ دے راغلے۔ لکه ددے بیان به روستو راشی۔

۲۲– صرف یو رکعت وتر کول (مسلمؒ)۔

بیا پدے کیفیاتو باندے زیادت کول هم جائز دی۔ لکه څوارلس رکعاته اُوکړی او بیا یو وتر اُوکړی یا شل رکعاته اُوکړی بیا یو وتر یا درے وتر وغیره ۔ څکه په نفلی مطلق عبادتونو کښې زیادت کول جواز لری او دا خبره بار بار په فوائد الحدیث کښې تیره شویده۔

---

٥– وَعَنْ مَسْرُوْقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ بِاللَّيْلِ. فَقَالَتْ: سَبْعٌ، وَتِسْعٌ، وَإِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً، سِوٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه: او مسروقؒ فرمائی: ما د عائشےؓ نه د رسول الله ﷺ د شپے د مانځه متعلق تپوس اُوکړو، نو هغے اُوفرمایل: کله به ئے اُووه رکعاته کول او کله به ئے نهه او کله به ئے یوولس رکعاته کول سوئ د دوه رکعاتو د سحر نه۔ (بخاریؒ)۔

تعارف د مسروق: مسروق بن الاجدع بن مالك الهمدانی الوداعی ابوعائشة الکوفی المدنی ثقه فقیه عابد، مخضرم د کبار التابعین نه دے۔ امام شعبیؒ فرمائی: ما

ددهٔ نه ډیر طلب ګار د علم نهٔ دے لیدلے، او دا د قاضی شُرَیحؒ نه په فتویٰ ډیر پوهه وو. او شریحؒ به ددهٔ نه مَشورے اَخستے. او مسروق شریح ته نهٔ وو محتاج.

علی بن المدینیؒ فرمائی : د عبد الله بن مسعودؓ په شاګردانو کښې د مسروق نه داسے څوک مقدم نشته چه هغه د ابوبکر صدیق پسے مونځ کړے وی. دا د عمر فاروق او علی بن ابی طالبؓ سره ملاو شویدے او د عثمانؓ نه ئے څه ندی نقل کړی په کوفه کښې په سنه (٦٣ هـ) کښې د (٦٣) کالو په عمر وفات شویدے. مسروق ورته ځکه وائی چه دا په وړوکوالی کښې چا پټ کړے وو، بیا پیدا شو. او عمر فاروقؓ په خپل دیوان کښې ددهٔ د پلار نوم د اجدع په ځائے عبد الرحمن ایخے وو. او دا ئے ورته اووئیل چه اجدع خو شیطان دے.

تشریح : په دے روایت کښې درے کیفیات ذکر شو. په (سبع) کښې یوه طریقه دا ده چه شپږ رکعاته تهجد په یو سلام او یو وتر اُوکړی. ۲- یا شپږ رکعاته په جدا جدا سلام او یو وتر. ۳- یا دا تول وتر دی په یو سلام باندے.

وَإِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً : دا په یو سلام نشته پدے کښې هم مختلف کیفیتونه جوړیږی : ۱- نهه رکعاته په یو سلام او دوه رکعاته په ناسته. یا اته رکعاته نفل درے وتر. او باقی کیفیتونه مخکښې اُوکوره. او د عائشےؓ مطلب دا دے چه دا په مختلفو حالاتو کښې نبی ﷺ کړیدی.

---

٦- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ لِيُصَلِّيَ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ به چه کله د شپے مانځه ته راپاڅیدو نو خپل مونځ به ئے په دوه مختصر رکعتونو شروع کولو. (مسلمؒ).

تشریح : سنت طریقه دا ده چه تهجد په اول کښې لنډول مینځ کښې اُوګدول او آخر کښې بیا مختصر کول، دے دپاره چه په مانځه کښې انسان په نشاط کښې شی او که اول نه اُوګد شروع کړی نو بس په دوه رکعاتو به ستړے شی نور به نشی کولے. او دا ترقی من الادنیٰ الی الاعلیٰ ده. او دا اولنی رکعتونه که د تهجدو نه حساب شی نو بیا دیارلس رکعاته شو او که د هغے نه حساب نهٔ کړے شی نو بیا یو لس رکعاته دی نو د عائشےؓ د دواړو خبرو هیڅ تعارض نشته. یا په مختلفو احوالو محمول دی.

---

٧- وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ، فَلْيَفْتَتِحِ الصَّلَاةَ

بِرَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «کله چه په تاسو کښې يو تن د شپې (تهجد و ته) راپاخيږي نو خپل مونځ دې په دوه مختصر رکعتونو شروع کړي». (مسلم)

تشريح : فَلْيَفْتَح: پدې کښې دوه نسخې دي، دا يا (فليفتتح) دې د افتتاح نه په معنیٰ د ابتداء سره. يعني شروع دې کړي. يا (فليفتح) دې د فتح نه په معنیٰ د کولاوولو سره. ليکن اوله نسخه غوره ده ځکه چه هغهٔ د مصابيح او د مسلم سره برابره ده. ددې روايت سره په روايت د ابوداود کښې دا زيات دي چه روستو ئې خوښه ده چه څومره ئې اُوږدوي.
لهٰذا مخکښې حديث کښې عمل وو او پدې کښې ئې قولي حديث سره دا حکم اُوکړو.

---

٨- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ عِنْدَ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ لَيْلَةً، وَالنَّبِيُّ ﷺ عِنْدَهَا، فَتَحَدَّثَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَعَ أَهْلِهِ سَاعَةً، ثُمَّ رَقَدَ، فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ أَوْ بَعْضُهُ قَعَدَ، فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ فَقَرَأَ: ﴿إِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبٰبِ﴾ حَتّٰى خَتَمَ السُّوْرَةَ، ثُمَّ قَامَ إِلَى الْقِرْبَةِ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا، ثُمَّ صَبَّ فِي الْجَفْنَةِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوْءًا حَسَنًا بَيْنَ الْوُضُوْءَيْنِ، لَمْ يُكْثِرْ، وَقَدْ أَبْلَغَ، فَقَامَ فَصَلّٰى، فَقُمْتُ وَتَوَضَّأْتُ، فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، فَأَخَذَ بِأُذُنِيْ فَأَدَارَنِيْ عَنْ يَمِيْنِهِ، فَتَتَامَّتْ صَلَاتُهُ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ، وَكَانَ إِذَا نَامَ نَفَخَ، فَآذَنَهُ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ، فَصَلّٰى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. وَكَانَ فِيْ دُعَائِهِ: «اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا، وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا، وَفِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا، وَعَنْ يَمِيْنِيْ نُوْرًا، وَعَنْ يَسَارِيْ نُوْرًا، وَفَوْقِيْ نُوْرًا، وَتَحْتِيْ نُوْرًا، وَأَمَامِيْ نُوْرًا، وَخَلْفِيْ نُوْرًا، وَاجْعَلْ لِّيْ نُوْرًا، — وَزَادَ بَعْضُهُمْ —: وَفِيْ لِسَانِيْ نُوْرًا— وَذَكَرَ— : وَعَصَبِيْ وَلَحْمِيْ وَدَمِيْ وَشَعْرِيْ وَبَشَرِيْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لَهُمَا: «وَاجْعَلْ فِيْ نَفْسِيْ نُوْرًا، وَأَعْظِمْ لِيْ نُوْرًا. وَفِيْ أُخْرٰى لِمُسْلِمٍ: «اَللّٰهُمَّ أَعْطِنِيْ نُوْرًا».

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائي: (يو ځل) ما د خپلې ترور (ماسي) ميمونې رضي الله عنها سره شپه تيره کړه او نبي ﷺ (هم پدې شپه) د هغې سره وو، نو رسول الله ﷺ د خپل کور والا سره څهٔ وخته پورې خبرې اُوکړې بيا اُوده شو، کله چه د شپې آخري دريمه

حصه یا ددے نه کمه حصه پاتے شوه، نو راپاځیدو او آسمان طرف ته ئے اُوکتل او دا آیتونه ئے اُولوستل : (ان فی خلق السموات الخ) (یقیناً په پیدائش د آسمانونو او زمکو او د شپے او د ورځے په بدلولو رابدلولو کښې ډیرے نخے دی د صفا عقلونو والاو دپاره) تردے چه دا سورت (آلعمران) ئے ختم کړو، بیا یو مشك ته راپاځیدو نو دهغے خوله بَندئے راکولاؤ کړو بیا ئے د هغے نه اُوبه په یوه پیاله کښې راواړولے، بیا ئے ښائسته اَودس اُوکړو چه د دوه اَودسونو ترمینځ وو یعنی ډیرے اُوبه ئے استعمال نۀ کړے او کامل اَودس ئے اُوکړو۔نو پاځیدو او مونځ ئے اُوکړو، نو زۀ (هم) راپاځیدم او اَودس مے اُوکړو او د هغۀ گس طرف ته اُودریدم ، نو زما غوږ ئے اُونیولو او ښی طرف ته ئے راتاؤ کړم، نو کله چه د هغۀ دیارلس رکعاته مونځ پوره شو نو بیا ئے ډډۀ اُولگوله، اُوده شو، تردے چه خراړے ئے اُوکړے او نبی ﷺ به چه کله اُوده شو نو خراړے به ئے کولے، نو بلال ورته د مانځه خبر ورکړو نو مونځ ئے اُوکړو او اَودس ئے اُونۀ کړو (او دعاء ئے اُووئیله) او د هغۀ په دعاء کښې دا الفاظ وو : اللهم اجعل الخ (اے الله ! زما په زړه کښې رنړا واچوے او زما په نظر، په غوږونو کښې رنړا واچوے او زما ښی طرف ته او گس طرف ته او بره او ختکه او لاندے او مخے ته او روستو رنړا واچوے او زما دپاره رنړا مقرر کړے او بعضو پکښې دا الفاظ زیاتی کړی دی: «او زما په ژبه کښې رنړا واچوے» او بعضو راویانو دا الفاظ هم زیاتی کړی دی : (او زما په اَعصابو کښې، زما په غوښه کښې، زما وینه کښې، زما په ویښتو، او زما په څرمن کښې نُور پیدا کړے (بخاریؒ ومسلمؒ) او د بخاریؒ او مسلمؒ په یو روایت کښې دی : «او زما په نفس کښې نُور پیدا کړے او زما دپاره رنړا لویه کړے» او په یو روایت د مسلمؒ کښې دی : «اے الله ما ته رنړا راکړے»۔

**تشریح** : قَعَدَ : یعنی رسول الله ﷺ چه د خوب نه رابیدار شو نو کیناستو او د مخ نه ئے خوب په لاسونو سره لرے کولو۔ او په یو روایت کښې دی : اُودۀ شو تردے چه نیمائی شپه شوه یا هغے ته نزدے شوه نو رابیدار شو لهذا دا روایت بیا مخالف دے ددے روایت د کتاب سره۔ پدے وجه حافظ ابن حجرؒ فرمائی : ددے جمع به داسے اُوکړے شی چه دا بیداریدل دوه ځل شوی دی، په اول ځل ئے آسمان ته کتلی دی بیا ئے آیاتونه لوستلی دی، بیا بسترے ته واپس شوے دے او اُودۀ شوے دے، او په دویم ځل ئے بیا دغه شان کار کړیدے، بیا ئے اَودس کړے او مونځ ئے کړے، او دا محمد بن الولید د کریب نه هغۀ د ابن عباس نه بیان کړیدی لکه محمد بن نصر نقل کړیدی، او په روایت د صحیحینو کښې دی : رسول الله ﷺ د شپے رابیدار شو حاجت ته راغلو، بیا ئے مخ لاسونه وینځل بیا اُودۀ شو بیا رابیدار شو نو تیپکے او مشك ته راغلو الی آخر الحدیث۔ او په روایت د مسلمؒ کښې دی :

(ثم قام قومة اخرى) یعنی دوباره راپاڅیدو)۔ لهذا تعارض نشته۔

**فوائد الحدیث :** ۱– ابن عباس د نبی ﷺ د شپې مانځه معلومولو دپاره راغلی دے۔

۲– د ماسخوتن نه روستو ګپ شپ ناروا دے مګر خپلې ښځې میلمه وغیره سره اِجازت شته۔ ځکه دا د دوی حق دے۔

۳– د تهجدو دپاره د شپې آخری حصه ډیره بهتره ده، او دا وخت د راکوزیدو د الله دے آسمان د دنیا ته۔ ۴– نظر الی السماء نه معلومیږی چه آسمان ته د عبرت په طور کتل عبادت دے۔ کوم صوفیاء چه وائی چه سری سقطی اته نوی کاله آسمان ته نهٔ وو کتلی ځکه، دا د حیاء خلاف ده (فضائل صدقات د زکریا)۔ نو اوّل خو دا واقع نهٔ ده ثابته۔ دویم دا که ثابت شی نو دا د صوفیهٔ عمل دے چه د دین خلاف دے، (اَفَلَا یَنظُرُوْنَ اِلَی الْاِبِلِ کَیْفَ خُلِقَتْ وَاِلَی السَّمَاءِ کَیْفَ رُفِعَتْ) دارنګه هلال ته کتل او هغهٔ معلومول عبادت دے۔

او په دے خبرو باندے د اُمت اصلاح نهٔ کیږی۔ او آسمان ته کتلو او دے آیاتونو کښې فکر کولو نه پس انسان ته یو خاص ایمانی کیفیت حاصلیږی۔

۵– نبی ﷺ به خپله خدمت کولو بل چا ته ئې دا نهٔ وئیل چه ورشه اُوبه راله واچوه چه اَودس اُوکړم۔ ۶– شِنَاقَهَا : دا هغهٔ مزے دے چه د مشك او بتکی خوله پرے تړلے شی۔یعنی خوله بند۔

۷– وَلَمْ یُکْثِرْ : یعنی په اُوبو لګولو کښې ئې زیادت اُونکړو۔ او حال دا چه کامل اَودس ئې اُوکړو او دیته ئې بین الوضوئین ځکه اُووئیلو چه اُوبه بالکل معمولی هم نهٔ وے چه په هغے سره صرف اندامونه غوړ شی او ډیرے زیاتے هم اُونهٔ لګولے بلکه درمیانه کامله طریقے سره ئې اَودس کړو۔ او دا ښائسته اَودس دے۔

۸– فاخذ باذنی : بل روایت کښې دی چه ښې لاس ئې ورله په سر کیخودو۔ او غوږ ئې ورله مړولو ، یو خو ددے دپاره چه برکت پکښې پیدا شی دویم دے دپاره چه خوب ترے اُوتختی۔ یا ددے دپاره چه په خپله خطائی پوهه شی چه د اِمام ښې طرفته به اُودریږے۔

۹– په نفلو کښې هم جماعت جائز دے۔

۱۰– حدیث دلیل دے چه د امام دپاره د اول نه د مقتدیانو نیت ضروری نهٔ دے۔

۱۱– ثلاث عشرة رکعة : پدے کښې مختلف روایات راغلی دی چه آیا دا دیارلس رکعاته د سحر سنتو نه علاوه وو او که د هغے سره وو؟ اکثر روایاتو کښې تصریح ده چه د سحر سنتو نه علاوه دیارلس رکعاته وو۔

او بعض روایاتو کښې دی چه یولس رکعاته قیام اللیل وو او دوه رکعاته د سحر سنت وو۔

نو دا په دوه مختلف حالاتو محمول دي لهذا هيڅ تعارض نشته.

۱۲ – اُودس ئې پدې وجه اُونکړو چه د نبي ﷺ په خوب باندې اُودس نۀ ماتيدو ځکه چه د هغه د زړۀ نه خوب نۀ وو بلکه صرف سترګې به ئې پټې وې. او دا د هغۀ خصوصيت دې. (ينام قلبي ولا تنام عيني) او کوم روايت کښې چه د اُودس تذکره راغلې ده.نو وجه دا ده چه دا ئې د تازۀ ګئ او تجديد دپاره کړيدې يا دا چه اُودس ئې کيدې شي په بل څۀ سبب مات کړې وي.

۱۳ – اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا : ددې نُور نه مراد بعض وائي : بيان د حق دې او رڼا د حق ده، ګويا کښې داسې ئې اُوفرمايل : اې الله! زما دا اَنداموته په حق کښې استعمال کړې او زما اَوريدل او کرځيدل راګرځيدل پدې کښې په حق باندې اُوکړې چه د حق نه يو اندام هم کوږ نۀ شي. قسطلانيؒ وائي : نورئې په اندامونو او جهاتو کښې طلب کړو دې دپاره چه د هغۀ په افعالو او تصرفات او منقلباتو کښې نور دپاسه نور راشي نو دا دعاء ده په دوام ددې نور ځکه چه نبي ﷺ ته خو دا نُور ضرور حاصل وو يا ئې اُمت ته تعليم ورکولو.

۳ – ظاهر دا ده چه دا نور په خپل حقيقت بناء دې او د هر اندام خپل خپل نور وي پدې وجه ئې د هر اندام سره د نُور تذکره اُوکړه چه دا ټول اندامونه په طاعاتو کښې استعمال شي او کوم طرف ته چه زۀ اُورم نو هغه طرف ته رڼا، هدايت او معرفت او علم وي.

۱٤ – په حصن المسلم کښې ئې ليکلې دي چه دا دعاء مسجد ته د تلو وخت کښې ده ليکن اصح دا ده چه دا دعاء د سحر سنتو نه روستو ده. او ديته دعاء النور وائي. دا په سجده کښې او په آخر د تهجد کښې او د سحر د سنتو نه روستو لوستلې شي لکه د «ذکر او دعاګانو مستند کتاب» اُوګوره.

تجربه شاهده ده چه څوك دا دعاء توجه سره وائي، الله به ضرور هغۀ ته په زړۀ او بدن کښې نُور ورکوي او هغۀ به په خپل ځان کښې برکت مَحسُوس کوي.

۱۵ – دا حديث دليل دې چه نبي ﷺ بَشَر وو نُور نۀ وو ځکه ځان دپاره نُور طلب کوي.

۱٦ – نبي ﷺ د خوب عادت مبارك دا وو چه په خوب کښې به ئې خراړې (غطيط) کول ځکه چه خراړې کول د ساه اخستو په لارو کښې د کولاو والي او د قوائې جسماني په صحت او صفائي باندې علامه ده، او نبي ﷺ کښې لکه څنګه چه روحاني او باطني طور سره کمال موجود وو نو دغه شان ظاهري طور سره هم د انتهائي صحت مند، قوي او مضبوط بدن مالك وو. ______________________

۹ – وَعَنْهُ، اَنَّهُ رَقَدَ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَاسْتَيْقَظَ، فَتَسَوَّكَ، وَتَوَضَّأَ وَهُوَ يَقُوْلُ: ﴿اِنَّ فِيْ

خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ......﴾ حَتّٰى خَتَمَ السُّوْرَةَ، ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ أَطَالَ فِيْهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوْعَ، وَالسُّجُوْدَ، ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ، ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ سِتَّ رَكْعَاتٍ، كُلُّ ذٰلِكَ يَسْتَاكُ وَيَتَوَضَّأُ وَيَقْرَأُ هٰؤُلَاءِ الْآيَاتِ، ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او د ابن عباس ﷺ نه روايت دے چه (يوه شپه) هغهٔ د رسول الله ﷺ سره اُوده شو (نو هغهٔ وئيلي دي چه) رسول الله ﷺ بيدار شو، مسواك ئے اُووهلو او اَودس ئے اُوكړو او بيا ئے دا آيت اُولوستلو (ان في خلق السموات والارض......) تردے چه سورة ئے ختم كړو، بيا پاځيدلو او دوه ركعاته مونځ ئے اُوكړو چه په هغے كښ ئے قيام، ركوع او سجده اُوږدهٔ اُوكړل، بيا ئے سلام اُوګرځولو، نو اُوده شو تردے چه خراړے ئے اُوكړے، بيا ئے دغه شان درے كرته اُوكړل (يعنې دوه ركعاته ئے اُوكړل او اُودهٔ شو بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل او اُودهٔ شو) نو شپږ ركعاته ئے اُوكړل، پدے ټولو كرتونو كښ به ئے مسواك وهلو او اَودس به ئے كولو او دا آيتونه به ئے لوستل بيا ئے درے ركعاته وتر اُوكړل۔ (مسلمٌ)۔

تشريح : ددے حديث نه معلوميږي چه دا دعاء په اوداسه كښ دننه هم وئيلے شي خاصكر زمونږ ددے زمانے تهجد خو دومره اُوګد وخت نهٔ وي چه دے آياتونو له بيل وخت وركړي۔

او پدے كښ د نبي ﷺ قوت بدني معلوميږي چه درے كرت د شپے بيداريدل او اُودهٔ كيدل دا كار هر هغهٔ خوك كولے شي چه قوي بدن لري، ضعيف البدن انسان چه دوه ځل د شپے بيدار شي نو بيا ئے عبادت كښ دومره مَزهٔ نهٔ وي۔ او د ورځے هم بے سُوره وي۔ او سحر مانځه ته هم نشي پاځيدلے۔

پدے روايت كښ د وترو د درے ركعاتو تذكره راغله نو حنفي شراح لكه صاحب د مظاهر حق (١/٧٨٠) زر اُوليكل چه د امام ابوحنيفهٗ مسلك ثابت شو چه وتر درے ركعاته دي۔ ليكن دے كښ دا بيان نشته چه په څو سلامونو اُوشو او قعده پكښ شوے ده او كهٔ نهٔ نو دا د نورو رواياتو نه معلومه ده چه درے يا په يو سلام بغير د قعدے نه شويدي، يا په دوه سلامونو سره شويدي۔ او د نبي ﷺ نه درے ركعاته په دوه قعدو او يو سلام بالكل نهٔ دي ثابت۔ لهذا د احنافو استدلال ترے تمام نهٔ دے او ددے تفصيل روستو باب الوتر كښ راروان دے۔ ان شاء الله۔

---

١٠ - وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهٗ قَالَ: لَأَرْمُقَنَّ صَلَاةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ اللَّيْلَةَ، فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ، ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ طَوِيْلَتَيْنِ طَوِيْلَتَيْنِ طَوِيْلَتَيْنِ، ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا

دُوْنَ الَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُوْنَ الَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُوْنَ الَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُوْنَ الَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ أَوْتَرَ، فَذٰلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. قَوْلُهٗ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ هُمَا دُوْنَ الَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا اَرْبَعَ مَرَّاتٍ، هٰكَذَا فِيْ «صَحِيْحِ مُسْلِمٍ»، وَأَفْرَادِهٖ مِنْ كِتَابِ «الْحُمَيْدِيِّ»، وَ«مُوَطَّأ مَالِكٍ»، وَ«سُنَنِ اَبِيْ دَاوٗدَ» و«جَامِعِ الْأُصُوْلِ».

ترجمه: او زيد بن خالد جهني ﷺ اُوفرمايل (ما يو ځل اراده اُوكړه چه): زۀ به نن شپه د رسول الله ﷺ د (شپے) مونځ گورم، نو (ما اُوليدل چه) هغۀ دوه مختصر ركعاتونه اُوكړل، بيا ئے دوه اُوږدۀ ركعاته اُوكړل بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل چه د مخكنو دوه ركعاتو نه كم (اُوږدۀ) وو، بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل چه د مخكنو دوه ركعاتو نه كم (اُوږدۀ) وو، بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل چه د مخكنو دوه ركعاتونه كم (اُوږدۀ) وو، بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل چه د مخكنو دوه ركعاتونه كم (اُوږدۀ) وو، بيا هغۀ (يو ركعت) وتر اُوكړل، نو دا (ټول سره د وترو نه) ديارلس ركعاته شو. (مسلمؒ) او د زيدؓ دا قول چه "بيا ئے دوه ركعاته اُوكړل چه د مخكنو دوه ركعاتو نه كم وو" په صحيح مسلم او د حميديؒ په كتاب كښ چه په هغے كښ هغوى فقط د مسلمؒ روايات نقل كړى دى او موطأ امام مالك، سنن ابى داود، دارنگه جامع الاصول ټولو كښ څلور كرته منقول دى.

تشريح: دا د سفر حالت دے ځكه چه عام وخت كښ خو صحابه كرامؓ د نبى ﷺ كور ته نۀ شو ورتلے هلته خو ازواج مطهرات وے.

لَأَرْمُقَنَّ: د باب د نصر نه دے، يو شى ته په مراقبه او لحاظ ساتلو سره كتلو ته وائى.

قَوْلُهٗ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ: پدے عبارت سره اعتراض كوى په صاحب المصابيح باندے چه هغه دا جمله دريے كرتے ذكر كړيده حال دا چه په صحيح مسلم او افرادو د مسلم كښ دا جمله څلور كرت راغلے ده نو صاحب د مصابيح دا ټول مونځ لس ركعاته شمارلے دے.

او حال دا چه مسلم كښ دا ديارلس ركعاته خودلے شويدى. نو چه دا جمله څلور كرت شى نو اته ركعاته دا شو او دوه ركعاته په طويلتين طويلتين كښ راغلل او دوه ركعاته په خفيفتين كښ راغلل او يو ركعت وتر شو نو ټول ديارلس ركعاته پوره شو.

ليكن د صاحب المصابيح د طرفنه جواب دا دے چه دۀ طويلتين طويلتين حمل كړيدى په شپږ ركعاتو په حذف د حرف عاطف سره او اُولنى دوه ركعاته خفيفتين ئے تحية الوضوء شمارلى دى. او يو ركعت ئے وتر شمارلے دے لهذا ديارلس بيا هم پوره شو. ليكن

دے توجیه ته ضرورت نشته بلکه اصل روایت ته رجوع پکار ده او په هغے کښې خو دغه جمله څلور کرت ذکر ده۔ نو اظهر دا ده چه طویلتین کښې تکرار د مبالغے دپاره دے په اُوږد والی ددے دوه رکعاتو کښې۔

نو دا روایت دلیل دے چه د یولس رکعاتو نه زیادت هم جواز لری، د عائشهؓ قول چه زیادت ئے په یولس رکعاتو ندے کړے بناء دے په اکثریت باندے۔

وَأَفْرَادِهِ : په کتاب د حمیدیؒ «الجمع بین الصحیحین» کښې درے قسمه اَحادیث راوړی، مشترك د بخاری او مسلم، یواځے د بخاریؒ دیته افراد البخاری وائی او یواځے د مسلم دیته افراد مسلم وائی۔

١١ - وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: لَمَّا بَدَّنَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَثَقُلَ كَانَ أَكْثَرُ صَلاتِهِ جَالِسًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : هرکله چه رسول الله ﷺ آخری عُمر ته اُورسیدو (او د بوډا والی په وجه) بدن ئے درُون شو نو اکثر مونځ د هغهٔ به په ناسته وو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : دا حدیث دلیل دے چه نفل مونځ په ناسته هم جائز دے اګرکه انسان په ولاړه قادر وی، او په صورت د عجز کښې خو په طریقِ اولیٰ جائز دے۔ مګر په صورت د عجز کښې ئے پوره اجر دے۔ او په صورت د قدرت کښې په ناست باندے نیمائی اجر دے۔ او د نبی ﷺ دا خصوصیت دے چه هغهٔ ته په ناسته باندے هم پوره پوره اجر ملاویدو اګرکه د عذر د وجه نه وی۔

بَدَّنَ : په تشدید د دال سره د تبدین نه دے۔ بوډاوالی او کمزور والی ته وائی او که د (کرم) نه شی نو بیا بدن په غوښو باندے غټیدو ته وائی۔ او نبی ﷺ دغه شان نهٔ وو۔ پدے وجه کوم راویانو چه په تخفیف سره نقل کړیدے نو هغهٔ اهل علم بالروایت نهٔ دے خوښ کړے (نقله الابهریؒ)

وَثَقُلَ : یعنی د حرکت نه درond شو څکه چه عمرئے زیات شو۔ او دا مونځ به نبی ﷺ په ناسته څکه کولو چه ډیر اُوګد به وو نو اُودریدل به ورته ګران وو، ورنه زمونږ د مونځونو په شان مونځونو کښې به نبی ﷺ نهٔ کیناستو۔ او په حدیث د حفصه کښې دی : ما رسول الله ﷺ د نفلو په مانځه په ناسته نهٔ دے لیدلے تردے چه کله د مرګ نه یو کال مخکښې شو نو بیا ئے په ناسته نفل کول (اخرجه مسلم)

۱۲- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: لَقَدْ عَرَفْتُ النَّظَائِرَ الَّتِيْ كَانَ النَّبِيُّ يَقْرِنُ بَيْنَهُنَّ، فَذَكَرَ عِشْرِيْنَ سُوْرَةً مِنْ اَوَّلِ الْمُفَصَّلِ، عَلٰى تَأْلِيْفِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ سُوْرَتَيْنِ فِيْ رَكْعَةٍ آخِرُهُنَّ (حٰمٓ الدُّخَانِ) وَ (عَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : ماته هغهٔ سورتونه چه د يو بل سره هَمْ مِثل (مشابه) دي، معلوم دي کوم چه به نبي ﷺ جمع کول نو عبد الله بن مسعود ﷺ د خپل ترتيب مطابق شل سورتونه کوم چه د مفصلاتو په اول کښې دي اُوشمارل، (چه رسول الله ﷺ به داسې جمع کول) چه يو يو رکعت کښې به ئې دوه دوه سورتونه لوستل، او (پدې شلو سورتونو کښې) آخري سورتونه (حم الدخان) او (عم يتساء لون) دي۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : ددې حديث شان ورود دا وو چه نهيك بن سنان عبد الله بن مسعودؓ ته راغلو او دا ئې ورته اُووئيل : ما بيگاه شپه مفصلات په يو رکعت کښې اُولوستل نو عبد الله بن مسعودؓ ورته اُوفرمايل : هذّاً کهَذِّ الشعر لقد عرفت النظائر الخ ۔ (تا به داسې جلتئ سره لوستلې وي لکه اشعار چه په جلتئ لوستې شي) دې دپاره چه د هغې د بحورو ميزان ښکاره شي او په غوږونو باندې د هغې قافيه پرله پسې واقع شي) مونږ د نبي ﷺ قراءت اَوريدلې دې او ماته هغهٔ سورتونه ياد دي چه نبي ﷺ به هغهٔ لوستل اتلس سورتونه د مفصلاتو نه او دوه د آل حم نه۔ (يعني په دوو کښې يو سورت چه هغه حم الدخان دې) (حافظ) (بخاري باب الترتيل في القراءة) (مقدمة تفسير ابن كثير ۱/۷۷)

النَّظَائِرَ جمع د نَظِيْرَة ده، مثل او مشابه ته وائي يعني هغه سورتونه چه د يو بل مثل او مشابه دي او يو بل ته نزدې دي په لنډ والي او اُوږد والي کښې۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائي : ددې نه مراد هغهٔ سورتونه دي چه په مضامينو کښې د يو بل مشابه وي لکه مواعظ، حکمتونه، قصص وغيره پکښې وي۔ او ددې نه په عدد د آياتونو کښې مماثلت نهٔ دې مراد۔انتهیٰ۔ اوله خبره غوره ده۔

الْمُفَصَّلِ : مخکښې باب القرائة کښې ذکر شويدي چه مفصلات په مشهور قول سره د سورۀ حجرات نه تر آخر د قرآن پورې ديته مفصلات وائي دا بيا په درې قسمه دي، طوال مفصل، اوساط مفصل، قصار مفصل۔

تَأْلِيْفِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ : ابن مسعودؓ څانله قرآن ليکلې وو چه هغهٔ د ترتيب عثماني او ترتيب نزولي نه جُدا وو، اول کښې ئې الفاتحه بيا بقره بيا نساء بيا آل عمران وو۔ او د علي

مصحف د ترتيب نزول مطابق وو، چه په اول کښ ئے اقرأ بيا مدثر، بيا ن والقلم، بيا مزمل بيا تبت، بيا تکوير بيا سبح او دغه شان تر آخر د مکي پورے بيا مدني سورتونه وو۔

## مسئله : ترتيب د قرآن توقيفي دے که اجتهادي؟

او نن صبا چه د مصحف کوم ترتيب دے نو پدے کښ اختلاف دے چه آيا دا د نبي ﷺ په امر شوے وو او که نهٔ د صحابه کرامو اجتهاد وو؟ نو راجح دا ده چه دا ترتيب توقيفي دے لکه دا خبره ابن الانباريؒ کړيده۔ او دليل پدے باندے حديث د احمدؒ او ابوداوُدؒ دے د اوس بن حذيفه ثقفي نه چه په هغے کښ دا دي : چه مونږ صحابه کرامو نه تپوس اُوکړو تاسو به قرآن کريم څنګه حزبونه کولو، هغوي اُوفرمايل : (نحزبه ثلاث سور وخمس سور وسبع سور وتسع سور واحدى عشرة وحزب المفصل من ق حتى تختم) يعني مونږ به قرآن کريم پداسے حصو باندے تقسيمولو چه درے سورتونه به يو حزب وو پنځه به بل حزب وو اووه به بل حزب وو او نهه به بل حزب وو او يولس به بل حزب وو او د مفصلاتو حزب به د ق نه تر آخر د قرآن پورے وو) (ضعفه الالباني)

ددے حديث متعلق حافظ ابن حجرؒ ليکي : دا حديث دليل دے چه ترتيب د سورتونو کوم چه نن صبا په مصحف کښ دے دا د نبي ﷺ په زمانه کښ وو۔ او دليل دے چه راجح دا ده چه مفصلات د ق نه تر آخر پورے دي، ليکن دا مبني دے پدے چه فاتحه ئے په اولنو دريو کښ نهٔ ده شمارلے ځکه د هغے د شمارلو نه بيا دا لازميږي چه مفصلات د حجرات نه دي لکه پدے باندے يو جماعت د ائمه کرامو جزم کړيدے انتهیٰ۔

بعض وائي : د ټولو سورتونو ترتيب توقيفي دے سوئ د ترتيب د سورة براء ت او انفال نه بلکه دا د عثمان اجتهاد دے لکه پدے باندے دليل حديث د ابن عباس دے چه احمد او اصحاب السنن راوړيدے او مصنف به ئے د کتاب الدعوات نه يو باب مخکښ ذکر کړي۔ او هلته به د هغے تفصيل راشي۔ مګر صحيح دا ده چه دا ترتيب عثماني توقيفي دے او همدا هغهٔ ترتيب دے، کوم چه د ابوبکر صديق په زمانه کښ وو او عثمان د هغهٔ ترتيب نه هيڅ تبديلي اُونکړه سوا ددے نه چه عام خلق ئے په يو لغت راجمع کړل او مخکښ به خلقو مختلف قراءتونه کول۔ او دارنګه نبي ﷺ ته د وفات په کال جبرئيلؑ دوه کرت قرآن کريم تکرار کړو او زيد بن ثابت هغے ته حاضر شوے وو نو هغهٔ دے ترتيب سره ليکل اُوکړل۔ (تاريخ القرآن الكريم ص (٣٩) لمحمد طاهر الكردي) (الامام البقاعي ومنهاجه ص ١٨٤/١) لمحمود توفيق) (البرهان في علوم القرآن ص (٣٨/١) للزركشي) او ددے

زیات تفصیل به روستو راشي.

او نبي ﷺ چه په یو یو رکعت کښې دوه دوه سورتونه لوستل (نو هغهٔ پدې طریقه) چه (سوره رحمٰن او سوره نجم) په یو رکعت کښې، (اقتربت الساعة او الحاقه) په یو رکعت کښې، (طور او ذاریات) په یو رکعت کښې، (اذا وقعت الواقعة او سوره نون) په یو رکعت کښې، (سأل سائل او والنازعات) په یو رکعت کښې، (ویل للمطففین او عبس) په یو رکعت کښې، (مدثر او مزمل) په یو رکعت کښې، (هل اتی او لا اقسم بیوم القیامة) په یو رکعت کښې، (عم یتسائلون او مرسلات) په یو رکعت کښې، (دخان او اذا الشمس کورت) په یو رکعت کښې. او ابوداوُدْ دا تصریح کړیده چه دا ترتیب د عبد الله بن مسعود ﷺ د جمع کولو مطابق دے. (سنن ابی داود رقم: ۱۳۹۶)

## بے ترتیبه قرآن لوستل جائز دی

دا حدیث دلیل دے چه بے ترتیبه قرآن لوستل جواز لري، او دوه سورته په یو رکعت کښې جمع کول جائز دي. بل دلیل: حدیث د مسلم کښې دی چه نبي ﷺ یو ځل په مانځه کښې سوره بقره بیا نساء بیا آل عمران اُولوستو.

۳- یو صحابي په د هر سورت سره (قل هو الله احد) ملګرے کولو. امام بخاريؔ د قتادهٔ نه نقل کوی (كُلٌّ كتاب الله) (ټول د الله کتاب دے). نو دا ټول دلیل دے پدے خبره چه ترتیب لازم نهٔ دے، کوم خلق چه ددے نه سخت نفرت کوی او پدے سره مونځ مکروه ګڼړي نو غلط وائي. اګرکه د عام ترتیبِ عثماني لحاظ ساتل بهتر کار دے.

دلته ئے سوره دخان په مفصلاتو کښې ذکر کړیدے دا مجازاً دے. ځکه في الجمله سورهٔ دخان په اخیرنو رکعتونو کښې واقع شویدے.

**فوائد الحدیث**: ۱- په تلاوت کښې ډیره تیزي جائز نهٔ ده، چه د آشعارو د لوستلو مشابه شي. ځکه دا د قرآن کریم د مقصود – چه تدبر د معاني د کتاب الله دے – منافي دے. ۲- کله نا کله روستنے رکعت په مخکنو باندے اُوږدول جائز دي، ځکه پدے سورتونو کښې بعض روستني سورتونه اُوګده دي د بعض مخکنو نه.

۳- په یو رکعت کښې دوه سورتونه جمع کول جائز دي اګرکه د مختلف ځایونو نه وي. او دا کار غالباً په مفصلاتو کښې کولے شي. نورو کښې هم جائز دے.

٤- دا دلیل ګرځي په جمع کولو د درے او څلورو سورتونو په یو رکعت کښې ځکه چه کله ئے دوه سورتونه جمع کړل نو د درے او زیاتو جمع کول هم جائز شو او پدے باره کښې

عبد الله بن شقیق فرمائی: ما د عائشہؓ نه تپوس اُوکړو: آیا نبی ﷺ به (په یو رکعت کښې) سورتونه جمع کول هغې اُوفرمایل: آؤ د مفصلاتو نه (به ئې جمع کول) (مسند احمد وصحیح ابن حبان ۲۶۸/۶) صححه شعیب الارناؤط)

۵- کله نا کله غیر د مفصلاتو نه په نورو سورتونو کښې هم جمع په یو رکعت کښې جائز ده۔ (ابوداود)۔ ۶- نبی ﷺ نه چه پدے حدیث کښې کوم عمل نقل دے نو دا هم همیشه دپاره نهٔ وو بلکه احیاناً وو او په مفصلاتو کښې وو۔ (حافظؒ) او غیر د مفصلاتو کښې هم جائز دے۔

۷- حدیث دلیل دے چه د نبی ﷺ د شپے مونځ لس رکعاته وو سوی د وترو نه۔ او د یو رکعت وتر سره یولس او د درے رکعاتو سره دیارلس جوړیږی۔

## الفصل الثاني

۱۳ - عَنْ حُذَيْفَةَ : أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ، وَكَانَ يَقُوْلُ: «اَللّٰهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا ذُوْ الْمَلَكُوْتِ وَالْجَبَرُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ » ، ثُمَّ اسْتَفْتَحَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ. ثُمَّ رَكَعَ فَكَانَ رُكُوْعُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ، فَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهِ: «سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ »، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ، فَكَانَ قِيَامُهُ نَحْوًا مِنْ رُكُوْعِهِ، يَقُوْلُ: «لِرَبِّيَ الْحَمْدُ»، ثُمَّ سَجَدَ فَكَانَ سُجُوْدُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ فَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ سُجُوْدِهِ، «سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى»، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُوْدِ، وَكَانَ يَقْعُدُ فِيْمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ نَحْوًا مِنْ سُجُوْدِهِ، وَكَانَ يَقُوْلُ: «رَبِّ اغْفِرْ لِيْ، رَبِّ اغْفِرْ لِيْ»، فَصَلّٰى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ قَرَأَ فِيْهِنَّ (الْبَقَرَةَ) وَ (آلَ عِمْرَانَ) وَ(النِّسَاءَ) وَ(الْمَائِدَةَ) اَوِ(الْاَنْعَامَ) شَكَّ شُعْبَةُ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: او حذیفه ﷺ نه روایت دے چه هغهٔ د نبی ﷺ د شپے په مانځه اُولیدو (نو هغهٔ فرمائی) چه رسول الله ﷺ درے کرتے الله اکبر وئیلو سره دا اُووئیل: (ذو الملکوت والجبروت الخ) الله تعالیٰ د غلبے، لوئی والی او تکبر او عظمت والی والا دے) بیا ئے سبحانك اللهم اُووئیله او سورت بقره ئے شروع کړه بیا ئے رکوع اُوکړه نو د هغهٔ رکوع (تقریباً) د قیام برابر وه، او په رکوع کښې ئے: سبحان ربی العظیم) اُووئیلو، بیا ئے د رکوع نه سر اُوچت کړو، نو د هغهٔ قیام (یعنی قومه) (تقریباً) د هغهٔ د رکوع برابر وه، او (په قومه کښې به ئے) وئیل: «لربی الحمد» (خاص زما رب لره حمد دے) بیا ئے سجده اُوکړه نو د هغهٔ سجده (تقریباً) د هغهٔ د قیام برابره وه، بیا ئے په سجده کښې اُووئیل: "سبحان ربی الاعلی" (پاکی ده زما رب لره چه اُوچت دے) بیا ئے د سجدے نه سر پورته کړو او هغهٔ به د دوه سجدو ترمینځ (جلسه

کښې) د سجدې په اندازه کیناستو او هغهٔ به (په جلسه کښې) وئیل : "رب اغفر لی"۔ (اے ربه ! ما ته بخنه اُوکړے دوه ځل) نو څلور رکعاته ئې اُوکړل چه په هغې کښې ئې سورة بقره، آل عمران، نساء، مائده یا انعام اُولوستلو (د حدیث راوی) شعبهؒ نه شك واقع شوے دے۔ (چه انعام ئې لوستلې دے او کهٔ مائده)۔(ابوداودٌ)

تشریح : دا دعاء چه درے کرته پکښې مخکښې الله اکبر دے د سبحانك اللهم په ځائے ده۔

اَلْبَقَرَةَ : یعنی د فاتحې نه روستو به ئې دا سورتونه لوستل۔

لِرَبِّيَ الْحَمْدُ : پدے مقام کښې د ذکر تکرار په نوافلو کښې جائز دے دلته د سورة بقرے په مقدار دا ذکر مکرر شویدے۔ دغه شان ربنا لك الحمد حمداً کثیراً الخ هم مکرر لوستل جواز لري۔

## رب اغفر لی به څو کرت وائی ؟

يَقْعُدُ فِيمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ : یعنی نبی ﷺ به د دوه سجدو ترمینځ ډیره اُوګده ناسته کوله او دا سنت طریقه ده او دا دلیل دے چه پدے مقام کښې (رب اغفر لی) ذکر مکرر کول سنت عمل دے۔ د دوه ځاې مکررولو نه مراد ډیر کرت مکرر کول دی۔

امام احمد رحمه الله فرمائی : دا ذکر وئیل فرض دی۔ ۲- جُمهور وائی مستحب دے، او دا راجح قول دے۔ ۳- بعض احناف وائی پدے مقام کښې هیڅ ذکر نشته۔

او آثار السنن کښې وائی چه دا مضطرب حدیث دے نو دا غلطه خبره ده۔ځکه هغهٔ بیل روایت دے دا نهٔ دے۔ بلکه راجحه دا ده چه دا ذکر مستحب دے ځکه د نبی ﷺ عمل پکښې موجود دے او فرض او واجب نهٔ دے ځکه امر پرے نهٔ دے راغلے۔

۱- حدیث دلیل دے چه په نفل مانځه کښې داسے اُوګد والے مستحب دے چه تقریباً اُووه سیپارے پکښې اُووائی۔

په حدیث کښې رد دے په هغهٔ چا چه اعتدال د رکوع او جلسه بین السجدتین کښې تطویل مکروه ګنړی۔ امام نوویؒ فرمائی : ددے حدیث نه جواب ډیر ګران دے۔

(نیل الاوطار- باب الجلسة بین السجدتین)

۲- حدیث دلیل دے چه اقله درجه د تهجدو څلور رکعاته دی لیکن که ضرورت وی نو بیا یو رکعت مستقلًا هم جائز دے۔ لکه په حدیث د طبرانی کبیر او اوسط کښې دی : (علیکم بصلاة اللیل ولو رکعة) الزهد لاحمد (۸۷/۱) ضعفه الالبانی فی السلسلة (۸/٤١٤) رقم (۳۹۱۲) والترغیب (۹۳/۱) کتاب النوافل) مګر دا حدیث ضعیف دے۔ نو صحیح دا ده چه اقله درجه دوه رکعاته دی لکه په باب التحریض کښې به راشی او یو رکعت هم شته

لکه روستو صحيح حديث راروان دے (من احب ان يوتر بواحدة)۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۳۹۸/٥) وابوداود (۸۷٤) والترمذى فى الشمائل (۲۷۰) والنسائى (۱۹۹/۱، ۲۰۰)

---

١٤ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ قَامَ بِعَشْرِ آيَاتٍ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِيْنَ، وَمَنْ قَامَ بِمِائَةِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِيْنَ، وَمَنْ قَامَ بِأَلْفِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْمُقَنْطِرِيْنَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :« کوم شخص چه د لس آیتونو (په لوستلو) سره قیام اُوکړی نو هغهٔ به د غافلینو نه اُونهٔ لیکلے شی، (یعنی د هغهٔ نوم به د غافلینو په فهرست او صحیفه کښې نهٔ لیکلے کیږی) او څوك چه په سل آیتونو (لوستلو سره) قیام اُوکړی نو دهغهٔ نوم به د عاجزی کونکو (او فرمانبردارو) نه اُولیکلے شی، او څوك چه په زرآیتونو (لوستلو) سره قیام اُوکړی نو هغهٔ به د خزانه جمع کونکو (ډیر ثواب موندونکو) نه اُولیکلے شی»۔ (ابوداودؒ)

تشریح : ددے لسو آیتونو وغیره نه د شپے په مانځه کښې لوستل مراد دی ځکه مصنف دا حدیث په باب صلاة اللیل کښې راوړو۔ او همدا ظاهر تفسیر دے ځکه قام لفظ پرے دلیل دے۔ دارنګه بل روایت د ابن خزیمة او حاکم کښې داسے الفاظ دی :

(من صلى فى ليلة بمائة آية لم يكتب من الغافلين...... الحديث وفى سنده سعد بن عبد الحميد وهو ضعيف وصححه الحاكم)

بعض علماء (طیبیؒ) وائی : ددے سره نهٔ قید د مانځه شته او نهٔ د شپے لهذا حدیث به په خپلو ادنیٰ مراتبو باندے حمل کولے شی او پدے باندے دلیل لم یکتب من الغافلین لفظ دے۔ او بغویؒ دا حدیث په مقام د اکمل کښې ذکر کړیدے۔ آهـ. مګر اول غوره دے۔

لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِيْنَ : یعنی الله به ئے د هغهٔ خلقو سره نهٔ شماری چه دنیوی کښې غفلت دے د الله د ذکر نه بلکه د هغه خلقو د زمرے نه به ئے حساب کړی چه دنیوی تجارتونه او بیعے د الله د ذکر نه نهٔ غافله کوی۔ یا دا چه د غافلانو په فهرست کښې به ئے نوم نهٔ لیکی۔

ددے مفهوم مخالف دا دے چه چا لس آیاتونه هم د شپے اُونهٔ لوستل نو هغهٔ به غافلانو کښې شمار وی۔ بیا علماء فرمائی : ددے غفلت نه د ځان بچ کولو طریقه دا ده چه د شپے د اُودهٔ کیدو په وخت کښې (آمن الرسول)، (آیة الکرسی) اوآخری درے سورتونه اوروایه

اگر كهٔ په "قام" لفظ باندے عمل نهٔ كيږي ځكه اصلي طريقه دا ده چه د شپے راپاڅيږي۔ مگر په بل روايت كښې داسے هم راغلي دي: (من قرأ عشر آيات في ليلة لم يكتب من الغافلين) (الاحاديث المختارة للضياء المقدسي ٣١٤/٣)

(څوك چه په شپه كښې لس آياتونه اُولولي نو د غافلانو نه به حساب نهٔ شي) نو دے كښې صرف لوستل راغلي دي، د مانځه تذكره پكښې نشته نو ان شاء الله تعالىٰ چه په نفس لوستلو سره به هم پدے حديث عمل راځي۔ او د قيام بالشيء معنىٰ ده دوام او اهتمام په يو شي باندے كول او هغهٔ هميشه لوستل۔

كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِيْنَ: قنوت يوه معنىٰ ده، عاجزي او خشوع، بله معنىٰ: تابعداري، فرمانبرداري۔ مطلب دا چه څوك سل آيتونه د شپے اُولولي او خاصكر په مانځه كښې نو دا به د الله په نزد د هغهٔ خلقو نه اُوليكلے شي چه د الله په طاعت باندے ثابت او مضبوط ولاړ دي يا د هغهٔ خلقو نه به حساب شي چه د شپے قيام كوي۔ يا د هغهٔ خلقو نه چه د الله په امر او طاعت باندے كلك ولاړ وي او هغهٔ ته عاجزي كوي (طيبيؒ)۔

الْمُقَنْطَرِيْنَ: د قنطار نه ماخوذ دے خزانے او ډير مال ته وائي يعني دا د خزانه جمع كونكو نه دے ډير اجر ورته حاصل شو۔ قنطار: بعض وائي: هغهٔ خزانه ده چه په هغے كښې څلور زره روپئ وي، بعض وائي: قنطار د غوئي څرمن د سرو زرو نه ډكولو ته وائي۔ بعض وائي: نامعلومه ډيره حصه د مال ته وائي۔ بعض وائي: دولس زره ديناروته وائي۔ مطلب دا چه دومره ثوابونه به راجمع كړي لكه څومره چه خزانه جمع كونكو حاصل كړي وي۔

بعض علماء ليكي: (قيام كول) ددے نه كنايه ده چه مذكوره تعداد كښې آيتونه ياد كړے شي او هغهٔ په هروخت كښې اُولوستے شي دارنگه د هغے معنىٰ او مقاصدو كښې غور او فكر اُوكړے شي او په هغے باندے بيا عمل اُوكړے شي، دينته هم قيام وائي۔ والله اعلم۔

درجة الحديث: اسناده حسن صحيح: اخرجه ابو داود (١٣٩٨) وصححه ابن حبان (٦٦٢) وابن السني في عمل اليوم والليلة (٧٠٨) والالباني في كتبه.

---

١٥ - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ ﷺ بِاللَّيْلِ يَرْفَعُ طَوْرًا وَيَخْفِضُ طَوْرًا. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: او ابو هريره ﷺ فرمائي: د نبي ﷺ د شپے (په مانځه كښې) قراءت به مختلف وو، كله خو به ئے په اُوچت آواز سره قراءت كولو او كله به ئے په خكته آواز سره۔

تشريح: حديث كښې د نبي ﷺ د شپے د مانځه د قراءت طريقه اُوخودلے شوه چه كله

په خکته آواز او کله په اُوچت آواز پکار دے نو کله چه د مونځ کونکی خو اکښ ځوك نۀ وی نو بیا په جهر پکار دے او که څوك اُوده وی نو بیا په خکته آواز پکار دے لهذا د حال مطابق به قراءت کولے شی۔ او دیته تنوع د عبادت وئیلے شی۔

په پښتانو کتابونو کښ ددے اُمت فضیلت داسے راغلے دے چه دوی به د شپے داسے قرائت کوی (لهم دَوِیٌّ کَدَوِیِّ النَّحْلِ) داسے ګونګارے به کوی لکه د شهدو د مچو پشان۔ یعنی ځان سره به لګیا وی۔ نو په قراءت باندے دغه شان ګونګیدل پکار دی۔

## قراءت کښ شونډے خوزول او تلفظ کول ضروری دی

او قراءت کښ اختلاف دے چه آیا دا په شونډو باندے تیرولو سره کافی کیږی۔ او که نۀ ځان ته اَورول او تلفظ کول ضروری دی ؟ نو تحقیق دا دے چه قراءت تلفظ کولو ته وائی او ځان ته به ئے اَوروی ځکه د اِخفاء مقدار همدا دے چه ځان ته ئے واوری او که څوك ئے صرف په زړۀ کښ وائی او هسے ئے په خیال کښ راولی نو دا قراءت نۀ دے۔

★ دارنګه څوك چه دا وائی چه تصحیح د حروفو اُوشی نو بس دا قراءت دے نو دا صحیح نۀ وائی ځکه چه په تصحیح د بعض حروفو کښ صوت ضروری دے لکه حروف شدیده، حروف قلقله، حروف مطبقه ضرور آواز غواړی لهذا ځان له په تصحیح د حروفو کار نۀ کیږی ترڅو چه ځان ته اَورول پکښ نۀ وی شوی۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (١٣٢٨) والحاکم فی المستدرك (٣١٠/١) وللحدیث شاهد من حدیث عائشة اخرجه مسلم) وله شاهد فی سنن الترمذی (عن عائشة ...... قالت : کل ذلك قد کان یفعل، ربما اسر بالقراءة وربما جهر فقلت (القائل هو السائل عبد الله بن ابی قیس) الحمد لله الذی جعل فی الامر سعة) وهو حدیث صحیح صححه الترمذی) وانظر صحیح ابی داود (١٢٩١) وسیأتی فی الوتر.

---

١٦ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ ﷺ عَلٰى قَدْرِ مَا يَسْمَعُهُ مَنْ فِي الْحُجْرَةِ وَهُوَ فِي الْبَيْتِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او ابن عباس رضی الله عنه فرمائی : د نبی ﷺ قراءت به داسے اندازه کښ وو چه کۀ چرته په کمره کښ به ئے لوستل نو د بهر صحن موجود شخص به اَوریدلو۔ (ابوداؤد)

تشریح : یعنی دومره اندازه قراءت به ئے کولے چه د کوټے نه به بهر منډو ته راوتو، او که چا به ورته غوږ کیخودو نو اَوریدلے به شو۔ بل روایت کښ دی : ابن عباس نه د نبی ﷺ د

قراءت په باره کښې تپوس اُوشو نو هغه اُوفرمايل: (كان يقرأ في حجرته قراءةً لو اراد ان يحفظها حافظ، فَعَلَ) (يعني په حُجره کښې به ئې داسې قراءت کولو که يو انسان به اراده اُوکړه چه دا ياد کړي نو يادولې ئې شو)

او دا په باره د صلاة الليل کښې دے او هر چه په مسجد کښې مونځ وو نو هغې کښې به ئې تيز آواز سره قراءت کولو۔

الْحُجْرَةِ: هغهٔ کوټے ته وائي چه خلق ئې د اُوښانو دپاره د ونو يا کانړو نه جوړوي چه هغهٔ په کښې د يخنئ نه محفوظ وي، يا هغهٔ کمره چه په لاندے طرف د کور کښې وي۔ دلته ترے مراد د کور صحن دے يعني هغهٔ زمکه چه محجوره (ممنوعه) ده، ديوال ترے چاپير وي۔

وهو في البيت: هو ضمير نبي ﷺ ته راجع دے يعني چه دننه په کوټه کښې قراءت اُوکړي نو بهر خلقو به اوريدلے شو۔

درجة الحديث: اسناده صحيح: اخرجه ابوداود (١٣٢٧) والترمذي في الشمائل المحمدية (٣١٤) وفي اسناده ابن ابي الزناد واسمه عبد الرحمن بن عبد الله ابن ذكوان وفيه مقال وقد استشهد به البخاري في مواضع انتهىٰ (منذري) وقال الالباني حسن صحيح صحيح ابي داود (١١٧٨) (٢٤٦/١)

---

١٧ – وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ، قَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ خَرَجَ لَيْلَةً فَإِذَا هُوَ بِأَبِيْ بَكْرٍ يُصَلِّيْ يَخْفِضُ مِنْ صَوْتِهِ، وَمَرَّ بِعُمَرَ، وَهُوَ يُصَلِّيْ رَافِعًا صَوْتَهُ، قَالَ: فَلَمَّا اجْتَمَعَا عِنْدَ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «يَا أَبَا بَكْرٍ! مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّيْ تَخْفِضُ صَوْتَكَ» قَالَ: قَدْ أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ! وَقَالَ لِعُمَرَ: «مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّيْ رَافِعًا صَوْتَكَ». فَقَالَ: يَارَسُوْلَ اللهِ! أُوْقِظُ الْوَسْنَانَ، وَأَطْرُدُ الشَّيْطَانَ. فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ «يَا أَبَابَكْرٍ! اِرْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا». وَقَالَ لِعُمَرَ: «اِخْفِضْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.

---

ترجمه: او ابوقتاده ﷺ فرمائي: يوه شپه رسول الله ﷺ بهر را اُووتو نو ناګهانه په ابوبکر باندے ورتير شو چه هغهٔ مونځ کولو او (په قرآن لوستلو ئې) آواز خکته کولو، بيا نبي ﷺ په عمر فاروق باندے ورتير شو او هغهٔ مونځ کولو او په اُوچت آواز سره ئې (قرآن) لوستلو، ابوقتاده ﷺ فرمائي: کله چه (صبا) دواړه د نبي ﷺ په خدمت کښې راجمع شو نو نبي ﷺ اُوفرمايل: «اے ابوبکره! زهٔ (بيګاه شپه) په تا باندے تير شوم او تا مونځ کولو آواز دے خکته کړے وو»، ابوبکر عرض اُوکړو: يارسول الله! ما چه د چا سره مناجات

(جرګه) کولو، هغهٔ ته مې (آواز) اُورولو،(يعنى زهٔ د الله په مناجات کښې مشغول وم او هغهٔ د اَوريدو دپاره اُوچت آواز ته محتاج نهٔ دے) بيا نبى ﷺ عمرؓ ته اُوفرمايل : «اے عمر! زهٔ په تا باندے (بيګاه شپه) تير شوم او تا مونځ کولو او آواز دِے پورته کړے وو»، عمرؓ عرض اُوکړو : يا رسول الله! زهٔ (په تيز تلاوت سره) اُودهٔ رابيداروم (يعنى کوم خلق چه د تهجدو په وخت کښې پاڅيدل غواړى ليکن د خوب د غلبے په وجه ئے سترګے نهٔ کولاويږى) او شيطان تښتوم۔ (چه وسوسے راته وانهٔ چوى) رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «اے ابوبکر! تهٔ لږ آواز اُوچت کړه» او عمر ته ئے اُوفرمايل : «تهٔ آواز لږ خکته کړه»۔ (يعنى دواړو ته ئے د اعتدال حدود اُوخودل) (ابوداوٗد، ترمذیؒ)

تشريح : خَرَجَ لَيْلَةً : دا ولے وتلے وو؟ نو د وجه د عمل نه پدے قول د الله تعالىٰ : (وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِيْنَ) د ملګرو تفقد به ئے کولو چه په څهٔ حالت دى۔ او دا هم د امت د تربيت يو صورت دے۔ او دا معلومات به ئے څکه کيدو چه عام صحابه کرامؓ به مسجد ته راتلل او رياء پکښې نهٔ واقع کيده څکه چه ټولو صحابه کرامؓ به تهجد کول۔ يو ماحول وو۔ مګر ظاهر دا ده چه دا په کورونو ورتير شويدے او د صحابه کرامؓ د کورونو واړهٔ واړهٔ لنډى ديوالونه وو، چه بهر به تريے قراءت اَوريدلے شو۔

فَـاِذَا هُوَ بِاَبِي بَكْرٍ يُصَلِّيْ : ددے متعلق محذوف دے۔ (يعنى فاذا هو مار بابى بكر) (په ابوبکر تيريدونکے وو)

قَدْ اَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ : يعنى الله سره مے جرګه کوله او هغه زما قراءت باندے خبر دے نو جهر ته ضرورت نهٔ وو۔

الْوَسْنَانَ : د مفرد صيغه ده د وَسِنَ يُوْسَنُ وَسْناً وَسِنَةً (کرم) نه پرکالى نيول يا دروند خوب ته وائى۔ نو وسنان اُودهٔ انسان ته وائى چه په خوب کښې مستغرق نهٔ وى۔ او شيطانان شړم څکه چه د قراءت په جهر سره شيطانان تښتى او انسان د غفلت نه اُوځى۔ نو د شيطان وسوسه پرے کار نهٔ کوى۔

نو نبى ﷺ دواړو ته د اعتدال لاره اُوخودله او دے کښې اِشاره ده چه د دين په هر عمل کښې به دغه شان اِعتدال کولے شى۔

په بل روايت د ابوداود کښې ورسره دا دى چه بلال ته ئے اُوفرمايل :«په تا باندے تير شوم او تا ګډ وډ قراءت کولو»۔ (يعنى يو آيت به ئے د يو ځائے نه واخستو او بل آيت د بل ځائے نه) ؟ نو بلال اُوفرمايل : (اَخْلِطُ الطَّيِّبَ بِالطَّيِّبِ) (زهٔ پاک کلام د پاک کلام سره يوځائے کوم) (يا يو خوشبوئى د بلے خوشبوئى سره يوځائے کوم څکه د هر آيت خپله مزهٔ وى)

نو په روایت د ابوداود، عبد الرزاق، ابن ابی شیبه، شعب الایمان وغیره کښې ورسره دا دي چه نبي ﷺ ورته أوفرمایل: (اِقْرَأ السُّوْرَةَ عَلٰى وَجْهِهَا) هر سورت په خپله طریقه وایه. لیکن دا امر د وجوب دپاره نۀ دے، اګرکه په ترتیب سره قرآن لوستل افضل عمل دے. بل روایت کښې داسے دي: (لو کان علی وجهها لکفی) (الاتقان للسیوطی) (کۀ په ترتیب سره دِے لوستلے نو هم کافي وه) او په روایت د سنن کبریٰ، عبد الرزاق، مسند الصحابة فی الکتب التسعة، جامع الاصول، جامع الاحادیث کښې دا الفاظ دي: (کلکم قد اصاب وفی روایة: کل قد احسن) یعني تاسو کښې هريو ښۀ کار أوکړو. (وسنده صحیح۔ صحیح ابی داود ١٣٢٩)

دا حدیث دلیل دے چه د تلاوت په مینځ کښې کوم آیت پاتے شي نو پدے سره مونځ نۀ خرابیږي او نۀ پرے سجده سهوه راځي نو کوم خلق چه مونځ مکروه ګڼړي نو صحیح نۀ وائي نبي ﷺ نۀ دغه شان کار شوے وو او سجده سهوه ئے أونکړه صرف ابی بن کعب ته ئے أوفرمایل: تا ماته فتح ولے نۀ راکوله.

درجة الحدیث: اسناده صحیح: اخرجه ابوداود (١٣١٩) والترمذی (٤٤٧) والحاکم (٣١٠/١)

١٨ - وَعَنْ اَبِیْ ذَرٍّ، قَالَ: قَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ حَتّٰی اَصْبَحَ بِاٰیَةٍ، وَالْاٰیَةُ: ﴿اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ﴾. رَوَاهُ النَّسَائِیُّ، وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه: او ابوذر رضی الله عنه فرمائي: (یوه شپه د تهجدو په مانځه) رسول الله ﷺ ولاړ و تردے چه صبا ئے کړو د یو آیت (په تلاوت کولو) او هغه آیت دا دے: (ان تعذبهم الخ) (عیسیٰ علیه السلام به الله ته قیامت په ورځ فرمائي: اے الله! کۀ تۀ دے خلقو ته عذاب ورکوے نو دا ستا بندګان دي (او عبادت ئے د بل چا کړیدے نو په عذاب ورکولو کښې به په تا اعتراض نۀ وي او ستا عقاب به د حکمت نه خالي نۀ وي) او کۀ تۀ دوی ته بخښنه کوے نو تۀ غالبه او حکمتونو والا ئے) (نسائیؒ، ابن ماجهؒ)

تشریح: نبي ﷺ دا یو آیت ولے بار بار لوستلو؟ یو خو ددے آیت په ابتداء کښې هول او یره ده او په آخر کښې ئے حلاوت او مزه ده او بل دا اصل کښې د عیسیٰ علیه السلام قول دے چه هغه به الله تعالیٰ ته په قیامت کښې د خپل اُمت د طرفنه داسے جواب کوي چه اے الله! کۀ زما دے اُمت ته عذاب ورکوے نو ستا بندګان دي او بندګي ئے د بل چا کړے ده نو مستحق دي د عذاب، په تا به څۀ اعتراض نۀ وي. او که تۀ ورته بخښنه کوے نو تۀ پدے قادر ئے. نو

نبی ﷺ هم د خپل اُمت حالت په الله باندے پیش کړو او هغوی له ئے بخنه اُوغوختته لکه په بل روایت د احمدؒ کښې ئے داسے تشریح راغلے ده «کله چه نبی ﷺ صبا کړو نو ما تپوس اُوکړو یا رسول الله! تا تر سحره پورے دا آیت لوستلو چه پدے یو آیت به رکوع او سجدے ته راخکته کیدے (دا ولې)؟ نو هغه اُوفرمایل: ما د خپل امت دپاره د خپل رب نه شفاعت اُوغوختو نو الله ما ته هغه راکړو۔ او هغه به ان شاء الله هر هغه چا ته حاصلیږی چه د الله تعالیٰ سره ئے هیڅ قسم شرك نۀ وی کړے»۔ انتهیٰ۔

حدیث دلیل دے چه تکرار د یو آیت په مانځه کښې او په هر رکعت کښې جائز دے۔

ددے چا یو مطلب دا بیان کړیدے چه دا یو آیت ئے په رکوع او سجده کښې لوستلے دے۔ او حال دا چه په رکوع او سجده کښې د قرآن د لوستلو نه منع راغلے ده نو بیا به دا محمول وی په دے باندے چه دا ئے په نیت د دعاء لوستلے دے او په نیت د قراءت او تلاوت ئے نۀ دے لوستلے۔ لیکن دا خبره صحیح ده چه آیت په نیت د دعاء لوستل صرف په سجده او قعده کښې جائز دی لیکن پدے حدیث کښې دا معنیٰ مناسب نۀ ده څکه (ترکع وتسجد بها) کښې خو دا نشته چه پدے رکوع او سجده کښې تا لوستلو بلکه معنیٰ دا ده چه ددے یو آیت د لوستلو په وجه به رکوع او سجدے ته خکته کیدے۔

## په هر رکعت کښې تکرار

## د یو آیت یا تکرار د فاتحے سجده سهو نۀ لازموی

٢- مسئله : په ټولو نوافلو کښې په هر رکعت کښې یو آیت لوستل هم جائز دی کله کله۔ دلته نبی ﷺ صرف په دے یو آیت باندے ټول تهجد کړیدی۔ او پدے باندے سجده سهوه نشته، فقه حنفی کښې دا راغلی دی چه فاتحه چا مکرر کړه نو پدے به سجده لازمه وی لکه رشید احمد لدهیانوی په احسن الفتاوی (٤/٢١) کښې او رد المحتار ١٥٣/١ فصل فی القراءة) کښې پدے باندے سجده لازمه وئیلے ده۔

صرف عقلی دلیل وائی : چه پدے سره تاخیر د واجبو راځی چه هغه ضم السورة دے د فاتحے سره ۔ لیکن صحیح دا ده چه پدے باندے سجده سهوے دپاره دلیل نشته او نبی ﷺ په یو آیت کښې تکرار کړیدے لهذا تکرار جائز دے که فاتحه کښې وی او که غیر فاتحه کښې۔ (لورود الخبر فی مثله) (څکه ددے په مثل کښې حدیث راغلے دے)۔

* – او دارنګه دا خبره هم صحیح نۀ ده چه سمدست د فاتحے سره ضم د سورت واجب دے بلکه بعض علماء وائی د فاتحے نه پس به د فاتحے په مقدار مقتدی ته انتظار کولے شی

چه هغهٔ فاتحه اُولولی۔ نو آیا د هغوی مونځ به څهٔ فاسد وی؟۔

* دارنګه د تکرار د فاتحې په باره کښې د عُمر فاروق عمل موجود دے چه هغه په تهجدو کښې د فاتحې تکرار کړیدے لکه حدیث په فضائل القرآن للقاسم بن سلام (١٧٥/١) او کنز العمال (١٠٧/٨) کښې اُوګوره۔ او دا په منزله د مرفوع حدیث دے۔ څکه رائے له پدے باب کښې دخل نشته۔ لهٰذا د فقه حنفی خبره ددے حدیث د نګاه نه خطاء شوه۔ او په المجموع شرح المهذب (٣٥٨/٣) کښې هم د تکرار جواز ذکر دے۔ او په فقه حنبلی لکه الشرح الکبیر لابن قدامة (٦١٢/١) الفروع لابن مفلح (٢٣٣/٢) او زاد المستقنع (١٤/١) کښې ئې ورته مکروه وئیلی دے۔

نو فیصله دا ده چه تکرار د یوے کلمے یا یو آیت که د شك یا د تدبر د وجه نه وی نو هیڅ کراهت پکښې نشته او که په طریقه د عادت باندے وی نو بیا به خلاف الافضل وی څکه داسے تکرار د نبی ﷺ نه ندے ثابت۔ خاصکر په فرائضو کښې احتیاط پکار دے۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (١٤٩/٥) والنسائی (١٧٧/٢) وابن ماجه (١٣٥٠) والحاکم (٢٤/١) وصححه ووافقه الذهبی.

---

١٩ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «اِذَا صَلّٰى أَحَدُكُمْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، فَلْيَضْطَجِعْ عَلٰى يَمِيْنِهٖ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوٗدَ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : کله چه یو تن ستاسو دوه رکعاته د سحر (سنت) اُوکړی نو هغهٔ دے په ښی اړخ باندے (ترجَمے اُودریدو پورے) تکیه اُولګوی۔ (ترمذیؒ، ابوداوُدؒ)

تشریح : دا حدیث دلیل دے ددے خبرے دپاره چه د سحر سنتو نه روستو دوهٔ لګول مستحب او سنت طریقه ده، برابره ده که تهجد ئې کړی وی او که نهٔ او مسجد کښې وی او که کور کښې څکه دا اَمر مطلق دے څهٔ قید د مسجد وغیره پکښې نهٔ دے لګولے شوے۔ او دا امر د استحباب دپاره دے او کله د سنتو او فرضو ترمینځ فصل په خبرو اترو هم جائز دے۔ لکه چه تفصیل ئې مخکښې ذکر شو۔

درجة الحدیث: اسناده صحیح : اخرجه احمد (٤١٥/٢) وابوداود (١٢٦١) والترمذی (٤٢٠).

## الفصل الثالث

٢٠ – عَنْ مَسْرُوْقٍ، قَالَ: سَاَلْتُ عَائِشَةَ: أَيُّ الْعَمَلِ كَانَ أَحَبَّ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ؟

قَالَتْ: الدَّائِمُ. قُلْتُ: فَأَيَّ حِيْنٍ كَانَ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ؟ قَالَتْ: كَانَ يَقُوْمُ إِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : مسروق رحمه الله فرمائي : ما د عائشةؓ نه تپوس اُوکړو : کوم عمل به رسول الله ﷺ ته زيات محبوب وو؟ نو هغې اُوفرمايل : هميشه کيدونکے عمل۔ (چه هميش والے پرے کولے شي) بيا ما تپوس اُوکړو : د شپے په کوم يو وخت به رسول الله ﷺ پاڅيدو ؟ وے فرمايل : نبي ﷺ به په هغهٔ وخت پاڅيدو کله چه به ئے د چرګ بانګ واوريدو۔ (بخاريؒ ومسلمؒ) ۔

## د چرګ فضيلت او د چرګ د بانګ اوقات

تشريح : الصَّارِخَ : چرګ ته وائي، صَرْخَةٌ تيزے چغے ته وائي او چرګ ته صارخ ځکه وائي چه چرګ ډيرے چغے وهي۔ يعني کله چه به ئے د چرګ بانګ واوريدو۔ او غالباً د چرګ عادت دا دے چه بانګ د نيمے شپے نه روستو شروع کوي۔

ابن بطالؒ وائي : په آخيري دريمه حصه د شپه کښې بانګ وائي۔ انتهیٰ۔ او دا په اختلاف د احوالو سره مختلف کيږي خو د چرګ عادت دا دے چه د نيمے شپے نه شروع اُوکړي او بيا غلے شي بيا ثلث الليل الاخير کښې شروع اُوکړي بيا غلے وي کله چه صبا نزدے شي نو بانګونه تيز او ډير کړي بيا چه بالکل وخت راختوته نزدے شي لس شل منټه پاتے شي نو بيا بانګونه شروع کړي۔ ګويا کښې تا ته بالکل وخت درښائي چه دا د تهجدو تائم دے او دا د صبا د مانځه۔ لکه پخوانو به پدے باندے خپل عملونه برابرول۔ او دا د الله الهام دے چه چرګ ته ئے په فطرت کښې دا اچولی دی۔

علامه قسطلانيؒ دا هم وئيلی دی چه د زوال په وخت هم چرګ آوازونه کوي خلقو ته مونځ يادوي او دا د الله فطرت دے چه دهٔ ته ئے ورکړيدے۔

د چرګ د فضيلت په باره کښې دوه احاديث صحيح دي۔ يو (لا تسبوا الديك فانه يوقظ للصلاة) (احمد، ابوداود باسناد جيد) رياض الصالحين ٤٩٧/١) اسناد صحيح و كذا فى الفتح (٣٥٣/٦) (چرګ ته کنځل مهٔ کوئ ځکه دا خلق مانځه ته رابيداروي) ٢- دويم حديث : (اذا سمعتم صوت الديك فاسئلوا الله من فضله) (بخاري) المسند الجامع رقم (١٤٣٩٥) (کله چه د چرګ آواز واورئ نو د الله نه فضل غواړئ) (اسنى المطالب فى احاديث مختلفة المراتب ٨٧/١ للامام محمد بن درويش البيروتى) او بل دا حديث دے او نور احاديث الفضائل موضوع دي كما فى المنار المنيف ص (١٣٠) للحافظ ابن القيمؒ۔

فوائد الحديث : ۱- حديث كښې تيزى ده په مداومت او هميشوالى د عمل باندے اگركه كم وى. پدے وجه قرآن كريم كښې هغۀ خلقو ته خوشخبرى وركړے شويده چه هغوى په اعمالو باندے استقامت كوى. (ان الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا)
او د مداومت نه مراد دا نۀ دے چه متواتر تول زمانے راګيرے كړى بلكه ملازمت عرفى مراد دے، يعنى په خپل خپل مقرر شده وخت كښې كول او قضائى پكښې نۀ كول.
۲- حديث دليل دے چه په مستحب باندے دوام كول بهتر عمل دے خو ددے التزام بدعت دے يعنى دا دوام فرض ګڼړل بدعت دے.
۳- په عبادت كښې درميانه روى كول او تعمقاتو نه ځان ساتلو ته ترغيب دے، ځكه پدے كار سره بدن ته نشاط حاصليږى او زړۀ ته انشراح ملاويږى.
٤- د عائشه رضي الله عنها كثرت علم چه داسے قسم مسائل ئے ياد كړى دى. ٥- مومن له پكار دى چه په مستحب كارونو كښې هم د الله د رسول د اتباع كوشش اُوكړى، ځكه مسروق د عائشه رضي الله عنها نه د نبى ﷺ د اعمالو او د قيام الليل د اُوقاتو تپوس كوى. ٦- الدائم : دا يا مرفوع دے خبر د مبتداء محذوف دے. اى هو الدائم. او بعض وائى : منصوب دے.

---

١٢- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: مَا كُنَّا نَشَاءُ اَنْ نُّرٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ فِي اللَّيْلِ مُصَلِّيًا اِلَّا رَأَيْنَاهُ، وَلَانَشَاءُ اَنْ نَّرَاهُ نَائِمًا اِلَّا رَأَيْنَاهُ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

---

ترجمه : او انس رضي الله عنه فرمائى: مونږ به اراده نۀ كوله چه رسول الله ﷺ په شپه كښې مونځ كونكے اُووينو مګر مونږ به (په مانځه) ليدو، او مونږ به ارادۀ نۀ كوله چه هغۀ په خوب اُووينو مګر په خوب به هم ليدلو. (نسائی)
تشريح : غرض الحديث : الاقتصاد فى العمل. (په عمل كښې درميانه روى كول پكار دى) يعنى د انس د ارشاد غرض دا دے چه نبى ﷺ به نۀ توله شپه اُوده كيدو او نۀ به توله شپه په تهجدو وو بلكه درميانه رَوى به ئے كوله پدے وجه هغه به په شپه كښې په تهجدو هم مشغول ليدلے كيدو او اُوده به هم ليدلے كيدو.
۲- يا مطلب دا دے چه په شپه كښې به ئے په يوه حصه كښې تهجد بله حصه كښې خوب بيا يوه حصه تهجد او بله حصه خوب او بيا يوه حصه تهجد او بله خوب. او دغه شان حالت ئے په يوه شپه كښې وو. نو چا به د خوب په حصه كښې اُودۀ ليدو او چا به د تهجدو په حصه كښې په مونځ ليدو.

٣- علامه سنديؒ وائي : يعني د نبي ﷺ مونځ او خوب د وقت دوں وقت پورے مخصوص نۀ وو بلکه دا دواړه به مختلف وو، او په کوم وخت کښې به ئے چه مونځ کولو کله نا کله نو په هغې کښې به ئے کله خوب کولو۔ او دغه شان ددے برعکس، نو د تهجدو دپاره به ئے معين وقت نۀ وو مقرر کړے بلکه هرکله به چه ورته قيام آسان شو نو راپاڅيدو به۔ (حاشية النسائی)

حافظ ابن حجرؒ وائي: د انسؓ مقصد دا دے چه کله به ئے د شپے په اوله حصه کښې تهجد کول او کله به ئے په وسط کښې او کله به ئے په آخر د شپه کښې۔ نو چا چه به يو معين وخت د هغۀ د انتظار دپاره مقرر کړے وو نو هغۀ به په هغۀ وخت کښې کله په خوب ليدو او کله به ئے په تهجدو ليدلو۔ او دا مطلب نۀ دے چه توله شپه عبادت به ئے کولو۔ انتهیٰ۔

نو نبي ﷺ د صوفيه ؤ په شان نۀ وو چه د خپلو مشرانو په باره کښې داسے صفتونه ذکر کوی چه مسجد حرام کښې يو بزرګ وو چه يو کاله پورے نۀ چا په ناسته ليدلے وو او نۀ چا په تکيه ليدلے وو۔ (فضائل صدقات د زکريا) نو دا خپل بزرگان د نبي نه مخکښې کول دی۔ هميشه ويښ پاتے کيدل او هميشه اُودۀ کيدل کمال نۀ دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح على شرطهما : اخرجه النسائي (٢٤٢/١)

---

٢٢- وَعَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: اِنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: قُلْتُ وَأَنَا فِيْ سَفَرٍ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ : وَاللهِ لَأَرْقُبَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لِلصَّلَاةِ حَتّٰى أَرٰى فِعْلَهُ، فَلَمَّا صَلّٰى صَلَاةَ الْعِشَاءِ، وَهِيَ الْعَتَمَةُ، اِضْطَجَعَ هَوِيًّا مِنَ اللَّيْلِ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَنَظَرَ فِي الْأُفُقِ، فَقَالَ:﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ حَتّٰى بَلَغَ اِلٰى:﴿ إِنَّكَ لَاتُخْلِفُ الْمِيْعَادَ﴾، ثُمَّ اَهْوٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِلٰى فِرَاشِهٖ، فَاسْتَلَّ مِنْهُ سِوَاكًا، ثُمَّ أَفْرَغَ فِيْ قَدَحٍ مِنْ إِدَاوَةٍ عِنْدَهٗ مَاءً، فَاسْتَنَّ، ثُمَّ قَامَ، فَصَلّٰى، حَتّٰى قُلْتُ، قَدْ صَلّٰى قَدْرَ مَا نَامَ، ثُمَّ اضْطَجَعَ، حَتّٰى قُلْتُ قَدْ نَامَ قَدْرَمَا صَلّٰى، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ، فَفَعَلَ كَمَا فَعَلَ اَوَّلَ مَرَّةٍ، وَقَالَ مِثْلَ مَا قَالَ، فَفَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَبْلَ الْفَجْرِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

ترجمه : او حميد بن عبد الرحمن بن عوفؒ فرمائی : د نبي ﷺ د صحابه کرامو نه يو سړے اُوفرمايل : زۀ د رسول الله ﷺ سره په سفر کښې وم نو ما اُووئيل : چه قسم په الله ! زۀ به ضرور رسول الله ﷺ (د تهجدو په) مانځه ګورم، ترڅو چه زۀ د هغۀ عمل اُووينم (او بيا د

هغې مطابق عمل اُوکړم) نو کله چه رسول الله ﷺ د ماسخوتن مونځ چه هغې ته عَتَمه وائي اُوکړو نو په لږه حصه د شپه کښې ئې ډېرهٔ اُولګوله (اُودهٔ شو) بیا رابیدار شو، نو د آسمان کنارو ته ئې اُوکتل او دا آیت ئې اُولوستلو (ربنا ما خلقت هذا باطلًا) (اے ربه ! تا دا کائنات فضول نهٔ دی پیدا کړی) تردے پورے اُولوستلو چه دے آیت ته اُورسیدو (انك لا تخلف الميعاد) (بیشکه تهٔ د وعدے خلاف نهٔ کوے) بیا رسول الله ﷺ خپلې بسترے ته متوجه شو (لاس ئې رااُوګدکړو) نو د هغې نه ئې مسواك راویستو، ددے نه بعد ئې په یوه پیاله کښې د یو بتکی نه چه ددهٔ سره وو اُوبهٔ راواړولے، بیا ئې مسواك اُووهلو بیا پاڅیدو مونځ ئې اُوکړو، تردے چه ما (په زړهٔ کښې) اُووئیل چه څومره اَندازه ئې خوب اُوکړو هغومره مونځ ئې اُوکړو، بیا ئې ډېرهٔ اُولګوله تردے چه ما (زړهٔ کښې) اُووئیل چه څومره مونځ ئې اُوکړو هغومره خوب ئې اُوکړو، بیا رابیدار شو نو هغهٔ شان کارئې اُوکړو څنګه ئې چه اول ځل کړی وو (یعنی مسواك وغیره) او هغهٔ ئې اُولوستل کوم ئې چه مخکښې لوستلی وو (یعنی آیت) د صبا نه مخکښې رسول الله ﷺ درے ځل دا کار اُوکړو۔ (نسائیؒ)

تعارف د حمید بن عبد الرحمن : حمید بن عبد الرحمن بن عوف الزهری المدنی، ثقة من کبار التابعین۔ په سنه (۹۵) کښې د (۷۳) کالو په عمر وفات شویدے۔ بعض وائی : په سنه (۱۰۵) کښې وفات دے۔

تشریح : فَاسْتَنَّ : د استنان نه ماخوذ دے یعنی مسواك ئې په غاښونو استعمال کړو، اسنان غاښونو ته وائي۔

نبی علیه السلام چه دا ډېرهٔ لګولے ده نو یا د خوب دپاره ده، چه هر ځل اُوده شوے دے، یا د هسې آرام دپاره پریوتے دے۔ : هَوِيًّا په فتح د هاء او تشدید د یاء سره، اُوږدے زمانے ته وائي۔

فَاسْتَلَّ : یعنی راویستلو د بسترے لاندے نه مسواك۔

ثُمَّ اَهْوٰی : یعنی لاس ئې را اُوږد کړو، یا ئې لاس رامائل (کوږ) کړو۔

ثُمَّ اَفْرَغَ : اُوبه ئې یا ددے دپاره راواړولے چه مسواك پرے لوند کړی، احتمال شته چه اوبه ئې د اَوداسه دپاره راړولی وی او دلته ئې یا دوباره اَودس کریدے، یا ئې په زوړ اَودس سره مونځ کړے دے صرف مسواك ئې مینځ کښې وهلے دے۔ والله اعلم۔

وَقَالَ مِثْلَ مَا قَالَ : دلته واو د مطلق جمع دپاره دے ځکه د آیت لوستل پدے مقام کښې مخکښې وی په فعل باندے۔

فوائد الحدیث : ۱- آسمان ته کتل سنت طریقه ده ۔ ۲- که وخت تنګ وی نو دا رکوع کله نا کله (انك لا تخلف المیعاد) پورے لوستل جواز لری دلته تناقض نشته ځکه

دا د جُدا جُدا شپو اعمال دي۔

۳- د بالخت نه لاندې مسواك كيخودل سنت طريقه ده، دې دپاره چه وهل ئې آسان وي۔ او پدې مقام كښ مسواك د خوب نه روستو وهلې شويدې۔ ٤- ثلاث مرات : دا د نبي ﷺ د تهجدو نه يو كران كيفيت دې چه د شپې درې ځل راپاخيږي او بيا اُودهٔ شي۔

درجة الحديث : اسناده صحيح على شرط مسلم : (اخرجه النسائي ١/٢٤٢)

---

۲۳- وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ، أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ ﷺ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ ﷺ وَصَلَاتِهِ؟ فَقَالَتْ: وَمَالَكُمْ وَصَلَاتَهُ؟ كَانَ يُصَلِّي ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ، ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، حَتَّى يُصْبِحَ، ثُمَّ نَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ، فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او يعلى بن مملك نه روايت دې چه دهٔ د ام سلمهؓ نه - چه د نبي ﷺ بي بي ده - تپوس اُوكړو د نبي ﷺ د قرائت او د مانځه په باره كښ ؟ (كوم چه به نبي ﷺ د شپې كولو) نو هغې اُوفرمايل : چه ستاسو د رسول الله ﷺ د مانځه (او د هغهٔ د قراءت بيانولو) سره څهٔ ؟ (حاصليږي تاسو كښې دومره قوت چرته شته چه د نبي ﷺ برابر قراءت او مونځ اُوكړې شئ او كه اَوريدل غواړئ نوواورئ) نبي ﷺ به مونځ كولو بيا به اُودهٔ شو څومره اَندازه چه به ئې مونځ كړې وو بيا به ئې مونځ كولو څومره اندازه چه اُودهٔ شوې وو، بيا به اُودهٔ كيدو څومره اندازه چه به ئې مونځ كړې وو تردې چه صبا به ئې كړو، دې نه بعد ام سلمهؓ د رسول الله ﷺ د قرائت بيان اُوكړو تردې چه هغوي واضح قراءت او يو يو حرف بيان كړو۔ (ابوداوُدؒ، ترمذيؒ، نسائيؒ) ۔

تعارف د يعلى بن مملك : يعلى بن مَمْلَك ابن حبان په ثقاتو كښ ذكر كړيدې او په تقريب كښ دهٔ ته مقبول وئيلې شويدې د تابعينو د طبقه ثالثې نه دې۔

تشريح : وَمَالَكُمْ وَصَلَاتَهُ ؟ : دا صلاته په نصب سره دې ځكه واو په معنىٰ د مع سره دې۔ يعنې ستاسو د نبي ﷺ سره د مانځه سره څهٔ دي ؟ تاسو ددې طاقت نهٔ لرئ نو بيا څه له تپوس كوئ۔ يا دا چه عمل پرې نهٔ كوئ نو تپوسونه مهٔ كوئ۔ او غرض پكښ تيزي وركول دي په عمل كولو باندې۔

كان يصلى نه ظاهر مطلب دا دې چه نفل مونځ به ئې اُوكړو بيا به اُوده شو۔ الخ ۔

بيا په هرځل راپاځيدو كښ د نبي ﷺ د مانځه د ركعاتو ذكر نهٔ دې موجود نو كيدې

شي مختلف وي او يا كيدے شي څلور ركعاته وي. چه تول ديارلس ركعاته برابر شي.
تَنْعَتُ : نعت بيان ته وائي يعني دا قراءت ئې بيانولو واضحه واضحه . يعني د نبي ﷺ قراءت به ښكاره وو. او داسې به نهٔ وو لكه د نن زمانې اكثر قاريان چه صرف د حق لفظ ئې معلوميږي او نور تول د ځان سره وائي. كلو كښې ئې كانړي اچولي وي او هغه شرنګوي. نهٔ، بلكه نبي ﷺ به واضح قراءت كولو. او داسې به هم نهٔ كوي چه هر تكې د بل نه جدا كړي لكه (ال، حم، دُ) عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : قرآن به داسې نهٔ لولئ لكه د كجورو د پانړو په شان. يو تكې د بل نه جُدا شي.
بيا د ام سلمیٰ په قرائت بيانولو كښې دوه احتماله دي ۱ – يو دا چه هغې داسې اووئيل چه د نبي ﷺ قرائت به فلانې فلانې وو او دومره دومره وو. او دويم دا چه هغې د ځان نه واضح او مرتل يو قراءت اُوكړو او بيا ئې اُوفرمايل : نبي ﷺ به ددې په شان قراءت كولو.
حَرْفًا حَرْفًا : يعني حال كونها مفصولة الحروف (يعني جُدا جُدا حرفونو والا به وو)
رواياتو نه معلوميږي چه د نبي ﷺ په قراءت كښې يو څو سنت طريقې وې :
۱ – دويم دا چه مد به ئې كولو (او مد ديته وائي چه حروف علت (واو او ياء) اُوګده وائي لكه ياء راكاړي يا واو راكاږي) الحمد لله رب العالمين، مُحْضَرُوْنَ وغيره.
۲ – دويم : جدا جدا الفاظ به ئې وئيل او يو لړئ (پړے) به نهٔ وو.
۳ – دريم : د اياتونو په آخر به ئې وقف كولو. (بخاري).
د نبي ﷺ نه د آيتونو په مينځ مينځ كښې وقفونه ندي نقل، دا صرف د قاريانو اصطلاحات دي چه معنې ته ئې كتلي دي او د هغې مطابق ئې وقف ليكلي دے، لكه بعض ځايونو كښې ليكي چه دا وقف لازم دے، ځكه كه دا وقف اُونكړے شي. نو بيا معنیٰ كښې نقصان راځي. لكه (ولا يحزنك قولهم) نه روستو ئې وقف لازم ليكلي دے ځكه كه دلته وقف اُونكړي او (ان العزة لله جميعاً) ورسره ملاؤ شي نو بيا به ان العزة د هغوی مقوله شي او حال دا چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه مقوله ده. خو دا د نبي ﷺ نه ندے نقل. لهذا سنت كښې صرف دغه يو وقف على الآيات ثابت دے، نهٔ نور وقفونه.
انظر الدين الخالص ( ۹۱/۱ ).
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (۱٤٦٦) والترمذي (۲۹۲۳) وصححه والنسائي (۱۰۲۱) وفي الكبرى (٤٣٣/١).

❁❁❁❁❁

# باب ما يقول اذا قام من الليل

## يعني هغه دعاګانې اواذکار چه د شپې د راپاڅيدو وخت کښې وئيلې شي

**يا معنى دا ده : بيان د دې چه څۀ به وائې کله چه د شپې راپاڅيږې ؟**

د شپې چه راپاڅي نو اذکار درې قسمه دي ١ – قبل الصلاة ٢ – في داخل الصلاة ٣ – بعد الصلاة نو بعد الصلاة اذکار خو استغفار دې۔ او دعاګانې او خپل حاجتونه غوختل دي۔ نو پدې باب کښې به دا درې واړه قسمونه بيانيږي۔

الفصل الاول

١ – عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ: « اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، وَلَكَ الْحَمْدُ، أَنْتَ مَلِكُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ الْحَقُّ، وَوَعْدُكَ الْحَقُّ وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ، وَقَوْلُكَ حَقٌّ، وَالْجَنَّةُ حَقٌّ، وَالنَّارُ حَقٌّ، وَالنَّبِيُّوْنَ حَقٌّ، وَمُحَمَّدٌ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ، اَللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ، وَبِكَ آمَنْتُ، وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ، وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ، وَبِكَ خَاصَمْتُ، وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ، فَاغْفِرْ لِيْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ، وَمَا أَعْلَنْتُ، وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّيْ، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : ابن عباس ﷺ فرمائي : نبي ﷺ به چه کله د شپې (مانځه ته) راپاڅيدو تهجد به ئې کول نو داسې به ئې وئيل : « اللهم لك الحمد الخ (اے الله ! ستا دپاره د کمال صفتونه دي، تۀ د آسمان او زمکې او هغۀ څوك چه پدې کښې دي تدبير کونکې ئې، او ستا دپاره حمدونه دي، تـه د آسمان او د زمکې او هغۀ چه پدې کښې دي روښانه کونکې ئې، او ستا دپاره حمدونه دي، ته د آسمان او زمکې او هغۀ څه چه پدې کښې دي بادشاه ئې، او ستا دپاره حمدونه دي تۀ حق ئې، او وعده ستا حقه ده او ستا ملاقات حق دې، او ستا خبرې حقې دي، او جنت حق دې او جهنم حق دې، او انبياء حق دي، او محمد (ﷺ) حق دې، او قيامت حق دې، اے الله ! زۀ ستا تابعداريم، او ما په تا باندې ايمان راوړې دې، (ستا ټول احکامات مې

منلی دی) او په تا مې بهروسه کړې ده، تا طرف ته ما رجوع کړې ده، او خاص ستا په مدد سره به (د دین) د شمنانو سره جګړه کوم، او خاص تا ته فیصله راوړم، نو ته ما ته هغه ګناهونه اُوبخه کوم چه ما مخکښ کړی دی او هغه چه ما روستو کړی دی او هغه چه ما پټ کړی دی او هغه چه ما ښکاره کړیدی او هغه چه ته پرې ما نه ښه پو هه یې، ته (چه چا له اُوغواړې) مخکښ کونکے یې او (چا له چه غواړې) روستو کونکے یې.نشته حقدار د بندګئ سِوا ستا نه»۔ (بخاری ومسلم) ۔

تشریح : دے ذکر کښې بعض خلق وائی چه دا به یې د مانځه نه مخکښ او د خوب نه پس لوستلو، دا د بعض غیر محققین شراحو قول دے۔

۲– صحیح دا ده چه دا په مانځه کښې پس د الله اکبر نه د سبحانك اللهم په ځائے نبی ﷺ لوستلے دے، لکه دا خبره په روایت د ابوداود کښې دغه شان راغلې ده۔ و شرح السنة (١٧٣/٢) ومسند الصحابة فی الكتب التسعة – مسند ابن عباس) ۔ او پدے باندے ابن خزیمه ترجمة الباب لګولے دے او حافظ ابن حجر هم دا خبره لیکلې ده۔

نُوْرُ السَّمٰوٰاتِ : ددے معنیٰ دا نه ده چه آسمان او زمکه کښې چه کومه رنړا ده نو دا الله دے۔ ځکه دا خو مخلوقه رنړا ده بلکه معنیٰ دا ده چه انت منور السموات الخ یعنی آسمان او زمکه کښې چه کومه رنړا ده نو دا ستا د مخ د وجه نه ده، تا دے ته رنړا ورکړې ده، دا تیاره وو که الله ورله رنړا نه وے ورکړې۔ ددے ښه معنیٰ عبد الله بن مسعود رضی الله عنه کړیده : هغه فرمائی : (ان ربکم لیس عنده لیل ولا نهار، نور السموات والارض من نور وجهه) (معجم الکبیر١٧٩/٩) حلیة الاولیاء (١٣٧/١) (ستاسو رب سره شپه او ورځ نشته، بلکه آسمان او زمکه کښې چه کومه رنړا ده نو دا د الله د مخ نه رانقل شویده په هغه کیفیت چه کوم الله ته معلوم دے۔

قَيِّمُ السَّمٰوٰاتِ : قیم په معنی د مدبر او پروګرام چلونکی سره دے۔ یعنی القائم بتدبیر نفسه المقیم لغیره (یعنی د خپلو کارونو او د مخلوقاتو د کارونو تدبیر او تصرف پخپله کوی چا ته یې نه دی سپارلی دی۔ د مخلوق قیام هم د الله پورے دے۔د ټولو وجود د الله وجود ته محتاج دے)۔

بیا ددے ایمانیاتو اقرار یې په ژبه اُوکړو، ددے دپاره چه زړهٔ ته پریوځی۔

أَنْتَ الْحَقُّ : یعنی ته متحقق الوجود او ثابت ذات یې چه هیڅ شك پکښې نشته۔ امام قرطبیؒ لیکی : دا صفت په حقیقت کښې صرف او صرف د الله پورے خاص دے د الله نه علاوه بل چا دپاره مناسب نهٔ دے، ځکه د الله وجود ذاتی دے چه هغے ته عدم نهٔ دے

پیوسته شوے او نۀ به پرے عدم راشي او د الله نه علاوه نور څیزونه فاني کیدونکي دي نو هغې ته حق نشي وئیلے۔ یا معنیٰ دا ده چه تۀ حق ئې په نسبت د هغۀ چا چه دا دعوه لري چه هغۀ اِلٰه دے۔

وَالسَّاعَةُ: (یعني د قیامت ورځ) دے ته ئې ساعت اُووئیلو ځکه اصلي ساعت (وخت) همغه دے چه په هغې کښې به ډیر عظیم کارونو راځي۔

او ساعة وائي : د ورځ او شپې معمولي حصے ته وائي۔ او پدے څیزونو کښې د حق کیدو معنیٰ دا ده چه دا کارونه کیدونکي دي او ددے تصدیق واجب دے۔ او هر یو سره ئې حق لفظ مکرر کړو دپاره د تاکید ددے څیزونو۔

وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ : إنابت یو په مقابله د عناد کښې راځي مُنیب دے یعني عناد نۀ کوي بلکه حق چه کوم طرفته ګرځي نو دا ورسره روان وي۔ ۲- دویم اِنابت په معنیٰ د عاجزۍ د زړۀ سره او دا په مقابله د قَسْوَت کښې استعمالیږي۔ دلته دواړه معاني مراد دي۔ بعض وائي : توبه او انابت دواړه په معنیٰ د رجوع دي لیکن مقام د انابت اعلیٰ او ارفع دے۔

وَبِكَ خَاصَمْتُ : یعني زه چه د مشرکین او مبتدعینو سره جګړه کوم نو دا به ستا دپاره وي۔ او ستا په مدد به وي۔ او پدے تولو افعالو باندے ئې جار مجرور مقدم کړو دپاره د تخصیص او حصر او دا حصر په نسبت د باقي معبودین من دون الله سره دے۔

فَاغْفِرْ لِي : نبي ﷺ ځان ګناهګار ګنړي اګرکه ګناهګار نۀ دے ځکه دا د الله حق دے چه هغۀ ته به د عبودیت او عجز او ګناه اقرار کوے۔ یا دا اُمت ته تعلیم دے۔

---

۲- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ افْتَتَحَ صَلَاتَهُ فَقَالَ: «اَللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَإِسْرَافِيلَ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ، اِهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ، إِنَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائي : نبي ﷺ به چه کله د شپې نه (تهجدو) ته راپاڅیدو نو مونځ به ئې شروع کړو او دا به ئې وئیل : « اللهم جبریل: (اے الله ! تۀ رب د جبرائیل او میکائیل او اسرافیل ئې، پیدا کونکے د آسمانونو او زمکو ئې، پوهه په غیب او ښکاره ئې، تۀ د خپلو بندګانو ترمینځ فیصله کوے په هغۀ څۀ کښې چه دوی پکښې

اختلاف کوی، ما ته هدایت اُوکړے د هغهٔ څه چه اختلاف پکښې شوے دے د حق نه په خپل مدد او توفیق سره څکه تهٔ چه چا له اُوغواړے نیغې لارے ته هدایت کوے۔(مسلمؒ)

تشریح : دا دعاء به نبی ﷺ په ابتداء د اولنو دوه رکعاتونو کښې د سبحانك اللهم په ځائے لوستله، او دا ډیره بهترینه دعاء ده۔شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ باندے به چه کله یوه مسئله سخته شوه نو هغه به دا دعاء لوستله۔ په هر کار کښې به د الله نه هدایت غواړے، خاصکر چه کله دربانده یوه مسئله گډه وډه شی او اختلافات مخې ته ډیر راشی نو دا دعاء وایه، الله به درته هدایت کوی۔ او د الله نه هدایت طلب کول د هر مومن صفت دے۔که یر تن ته تا اُووئیل چه پدے مسئله کښې د الله نه هدایت اُوغواړه نو هغه غصه شی او وائی زهٔ درته گمراه ښکارم، نو دا کار ددهٔ سراسر جهالت دے۔ (وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى) (وَزِدْنَاهُمْ هُدًى)۔ دلته نبی علیه السلام د هدایت د زیاتوالی سوال کړیدے۔ (اهدنی)۔

بیا د رب اضافت ئې دے درے ملائکو ته اُوکړو اګرکه الله د ټولو مخلوقاتو رب دے، لیکن ددے درے ملائکو د تخصیص وجه دا ده چه د دوی فضیلت او شرافت دے په نورو ملائکو۔ دویم دا مقام مقام د مدح د الله دے په ملك او بقاء او ایجاد سره او دا ملائك هم عظیم دی په نسبت د نورو مخلوقاتو او عزرائیل اګرکه لوئی مَلك دے لیکن د هغهٔ ددے صفاتو سره تعلق نشته۔

۴- وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ، وَسُبْحَانَ اللهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَااِلٰهَ اِلَّا اللهُ، وَاللهُ اَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ، ثُمَّ قَالَ: رَبِّ اغْفِرْ لِيْ، اَوْ قَالَ: ثُمَّ دَعَا، اُسْتُجِيْبَ لَهٗ، فَاِنْ تَوَضَّأَ وَصَلّٰى قُبِلَتْ صَلَاتُهٗ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او عباده بن صامت ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :«څوك چه د شپے راببیدار شی او دا ذکرئے اُوکړی : (نشته حقدار د بندګئ سوا د هغهٔ نه یواځے دے، هیڅ شریك ئے نشته، د هغهٔ دپاره بادشاهی ده، او د هغهٔ دپاره حمدونه دی، او هغهٔ په هر شی باندے قادر دے، او الله پاك دے، او د هغهٔ دپاره حمدونه دی، او نشته حقدار د بندګئ سوا د الله نه، او الله لوئی ذات دے، او نشته منع کیدل د ګناه نه او قوت په نیکئ باندے مګر صرف د الله په مدد دی) ددے نه بعد ئے اووئیل : رب اغفر لی، راوی وائی : یا ئے داسے اُووئیل : بیا ئے دعا اُوکړه نو د هغهٔ دعا به قبلولے شی، بیا کهٔ اَودس اُوکړی او مونځ اُوکړی

نو د هغهٔ مونځ به قبلیږي»۔ (بخاريؒ)

تشریح : دا دعاء الاستیقاظ ده په هر وخت کښې چه د شپې رابیدار شو او دغه ذکر اُوکړي او د الله نه بخنه یا دعاء اُوغواړي نو الله به ئې ضرور پوره کوي۔

مَنْ تَعَارَّ : تعار اصل کښې د خوب نه د آواز سره رابیداریدو ته وائي۔ یعنی د خوب نه په داسې حالت کښې رابیدار شي چه دا ذکر ئې په خوله باندې وي۔ نو دغه فضیلت به ورته حاصل شي۔ او دا کار د هغهٔ چا دپاره کیدې شي چه هغهٔ د الله په ذکر باندې اموخته وي او د هغې سره ئې اُنس او تعلق جوړ شوې وي تردې چه ذکر پرې دومره غلبه کړې وي چه د هغهٔ په بیداریٔ او خوب کښې حدیث النفس گرځیدلې وي۔

د بخاري په عام روایتونو کښې الحمد لله په سبحان الله مقدم ذکر دہ، صرف په روایت د اسماعیلي کښې د سبحان الله نه مؤخر ذکر ده، حافظ فرمائي : شاید دا د رواتو تصرف وي، د راوي شك وي۔ ځکه واو مستلزم ترتیب لره نهٔ وي۔

رَبِّ اغْفِرْ لِيْ : یعنی د الله نه بخنه اُوغواړي په بِسْتَره وغیره باندې۔ یا بله دعاء اُوغواړي۔

اُسْتُجِیْبَ لَهٗ : ابن الملكؒ فرمائي : دلته د استجابت نه مراد یقیني استجابت دې یعني ضرور به دهٔ دا دعاء قبلیږي ځکه چه نفس احتمال د قبلیدو خو په نورو دعاگانو کښې هم شته، لهذا دلته به یقیني قبلیدل مراد وي۔

بعض اهل علم فرمائي : پدې مقام کښې د دعاء قبلیدل دارنگه د مانځه قبلیدل د نورو اَوقاتو په نسبت ډیر د امید لائق دي۔

فَإِنْ تَوَضَّأَ : یعني که ددې ذکر نه روستو اَودس او مونځ اُوکړي نو مونځ به ئې قبول شي، دې نه معلومیږي چه دا دعاء په مانځه کښې نهٔ ده مراد بلکه مونځ ئې مستقل ذکر کړو۔

علامه ابن بطالؒ فرمائي : الله د خپل نبي په ژبه باندې دا وعده اُوکړه چه څوك د خوب نه رابیدار شو او د هغه په توحید ئې ژبه خوزوله او د هغه بادشاهي او د هغه د نعمتونو اقرار ئې په حمدونو سره کولو او هغه ته ئې په تکبیر او عاجزیٔ سره غاړه کیخودله او د هغه نه ئې دعاء طلب کوله نو د هغهٔ دعاء به قبلیږي او مونځ ئې اُوکړو نو د هغه مونځ به قبلیږي نو بس چا ته چه دا حدیث اُورسیدو هغه له پکار دي چه پدې باندې عمل کول غنیمت اُوگنړي او خپل نیت د رب دپاره خالص کړي۔ (فتح الباري۳/۴۱)

فائده : امام ابوعبد الله الفِرَبْرِيّ (د صحیح بخاري نقل کونکې) فرمائي : ما به دا ذکر د خوب نه رابیداریدو وخت کښې وئیلو نو یوه شپه مې خوب اُولیدو چه یو سړې راغلو او ما

تـه ئې دا آيت أولوستلو : (وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ. الآية) (سورة الحج) (يعنی دے جنتيانو ته (په دنيا کښ) هدايت شوے وو پاکو خبرو ته) (فتح الباری (۴۱/۳) پدے خوب کښ اشاره وه چه دا ذکر سبب د جنت دے. او د عمل د قبليدو دے.

## الفصل الثانی

٤- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ اللَّيْلِ، قَالَ: «لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي، وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ، اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا، وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي، وَهَبْ لِي مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ به چه کله د شپے (تهجدو ته) رابيدار شو نو داسے به ئې فرمايل :«لا اله الا انت الخ (نشته حقدار د بندګئ سوا ستا نه، اے الله! تهٔ پاک ئې،، او ستا حمدونه دی، زهٔ تا نه د خپلو ګناهونو بخنه غوارم، او تا نه ستا رحمت غوارم، اے الله! زما علم زيات کړے، او د هدايت نه بعد زما زړهٔ مهٔ کږوے، او راکړه ما ته د خپل طرف نه رحمت يقيناً ته ورکونکے ئې»۔ (ابوداوٗد) ۔

تشريح : دا هم د شپے د رابيداريدو دعاء ده او ډيره جَامِعَه دعاء ده۔

اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا: نبی ﷺ هم د علم طلب کوی، په دين کښ د نبی ﷺ نه لوئی څوک نهٔ وو، داسے مسئلے په دين کښ نشته چه نبی ﷺ ته معلوم نهٔ وی. بلکه تولے ورته الله خودلے وے، مګر معرفت بالله، او د هغه علوم، او دنياوی علوم او معارف او بصيرت وغيره زياتيدو ته نبی ﷺ هم محتاج وو پدے وجه د علم سوال کوی او هر چه مونږ عام انسانان يو نو مونږ په دواړو کارونو کښ علم ته محتاج يو، نهٔ راسره د د دين علم (مسائل او احکام) پوره شته او نهٔ زمونږ د الله معرفت او بصيرت وغيره شته. نو مونږ له خو ضرور د علم طلب پکار دے. الله تعالیٰ د هيڅ شی په زيادت طلب کولو حکم نهٔ دے کړے مګر د علم او په زيادت ئې حکم کريدے، دا ډير د کمال شے دے.

وَلَا تُزِغْ قَلْبِي : يعنی داسے فتنے او امتحانات مه راوله چه په هغے سره زما زړه کوږ شي. او د هدايت او حق نه واوړی.

الْوَهَّابُ: هغه ذات ته وائی چه بغير د غوختلو نه ورکړه کوی.

درجة الحديث :اسناده حسن: اخرجه ابوداود (۵۰۶۱) والنسائی فی عمل اليوم والليلة (۸۶۵) وابن حبان (۲۳۵۹) وابن السنی فی عمل اليوم والليلة (۷۶۱) والحاکم فی المستدرك

(٥٤٠/١) وفي اسناده عبد الله بن الوليد وهو المصري وهو لين الحديث كما في التقريب) ولكن قال عبد القادر الارناؤط : في تعليق كتاب الاذكار للنووي (٨١/١) لكن له شواهد بمعناه يتقوى بها) آه وقال حمدي عبد المجيد السلفي في تعليق نتائج الافكار للحافظ ابن حجر (١١٦/١) اسناده حسن ، رواه الحاكم وصححه ووافقه الذهبي۔ (روضة المحدثين ٤٨٧/١٠)

---

٥- وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَبِيتُ عَلٰى ذِكْرٍ طَاهِرًا فَيَتَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ، فَيَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا اِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ اِيَّاهُ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَاَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او معاذ بن جبل ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائيلي دي :« نشته يو مسلمان چه د پاكئ (اَوداسه يا تيمم)په حالت كښې په ذكر سره اُودهٔ شي او بيا د شپے (په يوه حصه كښې) رابيدار شي او د الله نه د څهٔ خير سوال اُوكړي مگر الله به ئے (په دنيا يا آخرت كښې) ورته ضرور وركړي»۔ (احمدؒ، ابوداودؒ)

تشريح : ددے نه دا معلومه شوه چه د شپے په پاكئ او په ذكر سره اُودهٔ كښې كيدل پكار دي، او فضيلت ئے دا دے چه د شپے رابيدار شوے نو چه د الله نه هر څه خير د دنيا يا د آخرت غواړے نو د نبي ﷺ دا وعده ده چه هغه به ئے ضرور پوره كوي۔

يَبِيْتُ : يعني دا خاص دے د شپے د خوب پورے او ددے دپاره ئے طهارت شرط كړو چه په پاكئ به اُوده شوے وي ځكه چه په پاكئ سره اُودهٔ كيدل تقاضا كوي چه د انسان روح خيژي او د عرش لاندے سجده كوي چه هغهٔ مَصدر دے د مواهبو (تحفو) نو څوك چه په طهارت اُودهٔ نهٔ شي، د هغهٔ روح دغه مقام ته نهٔ رسيږي كوم نه چه فيض او انعام دے۔

او په حديث د بيهقيؒ كښې دي : روحونه په خوب كښې خيژولے شي نو د عرش په خوا كښې په سجده باندے ورته امر كيدے شي نو څوك چه په طهارت كښې اُودهٔ شي، هغهٔ د عرش سره سجده كوي او څوك چه په پاكئ سره اُوده نهٔ شي نو هغهٔ د عرش نه بعيد (وړاندے) سجده كوي۔ نو پدے كښې دعوت دے چه د خوب دپاره اَودس مستحب دے۔ (فيض القدير للمناوي ٦٣٥/٥)

او ددے په معنیٰ يو حديث ابن حبان په خپل صحيح (٣٢٨/٣) رقم (١٠٥١) كښې (او بزار او بيهقي) د ابن عمر نه مرفوعاً راوړيدے فرمائي : څوك چه په حالت د طهارت كښې د شپے اُودهٔ شي نو د هغهٔ سره په دننه جامه كښې ملائك شپه تيروي، دا نهٔ رابيداريږي (په يوه حصه د شپه كښې) مگر ملائك وائي : (اللهم اغفر لعبدك فلان) اے الله دے فلاني بنده

ته بخنه اُوکړه) وسنده حسن لغیره قاله الالبانی فی صحیح الترغیب (۱/۱۳۱) رقم (۵۹۷) او دغه شان طبرانی په اوسط کښې د ابن عباسؓ نه په سند جید راوړیدے۔
(فتح الباری ۱۱/۱۰۹)

طَاهِرًا : د طهارت نه مراد اُودس دے، او د دواړهٔ قسمه احداثو او پلیتو نه پاك وی۔

عَلٰی ذِکْرٍ : د ذکر نه مراد تلاوت، تسبیح، تحمید، تهلیل، تکبیر او هغهٔ دعاګانې او ذکرونه دی چه د اُوده کیدو په وخت وئیلے شی۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۵/۲۴۱) وابوداود (۵۰۴۲) والنسائی فی عمل الیوم واللیلة (۸۰۵) (۸۰۶) وابن ماجه (۳۸۸۱)

---

٦- وَعَنْ شَرِيْقٍ الْهَوْزَنِيِّ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلٰى عَائِشَةَ فَسَأَلْتُهَا: بِمَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَفْتَتِحُ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ؟ فَقَالَتْ: سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ اَحَدٌ قَبْلَكَ، كَانَ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ عَشْرًا، وَحَمِدَ اللّٰهَ عَشْرًا، وَقَالَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَشْرًا، وَقَالَ: سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ عَشْرًا، وَاسْتَغْفَرَ اللّٰهَ عَشْرًا، وَهَلَّلَ اللّٰهَ عَشْرًا، ثُمَّ قَالَ : اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ ضِيْقِ الدُّنْيَا، وَضِيْقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ، عَشْرًا، ثُمَّ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او شریق الهوزنی رحمه الله فرمائی: زهٔ د عائشې رضی الله عنها په خدمت کښې حاضر شوم، او د هغې نه مې تپوس اُوکړو، چه رسول الله ﷺ به چه کله د شپې رابیدار شو نو په څه سره به ئې مونځ شروع کولو؟ نو هغې اُوفرمایل: چه تا ما نه د داسې څیز په باره کښې تپوس اُوکړو چه ما نه هیچا ستا نه مخکښې ددې په باره کښې تپوس نهٔ دے کړے (نو واورهٔ چه) رسول الله ﷺ به کله د شپې رابیدار شو نو (اول به ئې) الله اکبر لس کرته، الحمد لله لس کرته، (سبحان الله وبحمده) لس کرته، (سبحان الملك القدوس) لس کرته ، استغفار لس کرته او (لا اله الا الله) لس کرته اُووئیله، بیا به ئې لس کرته داسې اُووئیل : (اللهم انی اعوذ بك من ضیق الدنیا وضیق یوم القیامة) (اے الله ! زهٔ په تاسره پناهی طلب کوم د دنیا د تنګئ نه او د قیامت د ورځې د تنګئ نه) ددے نه پس به ئې مونځ شروع کړو۔ (ابوداؤد) ۔

تعارف د شریق : شریق الهوزنی منسوب دے هوزن بن عوف ته چه دا د یمن نه یوه قبیله ده او شَریق تابعی د حِمص اُوسیدونکے دے، تقریب کښې ئې ورته مقبول وئیلے دے۔

تشریح : یَفْتَتِحُ : بعض علماء وائی ددے نه مراد افتتاح د مونځ نهٔ ده بلکه د خوب نه

رابیداریدو وخت کښې دا دعاء ده۔

بیا د افتتاح معنیٰ دا نۀ ده چه دده نه مخکښې به ئې هیڅ الفاظ نۀ وئیل بلکه دا افتتاح اِضافی ده ځکه چه اول به نبی ﷺ الحمد لله الذی احیانا الخ وئیل دارنګه (ان فی خلق السموات الخ) بیا به ئې دا وئیلې وو خو دے تولو ته افتتاح وئیلے شی۔

۲- لیکن راجح دا ده چه دده افتتاح نه د مانځه افتتاح مراد ده لکه په روایت د ابوداود، نسائی او ابن ماجه کښې دی: عاصم بن حمید فرمائی: ما د عائشےؓ نه تپوس اُوکړو: بأی شیء کان یفتتح رسول الله ﷺ قیام اللیل؟ قالت: لقد سألتنی عن شیء ما سألنی عنه احد قبلك كان اذا قام كبر عشراً، وحمد الله عشراً وسبح عشراً وهلل عشراً واستغفر عشراً وقال: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ وَعَافِنِيْ وَيَتَعَوَّذُ مِنْ ضِيقِ الْمُقَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) انظر المرعاة (۲۰۷/٤) (اسناد حسن صحیح- صحیح ابی داود (۷٤۲)

(نبی ﷺ به د شپے مونځ په کوم ذکر سره شروع کولو) باقی روایت :(هغے اوفرمایل : تا ما نه د داسے څیز تپوس اُوکړو چه ما نه هیچا داسے نۀ دے کړے، نبی به چه کله (مانځه) ته اُودریدو نو لس کرت الله اکبر، لس کرت الحمد لله، لس کرت سبحان الله، لس کرت لا اله الا الله او لس کرت استغفار اووئیلو، بیا به ئې داسے اُوفرمایل : (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ وَعَافِنِيْ، اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ ضِيقِ الْمُقَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) (اے الله ما ته بخنه اُوکړه، ما ته رزق راکړه، ما ته عافیت (روغوالے) راکړه، زۀ په الله پورے پناه غواړم د قیامت د ورځے د تنګئ نه) لهذا دا الفاظ هم ورسره زیاتولے شی۔

سَأَلْتَنِيْ : پدے کښې عائشےؓ د شریق د سوال تحسین او تائید کوی چه ډیر ښۀ تپوس کوے، او اظهار د افسوس دے په غفلت د خلقو ددۀ د حال نه۔

ضِيقِ الدُّنْيَا : (په کسره د ضاد او فتحه دواړه جائز دی) د دنیا د تنګئ نه مراد هغه مصائب او تکالیف دی چه د هغے په وجه سینه تنګه شی او زړۀ کوږ شی، ځکه چه چا باندے مشقت د مرض، قرض، یا ظلم وی نو هغه باندے زمکه تنګه شی۔

درجة الحدیث : اسناده حسن او صحیح : اخرجه احمد (۱٤۳/٦) ابوداود (۵۰۸۵) والنسائی (۲۸٤/۸) وابن ماجه (۱۳۵٦) وفی اسناده بقیة بن الولید وهو مدلس الا ان الحافظ قال فی نتائج الافکار (۱۱۷/۱) الا انه قد امن ذلك فی الاسناد لانه قد وقع فی روایة النسائی تصریحه بتحدیث شیخه له به (وكذا فی ابن السنی) وشیخه عمر بن جعثم لم اقف فیه علی جرح ولا تعدیل الا ان ابن حبان ذکره فی الثقات وشیخ شیخه شریق ما روی عنه سوی الازهر ولم اقف فیه علی جرح ولا تعدیل لکن وجدت له متابعاً انظر روضة المحدثین

٤٨٨/١٠) ونتائج الافكار (١١٨/١) وصححه الالبانی فی صحیح ابن ماجه (١٣٥٦)
واخرجه ابوداود فی الصلاة (٧٦٦) من طریق اخرئ عنها دون قوله (وقال سبحانك الملك القدوس عشراً) ودون الاستعاذة من ضیق الدنیا واسناده صحیح فلو آثره المؤلف لکان اولیٰ وله طریق ثالث فی المسند)

## الفصل الثالث

٧- عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ، ثُمَّ يَقُوْلُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالٰى جَدُّكَ، وَلَااِلٰهَ غَيْرُكَ، ثُمَّ يَقُوْلُ: اَللهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا، ثُمَّ يَقُوْلُ: اَعُوْذُ بِاللهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ، مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ مِنْ هَمْزِهٖ وَنَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَزَادَ اَبُوْدَاوُدَ بَعْدَ قَوْلِهٖ: «غَيْرُكَ». ثُمَّ يَقُوْلُ: «لَا اِلٰهَ اِلَّااللهُ». ثَلَاثًا وَفِيْ آخِرِ الْحَدِيْثِ: «ثُمَّ يَقْرَأُ».

ترجمه : ابوسعید خدری ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله د شپے (تهجدو) ته راپاڅیدو نو الله اکبر به ئے اُووئیلو، ددے نه پس به ئے وئیل : (سبحانك اللهم الخ) (اے الله تهٔ پاك ئے او ستا دپاره حمدونه دی، ستا نوم برکت والا دے، او ستا شان لوئی دے، او نشته حقدار د بندگئ سوا ستا نه) بیا به ئے وئیل: الله اکبر کبیراً (الله ډیر لوئی دے لوئی) بیا به ئے فرمایل: (اعوذ بالله السمیع العلیم من الشیطان الرجیم من همزه ونفخه ونفثه) (زهٔ په الله آوریدونکی او پوهه سره پناهی غواړم د شیطان مردود نه، د هغهٔ د وسوسے نه، د هغهٔ د تکبر نه او د هغهٔ د شعر وئیلو نه) (ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ) او ابوداودؒ په خپل روایت کښں د« ولا اله غیرك» نه روستو دا الفاظ زیات نقل کړیدی : بیا به ئے درے کرته داسے وئیل : « لا اله الا الله » (نشته حقدار د بندگئ سوا د الله نه) او د حدیث په آخر کښں دی : بیا به ئے (داعوذ بالله الخ) نه روستو قراءت کولو۔

تشریح : دا سبحانك اللهم په نفل مانځه کښں راغلے ده مگر په مسلم کښں راغلی دی چه عمر ؓ دا په فرض مانځه کښں په جهر وئیلے ده چه خلقو ته ددے سنیت اُوښائی، نو کوم خلق چه دا وائی چه نور اذکار سویٰ د سُبحانك اللهم نه به نهٔ وائی نو دا غلط وائی لکه ددے تفصیل په څلورم جلد کښں ذکر شویدے۔

ثُمَّ يَقْرَ : یعني ددے ذکر نه به ئے روستو قراءت شروع کولو۔

وَتَبَارَكَ اسْمُكَ : یعنی ستا نوم کښں ډیر خیر دے نو پاتے لا په مسمیٰ کښں۔

وَتَعَالٰى جَدُّكَ : یعنی ستا عظمت او مرتبه لویه ده، یا ستا غنیٰ (مالداری) اُوچته ده

هيڅ ته محتاجه نۀ ده. هَمْزِهٖ : يعنی وسوسه او ګمراه کولو د هغۀ نه، دا رنګه ددے تفسير په جنون (ليونتوب) هم شويدے. وَنَفْخِهٖ : يعنی تکبر او عجب د هغۀ.
وَنَفْثِهٖ : سحر او شعر د هغۀ. او ددے تفصيلی معانی په باب ما يقرأ بعد التکبير کښې تير شويدے.
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٧٧٥) والترمذی (٢٤٢) والنسائی (٨٩٨) وراجع الحديث (٦) باب ما يقرأ بعد التکبير

---

٨- وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ كَعْبِ الْاَسْلَمِيِّ ، قَالَ: كُنْتُ أَبِيتُ عِنْدَ حُجْرَةِ النَّبِيِّ ﷺ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَقُوْلُ: «سُبْحَانَ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ» الْهَوِيَّ، ثُمَّ يَقُوْلُ: «سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ» الْهَوِيَّ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَلِلتِّرْمِذِيِّ نَحْوَهُ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

---

ترجمه : او ربيعه بن کعب اسلمی ﷺ فرمائی: ما د نبی ﷺ د حُجرے په خوا کښې شپه تيرَوله نو ما به د هغۀ نه اَوريدل چه کله به د شپے راپاڅيدو نو ډير ساعت به ئے داسے وئيل: «سبحان رب العالمين» (پاکی ده الله لره چه رب د مخلوقاتو دے) بيا به ئے ډير ساعت پورے فرمايل :«سبحان الله وبحمده» (الله لره پاکی ده او د هغۀ دپاره حمدونه دی) (نسائیؒ) او ترمذیؒ ددے په شان روايت نقل کړيدے او دا ئے وئيلی دی چه دا حديث حسن صحيح دے.
تشريح : يعنی نبی ﷺ به چه د خوب نه رابيدار شو نو ډير وخت پورے به ئے سبحان رب العالمين او سبحان الله وبحمده وئيل، دے دپاره چه د قرآن کريم پدے آيت عمل اُوکړی (فسبح باسم ربك العظيم)
الْهَوِيَّ : دا د ظرف صيغه ده يعنی ډيره زمانه. بعض وائی دا د شپے پورے مختص دے.
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه فی الادب (٢٤٩/٢) وسنده علی شرط مسلم وقد اخرج طرفه الاول بزيادة فيه : (٥٢/٢) واخرجه ابوعوانة فی صحيحه (٣٠٣/٨١/٢ بتمامه) وصحيح سنن ابی داود (١١٩٣) وابن ماجه (٣٨٧٩).



# باب التحريض على قيام الليل

## قيام الليل (تهجدو) باندې د تيزي (او ترغيب) ورکولو بيان

تحريض، ترغيب او تيزي ورکولو ته وائي. او دلته دا ترغيب په احاديثو سره ورکړې شويدې او په قرآن کريم کښې هم دا ترغيب ورکړې شويدې: ﴿ ومن الليل فتهجد به نافلة لك ﴾(يعنى د شپې په څه حصه کښې تهجد کوه دا به ستا دپاره زياتى حصه وى)

### د تهجدو فضائل او فوائد

١- پدې سره انسان مقام محمود ته رسى (يعنى اُوچته مرتبه ورته حاصليږى) لکه دغه آيت آخر کښې دى (عسى ان يبعثك مقاماً محموداً) . علماء فرمائى که څوك غواړى چه ما الله اُوچتې مرتبې ته اُورسوى نو هغه دې د تهجدو پابندى کوى.

٢- الله د مومنانو صفت کړيدې چه دوى د خپلو بسترو نه پاڅيږى: (تتجافى جنوبهم عن المضاجع يدعون ربهم خوفاً وطمعاً) (كانوا قليلا من الليل ما يهجعون)

بيا په احاديثو کښې د تهجدو ډير فوائد او فضائل راغلى دى چه تقريباً (٢٤) ته رسيږى. چه مونږ جمع کړى ورنه د سلو نه زياتې فائدې پکښې دى.

١- يو دا چه دا د ايمان يوه شعبه (څانګه) ده او د مومنانو خصوصى صفت دې. او نبى ﷺ فرمائى: (افضل الصلاة بعد الفريضة صلاة الليل (مسلم برواية ابى هريرة) د فرض مانځه نه پس بهترين مونځ د شپې مونځ دې.

٢- دا سبب د دخول د جنت دې. لکه حديث د عبد الله بن سلامؓ کښې راځى: (يا ايها الناس ! اَفْشُوا السَّلام وَاَطْعِمُوا الطَّعَامَ، وَصِلُوْا الارحامَ وصَلُّوْا بالليل والناس نِيَامٌ، تَدْخُلُوا الجَنَّةَ بِسَلَامٍ) (متفق عليه) او بل حديث کښې دى: (ان فى الجنة لغرفاً يرى ظاهرها من باطنها وباطنها من ظاهرها اعدها الله لمن الان الكلام واطعم الطعام وادام الصيام وصلى بالليل والناس نيام) (ترمذى، احمد)

٣- په تهجدو کښې د الله د امر او حکم تعميل دې. ځکه هغه په خپل کتاب کښې بار بار قيام الليل ذکر کړيدې.

٤- دا د نبى ﷺ هميشه عمل وو او د هغهٔ اتباع کښې هدايت دې.

۵- دا د پخوانو اُمتونو او ددې اُمت د نیکانو طریقه ده۔
۶- تهجدو ته د راپاڅیدو په وجه د شیطان غوټې کولاویږی کومې ئې چه د انسان سر ته وهلې وی کله چه هغه اُوده شی۔
۷- څوك چه تهجد کوی نو د هغهٔ نفس به طیب (مزیدار) تازهٔ وی او که تهجد اُونکړی نو سُست پست او خبیث النفس به راپاڅیږی نو په تهجدو کښې تازګی او خوشحالی ده او د سستی او خباثت نه خلاصیدل دی۔
۸- تهجدو کښې د الله په نعمتونو باندې شکریه ده او شکر عظیم عبادت دے (افلا اکون عبداً شکوراً)
۹- پدې کښې انسان د شیطان د بول (متیازو) نه خلاصیږی ځکه چه کله انسان قیام اللیل نهٔ کوی نو شیطان د هغه په غوږونو کښې متیازې کوی۔ نو دې فائدې ته بیداریدل پکار دی۔
۱۰- پدې سره انسان د فتنو نه خلاصیږی لکه روستو به حدیث راشی : (ما ذا انزل من الفتن)۔ ۱۱- د تهجدو وخت د دعا ګانو او حاجتونو غوختلو وخت دے (من یدعونی فاستجیب له)۔ ۱۲- په شپه کښې یو وقت دے چه مسلمان د هغې سره موافق شی نو که دنیا او آخرت هر خیر غواړی الله به ئې ضرور ورکړی۔ او دا په هره شپه کښې وی۔
۱۳- دا رب ته د نزدیکت عظیم سبب دے۔
۱٤- مکفرة للسیئات (پدې سره ګناهونه رژیږی)۔
۱۵- منهاة عن الاثم : د ګناهونو نه منع کونکے دی)
۱۶- دا بنده ته د الله د خندا سبب دے۔
۱۷- د شپې په مینځنۍ حصه کښې انسان الله ته ډیر نزدې کیږی۔
۱۸- څوك چه خپله رابیدار شی او ښځه راپاڅوی نبی ﷺ هغه دپاره د رحمت دعا کړیده۔
۱۹- د فرضو نه بعد روستو ددې درجه ده۔
۲۰- څوك چه د شپې مونځونه کوی نو د ورځې ګناهونو نه محفوظ کیږی۔
۲۱- څوك چه د شپې دوه رکعاته تهجد اُوکړی نو په ذاکرین او ذاکراتو کښې به اُولیکلے شی۔
۲۲- نبی ﷺ فرمائی : (اشراف امتی حملة القرآن واصحاب اللیل) زما د امت شریفان خلق د قرآن حاملین او د شپې مونځ ګوزار دی۔
۲۳- الله د اجر ورکولو نه نهٔ ستړے کیږی تردې چه بندګان ستړی شی۔
۲٤- الله د هغهٔ سړی نه تعجب کوی چه د خپل محبوب او اهل د مینځ نه د بسترې نه راپاڅیږی۔

۲۵- دا تهجد په ذکر کښې داخليږي بلکه اعلیٰ درجه ذکر دے۔ او حافظ ابن القيم په الوابل الصيب کښې د ذکر اوويا فائدے ذکر کړيدي۔

۲٦- انسان ته د ښۀ سړي توب نوم ورکولے شي کله چه تهجد کوي۔ (نعم الرجل عبد الله لو کان يصلي من الليل)

۲۷- عبد الله بن ابی موسی فرمائی : ما ته عائشۀ اُوفرمايل : په تا لازم دي چه قيام الليل اُوکړے ځکه چه رسول الله ﷺ به دے ته ضرور راپاڅيدو مګر که بيمار به شو نو بيا به ئے په ناسته قراءت کولو۔ نو دومره اهميت لري چه نبی ﷺ به په حالت د مرض کښې هم نۀ دی پريخی۔ (التهجد لابن ابی الدنيا ص ۱۰۲)

## اقوال العلماء فی فضائل التهجد

۱- معاويه بن قرةؒ وائی : زۀ د حسن بصريؒ خوا ته ورغلم او هغۀ په خپل کټ باندے تکيه وهلې وه، ما ورته عرض اُوکړو، کوم عمل الله ته زيات محبوب دے ؟ هغۀ اُوفرمايل (الصلاة فی جوف الليل والناس نيام)۔

(په شپه کښې مونځ کول چه خلق اُودۀ پراته وي)۔

۲- عبد الله بن مسعودؓ فرمائی: د شپے مونځ د ورځے د مانځه نه دومره غوره دے لکه پټه صدقه چه په ښکاره باندے غوره ده۔ (واسناده صحيح)

۳- د يعلیٰ بن عطاء ترور سلمیٰ فرمائی : ما ته عمرو بن العاص اُوفرمايل : اے سلمیٰ ! يو رکعت د شپے د لس رکعاتو د ورځے نه بهتر دے۔ (اسناده حسن)

٤- عبد الله بن ابی الهذيل فرمائی : د بنده په مينځ د شپه کښې مانځه ته اُودريدل دده دپاره نور دے په ورځ د قيامت چه دده مخے ته به روان وي۔

۵- امام اوزاعيؒ فرمائی :ما ته دا خبره رارسيدلے ده چه څوک اُوږد قيام الليل کوي نو الله به د هغۀ نه د قيامت په ورځ تخفيف راولی۔

٦- حسن بصريؒ فرمائی : د مومنانو شرافت قيام الليل دے او د هغوی عزت د خلقو د لاسونو نه استغناء ده۔ او دا په مرفوع حديث کښې باسناد صحيح هم راغلی دی۔

۷- اَجلحؒ فرمائی : ما سلمه بن کهيلؒ په خوب کښې اُوليدو، ما عرض اُوکړو : کوم عمل تا افضل اُوموندو ؟ هغۀ اُوفرمايل : قيام الليل۔ (سند حسن)

۸- اسحاق بن سويد وائی : پخوانو به د ورځے روژے او د شپے تهجد سياحت ګنړلو۔ (اسناده حسن)

۹- وهب بن منبه فرمائي: درې څيزونه د دنيا روح دے ۱- د ملګرو ملاقات. ۲- روژه ماتے د روژه دار. ۳- په آخر د شپه کښې تهجد کول.

۱۰- وهب بن منبه فرمائي: قيام الليل سره خکته انسان شريف جوړيږي او ذليل پرے عزتمند کيږي او د ورځے روژے د مومن نه شهوات ختموي او د مومن دپاره د جنت د داخليدو نه مخکښې راحت نۀ وي.

۱۱- ثابت بُنَاني (د انس بن مالك شاګرد) به د ورځے روژه وو او د شپے به ئے عبادتونه کول او دا به ئے فرمايل: زۀ په خپل زړۀ کښې ډير خوندور شے د قيام الليل نه بل څۀ نۀ مونده کوم. او هغۀ دا هم فرمايلي دي: اے الله کۀ تۀ چا ته په قبر کښې مونځ ورکوے نو ما تۀ ئے راکړه. هشام فرمائي: مونږ د ثابت البناني نه په اوږد قيام اوپے خوبيږ باندے هيڅوك نۀ دے ليدلے، يوځل مونږ د هغۀ سره مکے ته سفر کښې ملګري شو نو کۀ مونږ به يو ځائے کښې پړاؤ واچولو نو دا به په مانځه ولاړ وو، او تا به هر کله چه ويښ ليدلو. او په لاره چه به روان وو نو يا به ئے (د الله ذکر) ژړا کوله او يا به ئے د الله دکتاب تلاوت کولو.

۱۲- معتمر بن سليمان فرمائي: کله چه به د رمضان مياشت داخله شوه نو د کور ټول اهل به ئے راپاڅول او دا به ئے فرمايل: پاڅيږئ، شايد چه دے کال نه بعد ئے اونۀ مومئ. (اسناده حسن)

۱۳- داود الطائي فرمائي: ما د هيچا سره په هيڅ شي حسد نۀ دے کړے مګر د هغۀ چا سره چه تهجد به ئے کول، ما به وئيل چه ما ته قيام الليل نصيب شي. (اسناد حسن)

ام سعيد بن عقلمة طائيه وائي: زمونږ او د داود طائي ترمينځ وړوکے شان ديوال وو، ما به د داوډ عامه شپه حرکات اوريدل چه آرام به ئے نۀ کولو، او ډير کرت به ئے په يو آيت باندے خوش آوازي اُوکړه نو ما به ګمان اُوکړو چه ټول نعمتونه د دنيا ددۀ په ترنم کښې راجمع دي، او دا به په کور کښې يواځے وو، ډيوه به ئے هم نۀ بلوله.

۱٤- ابو المغيره نضر بن اسماعيل فرمائي: په تيم الله قبيله کښې يو شيخ وو، د هغۀ سره څۀ ځوانان عابدان يو ځائے شو چه ددۀ د پناه ځائے صرف مسجد وو او دغه هلکان به هم ورسره لازم اُوسيدل او د هغۀ نه به ئے آداب زدۀ کول. دے فرمائي: کله چه به شپه شوه نو په ابتداء کښې به ئے معمولي شان خوب اُوکړو. بيا به راپاڅيدو او آواز به ئے اُوکړو: (من لقرة العين وخطبة الکواعب) (د سترګو يخوالي او د پيغلو نکاح ته څوك تيار دے؟) نو دغه عابدانو هلکانو به د خپلو بسترو نه راټوپ کړل لکه زمري چه خپلو ملګرو ته راپاڅيږي. نو دوي به په همدے حالت وو په تهجد او ژړا او دعاء ګانو کښې تر صبا راختلو

پورے۔ او دوی پدے کار باندے همیشه وو تر دے چه پدے حالت مړۀ (هم) شو۔ ابو المغیرة وائی : ما دغه شیخ لیدلے دے چه اُوږد بدن والا وو د پخوانو عربو په شان او سختے خرمنے والا وو۔ او په مخ باندے ئے هیجان او زیړوالے غالب وو، او ما چه به هغۀ ته کتل نو زما او د هغۀ ترمینځ به رعب او رنړا حائل کیده۔او دا غټ اندامونو والا شیخ وو۔ (سنده ضعیف) ولکن فی القصة عبرة) راجع «قیام اللیل والتهجد» لابن ابی الدنیا۔

۱۵ – اسماعیل بن مسلمؒ فرمائی: حسن بصریؒ ته اُووئیلے شو : د تهجدو گزارو خلقو دا مخونه د نورو خلقو نه ولے ډیر ښائسته وی؟ هغۀ اُوفرمایل : وجه دا ده چه دوی الله ته ځان اُوزګار کړے وی، نو الله ورته د خپل نُور نه نُور ورکړے وی۔

۱۶ – مجاهدؒ فرمائی: کله چه به ژمے راغلو نو عبید بن عمیر به فرمایل : اے اهل قرآن! ستاسو د مانځه دپاره شپه اُوږدۀ شوه او د روژو دپاره ورځ لنډه شوه نو بس غنیمت ئے اُوګڼئ۔

۱۷ – تمیم داری نه یوه شپه تهجد پاتے شو نو په بله شپه بالکل اُودۀ نۀ شو ځانله ئے سزاء ورکوله۔ (فضل قیام اللیل والتهجد للآجری ت ۳۶۰) ص (۱۰)

۱۸ – فضیل بن عیاض فرمائی : کله چه تۀ په قیام اللیل او صیام النهار قادر نۀ شے نو پوهه شه چه ته پوره محروم ئے، او ګناهونه دِے زیات شویدی۔ احیاء علوم الدین (۳۵۵۱)

او د تهجدو فضائل خو په اقوالو د علماؤ کښې ډیر زیات دی چه ټول پدے دلالت کوی چه هر مسلمان له خاصکر هغه څوک چه د ورځے کاروبار وغیره کوی ډیر ضروری دے ځکه چه د ورځے هم په غفلت کښې او شپه هم په غفلت کښې تیرول ندی پکار، ددے دا مطلب هم نه دے چه څوک د ورځے په تعلیم او تعلم او درس او تدریس کښې مشغول وی نو هغه به تهجد نه کوی نه بلکه هغوی له هم څه نا څه حصه ضرور کول پکار دی اګرکه ډیر نشی کولے۔ ځکه چه د تعلیم او تعلم جدا فوائد دی او د عبادتونو او تهجدو جدا فوائد دی۔

## الفصل الاول

۱ – عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«یَعْقِدُ الشَّیْطَانُ عَلٰی قَافِیَةِ رَأْسِ أَحَدِکُمْ اِذَا هُوَنَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ، یَضْرِبُ عَلٰی کُلِّ عُقْدَةٍ : عَلَیْكَ لَیْلٌ طَوِیْلٌ فَارْقُدْ، فَاِنِ اسْتَیْقَظَ فَذَکَرَ اللهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَاِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَاِنْ صَلّٰی انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَأَصْبَحَ نَشِیْطًا طَیِّبَ النَّفْسِ، وَاِلَّا أَصْبَحَ خَبِیْثَ النَّفْسِ، کَسْلَانَ». مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

ترجمه : ابو هریره ﷛ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : «کله چه په تاسو کښې

شخص (د شپې) اُودهٔ شي نو شيطان د هغهٔ د سر آخر (يعنى څټ) ته درې غوټې آچوي، هرهٔ غوټه (دې وئيلو سره) وهي چه په تا باندې اُوږدهٔ شپه (پرته) ده، (ډيره شپه پاتې ده روستو به راپاڅيږې) اُودهٔ شهٔ !، نو كه هغهٔ شخص رابيدار شي او د الله ذكر اُوكړي نو يوه غوټه كولاوه شي، بيا كهٔ اَودس اُوكړي نو بله غوټه كولاوه شي، بيا كهٔ مونځ اُوكړي نو (دريمه) غوټه كولاوه شي، لهذا داسې شخص به خوشحال او پاك نفس والا صبا كړي او كهٔ داسې اُونكړي نو هغهٔ به پليت نفس والا، سُست صبا كړي»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : قَافِيَة : آخر الرأس ته وائي يعني څټ۔ او قافيه د هر شي آخر ته وائي۔

يَضْرِبُ : يعنى چُپ اَچوي او چپ ئې دا دې چه (عليك ليل طويل)۔ يعنى سر ورله ټپوي چه اُودهٔ شهٔ !۔

كَسْلَانَ : يعنى كه تهجد اُونكړي نو سُست به وي خوله به ئې وازه وازه كيږي او كه دوكاندارئ ته اُوځي نو بس د سحر نه به ئې جګړې شروع شي۔

## شيطان د اودهٔ انسان سر ته غوټې اچوي

يَعْقِدُ: بيا آيا دا غوټې اچول په حقيقت بناء دي او كه مجاز دي؟ ۔

۱– بعض وائي دا مجاز دې او بطور مثال وئيلې شويدې يعنى لكه څنګه چه ساحر په خپل سحر باندې خلق راټړي او بندوي نو دغه شان شيطان په خپله وسوسه سره خلقو ته راحت او خوب ښائسته كوي او د تهجدو نه ئې غافله كوي۔ او يا دا كنايه ده ددې نه چه شيطان اُوده انسان د قيام الليل نه منع كوي په دغه مخكني قول سره چه (عليك ليل طويل)۔ او دا ځكه په حقيقت بناء نهٔ دې چه د انسان په څټ كښې خو څه غوټې نهٔ ښكاري۔ دارنګه كله د چا سر ګنجې وي۔ مګر دا قول ضعيف دې۔

۲– د محققينو قول دا دې چه دا په حقيقت باندې محمول دې۔ او د يعقد الشيطان نه معنىٰ دا نه ده چه ويښتو له غوټې وركوي بلكه د شيطان سره يوه رسي وي هغې له درې غوټې وركوي او په هغې باندې چُپ كوي او د هغې اَثر په دې انسان كيږي لكه د جادو په شان۔ لكه په روايت د ابن ماجه كښې داسې الفاظ دي : (يعقد الشيطان على قافية رأس اَحَدكم بالليل بحبل فيه ثلاث عقد) او په روايت د احمد كښې دي : (اذا نام احدكم عَقَدَ على رأسه بِجَرِيْرٍ) (كله چه يو تن په تاسو كښې اُودهٔ شي نو د هغه سر ته په پړي سره غوټې اَچوي) (او جَرِيْر رسئ ته وائي) او ددې غوټو كولاوول په ذكر د الله سره دي۔

طَيِّبَ النَّفْسِ : كه څوك اُوګدهٔ تهجد اُوكړي نو هغه د ورځې ډير خوشحاله وي او كه لذ

اُوشو نو گوزاره حال خوشحالي وي او دا ډیره مجربه نسخه ده۔
مطلب د حدیث دا چه د الله په ذکر او اُودس او مانځه سره د شیطان غوټے کولاویږي او انسان د شیطان د شر نه خلاصیږي نو انسان د ورځے نشیط صبا کړي ځکه چه د شیطان غوټے ئے د ځان نه اُرتولي وي کوم چه دهٔ لره سست جوړوي، او طیب النفس وي (خوشحاله وي) پدے وجه چه په شپه کښې ئے د نیکئ اعمال کړي وي، او که داسے نهٔ وي نو بیا خبیث النفس وي یعني متغیر وي، شیطان پرے غالب شوے وي او غوټے ئے پکښې کلکے کړي وي او د نیك عمل د نشاط او تازګئ نه ئے سُست کړے وي۔
بیا ددے حدیث د بل حدیث سره منافات نشته چه په هغے کښې دا دي چه انسان به ځان ته داسے نهٔ وائي : (خَبُثَتْ نَفْسِيْ) زما نفس خبیث شو۔ بلکه داسے به وائي : (لَقِسَتْ نَفْسِيْ) یعني نفس مے متغیر (ککړ، ګډوډ، بے سوره، تنګ) شو۔ وجه دا ده چه خباثت د دین فساد ته وائي۔ فسق ته وائي نو مسلمان ئے ددے نه منع کړو چه ځان ته به د دین په اعتبار بد نسبت نهٔ کوے۔ دین به د ځان نه نهٔ جدا کوے۔ او نبي ﷺ پخپله بعض افعالو ته خباثت وئیلے دے پدے سره ئے مقصود تحذیر دے امت ته د دغه افعالو اختیارولو نه۔ او دا اخبار دے د صفت د غیر نه۔ (المنتقى شرح الموطأ ۱/٤٣٤) (الدیباج علی المسلم ۲/۳۸۲) للسیوطیؒ

---

۲– وَعَنِ الْمُغِيْرَةِ، قَالَ: قَامَ النَّبِيُّ ﷺ حَتّٰى تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ، فَقِيْلَ لَهُ: لِمَ تَصْنَعُ هٰذَا وَقَدْ غُفِرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ ؟ قَالَ: «أَفَلَا أَكُوْنُ عَبْدًا شَكُوْرًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او مغیره ؓ فرمائي: نبي ﷺ به (د شپے مانځه کښې دومره) قیام کولو تردے چه د هغهٔ دواړه قدمونه مبارك به اُوپړسیدل، نو هغهٔ ته اُووئیل شو چه یارسول الله ﷺ تاسو ولے داسے اُوګد عبادت کوئ او حال دا چه تاسو ته الله تعالیٰ مخکښې او روستني ګناهونه معاف کړي دي؟ رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « آیا زهٔ د الله شکر ګزار بنده جوړ نهٔ شم »۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)
تشریح : مطلب دا دے چه هرکله الله تعالیٰ زما ګناهونه معاف کړي دي او ما ته ئے د دین او دنیا د ټولو نه اعلیٰ مقام راکړے دے نو آیا ما دپاره دا لائق نهٔ ده چه زهٔ د عبادت مشقت او محنت برداشت کړم او د الله تعالیٰ د بیشمار رحمتونو او نعمتونو شکر ګزار بنده جوړ شم۔ او ددے صحابي ګمان دا وو چه په عبادت کښې مشقت برداشت کولو سبب یا یره د ګناهونو نه ده یا رجاء او امید د مغفرت دے۔ نو نبي ورته دا اُوخودله چه نهٔ ددے

دپاره یو بل سبب هم دے چه هغۀ ډیر اتم او اکمل دے او هغۀ د الله تعالیٰ د نعمتونو شکر او د هغۀ حق اداء کول دی۔

تَوَرَّمَتْ : تَوَرُّمْ د خپو پړسیدلو ته وائی دیته دُوری بیماری وائی دا اکثر د دربانچیانو وی چه په دروازو کښې اوګدۀ ولاړ وی او د اُوګدو مونځونو کونکو وی۔

اَفَلَا اَكُوْنُ عَبْدًا شَكُوْرًا : دا فاء سببیه ده مسبب ئې محذوف دے ددے اصل داسے دے : (أ اترك قیامی وتهجدی لما غفر لی فلا اكون عبداً شكوراً) یعنی آیا زۀ قیام او تهجد پدے وجه پریدم چه ما ته الله بخنه کړیده او زۀ شکر ګزار بنده جوړ نۀ شم، یعنی ما ته د الله بخنه کول سبب دے ددے چه زۀ قیام او تهجد اُوکړم دپاره د شکر کولو د الله نو زۀ به ئې څنګه پریدم، څنګه به شکر نۀ کوم او حال دا چه ما سره ئې ډیر احسانات کړیدی) (طیبیؒ)

ددے نه یوه فائده دا معلومه شوه چه عبادت ځانله د ګناهونو د معاف کولو دپاره نۀ وی بلکه دا د الله حق ادا کولو او د هغه د نعمتونو د شکر دپاره وی۔

۲– دویم دا چه عبادت اعلیٰ درجه د شکر ده، شکر ځانله دے ته نۀ وائی چه انسان (ش، ك، ر) استعمال کړی بلکه شکر دا دے چه په بدن باندے د الله عبادت اُوکړی او په زړۀ کښې د الله سره محبت او تعظیم اُوساتی، او په خوله باندے د هغه حمدونه اووائی۔ عوام خلق شکر صرف (الحمد الله) وئیلو ته وائی او باقی عبادتونه شکر نۀ ګڼړی۔ دا صحیح نۀ ده۔

۳– بله دا چه تهجد کولو سره انسان شکر ګذار جوړیږی۔

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ : یعنی ستا ګناهونه مخکنی او روستنی معاف شویدی۔ ددے ګناهونو نه مراد یا خلاف الاولیٰ کار دے، چه هغۀ د غیر انبیاؤ په حق کښې نیکی شمارلے شی لکه راغلی دی : (حسنات الابرار سیئات المقربین) (د نیك عملو نیکیانے د مقربینو دپاره ګناهونه حسابیږی)۔

---

۳– وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ ﷺ رَجُلٌ، فَقِيْلَ لَهُ: مَا زَالَ نَائِمًا حَتّٰى أَصْبَحَ، مَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ، قَالَ: «ذٰلِكَ رَجُلٌ بَالَ الشَّيْطَانُ فِيْ أُذُنِهٖ» أَوْ قَالَ: «فِيْ أُذُنَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی : د نبی ﷺ په مجلس کښې د یو سړی تذکره اُوشوه، اُووئیلے شو چه دغه فلانے شخص (ټوله شپه) همیشه اُودۀ وو تردے چه صبا ئې کړو، مانځه ته نۀ وو پاڅیدلے، نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « دا داسے شخص دے چه شیطان ددۀ په غوږ کښې– یا ئې داسے اُوفرمایل: چه ددۀ په دواړو غوږونو کښې بول

(متیازې) کړې دي»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشريح : د الصلاة نه مراد د شپې مونځ دې۔ او همدا ظاهر دې ځکه ئې د تهجدو په باب کښې راوړې دې۔ بعض وائی : د سحر مونځ مراد دې۔ دا تاويل يو خو د مصنف د صنيع (طريقې) خلاف دې۔ دويم دا چه (مازال نائماً حتى اصبح) لفظ دليل دې ځکه چه د شپې اُودهٔ وو او سحر رابيدار شويدې۔ نو د سحر مونځ ئې کړيدې۔

۳– دريم دا چه څوك د سحر مونځ اُونکړي نو د هغه په باره کښې دا نشي وئيلې چه شيطان ددهٔ په غوږ کښې مُتيازې کړيدي بلکه هغه ته خو احاديثو کښې کافر وئيلې شويدې۔ سخته فتوی ئې ځکه اُونکړه چه د تهجد پريخودل کفر او شرك او کبيره گناه نهٔ ده۔

## شيطان د انسان په غوږ کښې متيازې کوي

بَالَ الشَّيْطَانُ : شيطان څنګه بول اُوکړې؟ علامه قرطبیؒ وائی : دا په حقيقت حمل دې ځکه پدې کښې هيڅ محال والې نشته ځکه چه دا خبره ثابته ده چه شيطان خوراك، څکاك کوي، تيږونه اَچوي، نکاح کوي۔ نو ددې هم هيڅ مانع نشته چه بول اُوکړي۔ او مونږ دې ددې په حقيقت پوهه نشو ځکه په هره خبره باندې ځان پوهه کول خو ضروري نهٔ دي۔ او نبی ﷺ وئيلي دي نو بس په حقيقت باندې دې حمل شي۔ او ايمان راوړل پرې ضروري دي۔

۲- بعض وائی : نبی ﷺ خو عربي وو او په عربئ کښې دا قسم مُحاوره استعماليږي د غفلت او فساد دپاره لکه د يو سړي په غوږ کښې بول اُوشي نو هغهٔ خراب شي نو بيا د چرګ بانګ نهٔ آوري او د مؤذن اَذان نهٔ آوري نو دغه شان دا سړې هم غافله پروت دې لکه چه ددهٔ په غوږ کښې بول شوي وي او دا خبره امام خطابیؒ ذکر کړيده۔ والعرب تقول : بال في كذا، اذا افسده) وكذا في شرح البخاري لابن بطال ١٤٧/٥)

۳- بعض وائی : دا کنايه ده د استخفاف او استهانت د شيطان نه چه شيطان دې انسان پورې داسې مسخرې او توقې کوي او داسې ئې سپکاوې کړې کويا کښې چه دا ئې د تښئ په شان ګرځولې دې کومه چه د بول ويراز دپاره تياره شوي وي، يعنې څوك چه تهجدو ته نهٔ پاځي نو شيطان پرې دا سې غلبه کوي او داسې سپکاوې کوي کويا کښې دا ئې بيت الخلاء ده، متيازې پرې کوي يعنې شيطان ته ډير سپك ښکاري۔

او سترګه ئې ذکر نهٔ کړه بلکه غوږ ئې ذکر کړو سَره ددې نه چه د خوب مناسبت د سترګې سره زيات دې، اشاره ده چه خوب ئې ډير درونډ دې چه په آوازونو هم نهٔ راپاځيږي۔

☆– دارنګه د اذان د آوريدو تعلق د غوږ سره دې۔

عبد الله بن مسعودؓ فرمائي : (کفی لامرئ من الشر ان یبول الشیطان فی اذنه) (د سړي دپاره پوره شر دا دے چه شیطان (په هغهٔ قادر شي او) د هغه په غوږ کښې متیازے اُوکړي) (شرح ابن بطال)

٤- وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: اِسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَيْلَةً فَزِعًا يَقُوْلُ: «سُبْحَانَ اللهِ! مَا ذَا أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْخَزَائِنِ؟! وَمَاذَا أُنْزِلَ مِنَ الْفِتَنِ؟! مَنْ يُوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ» - يُرِيْدُ أَزْوَاجَهُ- «لِكَيْ يُصَلِّيْنَ؟ رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الآخِرَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ام سلمه رضی الله عنها فرمائي : یوه شپه رسول الله ﷺ ګبرا هټ سره رابیدار شو وے فرمایل :« سبحان الله ! (تعجب دے) نن شپه څومره خزانے نازلے شوے؟ او څومره اندازه فتنے نازلے شوے، آیا څوك شته چه ددے حجرو والا (بی بیانے) راپاڅوي؟، د رسول الله ﷺ مراد ازواج مطهرات وے، دے دپاره چه دوی مونځونه اُوکړي، (او د الله رحمت حاصل کړي او د عذابونو او فتنو نه بچ شي ځکه) اکثرے زنانه په دنیا کښې (خو) کپړے اغوستونکي دي لیکن په آخرت کښې به بربنډے وي»۔ (بخاریؒ)

تشریح : یعنی خوب نه په یره او ګبرا هټ سره بیدار شو ځکه چه خوب کښې ئے فتنے او عذابونه لیدلی وو۔ نو بیا د تعجب اظهار ئے اُوکړو په سبحان الله سره، چه بیګاه شپه څومره خزانے د رحمتونو نازلے شوے او څومره فتنے او عذابونه نازل شو۔

او یا د خزانو نه مراد د مالدارئ خزانے دي چه روستو امت ته به الله فراخي ورکوي او دا یَره ئے هم ورکړه چه ددے ډیرو مالونو د وجه نه به فتنے پیدا کیږي، ددے وجه نه ډیرو سلفو به ډیرے مالدارئ ته تعرض نهٔ کولو ځکه دا فتنو ته تعرض دے۔ او نبی لکه څنګه چه د فتنے د فقیرئ نه پناه غوختے ده نو دغه شان د فتنے د مالدارئ نه ئے هم پناه طلب کړیده۔

او دارنګه فتنے اکثر د زنانو د وجه نه نازلیږي پدے وجه ئے د هغوی د رابیدارولو مطالبه اُوکړه چه دا بی بیانے رابیدارول پکار دي چه د الله بندګی اُوکړي چه خزانے د رحمتونو ورته حاصل شي او د فتنو نه خلاصے شي نو زنانه د اُمت دپاره فتنه ده مګر دغه به د فتنے نه خلاصیږي چه د الله په بندګئ کښې مصروف شي۔

او په حدیث کښې دا فائده ده چه سړے به خپله ښځه د الله عبادت دپاره رابیداروي او پدے کښې ام سلمهؓ ته اشاره وه چه تهٔ لاړه شه او دا بے بیانے رابیدارے کړه۔ او پدے کښې د نبی ﷺ خیر خواهي ده چه خپلے بی بیانے او د اُمت زنانه د فتنو نه بچ کول غواړي چه دوی ته

فائدے حاصلے شی او د الله د عذابونو نه د هغه په عبادت سره خلاصے شی۔ او دا په (وانذر عشیرتك الاقربین) کښې هم داخلیږی۔

او حدیث دلیل دے چه د تهجدو په وجه انسان ته د الله د عذابونو نه نَجات ملاویږی، او د هغه د رحمت خزانے ورته حاصلیږی۔

رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا : (كاسية) یا صفت د (نَفْسٌ) دے یا صفت د (مَرْأَةٌ) دے۔

۱- یو مطلب ئے دا دے چه ډیر کرت یوه زنانه یا یو نفس به وی چه په دنیا کښې به ئے خو ډیرے جامے اغوستی وی، مالداره به وی لیکن په آخرت کښې به د ثوابونو نه بربنډه وی ځکه چه په دنیا کښې به ئے عمل نهٔ وی کړے۔ ۲- یا (كاسية بنعم الله عاريةٌ من الشكر الذی تظهر ثمرتُهٗ فی الآخرة بالثواب) (ډیر کرت یوه زنانه او یو انسان به د الله په نعمتونو کښې پټ وی او هغه به ئے اغوستی وی لیکن شکر به ئے نه کوی نو په آخرت کښې به بربنډ وی)۔

۳- یا دا چه دنیا کښې به ئے جامے آغوستی وی لیکن هغه به نرئ وی چه لاندے بدن به ئے ښکاری نو الله به په آخرت کښې دا سزاء ورکړی چه بربنډ به ئے کړی ددهٔ د شرمولو دپاره، نو بیا پدے کښې نهی ده ددے نه چه داسے جامے مهٔ اَغوندئ چه هغے سره بدن نهٔ پټیږی او بے حیائی پکښې وی۔ او دا ذریعه د فتنے هم ده۔ او هنده چه راویه ددے حدیث ده هغے هم دا معنیٰ فهم کړیده ځکه هغے چه کله دا حدیث واوریدو نو هغے په دواړو لستونړو باندے بټنے اُولګولے چه دواړه طرفونه ئے ښکاره نهٔ شی۔

٤- بعضو دا معنیٰ هم کړیده چه ډیر کرت یوه زنانه به د نیك سړی (خاوند) په نعمت کښې پټه وی یعنی د نیك سړی ښځه به وی په دنیا کښې لیکن په آخرت کښې به د عمل نه بربنډه وی خپله عمل به ئے نهٔ وی کړے نو د خاوند نیك عملی دیته فائده نهٔ ورکوی بلکه خپله عمل پکار دے، که نبی دے د هغه عمل هم چا ته فائده نشی ورکولے ترڅو چه انسان خپله عمل نهٔ وی کړے۔

☆- لهذا په حدیث کښې ترغیب دے چه فتنو ختمول د الله په بندګئ سره کیږی او د الله د عذابونو نه نَجات په تهجدو او مونځونو ملاویږی او د خاوند عمل د ښځے دپاره فائده مند نهٔ دے ترڅو چه هر انسان خپل عمل نهٔ وی کړے۔ او یو بل سره د الله په طاعت او بندګئ کښې تعاون او مدد پکار دے۔

☆- دارنګه حدیث کښې ترغیب دے چه کله مصیبت وغیره رانازل شی نو په هغه وخت کښې دعاء او الله ته عاجزی پکار ده، خاصکر په هغه اَوقاتو کښې چه هغے کښې د اِجابت اُمید زیات وی۔

☆- د تعجب په وخت سبحان الله وئیل جائز بلکه مستحب دی۔

☆- د خوب نه بیداریدو په وخت د الله ذکر کول پکار دي. د مصیبت نازلیدو په وخت په خپلو کشرانو او اهل باندے ترحم پکار دے، هغوی ته د بندګئ دعوت ورکول پکار دي.

---

٥- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالٰى كُلَّ لَيْلَةٍ اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِيْنَ يَبْقٰى ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ، يَقُوْلُ: مَنْ يَّدْعُوْنِيْ فَأَسْتَجِيْبَ لَهٗ؟ مَنْ يَّسْأَلُنِيْ فَأُعْطِيَهٗ؟، مَنْ يَّسْتَغْفِرُنِيْ فَأَغْفِرَ لَهٗ؟». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: «ثُمَّ يَبْسُطُ يَدَيْهِ وَيَقُوْلُ مَنْ يُّقْرِضُ غَيْرَ عَدُوْمٍ وَلَا ظَلُوْمٍ؟ حَتّٰى يَنْفَجِرَ الْفَجْرُ».

---

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : « زمونږ رب تبارك وتعالیٰ هره شپه نزدے آسمان ته راکوزیږي کله چه د شپے آخري دریمه حصه باقي پاتے شي نو فرمائي : څوك دے چه ما نه دعاء اُوغواړي چه زۀ ورله قبوله کړم؟ څوك دے چه ما نه سوال اُوکړي چه زۀ ئے ورله ورکړم؟ څوك دے چه ما نه بخنه اُوغواړي چه زۀ ورته بخنه اُوکړم؟»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ) او د مسلمؒ په روایت کښې دي : « بیا الله تعالیٰ لاسونه راخوارۀ کړي او فرمائي : څوك دے چه قرض ورکړي هغۀ چا ته چه نۀ فقیر دے او نۀ ظلم کونکے دے او د صبا راخکاره کیدو پورے دغه شان فرمائي»۔

تشریح : ثُلُثُ اللَّيْلِ: بعض روایاتو کښې (نصف اللیل) او بعضو کښې (ثلث اللیل الاول) راغلے دے. نو دا خو یا وحی جُدا جُدا وه نو نبي ﷺ یو وخت کښې یو بیان کړل بل وخت ئے بل بیان کړل. او دا راکوزیدل پدے تولو حالاتو کښې وي. یا کله نصف اللیل راکوزیږي او کله ثلث اللیل الاول او کله ثلث اللیل الآخر او تول روایاتو نه صحیح دي. (فتح الباري) مګر راجح دا ده چه د ثلث اللیل الاول روایت شاذ دے.

## د الله په صفاتو صحیح عقیده لرل او تاویل نۀ کول

پدے حدیث کښې د الله صفات ذکر دي چه دا د قبیلے د متشابهات في الکیف نه دي. لکه د الله نزول، صفة الید، بسط الید، غیر عدوم، او غیر ظلوم. دا تول د الله صفات دي. نو دا صفتونه به د الله منلے شي بغیر د مشابهت د مخلوق نه او بغیر د بیان د کیفیت نه او دا بعینه د سلف صالحینو مذهب دے. چه پدے کښې به تاویلات نشي کولے بلکه د الله راکوزیدل بالکل ثابت دي او دیکښې تاویل کول انکار دے د الله د صفاتو نه. لکه امام

ابوحنیفۃ نه په فقه اکبر (۳۰۲) کښې نقل شویدی۔ چه هغه فرمائی :
(ولا یقال : ان یده قدرته، لان فیه ابطال الصفة وهو قول اهل القدر والاعتزال، ولکن یده صفة بلا کیف) (یعنی داسې به نشي وئیلې چه د ید نه مراد قدرت دے ځکه یو خو پدے کښې د الله د صفت باطلول راځی دویم دا قول د معتزلو او قدریو دے بلکه ید د الله صفت دے بغیر د کیفیت بیانولو نه)

نو کوم خلق چه دا وائی چه عدم تاویل طریقه د سلفو ده او دا أسلمه طریقه ده او تاویل طریقه د خلفو ده او دا أحکمه طریقه ده نو دا غلط وائی ځکه امام ابوحنیفۃ هم تاویل ته غلط اُووئیل او دا ئې د الله د صفت باطلول شمار کړل او دیته ئې د معتزلو او قدریو قول اووئیلو۔ نو مقلدین خو دے دا خبره بالکل نهٔ کوی چه تاویل هم جائز دے۔ بعض پکښې داسې تاویل کوی چه دلته مفعول حذف دے او ینزل په ضمه د اول دے (ای یُنَزِّلُ مَلَکاً) یعنی ملائك راکوزوی۔ (تنویر الحوالك ۲۲۲/۱)

مګر دا تاویل د ظاهر خلاف دے، او د حدیث تحریف دے۔

حدیث کښې ترغیب دے چه د تهجدو وخت د الله نه د غوختو تایم دے، حاجتونه د انسان پوره کیږی او انسان ته الله رب کائنات دعوت ورکړے دے چه اے بنده! پاځیږهٔ، ما نه د خپلو ګناهونو مغفرت طلب کړه او ما نه خپل حاجتونه اُوغواړه آیا ستا دومره حاجت نشته چه بے غمه پروت ئې؟

بیا بعض وائی : دعاء، سوال او استغفار د درے واړو یوه معنیٰ ده او الفاظ ئې د تاکید دپاره راوړی دی۔

۲- صحیح دا ده چه دا جدا جدا څیزونه دی ځکه چه مطلوب د انسان به خالی نه وی یا به دفع د ضرر وی یا به جَلْب (حاصلول) د منفعت وی که اول وی نو دا استغفار شو ځکه په استغفار کښې د ضرر دفع کول وی۔ او دویم به خالی نه وی یا به دینی وی یا به دنیاوی۔ که دینی وی نو دا سوال شو ځکه چه سوال کښې دینی مطلوب غوختے شی، او دریم دعاء ده او په دعاء کښې دنیاوی څیزونه غوختل داخل دی۔

په بعض رایتونو کښې ورسره نور زیادتونه هم راغلی دی چه هغه دلالت کوی چه دا درے واړه جدا جدا څیزونه دی لکه په روایت د نسائی کښې دی : (هل من تائب فاتوب علیه) (آیا څوك توبه ویستونکے شته چه زهٔ ئې توبه قبوله کړم؟) او په بل روایت د نسائی کښې دی : (من ذا الذی یسترزقنی فارزقه؟ من ذا الذی یستکشف الضر فاکشفه عنه) (څوك دے چه ما نه رزق طلب کړی چه رزق ورکړم، څوك دے چه تکلیف لرے کول غواړی چه تکلیف

ورله لرے کړم) او په بل روایت کښې دي : (الا سقیم یستشفی فیشفی؟) (مسند احمد ۱۲۰/۱) والدارمی (۴۱٤/۱) وقال حسین سلیم اسد : اسناده صحیح وحسنه شعیب الارناووط لغیره) (آیا څوك بیمار نشته چه ما نه شفاء طلب کړي چه شفاء ورکړم) دا په دعاء کښې داخل دي۔

مَنْ يُقْرِضُ : دلته د قرض ورکولو نه مراد نیك عمل کول او ټول طاعتونه دي چه دا داسے شو لکه الله ته چه قرض ورکړے شو نو ضرور به ددے بدله ورکوي۔ ۲- ظاهر دا ده چه ددے نه مراد صدقه ده۔ چه ددے ثواب په الله باندے د قرض په شان وي۔

غَيْرَ عَدُوْمٍ : فقیر ته وائي چه مال ورسره معدوم (ختم) شوے وي۔

حَتّٰى يَنْفَجِرَ : یعنی د الله د نزول وخت دومره اُوګد وي تردے چه صبا راوخیژي۔

دا حدیث دلیل دے چه آخر د شپه کښې مونځ بهتر دے د اول د شپے نه۔ او وتر په ټولو کښې ناوخته کول بهکار دي۔ ۲- د شپے آخره حصه د دعاء او استغفار دپاره ډیر بهترین وخت دے۔ ځکه دا د اِجابت وقت دے۔ بیا د کوم خلقو دعاء چه پدے وخت کښې هم قبوله نشي نو وجه دا وي چه یا خو ئے د دعاء په شرائطو کښې خلل پیدا کړے وي لکه خوراك څکاك جامے ئے حرام وي، یا دا چه جلتي سره اِجابت غواړي یا د ګناه او صله رحمي کټ کولو دعاء وي، یا دا چه هغه شے فی الحال الله ورنکړي ځکه چه په هغے کښې د بنده مصلحت وي روستو ئے ورکړي او یا ددے په بدله کښې بل څه ورکړي یا ددۀ نه د هغے په وجه بل څۀ مصیبت لرے کړي کوم چه په ده باندے راروان وي نو دا هم قبلیدل د دعاء وي او یا ئے ورله په آخرت کښې ذخیره کړي لکه دا په حدیثو کښې راغلي دي۔

---

٦- وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُوْلُ: «إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً، لَايُوَافِقُهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ، يَسْأَلُ اللّٰهَ فِيْهَا خَيْرًا مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ، وَذٰلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر ﷛ فرمائي: ما د نبي ﷺ نه آوریدلي دي چه فرمایل ئے : «په شپه کښې یو ساعت دے چه د هغے سره یو مسلمان شخص نۀ موافق کیږي چه د الله نه په هغے کښې د دنیا او دآخرت د خیزونو نه یو خیر اُوغواړي مګر الله تعالیٰ به ئے ضرور ورکړي، او دا (ساعت) هره شپه وي»۔ (مسلم)

تشریح : لَايُوَافِقُهَا : دموافقت معنیٰ دا ده چه دا اَوقات په دعاء او عبادت باندے

مشغول کړي۔ او دا وقت مُبْهَمْ (پټ) کړے شویدے، لکه د جُمُعے د ورځے ساعت چه مُبْهم دے او پدے پټولو کښې د الله حکمتونه دي دے دپاره چه بندګان هر وخت د الله په بندګئ کښې مصروف وي۔ او پدے وخت کښې دعاء قبلیدل د الله وعده ده۔

وَذٰلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ : یعنی ذلك المذكور يحصل كل ليلة : (دغه مذکوره سوال هرهٔ شپه حاصلیږي) د بعض شپو پورے خاص نهٔ دے، بعض وائی : ددے ساعت نه مراد د ثلث اللیل ساعت دے بعض وائی : چرګ بانګ وخت دے، بعض وائی مطلق دے۔ ظاهر دا ده چه دا مبهم دے۔

٧- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللهِ صَلَاةُ دَاوُدَ، وَأَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللهِ صِيَامُ دَاوُدَ: كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُوْمُ ثُلُثَهُ، وَيَنَامُ سُدُسَهُ، وَيَصُوْمُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبد الله بن عمرو ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «الله تعالىٰ ته ډیر محبوب د داود ﷺ مونځ دے، او الله ته بهترینے روژے د داود ﷺ روژے دي، (او د داود ﷺ طریقه دا وه) هغهٔ به نیمه شپه اُوده کیدو او دریمه حصه کښې به راپاڅیدو او بیا به شپږمه حصه کښې اُودهٔ کیدو او یوه ورځ به ئے روژه نیوله او یوه ورځ به ئے کوجه وه»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشریح : یعني داود ﷺ چه به کوم وخت د شپے اُودهٔ کیدو، خوب به ئے شروع کولو نو د هغے نه حساب واخله په اوله حصه کښې به اُوده شوتر نیمائی شپے پورے، بیا به دریمه حصه کښې پاڅیدو کوم کښې چه الله آواز کوی (هل من سائل ؟ هل من مستغفر؟)

بیا به آخری شپږمه حصه کښې اُودهٔ شو، بیا به صبا وخت، کښې راپاڅیدو۔ ددے صورت دا دے چه مثلاً د هغهٔ عادت نهه بجے اُوده کیدل وي او صبا په پنځه بجے راخیژی نو دا ټول اَته ګینټے شوے نو ابتدائی څلور ګینټے به اُودهٔ شو، بیا به یوه بجه راپاڅیدو، دریمه حصه ئے تقریباً پاؤ کم درے ګینټے شوے نو پاؤ کم درے بجو پورے به ئے عبادت اُوکړو بیا به اُوده شو۔ تقریباً پاؤ باندے یوه ګینټه یعنی څلورو بجو پورے بیا به ئے تر پنځو بجو (صبا راختو) پورے عبادت کولو۔

او په آخیری شپږمه حصه کښې به ځکه اُودهٔ کیدو چه د شپے د عبادت په وجه کرمه ستوماني حاصله شوے ده چه هغهٔ ختمه شي او په باقي عبادت کښې نشاط او تازګی پیدا شي۔ او دا طریقه الله ته ځکه محبوب ده چه پدے کار سره په نفس باندے آساني راځي چه

د هغې په وجه د ستومانی نه انسان بچ کيږي چه هغه سبب د عبادت د پريخودو ګرځی او الله تعالیٰ ته دا محبوب ده چه د هغهٔ إحسان هميشه وی (کرمانیؒ)

او دا کار په نفس باندے څکه آسان دے چه د قيام نه روستو خوب کولو سره بدن ته راحت حاصليږي او د يے خوبۍ ضرر ختميږي او د بدن خوار والے زائل کيږي۔

دارنګه پدے کښې دا مصلحت هم دے چه سحر مانځه ته په ښهٔ شان استقبال کيږي، او د ورځے اذکارو ته انسان په نشاط او رغبت کښې وی۔

لهذا په (نصف الليل) کښې د (الليل) نه مراد هغهٔ حصه د شپے ده چه د کوم وخت نه به ئے خوب شروع کولو څکه چه د نمر پريوتو نه خوب شروع کول بعيد دی۔

او دا حديث دليل دے چه توله شپه مونځ کول مکروه دی، او کوم صحابه کرام سلفو نه چه توله شپه عبادت نقل دے نو هغوی ته دا قسم احاديث ندی رسيدلی۔

بيا دلته سوال دے چه زمونږ د رسول الله ﷺ عمل خو پدے طريقه هميشه نهٔ وو؟ نو د هغې جواب دا دے چه صيغه د اسم تفضيل يا په معنیٰ د اصل فعل ده۔يعنی د داود ؑ دا طريقه الله ته محبوب وه او دا مطلب نهٔ دے چه د نبی ؑ د طريقے نه هم زياته محبوب وه۔ ۲ - يا احبية اضافی دے، محمول دے په بعض طريقو باندے، څکه دا اعتدال او حفظان صحت ته ډير اقرب دے۔

علامه علی القاریؒ فرمائی : کيدے شی چه رسول الله ﷺ ددے خوب التزام پدے وجه نهٔ وی کړے چه د هغهٔ قيام د تولو انبياؤ د مقام دپاره جامع شی او په امت باندے ئے د شپے په قيام کښې آسانی راشی۔ انتهیٰ

او عائشه رضی الله عنها فرمائی: ډير کارونه به نبی ؑ پريخودل او ښهٔ به ئے خوښ وو چه عمل پرے اُوکړی خو دا خطره به ورسره وه چه خلق به دا عمل شروع کړی نو په هغوی به فرض شی۔ (بخاری) نو د رسول الله ﷺ عمل به په تهجدو او روژو کښې مختلف وو چه پدے کښې به د اُمت د قوی او ضعيف تولو خلقو دپاره مصلحتونه وو۔

وَيَصُوْمُ يَوْمًا : داود ؑ به شپه او ورځ د الله د حق او د خپل ځان د حق دپاره تقسيمولے نو په هره شپه کښې خو دا کار برابر کيدو چه نيمائی شپه د خپل حق دپاره او نيمائی د الله د حق دپاره شوه او په ورځ کښې خو دا کار ممکن نهٔ وو چه تقسيم او تجزی پکښې اُوکړی نو ددے په عوض کښې ئے دا کار اُوکړو چه يوه ورځ روژه او يوه ورځ کوجه شو۔ نو دا داسے شوه لکه چه تجزی په نفس ورځ کښې راغله۔

او دا روژے الله ته څکه محبوبے دی چه پدے کښې انسان د الله حق او د خپل ځان، د خپل

اهل او میلمه او بندګانو حقوق ادا کولے شی په خلاف د هغهٔ چا چه همیشه پرله پسے روژے نیسی نو د هغهٔ نه به بعض حقوق ضرور فوت کیږی۔ او ددے نه غوره روژے نشته لکه دا خبره ئے عبد الله بن عمرو بن العاصؓ ته کړے وه۔

نو پدے وجه علامه شوکانیؒ لیکی : دا حدیث دلیل دے چه یوه ورځ روژه او یوه ورځ کوجه الله ته ډیر محبوب دی د غیر نه اګرکه ددے نه زیات وی ځکه څهٔ چه الله ته محبوب وی بس هغهٔ افضل وی او اشتغال په هغے باندے اولیٰ وی۔ انتهیٰ۔

---

۸- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ – تَعْنِيْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ – يَنَامُ أَوَّلَ اللَّيْلِ، وَيُحْيِيْ آخِرَهُ، ثُمَّ إِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ إِلَى أَهْلِهِ قَضَى حَاجَتَهُ، ثُمَّ يَنَامُ، فَإِنْ كَانَ عِنْدَ النِّدَاءِ الْأَوَّلِ جُنُبًا، وَثَبَ فَأَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَاءَ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ جُنُبًا تَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ. متفق عليه۔

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ به د شپے په اوله حصه کښ اُودهٔ کیدو او آخره حصه به ئے (په عبادت) ژوندئ کوله، بیا که د نبی ﷺ به خپل کور والاؤ ته څهٔ ضرورت وو نو هغهٔ به ئے پوره کړو او بیا به اُودهٔ شو، بیا کهٔ د اول اذان په وخت به جنابت حالت کښ وو نو په جلتئ به راپاڅیدو او په ځان به ئے اُوبه راوا چولے (غسل به ئے اُوکړو) او که د ناپاکئ حالت کښ به نهٔ وو نو د مانځه دپاره به ئے اَودس اُوکړو بیا به ئے دوه رکعاته (د سحرسنت) اُوکړل۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : سنت طریقه دا ده چه د شپے اوله حصه کښ اُودهٔ شی، دے کښ ډیر فوائد دی۔ او دا د فطرت مطابق کار دے۔

النداء الاول نه مراد د صبا اذان دے او د اذان ثانی نه مراد اقامت وی۔ لهذا (الصلاة خیر من النوم) به د صبا په اذان کښ وئیلے شی نهٔ د تهجدو په اذان کښ لکه څنګه چه ابن رسلانؒ او شوکانیؒ او البانیؒ وئیلی دی او تحقیق ئے په دریم جلد کښ اُوګوره۔

حَاجَتَهُ: پدے وخت کښ کور والے کول بهتر ځکه دی چه یو خو روټئ وغیره هضم شوی وی نو شهوت په جوش کښ وی۔ دا وجه ده طبیبان وائی چه د روټئ خوړلو او د کوروالی ترمینځ کم از کم درے ګینټے وقفه پکار ده، یو خو پدے سره خیټه نهٔ غټیږی۔ او بل صحت نهٔ خرابیږی۔ ځکه جماع په ډکه خیټه مضر وی۔

او بیا دا ثم په خپل ځائے استعمال دے نو ددے نه دا فائده اخستے شی چه نبی ﷺ به د

تهجدو نه روستو کور والے کولو، ځکه لائق دا ده چه عبادت دے په قضاءِ حاجت مقدم وی۔ یا دا چه ثم د تراخی د اخبار دپاره ده۔ یعنی بیا دا خبره هم واوره چه که د نبی به خپل اهل ته حاجت وو نو هغهٔ به ئے پوره کړو او اُودهٔ به شو او کهٔ حاجت به ئے نهٔ وو نو هم اُودهٔ به شو۔ الخ

او نبی ﷺ به کله چه جنب وو نو هغهٔ به د خوب دپاره اُودس کولو او په کوم روایت د ترمذی کښې چه راغلی دی (قبل ان یمس ماء) نو د هغې نه مراد غسل دپاره اُوبه استعمالول دی۔ نهٔ د اوداسه دپاره، یا ممکن ده چه تیمم ئے وهلے وی۔ یا دا چه هغهٔ حدیث کښې د قضاء حاجت نه مراد د بول براز وغیره حاجت دے۔ یا په هغهٔ روایت کښې د ابواسحاق نه وهم واقع شویدے۔ یا بیاناً للجواز همداسے اُودهٔ شویدے۔ (تحفة الاحوذی ۱/۳۲۲) وغیره۔

## الفصل الثانی

۹- عَنْ اَبِیْ اُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ ﷺ: «عَلَیْکُمْ بِقِیَامِ اللَّیْلِ، فَاِنَّهٗ دَأْبُ الصّٰلِحِیْنَ قَبْلَکُمْ، وَهُوَ قُرْبَةٌ لَکُمْ اِلٰی رَبِّکُمْ، وَمَکْفَرَةٌ لِلسَّیِّئَاتِ، وَمَنْهَاةٌ عَنِ الْاِثْمِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ.

ترجمه : ابوامامه ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « قیام اللیل (یعنی د تهجدو مونځ) ضروری اُوگنړئ ځکه (اول خو) دا طریقه ستاسو نه د مخکنو نیکانووه، او بیا (دویم دا چه) قیام اللیل ستاسو دپاره د خپل رب نزدیکت او د گناهونو د لرے کولو سبب دے، او د گناهونو نه (تاسو لره) لرے ساتونکے دے»۔ (ترمذیؒ)

تشریح : دَأْبُ : عادت او شان او طریقے ته وائی مطلب دا دے چه تهجد ځکه کوئ چه دا د پخوانو انبیاؤ او اولیاء سابقینو قدیمی طریقه ده نو که تاسو د هغوی اقتداء کول غواړئ نو تهجد به کوئ، نو الله به مو د هغوی سره یو ځائے کړی۔ قربة : یعنی دا ستاسو دپاره الله ته د نزدیکت لوئی سبب دے۔ مکفرة : یعنی سبب د لرے کولو د گناهونو دے۔ او انسان پرے د گناه نه بچ کیږی۔ او دا تجربه ده (اگرکه په احادیثو تجربے ندی پکار) چه څوک د شپے تهجد کوی هغه الله تعالیٰ د ورځے د گناهونو نه محفوظ ساتی۔

وَمَکْفَرَةٌ : دا یا مصدر میمی دے۔ په معنی د اسم فاعل دے۔ د کفر نه مأخوذ دے په معنیٰ د ستر (پټولو) سره۔

وَمَنْهَاةٌ : دا مصدرمیمی دے د نهی نه د اسم فاعل په معنیٰ دے۔ اَیْ نَاہٍ (منع کرنکے) یا دا هغهٔ خصلت دے چه تاسو لره د گناهونو او د هغے د ځایونو نه ساتونکے دے۔ په روایت د طبرانی فی الکبیر کښې د سلمان فارسی په حدیث کښې ورسره دا زیات دی : (ومطردة للداء

عن الجسد) (یعنی د بدن نه بیماری لرے کوی او ختموی)

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه الترمذی (۵۵۳/۵) معلقاً وقال هذا اصح من حدیث ابی ادریس عن بلال وقد وصله الحاکم (۳۰۸/۱) وصححه علی شرط البخاری ووافقه الذهبی، وهذا مردود لان معاویة بن صالح لم یخرج له البخاری وقرر ذلك الذهبی نفسه فی المیزان (۱۳۵/٤) وصححه الالبانی فی صحیح الجامع رقم (٤٠٧٩)

---

۱۰ - وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «ثَلَاثَةٌ يَضْحَكُ اللهُ اِلَيْهِمْ: الرَّجُلُ اِذَا قَامَ بِاللَّيْلِ يُصَلِّيْ، وَالْقَوْمُ اِذَا صَفُّوْا فِي الصَّلَاةِ، وَالْقَوْمُ اِذَا صَفُّوْا فِيْ قِتَالِ الْعَدُوِّ». رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

ترجمه : او ابو سعید خدری ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: « درے کسان دی چه الله تعالیٰ هغوی ته خندا کوی: یو هغهٔ سرے چه د شپے راپاځیږی مونځ کوی، ۲- دویم هغهٔ خلق چه په مانځه کښ صفونه اُوتړی، ۳- دریم هغهٔ خلق چه د دشمنانو (کفارو) په جنگ کښ صفونه اُوتړی». (شرح السنة)

تشریح : يَضْحَكُ : دا خندا د الله د صفاتو نه ده او حقیقت ئے الله ته معلوم دے۔ دا په معنیٰ د رضا اخستل او بیا رضا په معنیٰ د ثواب اخستل ددے صفت ضائع کول دی۔

ددے حدیث نه دا اندازه لگی چه دا درے واړه د الله په نزد عظیم اعمال دی ځکه ورته الله خاندی۔ لهذا ددے په اهتمام سره ادا کول پکار دی۔

او د حدیث نه د تهجدو فضیلت دا معلوم شو چه دا سبب د خندا د الله تعالیٰ دے۔

طیبیؒ لیکی : قیام اللیل ئے په صف د مانځه مقدم کړو او صف د قتال ئے روستو کړو یا خو دا تنزلاً شویدے ځکه چه مقابله د نفس سره کوم چه سخت دشمن د الله دے گرانه وی د مقابلے د هغهٔ دشمن ستا نه چه هغهٔ شیطان دے او مقابله د شیطان سخته ده د مقابلے د دین د دشمنانو سره۔ یا ترقی شویده د ادنیٰ نه اعلیٰ طرف ته ځکه قتال ډیر لوئی مشقت او فضیلت والا دے او بیا جماعت فرض دے او صلاة اللیل مستحب دے۔

درجة الحدیث : اسناده حسن ان شاء الله : اخرجه احمد (۸۰/۳) وابن ماجه (۲۰۰) فی سنده مجالد بن سعید وهو لیّن) والبغوی فی شرح السنة (۹۲۹) عزاه المصنف الیه وحده وکان اولی به العزو الی ما سبق واخرج الآجری فی الشریعة ص (۲۷۸) نحوه عن ابن مسعود موقوفاً دون ذکر الخصلة الثانیة وسنده من طریق ابی الکنود حسن)۔الضعیفة (۴۵۵/۷) لان مجالداً فی حفظه شیء۔

١١ – وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَقْرَبُ مَا يَكُوْنُ الرَّبُّ مِنَ الْعَبْدِ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ الآخِرِ، فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَكُوْنَ مِمَّنْ يَذْكُرُ اللهَ فِيْ تِلْكَ السَّاعَةِ، فَكُنْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ غَرِيْبٌ اِسْنَادًا.

---

ترجمه : أو عمرو بن عبسه ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «رب چه بنده ته ډير نزدے کيږی نو دا په آخر د شپه کښ وی، لهذا کۀ په تا کښ طاقت وی ددے چه تۀ د هغۀ خلقو نه شے کوم چه پدے وخت کښ د الله ذکر کوی نو ضرور شۀ ! (یعنی ددے خبرے کوشش اُوکړه چه تۀ هم پدے خوش نصیبه مسلمانانو کښ شمار شے) دا روايت ترمذیؒ نقل کړیدے او دا ئے وئیلی دی : دا حدیث حسن صحیح دے او د سند په وجه سره غریب دے۔

تشريح : أَقْرَبُ : ددے قرب نه يو خاص قرب مراد دے۔ چه د متشابهاتو نه دے په حقيقت ئے الله پوهيږی، الله خو هر چا ته نزدے دے لکه قرآن کریم کښ دی : (وَنَحْنُ أَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ) نو هغه عام قرب دے او دلته خاص قرب دے۔ چه لازم ورسره محبت او دعاء قبلول دی۔ نو د تهجدو فضیلت دا شو چه دا سبب د قرب د الله تعالیٰ دے۔

سلف وائی : په غافلانو کښ ذکر کونکے داسے مثال لری لکه د شکست خوړونکے ډلے ساتونکے، او کۀ په غفلت د خلقو کښ ذکر کونکی نۀ وے نو ټول خلق به هلاك شوی وے۔ او پدے باره کښ د ابن عمرؓ نه مرفوع حدیث هم نقل دے باسناد ضعیف۔ چه ذکر کونکے په غافلينو کښ داسے دے لکه قتال کونکے د تختیدونکو نه او ذکر کونکے په غافلینو کښ داسے دے لکه شنه ونه په هغۀ ونو کښ چه د هغے پاڼے د یخنئ په وجه غورزیږی۔
(الجامع الصغیر)

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه الترمذی (٣٥٧٩) والنسائی (٢٧٩/١–٢٨٠) وابن ماجه (١٢٥١) والحاكم فی المستدرك (٣٠٩/١) وصححه ووافقه الذهبی۔

---

١٢ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «رَحِمَ اللهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلّٰى، وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ، فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِيْ وَجْهِهَا الْمَاءَ. رَحِمَ اللهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ، وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا فَصَلّٰى، فَإِنْ اَبٰى نَضَحَتْ فِيْ وَجْهِهِ الْمَاءَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائيلی دی : «الله دِے رحم اُوکړی په

هغهٔ سړی باندې چه د شپې راپاڅيدو او مونځ ئې اُوکړو او خپله ښځه ئې (هم) راپاڅوله او هغې مونځ اُوکړو، او کهٔ هغهٔ انکار کوی نو (د هغې د خوب ختمولو دپاره) د هغې په مخ باندې اُوبه چړکاؤ (پوشنك) کړی، او الله دې رحم اُوکړی په هغهٔ زنانه چه د شپې راپاڅيږی، مونځ اُوکړی او خپل خاوند رابيدار کړی، هغهٔ (هم) مونځ اُوکړی، او کهٔ هغهٔ (د سُست والی او د خوب د غلبې په وجه) اِنکار اُوکړی، نو د هغهٔ په مخ د اُوبو چړکاؤ اُوکړی»۔ (ابوداوُدؒ، نسائیؒ)

تشریح : رجل ئې مخکښې ذکر کړو اِشاره ده چه سړی تهجد زيات کوی، بله دا چه په شريعت کښې سړی مخکښې ذکر کولې شی او زنانه د هغوی تابع وی۔

وَاَيْقَظَ امْرَاَتَهٗ : بيا دا ضروری نهٔ ده چه تهٔ په دوه بجې راپاڅيږې نو هغهٔ هم څان سره راپاڅوې، نهٔ، بلکه تهٔ ډير مونځ اُوکړه بيا هغه راپاڅوه ځکه ستا په شان ډير مونځ زنانه نشی کولې۔

نَضَحَ: يعنی په مخ باندې دې ورله اُوبه اُوشيندی۔

دا قانون هله دې چه سړې مسلمان دې او ښځه مسلمانه ده، د دواړو د تهجدو اِراده ده خو سړې کله غافله شی نو ښځه پرې اُوبه واچوی يا پرې چونداره اُولګوی يا ترې څادر، بستره راکاږی نو يو بل ته دعاء کوی چه ښهٔ دې چه تهجدو ته ئې راويدار کړم۔

او کله چه زمونږ په شان سړی يا ښځې وی نو که تا پرې اُوبه واچولې، څان له به کار اُوګورې، د شپې به جګړې اُونخلی، لهذا پدې کښې به اول ترغيب ورکوې او انسان به دې مانځه ته تيار کړې بيا به په دغه طريقه عمل کوې او داسې زور به په ښځه نشی کولې چه د هغې اِراده نهٔ وی او تهٔ پرې اُوبه اَچوې ځکه دا نوافل دی، نوافلو کښې به سختی نشی کولې بلکه اول به د مشکاة د تهجدو په باره کښې حديثونه ورته اُووائې نو بيا که غافله شوه داسې کار ورسره کولې شې۔

او حديث نه دا فائده معلومه شوه چه لکه څنګه چه ښځه او خاوند سماجی زندګی او دنياوی کارونو کښې د يو بل مددګار وی نو دغه شان دوی له دينی امور، اطاعتِ الهیٰ او د الله د بندګئ په باره کښې هم د يو بل مُعَاوِن او مددګار جوړيدل پکار دی۔ که خاوند يو وقت کښې مونځ نهٔ کوی نو ښځې له پکار دی چه هغهٔ ته حکم اُوکړی او که ښځه ئې نهٔ کوی نو هغې باندې زور پکار دې چه مانځه ته تياره شی، ډير سړی د ښځو نه خوراك څکاك خهٔ په تهايم غواړی ليکن د هغوی د مانځه تپوس کله هم نهٔ کوی چه تهٔ څهٔ وخت مونځ کوې او څهٔ وخت نهٔ، لهذا مومن سړې به د ښځې تربيت کوی۔

او دغه شان ښځه به د خاوند په دينی او دنياوی کارونو کښې تعاون او مددکوی۔ دغه شان

يو ځائے کښې اجتماعي طور سره څۀ خلق اُوسيږي هغوی دپاره هم ضروري ده چه خپلو ملګرو، دوستانو کښې د يو بل دپاره مُعَاوِن او مددګار اُوګرځي، او يو بل د مانځه په کولو او په عبادت کښې د مصروف ساتلو کوشش اُوکړي۔

او حديث نه دا فائده معلومه شوه چه په يو نيك مستحب کار کښې به په چا باندے زور نشي کولے بلکه صرف ترغيب به ورکولے شي۔ او د تهجدو عظيمه فائده دا ده چه د الله رحم پرے حاصليږي۔

او نبي ﷺ ته چه هرکله چه تهجدو سره کرامتونه حاصل شو نو هغۀ اراده اُوکړه چه د هغۀ امت ته هم ددے فوائد او کرامتونونه څۀ برخه حاصله شي نو د تلطف په طريقه ئے هغوی ته تيزي ورکړه په (رحم الله) سره، نۀ په امر کولو سره نو دا اُمت ته داسے تنبيه ده لکه څنګه چه په مخ باندے اُوبه چکړکاؤ کولے شي دپاره د بيدارولو د اُودۀ انسان۔

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (۲/۲۵۰) وابوداود (۱۳۰۸) والنسائي (۳/۲۰۵) وابن ماجه (۱۳۳٦) والحاكم في المستدرك (۱/۳۰۹) وصححه الحاكم ووافقه الذهبي وكذلك صححه النووي (فيض القدير ٤/۳٤) للمناويؒ.

---

۱۳ – وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ، قَالَ: قِيْلَ: يَارَسُوْلَ اللهِ! أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ ؟ قَالَ: «جَوْفَ اللَّيْلِ الْآخِرِ، وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ». رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ.

ترجمه : او ابو امامه ؓ فرمائي : اُووئيلے شو اے د الله رسوله ! د کوم وخت دعاء ډيره مقبوله وی ؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : «آخري درېمه حصه د شپه کښې، او د فرض مونځونونه روستو»۔ (ترمذیؒ)

تشريح : حديث نه معلومه شوه چه د شپے دعاګانے نيے قبليږي، الله مونږ ته چانس او مُوقعه راکړيده، نو ضرور به په کښې دعاء قبلوی، لهذا هر حاجتمند دِے ځان سره سُوچ اُوکړي او ددے اِجابت وختونه دِے نۀ ضائع کوی۔ ځان له، مور او پلار او خپل خپلوان دوستان او ټول اُمتِ مُسلِمَه، مُجاهدين او علماءِ کرامو او ديني مدارسو د حفاظت او بقاء دپاره دِے دعاګانے غواړي، او اُميد دے چه ددے کتاب ليکونکے او جمع کونکے او خوره ونکي به هم نۀ هيروی۔

دُبُرَ الصَّلَوَاتِ نه مراد ذکر اذکار دی او يا ځانله دعاء کول بغير د هيئت اجتماعي نه ځکه چه د فرضو نه پس په هيئت اجتماعي سره د دعاء هيڅ ثبوت نشته لکه ددے تفصيل په څلورم جلد (٤/٤۳۵) کښې اُوګوره۔ او دے حديث کښې ترغيب دے، ډيرے دعاګانو کولو ته

او د اجابت مواقعو کتلو ته. نو مسلمانانو له خصوصاً اهل الحدیث والسنة له ډیرے دعاګانے پکار دی ځکه چه د صحیح عقیدے والا خلقو عبادت الله تعالیٰ ته ډیر خوښ وی. او داسے نۀ چه په غلطو دعاګانو رد اُوکړی او بیا هیڅکله خپله دعاء نۀ کوی بلکه هر وخت دعاګانے ډیرے پکار دی او دغه شان د تهجدو په اوقاتو کښې ددے اهتمام پکار دے، ځکه په دعاء سره د انسان د زړۀ نه قسوت او سختی لرے کیږی.

درجة الحديث : اسناده ضعيف او حسن والظاهر انه حسن وقد مر درجة الحديث في المجلد الرابع (٤٣٥/٤) في مسئلة الدعاء بعد الفرائض بالهيئة الاجتماعية في باب الذكر بعد الصلاة) اول حديث الفصل الثاني)

١٤ - وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا يُرٰى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا، وَبَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا أَعَدَّهَا اللهُ لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ، وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ، وَتَابَعَ الصِّيَامَ، وَصَلّٰى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ «شُعَبِ الْإِيْمَانِ».

---

ترجمه : او ابو مالک اشعری رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « په جنت کښې داسے بالاخانے دی چه د هغے بهر شیزونه د دننه نه او دننه شیزونه د بهر نه ښکاره کیږی، او دا الله تعالیٰ د هغۀ چا دپاره تیارے کړی دی چه نرمے خبرے کوی، او خلقو ته طعامونه ورکوی او پرله پسے روژے نیسی، او د شپے په داسے حال کښې مونځونه کوی چه خلق اُودۀ وی». (بیهقیؒ شعب الایمان)

تشریح : أَلَانَ الْكَلَامَ : نرمے خبرے کوی ددے نه مراد دا دے چه د الله د مخلوق سره په رفق او نرمۍ سره برتاؤ کوی، او خپل رب ته هم عاجزی او تواضع کوی.

وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ : یعنی په مسلمانانو او نیکانو خلقو باندے خوراکونه خوروی او مسکینانو باندے شفقت لری او کوم خلقو کښې چه په مخلوق باندے شفقت وی نو دا اَهل د جنت دی.

وَتَابَعَ الصِّيَامَ : پرله پسے روژو نیولو آخری درجه دا ده چه په هره میاشت کښې درے روژے نیسی. یا مطلب دا دے چه د فرض روژو نه پس روژے نۀ منقطع کوی بلکه ضرور میاشت کښې څۀ نا څه روژے نیسی، یوم الاثنین او یوم الخمیس نیسی او د عرفے او عاشوراء او لس ورځے د ذی الحجے نیسی. یا ددے نه ډیرے روژے نیول مراد دی ځکه د همیشه روژو نیولو نه منع راغلے ده لکه حدیث کښې راځی : (لاصام ولا افطر) لکه دا مسئله مخکښې په اول

جلد (٤١٨/١ طبع ثانی) کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة حدیث رقم (٦) کښې ذکر شویده (جاء ثلثة رهط الخ)۔

بیا پدے درے صفاتو لین الکلام (نرمے خبرے کول) خوراکونه په خلقو خورول او د شپے مونځونه کول) کښې اشاره ده چه دۀ صفت د جُود، تواضع او عبادت متعدی او لازمی راجمع کړیدے۔ مخلوق سره هم احسان کوی او د خالق سره هم۔ او عبادت بدنی او مالی دواړه یې راجمع کړیدی۔

وَالنَّاسُ نِيَامٌ : جمع د نائم ده اُودۀ ته وائی، مراد ترے نه هغۀ خلق دی چه تهجد نۀ کوی اګرکه ویښ وی۔

بیا پدے نفلی عباداتونو باندے انسان جنت ته داخلیږی الله فرض کړی نۀ دی امتحاناً۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (١٧٣/٢) وفیه ابوموسی الاشعری بدل ابومالك الاشعری وجاء من حدیث ابی مالك الاشعری، اخرجه عبد الرزاق (٢٠٨٨٣) فاقتصار المصنف علی الشعب قصور منه رحمه الله)

١٥- وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ وَفِيْ رِوَايَتِهِ :«لِمَنْ اَطَابَ الْكَلَامَ».

ترجمه : او په روایت د ترمذی کښې د علی ﷺ نه ددے په شان روایت دے په هغے کښې دی :« هغۀ چا دپاره چه ښائسته خبرے کوی»۔

تشریح : په روایت د ترمذی کښې داسے دی : یو اعرابی تپوس اُوکړو دا د چا دپاره دی یا رسول الله ! هغۀ اُوفرمایل : د هغۀ چا دپاره چه مزیدارے (نرمے) خبرے کوی»۔ او دا حسن خُلُق دے۔ او دا ښائسته خبرے، هر دینی عمل باندے حکم کولو ته شاملیږی۔ او مسلمانانو سره میل جول کښې نرمی او خوش اخلاقی کوی او کنځلے بد رد، فاحشے خبرے نۀ کوی نو دغه فضیلت به ورته حاصل وی۔

درجة الحدیث : اخرجه الترمذی (٢٥٢٧) وضعفه بقوله حدیث غریب لا نعرفه الا من حدیث عبد الرحمن وهو کوفی وقد تکلم فیه بعض اهل الحدیث لکن الحدیث یشهد له الروایة السابقة)۔

## الفصل الثالث

١٦- عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« يَا عَبْدَ اللهِ! لَاتَكُنْ مِثْلَ فُلَانٍ، كَانَ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ فَتَرَكَ قِيَامَ اللَّيْلِ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : عبد الله بن عمرو بن العاص ﷛ فرمائي : ما ته رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « اے عبد الله ! د فلانے شخص په شان مهٔ جوړېږه، چه هغهٔ به د شپے قيام الليل کولو نو بيا ئے قيام الليل پرېخودلو »۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : فلان : راوي ددے فلان نوم نهٔ دے اَخستے يا دا چه نبي ﷺ نه دے اَخستے او همدا ظاهره خبره ده ځکه نوم اخستو کښې فائده نشته او غيبت ترے جوړيږي۔

بيا نبي ﷺ عبد الله بن عمرو بن العاص ته دا خبره ولے اُوکړه چه د فلاني په شان مهٔ جوړيږه۔ چه هغه به قيام الليل کول او بيا ئے پرېخودل؟ نو ددے وجه دا ده چه عبد الله بن عمروؓ به ټوله شپه عبادت کولو د دغه فلان په شان او ټوله ورځ به روژه وو او ورسره شپه کښې به ئے قرآن ختمولو ددے وجه نه پلار ورله وادهٔ کړے وو نو هغے ته يوے هفتے پورے نهٔ وو نزدے شوے ځکه چه دے خو اهشاتو ته نهٔ اُوزګاريدو۔ نو نبي ﷺ ورته اُوفرمايل چه عبادت کښې درميانه رَوي او اقتصاد کوه هسے نه چه دا ذريعه د پرېخودو اُونهٔ ګرځي، انسان به ستومانه او ستړے شي۔

علامه سنديؒ فرمائي : مراد دا دے چه تهجدو کښې ډير والے کول کله کله ددے بالکليه پرېخودو ته رسي لکه څنګه چه دغه فلاني دا کار اُوکړو نو تهٔ دا کار مهٔ کوه بلکه توسط او درميانه رَوي کوه ځکه په عبادت کښې سختي کول کله د هغے پرېخودو ته رسي او هغه خو مذموم دے۔ انتهیٰ ۔ دارنګه پدے کښې تنبيه ده په منع د کثرت د قيام الليل او افراط کولو نه په هغے کښې پداسے طريقه چه د هغے نه ملالت او ستوماني پيدا شي۔

☆۔ امام ابن حبانؒ فرمائي : حديث دليل دے چه د يو شخص عيب ذکر کول جائز دي بغير د نوم اخستو د هغهٔ نه کله چه په هغے کښې مقصود د هغهٔ د کار نه تحذير وي۔

بيا عبد الله بن عمروؓ ته نبي ﷺ رَهنمائي اُوکړه چه دغه شان ګران کارونه مهٔ کوه بلکه صيام داود نيسه او درے ورځو نه کم قرآن مهٔ ختموه او ټوله شپه بندګي مهٔ کوه ځکه چه تا باندے د نفس او زوجے حقوق دي۔

او پدے حديث کښې د تهجدو پرېخودلو نه منع په هغه وخت کښې مراد ده چه د خواهش پرستئ او خوش عيشئ په وجه ئے پريدي او که د عذر او ضرورت د وجه نه پاتے شي لکه اُودهٔ پاتے شي يا بيمار وي نو هغهٔ په کښې نهٔ داخليږي۔

او حديث کښې تلقين دے چه مؤمن به وخت په وخت د ترقئ کوشش کوي او نقصان طرفته به نهٔ راځي لکه څنګه چه صحابه کرامؓ به د نبي ﷺ په زمانه کښې يو عمل کولو نو هغه به ئے د وفات د نبي ﷺ نه بعد نهٔ پرېخودو لکه عبد الله بن عمروؓ ته چه نبي ﷺ

ډیر رخصت ورکړو نو هغهٔ اَوّله کښې په ځان سختی اُوکړه، لیکن کله چه بوډا شو نو هغهٔ اَعمال پرے ګران شو لهذا بیا ئے اَرمان کولو۔ لیکن هغهٔ مقرر اَعمالو کښې ئے کمے نهٔ راوستو۔ ځکه دا مقوله مشهوره ده چه څوک د زیادت طالب نهٔ وی نو هغهٔ د نقصان په لاره روان دے)۔ او ددے وجه نبی ﷺ دعاء غوختے ده (اعوذ بك من الحَوْرِ بعد الکَوْرِ) (یعنی د زیادت نه روستو په نقصان کښې واقع کیدو نه د الله پورے پناه غواړم)۔

---

۱۷- وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ اَبِی الْعَاصِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «كَانَ لِدَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ يُوْقِظُ فِيْهَا اَهْلَهُ يَقُوْلُ: يَا آلَ دَاوُدَ! قُوْمُوْا فَصَلُّوْا، فَاِنَّ هٰذِهٖ سَاعَةٌ يَسْتَجِيْبُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيْهَا الدُّعَاءَ اِلَّا لِسَاحِرٍ اَوْ عَشَّارٍ». رَوَاهُ اَحْمَدُ.

---

ترجمه : او عثمان بن ابی العاص ﷺ فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی چه فرمایل ئے : « د داود ﷺ دپاره د شپے یو ساعت وو چه په هغے کښې به ئے خپل اَهل رابیدارولو او دا به ئے فرمایل : اے د داؤد کور والو ! پاڅیږئ مونځ اُوکړئ ځکه دا یو داسے وخت دے چه پدے کښې الله تعالیٰ (د هرچا) دعاء قبلوی سوئ د جادوګر او عشار نه (چه دے دواړو دعاء نهٔ قبلیږی) (احمدؒ)

تشریح : كَانَ لِدَاوُدَ : داود تخصیص ځکه کوی چه دا اَعبد البشر (د ټولو نه زیات عبادت ګزار) وو۔

لِسَاحِرٍ : یعنی نور کافران خو پدے وخت کښې دعاء نهٔ کوی او که ساحر ځان ته مسلمان وائی نو دومره غټ مُجرم او مُضر دے چه د هغه دعاء هم نهٔ قبلیږی۔ ګویا کښې دا نا امیده دی د الله د هغهٔ رحمت نه چه ټول مخلوقاتو ته عام دے۔ او پدے کښې تنبیه ده چه د مخلوق دعاء قبلیږی هرڅوك چه وی سوئ ددے دواړو نه، د وجه د عظیم جرم د دوی نه۔

عَشَّارٍ : ټیکس اَخستونکی ته وائی، په هغه زمانه کښې ئے هغه چاته وئیلو چه عُشر (مَالِیَه) به ئے اخسته لیکن غُلو او زیادت به ئے پکښې کولو، اصل ئے جائز وو لیکن غلو پکښې ناروا وه، ظلم وو۔ او هر چه نن صبا حکومتونه د مسلمانانو نه ټیکسونه اخلی نو ددے خو بالکل اصل جنس جائز نهٔ دے۔ په مسلمان ټیکس نهٔ وی بلکه دا صرف په کافر وی۔ لکه نبی ﷺ فرمائی : لیس علی المسلمین عشور، انما العشور علی الیهود والنصاریٰ (احمد ۴۷۴/۳– ۴۱۰/۵) تنقیح التحقیق فی احادیث التعلیق (۱۴۶/۳)

(په مسلمانانو ټیکسونه نهٔ وي بلکه ټیکس په یهود او نصاراؤ دے) او د عُشر نه مراد په دغه حدیث کښې دا دے چه د زکاة نه ماسوئ نور ضرائب او ټیکسونه وغیره اَخستل او هغوی په عذاب کول نشته. او ددے عُشر نه مراد هغه عُشر نهٔ دے چه یو ساعی (عَامِل) د مسلمانانو بادشاه راولیږی چه د مسلمانانو نه فرضی ربع عشر یا نصف عشر یا عُشر واخلی یا د اهل ذمهؤ نه – په مالونو د تجارت کښې کله چه هغوی پرے راتیریږی – عشر وغیره اَخلی نو دا نهٔ دے مراد. بلکه هغے کښې خو اجر دے، هان البته که زیادت کوی په شرعی حد باندے نو بیا به پکښې داخلیږی.

او بعض وائی : د عشار نه مراد هغهٔ ماکس (کمے کونکے) عامل دے چه د مسلمانانو حقوقو کښې کمے کوی او هغوی ته پوره حقوق نهٔ ورکوی (قاله البیهقی)

او په حدیث کښې دا اِشاره ده چه کمال عُبودیت یعنی پوره طریقے سره د الله بنده جوړیدل دا دی چه د الله د حکم تعظیم اُوکړے شی او د هغهٔ د مخلوق سره د شفقت او مهربانئ معامله اُوکړے شی.

☆– دارنګه د کور مشر له پکار دی چه خپل رعیت ته د الله د بندګئ تلقین اُوکړی او ځان د هغوی نه غافل نهٔ کړی.

درجة الحدیث : اسناده ضعیف : اخرجه احمد (٢٢/٤) وفیه انقطاع بین الحسن البصری و ابن ابی العاص و کذا فیه علی بن زید وهو ابن جدعان ضعیف.

---

١٨ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «أَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَفْرُوْضَةِ صَلَاةٌ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ». رَوَاهُ اَحْمَدُ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی دی چه فرمایل ئے : «د فرض مانځه نه روستو بهترین مونځ د شپے (د تهجدو) مونځ دے». (احمدؒ)

تشریح : دا حدیث دلیل دے چه د شپے نفل د ورځے د نفلو نه اَفضل دی ځکه چه په دے کښې خشوع زیاته وی، او وخت اَفضل دے او دا خبره اتفاقی ده.

او دا دلیل دے د ابو اسحاق المروزیؒ دپاره چه وائی د شپے مونځ د سنن رواتبو نه اَفضل دے، او دا خبره امام نوویؒ راجحه کړیده د وجه ددے حدیث نه. او اکثر علماء وائی چه سنن رواتب اَفضل دی ځکه چه دا د فرائضو مشابه دی. لیکن اَوله خبره قوی او راجحه ده. د وجه د دغه حدیث نه.

او بله دا چه نبی ﷺ دا سفر او حضر کښې نهٔ دی پریخی او سنن رواتب ئے پریخی دی. او

بعض وائی چه دواړو خبرو کښې منافات نشته ځکه چه تهجد اَفضل دی د وجه د زیات مشقت نه په نفس باندے او د ریاء نه د بُعد په وجه او رواتب اَفضل دی پدے وجه چه دا د فرضو سره په تابعدارئ کښې ډیر مؤکد دی۔ نو د هر یو اَفضلیت په خپل خپل ځائے مُسَلم دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۳٤٤/۲) ولكن الحديث كان اولیٰ ان يعزوه الى مسلم فقد رواه فى الصيام (۸۲۱/۱ رقم (۲۰۲) وسيأتى فى المشكاة فى الصيام۔

---

۱۹ – وَعَنْهُ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ: إِنَّ فُلَانًا يُصَلِّي بِاللَّيْلِ، فَإِذَا أَصْبَحَ سَرَقَ، فَقَالَ: «إِنَّهُ سَيَنْهَاهُ مَا تَقُولُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ».

---

ترجمه : او ابوهریره ﷛ فرمائی: یو سړے نبی ﷺ خوا ته راغلو، عرض ئے اُوکړو: فلانے شخص د شپے مونځ کوی او کله چه صبا کړی نو غلا کوی، نبی ﷺ اُوفرمایل : زر دے چه ددهٔ مونځ به دهٔ لره د هغهٔ څیز نه منع کړی کوم چه تهٔ وے»۔ (احمدؒ، بیهقیؒ)

تشریح : په حدیث کښې عظیم فضیلت د تهجدو ذکر دے چه انسان پدے وجه د گناهونو نه منع کیږی او پدے کښې اشاره ده دے آیت ته ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ﴾ ځکه څوك چه د شپے د مانځه محافظت کوی نو هغهٔ به د ورځے مونځونه هم نهٔ پریدی نو ددے په وجه به د گناهونو نه منع شی، نو د تهجد مونځ ډیر اثر لری۔

سَيَنْهَاهُ : سین د تاکید دپاره دے یعنی ضرور به ئے د گناه نه منع کړی ځکه تهجدو سره زړهٔ نرمیږی او کله چه زړهٔ نرم شی نو بیا انسان غلاګانے نهٔ کوی۔ دارنګه په مانځه دوام کولو سره په زړهٔ کښې یو کیفیت پیدا شی چه هغهٔ انسان د گناه نه منع کوی۔

او دارنګه د تهجدو وقت د استجابت د دعاء وخت دے نو کیدے شی چه دا انسان به په دغه وخت کښې توبه اُوباسی نو الله به ئے د سرقے نه بچ کړی۔

علامه کلاباذیؒ فرمائی : هغهٔ انسان چه قیام اللیل کوی او بیا چه صبا کړی نو غلا کوی نو دا خپل ځان ته د تقصیر په سترګه ګوری، او پدے پوهیږی چه دا کومه غلا کوی نو دا معصیت او ګناه ده چه دهٔ باندے ددے نه توبه ویستل لازم دی۔ او قیام اللیل چه کوی نو دے خپل افتقار وینی الله ته او طلب کوی خلاصے د هغهٔ ګناه او عذاب نه چه په دهٔ باندے د سرقے په وجه لازم شوے ده۔ نو دا د هغهٔ کسانو نه دے چه (خلطوا عملًا وآخر سيئًا) (نیك عمل ئے د بد عمل سره یوځائے کړیدے) او ددا سے کسانو دپاره په الله باندے توبه واجب ده (عسى الله ان يتوب عليهم) او عسیٰ د الله د طرف نه واجب وی۔

(بحر الفوائد المسمى بمعانى الاخيار للكلاباذى) (۱/۲۰۸)
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۲/٤٤۷) والبيهقى فى الشعب (۲۹۹۱) وابن حبان فى صحيحه (١١٦/٤ رقم ۲۵۵۱)

---

۲۰ – وَعَنْ أَبِي سَعِيْدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا أَيْقَظَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ، فَصَلَّيَا أَوْ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ جَمِيْعًا، كُتِبَا فِي الذَّاكِرِيْنَ وَالذَّاكِرَاتِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او ابوسعيد او ابو هريره رضى الله عنهما فرمائى : رسول الله ﷺ فرمائيلى دى : «كله چه يو سړے د شپے خپل أهل رابيدار كړى او دواړه مونځ أوكړى» يا ئے دا أوفرمايل : «چه دوه ركعاته شريك أوكړى، نو دا دواړه به د ذكر كونكو سړو او ذكر كونكو زنانو (په ډله) كښې أوليكلے شى». (ابو داودؒ، ابن ماجهؒ)

تشريح : أَوْ صَلّٰى : يعنى هر واحد دوه ركعاته أوكړى دا (أَو) شك د راوى دے چه (صليا) ئے وئيلے دے او كه (صلى). او ركعتين مفعول د دواړو جوړيږى. يعنى دواړه دوه ركعاته أوكړى يا هر واحد دوه ركعاته أوكړى مطلب ئے يو دے. خو صرف راوى شك ښكاره كوى. او د جميعاً مطلب دا نۀ دے چه دواړه په يو ځائے راپاځيږى يا دواړه جمعه أوكړى بلكه مطلب دا دے چه په يوه شپه كښې راپاځى، څوك مخكښې څوك روستو. او صرف دوه ركعاته أوكړى نو په ذاكرين او ذاكراتو كښې به أوليكلے شى كوم چه د مؤمنانو صفت دے (والذاكرين الله كثيراً والذاكرات). نو پدغه آيت باندے عمل د تهجدو په كولو سره هم راځى. او د غافلينو د فهرست نه به ئے نو مونه ختم شى.

نو حديث نه معلومه شوه چه اقله درجه د صلاة الليل دوه ركعاته دى.

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (۳۰۹) وابن ماجه (۱۳۳۵) والحاكم فى المستدرك (۱/۳۱٦) وصححه الحاكم والذهبى والنووى والعراقى والعسقلانى.

---

۲۱ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَشْرَافُ أُمَّتِيْ حَمَلَةُ الْقُرْآنِ، وَأَصْحَابُ اللَّيْلِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ «شُعَبِ الْإِيْمَانِ».

ترجمه : او ابن عباس رضی الله عنه فرمائى: رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « زما د امت شريفان (أوچتے مرتبے والا) قرآن پورته كونكى او د شپے والا دى (يعنى د تهجدو ته پاځيدونكى

دی) »۔ (بیهقیؒ)

تشریح : حَمَلَه جمع د حَامِل ده، مراد ترینه د قرآن حافظان دی چه د هغې په تلاوت همیش والے کوی او د هغې په احکامو عمل کوی۔ او ورسره هغه د شپے په مانځه کښې ولاړ وی۔ ځکه کوم خلق چه نفس الفاظ د قرآن یادونکی وی او د هغې په مقتضیٰ عمل نهٔ کوی نو دا د أشرافو په ځائے په (کمثل الحمار یحمل اسفاراً) کښې داخلیږی۔

(یعنی داسے گرځی لکه چه خر باندے دینی کتابونه بار وی او هغه د هغې نه فائده نهٔ اخلی) نو دغه شان دے انسان صرف الفاظ یاد کړیدی او هیڅ فائده ترے نهٔ اخلی۔ په هغې باندے عمل نهٔ کوی۔

خلق شرافت په دنیاوی کارونو، مالونو، انگریزی زده کولو کښې گنړی او نبیﷺ فرمائی چه شرافت په قرآن او تهجدو کښې دے۔

درجة الحدیث :

اسناده ضعیف جداً : اخرجه البیهقی فی الشعب (٢٩٧٧) وفی اسناده نهشل ابوعبد الله وهو نهشل بن سعید ضعیف متهم وسعد بن سعید الجرجانی وهو ضعیف۔قال الذهبی لا یصح حدیثه هذا عن نهشل القرشی) واصح منه حدیث «شرف المؤمن قیامه باللیل وعزه استغناء ه عن الناس» فانه حسنه الطبرانی فی الاوسط والعراقی والخطیب البغدادی والالبانی فی الصحیحة (٨٣١)٤٨٣/٢) وصححه الحاکم (کشف الخفاء ٥٩/٢) للعجلونی۔

---

٢٢ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، اَنَّ اَبَاهُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللهُ، حَتّٰى إِذَا كَانَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ أَيْقَظَ أَهْلَهُ لِلصَّلَاةِ، يَقُوْلُ لَهُمْ : اَلصَّلَاةَ، ثُمَّ يَتْلُوْ هٰذِهِ الْآيَةَ : ﴿ وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْئَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى﴾. رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

ترجمه : او د عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دے چه ددهٔ پلار عمر بن الخطابؓ به د شپے مونځ کولو څومره چه به د الله اراده اُوشوه، تردے چه کله به د شپے آخر شو نو خپل کور والا به ئے مانځه ته راببیدار کړل او دا به ئے ورته فرمایل : مونځ اُوکړئ، او بیا به ئے دا آیت تلاوت کړو : ﴿ وامرأ اهلك بالصلاة الخ﴾ (اے محمد (ﷺ) خپل أهل ته د مانځه حکم کوه او خپله هم پدے باندے کلک شه، (ددے په مشقتونو باندے صبر کوه) مونږ تا نه رزق نهٔ غواړو (بلکه) رزق خو مونږ تا ته درکوو، او د آخرت نیکی خو صرف د پرهیزګارو دپاره

ده)۔ (مالك)

**تشریح :** ښځې د سرو په مقدار عبادت نشي کولې نو ځکه به ئې زنانه په آخر کښې راپاڅولې۔ او حدیث دلیل دے چه ځوك په فرائضو ورسره په تهجدو پابندی کوی نو هغه ته به الله تعالیٰ د خپل طرفنه فراخه رزق ورکوی او د متقینو بندګانو په فهرست کښې به ئې داخلوی۔ لکه حدیث قُدْسی کښې راغلی دی : (یا ابن آدم تفرغ لعبادتی املأ صدرك غنی واسد فقرك الخ) (اے د آدم ځویه ! زما عبادت ته ځان اُوزګار کړه، زه به ستا سینه د مالداریٔ نه ډکه کړم او ستا فقر به بند کړم، او که دا کار دِے اُونکړو نو ستا لاس به همیشه د مشغولتیا نه ډك کړم او ستا فقر به بند نهٔ کړم) المستدرك (۲/۴۸۱)

او حدیث نه معلومه شوه چه د تهجد د مانځه مقرره اندازه نشته بلکه د انسان د نشاط او رغبت او قوت مطابق عمل دِے کوی چه دهٔ له په هغے باندے دوام ممکن وی، او په آخر کښې ئې اهل رابیدار کړل، دے دپاره چه دوی هم د شپے د مانځه نه څهٔ حصه حاصله کړی اګرکه کمه وی او دا به ئې په افضل اَوقاتو کښې راپاڅول چه هغهٔ د صبا د راختلو نه مخکښې اَوقات دی۔

او بیا د آیت په لوستلو کښې دوه احتماله دی یو دا چه ځان ته تیزی ورکوی چه زهٔ چه دا اهل رابیداروم نو دا عمل کوم پدے آیت چه الله فرمائی : خپل اهل ته امر په مانځه کوه۔ او ددے آیت په لوستلو کښې به ددهٔ قصد او اراده ښهٔ مضبوطیږی۔

۲- یا ئې ددے دپاره لوستلو چه د هغوی د رابیدارولو نه عذر پیش کوی چه تاسو ځکه زهٔ رابیداروم چه د الله حکم دے چه اهل ته په مانځه حکم کوه۔

المنتقی شرح الموطا (۱/۲۷۴)

د حبیب ابو محمد ښځې به خاوند ته داسے وئیل : شپه تیره شوه او زمونږ مخے ته وراندے لاره ده، او توښه لږه ده، او د صالحینو قافلې زمونږ نه مخکښې لاړے، او مونږ پاتے شو۔

يـــا نـــائـمَ الـــلـيـل كـــم تـــرقُـــدُ   قُـمْ يـــا حبيـبـي قـدْ دَنَـــا الـمَـوْعِـدُ

وخُـــذْ مِـــنَ الـــلـيـل وأوقـــاتِـــهِ   ورْدًا اذا مــــا هَـــجَـــعَ الــرُّقَّـــدُ

مَـــنْ نَـــامَ حتـى يـنـقـضِـي لَيْـلُـــهُ   لـــم يَبْـلُـغِ الـمَـنْـزِلَ اَوْ يَـجْـهَـدُ

قُـــلْ لِــذَوِي الالبَـــابِ اَهْـلِ الـتُّـقـىٰ   قَـنْـطَـرَةُ الـعَـرْضِ لَـكُـمْ مَـوْعِـدُ

(۱) اے د شپے اُودهٔ تر څو پورے به تهٔ اُودهٔ پروت ئې، اے زما حبیبه ! پاڅه، ځائے د وعدے رانژدے شوے دے۔

(۲) د شپې د اوقاتو نه برخه ځان سره واخله او کله چه خوبیان خوبونه کوي نو ته ئې د ځان نه لرې کړه.

(۳) ځوك چه تول شپه اُوده وي تردې چه شپه ختمه شي نو هغهٔ به منزل ته اُونهٔ رسي تردې چه بنهٔ به اُوکړېږي.

(٤) اُووايه عقلمند، متقیانو ته ! د عرض پُل ستاسو دپاره ځائې د وعدې دې.

(لطائف المعارف ص : ۲۰۷، المجلس الرابع) (الشاملة)

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (۱۱۹).



# باب القصد فی العمل

## په اعمالو کښې د درمیانه روی کولو بیان

مصنف دا باب دیر مناسب ځائے کښې راوړے دے ځکه مؤمن سړے چه کله د تهجدو د فضائل واوری نو هغهٔ عزم اُوکړی چه زهٔ به توله شپه مونځونه کوم نو دا کار ورله مناسب نهٔ دے۔ نور حقوق به نهٔ ضائع کوی۔ او داسے به هم نهٔ کوی چه دومره حدیثونه واوری او هسے ئے ضائع کړی، د شپے هیڅ تهجد اُونکړی بلکه درمیانه روی به کوی۔ او هر سړے به خپل حالت ته گوری نو د هغے مطابق به ځانله اندازه مقرر کړی۔

قصد : په درمیانه لاره باندے روانیدو او د افراط او تفریط ترمینځ لاره اختیارولو ته وائی۔ یعنی دا کار مستحب دے چه اقتصاد اُوکړے شی۔

### الفصل الاول

١ – عَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُفْطِرُ مِنَ الشَّهْرِ حَتّٰى يُظَنَّ اَنْ لَايَصُوْمَ مِنْهُ، وَيَصُوْمُ حَتّٰى يُظَنَّ اَنْ لَّايُفْطِرَ مِنْهُ شَيْئًا، وَكَانَ لَا تَشَاءُ اَنْ تَرَاهُ مِنَ اللَّيْلِ مُصَلِّيًا اِلَّا رَأَيْتَهُ، وَلَا نَائِمًا اِلَّا رَأَيْتَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : انس رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ به د میاشتے نه (په اکثرو ورځو کښې) روژه نهٔ نیوله تردے چه مونږ به گمان کولو چه رسول الله ﷺ ددے میاشتے نه روژے نهٔ نیسی، او نبی ﷺ به (ددے میاشتے یا د بلے میاشتے نه په اکثرو ورځو کښې) روژه نیوله تردے چه مونږ به گمان کولو چه ددے میاشتے نه روژه نهٔ ماتوی، (نهٔ کوچه کیږی) او تا به دا نهٔ غوختل چه نبی ﷺ لره د شپے په مانځه باندے اُووینے مگر لیدلو به دے، او د شپے به دے اُودهٔ لیدل نهٔ غوختل مگر اُودهٔ به دے لیدلو۔ (بخاریؒ)

تشریح : د حدیث مقصد دا دے چه نبی ﷺ به په هر عمل کښې درمیانه روی کوله چه توله میاشتے به ئے روژے هم نهٔ نیولے او توله میاشت به کوچه هم نهٔ وو بلکه درمیانه به چلیدو چه دیر کرت روژے به ئے نیولے او دیر کرت به ئے نهٔ نیولے، او د خوب په وقت کښې به اُوده کیدو چه هغه اول د شپے دے او د تهجدو په وخت کښې به ئے تهجد کول یعنی په

آخر د شپه کښې، دغه شان د روژو په وخت کښې به ئې روژې نیولې او د کوجو په وخت کښې به کوجه وو۔

۲- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَحَبُّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللهِ أَدْوَمُهَا وَإِنْ قَلَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائی : «(د بندګانو په نیك اعمالو کښې) بهترین اعمال الله ته هغهٔ دی چه همیشه وی اګرکه کم وی »۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : دا حدیث په جواب د یو سوال کښې وئیلې شویدې، عائشهؓ فرمائی : د نبی ﷺ نه تپوس اُوشو : (ای الاعمال اَحَبُّ الی اللّٰه ؟) الله ته کوم عمل بهتر دې؟) نو هغه اُوفرمایل : هغه عمل چه همیشه وی۔(صحیحین)۔

مطلب دا دې چه لږ عمل د مداومت سره ډیر غوره دې د هغهٔ ډیر عمل نه چه محافظت او مواظبت پرې اُونهٔ کړې شی ځکه لږ عمل دا ډیر ته رسیږی د هغهٔ ډیر عمل نه چه یو کرت دوه کرته اُوکړې شی او بیا ئې پریدی۔

امام نوویؒ فرمائی : ځکه په کم عمل باندې دوام کولو سره د الله طاعت، ذکر، مراقبه، نیت، اخلاص او اقبال علی الخالق (الله ته متوجه کیدلو) باندې همیشوالې کیږی۔ په خلاف د هغهٔ ډیر عمل نه چه منقطع شی، او لږ همیشه عمل داسې ډیر ثمرات ورکوی چه هغهٔ په ډیر عمل باندې په چندونو زیاتیږی۔

علامه ابن الجوزیؒ فرمائی : لګ عمل چه همیشه وی د ډیر عمل نه چه منقطع وی ولې افضل دې ؟ نو یوه وجه دا ده چه د یو عمل شروع کولو نه پس هغه منقطع کول داسې دی لکه د وِصال نه پس اِعراض کول او داسې انسان مستحق د ذم او بدئ وی۔ چه د الله سره ئې تعلق جوړ کړې وی بیا ئې کټ کړی۔ لکه دغه شان وعید راغلې په حق د هغه چا کښې چه یو آیت یاد کړی بیا ئې هیر کړی۔ ۲- دویم دا چه همیشه نیك عمل کښې مصروف کیدل لازم دی د خدمت سره ځکه چه څوك هره ورځ څه نا څه وخت په دروازه کښې ولاړ وی دا په شان د هغه چا نهٔ دې چه هغه یوه مکمله ورځ اُودریږی او بیا بند شی۔

امام غزالیؒ فرمائی : د قلیل عبادت چه دائم وی مثال داسې دې لکه د اُوبو څاڅکی چه په زمکه باندې متواتر څاځی نو دا په زمکه کښې ضرور شینکی پیدا کوی اګرکه په یو کاڼړی باندې راپریوځی۔ او د ډیر متفرق عبادت مثال داسې دې لکه په یو ځل چه ډیرې

اُویـه راپـریـوزی چه هیڅ اثرئے نهٔ ښکاره کیږی۔ فیض القدیر (۳/٦۳٤) للمناوی۔والمرعاة (٤/٢٤٠)

۳- وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «خُذُوْا مِنَ الْاَعْمَالِ مَا تُطِيْقُوْنَ، فَاِنَّ اللّٰهَ لَايَمَلُّ حَتّٰى تَمَلُّوْا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «دومره أعمال کویٔ څومره چه ستاسو (د همیشه کولو) طاقت وی، ځکه الله تعالیٰ (د ثواب ورکولو) نه نهٔ تنګی کیږی تردیے چه تاسو به خپله تنګ شیٔ »(یعنی تنګ به شیٔ او عبادت به پریدیٔ، نو اَجر به درنه منقطع شی) (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : دا حدیث نبی ﷺ په هغه وخت کښ وئیلے وو چه عائشه رضی الله عنها ته حَوْلَاء بِنْتِ تُوَیْت راغلے وه نو دیے نبی ﷺ ته اُوفرمایل : یارسول الله !آیا تا ته پته شته ؟ دا هغهٔ زنانه ده چه توله شپه عبادت کوی نو نبی ﷺ اُوفرمایل :

(مَهْ، عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيْقُوْنَ الخ) (مَهْ ! دا کـار مهٔ کـوه، بـلکه د خپل وسع مطابق کار کوه) (بخاری ۸٤/۱) واصحاب السنن)

نـو د حدیث مطلب دا دیے چه ځان باندیے د خپل وسع مطابق أعمال مقرر کړیٔ ځکه چه کلـه تـاسو تـازه ئے او په تازګی او شوق سره عبادت کویٔ نو الله به درله د هغے مطابق اَجر درکوی او کله چه تاسو ستومانه شیٔ او عمل درباندیے زُورَور شی نو بیا به ئے پریدیٔ او چه کلـه مو پریخودو نو بیا به تاسو نه اَجر بند شی ځکه چه کله تاسو همیشه اعمال کول نو الله بـه درنـه اجر نهٔ منقطع کوی خو کله چه تاسو اَعمال پریخودل نو تاسو نه به اجر منقطع شی نو خپل تاوان به اُوکړیٔ۔

بعض وائی ددیے معنیٰ دا ده چه د الله حق په طاعت کښ په تاسو باندیے نهٔ ختمیږی تـردیے چه ستـاسو جُهد او کوشش به ختم شی لهذا د وسع مطابق اَعمال مقرر کړیٔ چه ستاسو طاعت الله دپاره همیشه وی او د هغه اَجرونه ستاسو دپاره همیشه وی۔

نـو د کـومو سلفو نه چه توله شپه مونځ نقل دیے نو دا احادیث ورته ندی رسیدلی۔ ورنه توله شپه عبادت همیشه دپاره د سنت خلاف دیے۔ او کله نا کله روا دیے۔

٤- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «لِيُصَلِّ اَحَدُكُمْ نَشَاطَهُ، وَاِذَا فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «په تاسو کښې دې يوتن ترهغۀ وخته پورې مونځ کوي چه ځوپورې تازۀ وي (زړۀ ئې خوشحاله وي) او کله چه سُست شي نو بيا دې کيني». (بخاري ومسلم)

تشريح : وَاِذَا فَتَرَ : ۱- ددې يو مطلب دا دې چه د خپل نشاط مطابق مونځ کوه کله چه په مينځ د مانځه کښې سست شې نو کينه او په ناسته مونځ پوره کړه.

۲- يا مطلب دا دې چه کله د بعض سلامونو نه فارغ شي نو د باقي نوافلو دپاره دې ناسته اُوکړي او هغۀ دې په ناسته سره اُوکړي. ۳- دريم ظاهر مطلب دا دې چه کله بعض مونځ اُوکړي او تنګ شي نو بيا دې کورته لاړ شي، او مونځ دې تر هغۀ وخت پورې پريدي چه بيرته ورته نشاط (او تازګي) راشي. لکه روستو روايت کښې "فليرقد" لفظ دې هغۀ ددې قعود تفسير دې. نو چه کله انسان ستومانه شي او مونځ کښې ئې توجه خرابيږي نو بيا ورله اُودۀ کيدل پکار دي ځکه چه مونځ د الله د تعلق شې دې او چه کله تعلق خراب شي نو بيا مسې ځکنه پورته کيدلو نه هيڅ فائده نۀ ملاويږي.

او ددې حديث سبب ورود دا دې چه انس فرمائي : نبي ﷺ مسجد ته راغلو نو د دوه ستنو ترمينځ يوه رسۍ (پړې) ئې اُوليدو چه راځوړند شوې وو، وې فرمايل : دا رسۍ ولې ځوړنده ده؟ خلقو عرض اُوکړو : دا رسۍ د ام المؤمنين زينت بنت جحش ده، (هغۀ د شپې عبادت کوي) کله چه ستړې شي نو دې پورې ځان تړي. نبي ﷺ ارشاد اُوفرمايل : داسې نۀ ده پکار. دا کولاوه کړئ». او بيا ئې دغه ارشاد اُوفرمايلو.

فوائد الحديث : ۱- حديث کښې تيزي ده پدې خبره چه په عبادت کښې اقتصاد (درميانه روي) پکار ده. و په عبادت کښې د تعمقاتو نه ځان ساتلو نه نهي ده. او مانځه ته په نشاط او رغبت سره متوجه کيدلو ته ترغيب دې.

۲- او پدې کښې منکر په لاس او ژبه زائل کول دي.

۳- زنانه دپاره نوافل وغيره په مسجد کښې کول جائز دي.

٤- په مانځه کښې د رسۍ پورې ځان تړل مکروه دي. ٥- خشوع په مانځه کښې مُهم شې دې.

---

٥- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اِذَا نَعَسَ اَحَدُكُمْ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَلْيَرْقُدْ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ، فَاِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا صَلّٰى وَهُوَ نَاعِسٌ لَايَدْرِيْ لَعَلَّهٗ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبُّ نَفْسَهٗ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائی : «کله چه یو تن ستاسو ته په مانځه کښې خوب ورشی نو اُودهٔ شی تردے چه کله خوب ترے لاړ شی (نو بیا دے پاځیږی او مونځ دے کوی) ځکه یو تن ستاسو چه کله مونځ کوی او دا خوب نیولے وی نو دے به (په خپله خبره) نهٔ پوهیږی نو شاید چه دے به مغفرت طلب کوی نو (د خوب د غلبے په وجه به) ځان ته ښیرے اُوکړی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : د اُودهٔ کیدو دا قانون د نفلی مونځ باره کښې دے دا وجه ده چه په باب د نفلی مانځه کښې ئے راوړیدے او د فرض مانځه باره کښې دا قانون نهٔ دے ځکه که انسان له د فرض مانځه په وخت خوب ورشی او دا لاړ شی اُودهٔ شی نو بیا خو به ترے مونځ قضاء شی نو دا به د خوب د ازالے کوشش کوی او فرض مونځ به کوی ځکه په فرض مانځه باندے دومره وخت نهٔ لګی، او که نفل قضاء شی نو روستو به ئے قضاء راوړے، نهٔ ګنا هګاریږی او فرض قضاء کول ګناه ده۔ مګر حافظ فرمائی : دا حدیث اګرکه د نفل مانځه باره کښې راغلے دے (لکه مخکښې د حَوْلَاءِ بنت تُوَیْت واقعه کښې وئیلے شویدے) مګر عبرت عموم د الفاظو لره دے نه خصوص د سبب لره لهذا په فرائضو کښې به هم پدے باندے عمل کیږی ترڅو پورے چه د وخت د فوت کیدو خطره نهٔ وی۔

او په بخاری کښې په حدیث د انسؓ کښې دی : (فلینم) یعنی دغه مونځ به پوره کړی۔ (په تخفیف سره) ځکه چه ددے علت احتمالی دے۔ او دا امر د استحباب دپاره دے نهٔ د وجوب دپاره (قاله الزرقانیؒ) ځکه نعاس چه کله سنت شی نو پخپله مونځ قطع کیږی بغیر د اختیار د مصلی نه نو حاجت نشته وجوباً امر کولو ته په قطع کولو د مانځه۔ او امام مهلبؒ دا په ظاهر باندے حمل کړیدے هغهٔ وئیلی دی چه کله انسان ته خوب په مانځه کښې ورشی نو مونځ به قطع کوی او دا مونځ به سرته نهٔ رسوی۔ مګر اول قول راجح دے۔

او حکمت پدے اُودهٔ کیدو کښې دا دے چه که څوك د خوب په حالت کښې مونځ کوی نو هسے شمار به پوره کړی لیکن د ما نځه چه کوم خوند دے هغه به حاصل نهٔ شی چه هغه تعلق د الله دے۔ بل علت ئے دا ذکر کړیدے چه د خوب په حالت کښې مونځ کوی نو ځان به ته د دعاء په ځائے ښیرے اُوکړی لکه «اللهم اغفر لی» په ځائے «اللهم اعفر لی» اُووائی (اے الله ما په خاورو کښې راکاږهٔ) او دا خو د مانځه منافی کار دے۔

او ابن ابی جمرهٔ وائی چه علت د نهی دا دے چه یَره ده چه دا دعاء به د اِجابت د ساعت سره موافق شی نو انسان به هلاك شی۔ او یا به اُووائی : (اللهم اغفر للکافرین او اللهم اهلك المسلمین) وغیره نو کفارو ته به دعا او مسلمانانو ته به ښیرے اُوکړی۔

حافظ زين الدين العراقيؒ فرمائی : په حالت د نعاس (خوب) کښې په ځان ته ښيرے کولو باندے دا انسان ماخوذ دے وجه دا ده چه پدے حالت کښې دا مانځه ته د نږدے کيدو نه منع شوے دے او دا بيا هم ځان پيش کوی او ځان پدے ښيرو وغيره کښې واقع کوی نو دا متعدی دے۔ او که بالفرض گناهګار نهٔ شی ځکه چه قصد ئے نشته نو بيا مقصود د مانځه نه اداء کول د مانځه دی په هغهٔ طريقه چه دهٔ ته پرے امر شويدے او ځان ته دعاء کول دی او ددے په فوت کيدو سره مقصود فوت کيږی۔ او د حديث نه دا معلومه شوه چه کله د مانځه نه مشغولونکے شے يا د هغے د اهتمام نه حائل واقع شی نو مونځ به نهٔ کيږی او دلته ئے نعاس ذکر کړو ځکه چه دا غالب الوقوع دے۔ (فيض القدير (١/٥٧٤)

---

٦– وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اِنَّ الدِّيْنَ يُسْرٌ، وَلَنْ يُشَادَّ الدِّيْنَ اَحَدٌ اِلَّا غَلَبَهٗ، سَدِّدُوْا، وَقَارِبُوْا، وَاَبْشِرُوْا، وَاسْتَعِيْنُوْا بِالْغُدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ، وَشَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او ابو هريره ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائيلی دی : « دين آسان دے، او هيچرے ځوك دين كښې سختى نهٔ كوی مگر هغهٔ به پرے غالبه كيږی، لهذا (په دينی اُمورو كښې) درميانه روی كوئ، او د خپل طاقت مطابق عمل اِختيار كړئ او (د جنت او سلامتيا او د الله په اِنعاماتو سره) خوشحاله شئ، (ځكه الله په لږ عمل باندے كله چه په مداومت او اخلاص سره وی ډير اَجر وركوی) او د صبا او بيگاه په وخت او د شپے په يوه حصه سره د الله نه مدد غواړئ »(يعنی بندگی پكښې اُوكړئ) (بخاریؒ)

تشريح : يعنی دا دينِ اسلام آسان دے، داسے مشقتونه نهٔ لری چه د سړی د مزاج خلاف وی۔ لكه بعضے خلقو ډير گران كړيدے چه وائی د ټول امت نه به الله د يو كافر په باره كښې تپوس كوی، چه امريكه كښې يو كافر مړ شو نو الله به مونږ نه تپوس كوی، داسے نهٔ ده۔ او دا رنگه دين كښې آسانی ده نو په ځان باندے ئے په زوره مهٔ سختوئ لكه د رهبانيت والو په شان ۔ او دين ته ئے چه آسان وئيلے دے نو دا په نسبت سره ذات ته يا په نسبت سره باقی دينونو ته چه پخوانو دينونو كښې اَغْلَال او گران گران احكام وو او دے اُمت ته الله تعالیٰ هغه معاف كړل او آسان احكام ئے پرے مقرر كړل لهذا په دينِ اسلام كښې چه اُوس كوم احكام او اعمال دی نو دا بالكل آسان دی۔ اگركه خلقو ته به گران ښكاری بلكه د انسانانو د وسع مطابق دی۔

وَلَنْ يُّشَادَّ الدِّيْنَ : (اى لن يُقَاوِمَ الدِّيْنَ بالشدّةِ) يُشَاد په ضمه د ياء او تشديد د دال سره د شدت نه دے يعنى په شدت سره د دين مقابله څوك نشى كولے چه د دين ټول اعمال په ځان مقرر كړى مگر دا دين به پرے غالبه كيږى پدے شان سره چه انسان به ددے اَعمالو نه كمزورے او عاجز شى نو بيا به ئے نشى كولے، مغلوب به شى او دين به پرے غالب شى او دا حكم هم په باره د نفلى اعمالو كښ دے، نهٔ فرضى اعمال۔

او ددے مثال دا دے چه يو انسان ټوله شپه مونځ كوى او د خوب سره مقابله كوى نو ايسته به په آخر د شپه كښ ددهٔ په سترگو باندے خوب غالبه شى نو اُودهٔ به شى او د سحر مونځ به ترے د جَمعے سره فوت شى۔ نو د گټے په ځائے ئے تاوان اُوكړو۔

او تجربه شاهده ده چه څوك په دينى كارونو كښ تشدد كوى او د اعتدال د حدودو نه زيادت كوى نو هغه ضرور پاتے راځى لكه يو انسان ټوله ورځ وعظ نصيحت كوى يا ټوله ورځ نفلونه كوى يا ټول عمر روژے نيسى او هره ورځ قرآن ختموى نو دا به ضرور ددے نه عاجز راځى، آخرى نتيجه به ئے دا وى چه هغه اعمال به بالكليه پريدى۔ لكه يو انسان نوے صحيح العقيده شى يا دين طرفته راشى او د هيچا سره خبرے نهٔ كوى بس نفلونو ته لگيدلے وى نو لگ وخت پس به دا كار ورته گران ښكاره شى، نو منقطع به شى۔ نو استقامت سره كار پكار دے چه انسان دومره اَعمال په ځان مقرر كړى چه هغه هميشه كولے شى۔ او دا د نبى ﷺ د نبوت يوه نښه ده چه بالكل صادقه شويده چه څوك د دين سره مقابله نشى كولے مگر هغه پرے غالبه كيږى۔

او حديث نه دا فائده معلومه شوه چه د شريعت په رخصتونو باندے عمل كول پكار دى څكه د رخصت په ځائے باندے په عزيمت عمل كول په دين كښ تنطع او تشدد دے لكه د اُوبو د استعمالولو نه د عجز په وخت يو انسان تيمم نهٔ كوى نو دهٔ ته به د اُوبو په استعمال ضرر ملاؤ شى۔نو د ځان تاوان به اُوكړى او دا به ځان ته بزرگ وائى۔ په پخوانو امتونو باندے شيطان په همدے طريقه كامياب شويدے چه هغهٔ به ورته په صورت د ناصح او خيرخواه كښ ځان پيش كړو او خلقو ته به ئے د دين په جامه كښ ځان راداخل كړو او آخر به پرے كامياب شو، هغوى به ئے په غلو فى الدين كښ واقع كړل، اُوگوره قوم نوح ته چه شيطان ورته په نيكه جامه كښ راغلو چه دا نيكان خلق خو ستاسو مشران وو د دوى شكلونه جوړ كړئ او آخر كښ په هغوى او د هغوى په نسل ئے د بتانو عبادت شروع كړو، د شيطان او د شيطان د ملگرو ډير لرے ذهن وى، هغوى د پنځوس كالو مخكښ سوچ وى۔ او ددے متعلق حديث كتاب الاعتصام كښ تير شويدے : (لا تشددوا على انفسكم

يشدد الله عليكم فان قوماً شددوا على انفسهم فشدد الله عليهم فتلك بقاياهم في الصوامع والديار) الخ وسنده جيد)

سَدِّدُوْا: يعني درميانه روان شئ په عمل كولو كښې-يعني درميانه روى اُونيسى.

وَقَارِبُوْا: يعني نزدے نزدے شئ كامل اعمالو ته يعني كه پوره طريقې سره يو عمل نشئ راګيرولے نو هڅې ته چه كوم نزدے عمل وى هغه خو اُوكړئ. او ځان مهٔ فاسقان كوئ.

٢- يا معنىٰ دا ده چه الله ته ځان نزدے كړئ په اعمالو او داسے هم مهٔ كوئ چه بالكل اَعمال پريدئ.

وَاَبْشِرُوْا: يعني خوشحاله شئ او زيرے حاصل كړئ په ډير اَجر سره په هميشه عمل كولو باندے اګركه كم وى. يا دا چه څوك په اكمل باندے د عمل كولو نه عاجز شى او دا عجز دهٔ په اختيار كښې نهٔ وى نو خوشحاله شئ چه الله به درنه اجر نهٔ كموى بلكه د همدغه مكمل عمل اجر به دركوى. بيا خوشحالي په څهٔ ده؟ نو هغه ئې ندے ذكر كړے تعظيماً او تفخيماً.

وَاسْتَعِيْنُوْا: نو اُوس طريقه د سداد (درميانه روئ) بيانوى چه په دے درے اَوقاتو باندے د الله په بندګئ مدد طلب كړئ نو مقصد ته به اُورسيږئ. او دا ډير بهترين اَوقات دى. چه سحر او ماښام او د شپے په څه حصه كښې انسان اعمال كوى.

بيا «غدوة» سحر وخت كښې مزل كولو ته وائى او «روحه» ماښام كښې او «دُلجه» د شپے په آخرى حصه كښې مزل كولو ته وائى او دا د مسافر دپاره بهترين اَوقات دى نو پدے كښې اِشاره ده چه ستاسو سفر هم الله طرفته شروع دے، هغه ته سير كوئ نو دا اَوقات درنه ضائع نشى.

الدُّلْجَةِ: دا په فتحه د دال او ضمه دواړو سره جائز دے. د شپے آخرى حصه كښې مزل كولو ته وائى او بعض وائى: ټوله شپه مزل كولو ته وائى دا وجه ده چه دلته ئې پرے من تبعيضيه داخل كړو. او بعض فرق كوى: په ضمه د دال د شپے په آخرى حصه كښې سفر شروع كولو ته وائى. او چه په فتحه د دال شى نو ټوله شپه مزل كولو دپاره استعماليږى لكه د ادلاج په شان. (دليل الفالحين ٢/٦٧) لمحمد على بن محمد بن علان البكرى الصديق المتوفى (١٠٥٧هـ).

---

٧- وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ اَوْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ، فَقَرَأَهُ فِيْمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ، كُتِبَ لَهُ كَاَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عمر ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «څوك چه د خپلې وظيفې يا څه حصې د وظيفې او وِرد نه اُوده پاتې شو او بيا ئې هغه د صبا او د ماسپښين مانځه ترمينځ وخت كښې اُولوستل نو دهٔ دپاره به داسې اُوليكلې شي لكه ګويا كښې چه د شپې ئې لوستلې وي». (مسلمؒ)

تشريح : حِزْبِه : حزب ورد او وظيفې ته وائي څكه هر مؤمن ځان له د مستحب اَعمالو نه يو وِرد مُقرر كړې وي. نو حديث كښې دوه فائدې دي يو دا چه د تهجدو او اَذكارو او نوافلو قضائي هم شته څكه په عباداتو باندې هميش والې كول د الله په نزد محبوب دي.

۲- دويم دا چه دې وِرد كښې كه اَذكار او تلاوة د قرآن وي نو دا خو د سحر مانځه نه روستو كولې شي او كه نوافل مطلقه وي يعني مونځ وي نو بيا دا د سحر مانځه نه تر نمرخاته پورې نهٔ كيږي نو هغه به بيا د نمر خاته نه روستو كوي.

خو دا كار د هغهٔ چا په حق كښې دې چه خوب پرې غير اختياري غلبه كړې وي بدن ئې وران وي، يا بل عذر ورته راپيښ شوې وي او نيت ئې د رابيداريدو وي. نو دهٔ له الله ددغه عمل مكمل اَجر وركوي څكه چه ددهٔ نيت ښائسته دې او د هغهٔ عمل پسې خفه دې. نو هغه شان اَجر وركوي لكه چه دهٔ كړې وي. او دې ته إشاره ده پدې آيت كښې ﴿ هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ الَّیْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا﴾ (يعني الله شپه او ورځ د يو بل خليفه جوړ كړيدي چه د شپې درنه وِرد پاتې شو د ورځې ئې اُوكړه او كه د ورځې درنه پاتې شو د شپې اُوكړه خو ددې نه دا فائده هغه څوك اخلي چه اراده د نصيحت او اراده د شكر لري).

دا حكم اګركه د شپې په باره كښې وئيلې شويدې ليكن د ورځې متعلق هم دغه حكم دې، چه ددې د شپې قضائي راوړهٔ لكه ددې آيت نه واضحه شوه. او دا د الله تعالىٰ محض فضل او احسان دې او په امت باندې ئې شفقت او رحمت دې چه انسان باندې كله دغه شان مرض يا سفر يا بل مانع راشي او د شپې د بهترين مونځ نه ئې منع كړي نو كهٔ د ورځې ئې په دغه وقت كښې اُوكړي نو الله ورته داسې اجر وركوي لكه د شپې چه ئې لوستلې وي.

علامه شوكانيؒ فرمائي : صحابه كرامو به قضائي راوړله د هغهٔ اذكارو چه دوي به په مخصوص اوقاتو كښې كول او بيا به ترې فوت شول.

۳- دريمه فائده دا ده چه نفلي اذكار او عباداتو كښې څهٔ تحديد نشته بلكه زيادت او كموالې بقدر الوسع جائز دې، لكه يو انسان شپاړس ركعاته كوي او بل دولس كوي، يو (۵۰۰) سوه كرته تسبيح وائي او بل ددې نه كم يا زيات وائي نو دا به بدعت نهٔ شمارل كيږي، څكه په بدعت كښې د تخصيص سره د ثواب إعتقاد وي.

۸- وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «صَلِّ قَائِمًا، فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا، فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَعَلٰى جَنْبٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه: او عمران بن حصين ؓ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «په ولاړهٔ مونځ کوه، کهٔ طاقت دې نهٔ وي نو په ناسته ئې کوه او کهٔ په ناسته هم طاقت نهٔ لرې نو په اړخ ئې کوه». (بخاريؒ)

تشريح: صَلِّ: دا حديث په جواب د سوال د عمران بن حصينؓ کښې راغلې دې لکه ددې حديث په ابتداء کښې داسې راغلي دي، عمران بن حصينؓ فرمائي: (کانت بي بواسير فسألت رسول الله ﷺ عن الصلاة فقال صل قائماً الخ) (په ما باندې بواسيرو بيماري وه) (بواسير جمع د باسور ده دا د مقعد په باطني طرف کښې يو پرسوب دې.

بعض وائي: دا په کولمگئ کښې يوه بيماري ده چه راپيدا کيږي د راخکلو د رگونو د کولمگئ نه او بيا په هغې کښې جاري وينه پيدا شي. طبيبان ئې داسې تعريف کوي: دا هغه وړې وړې دانې دي چه په نفس مقعد باندې پيدا کيږي چه د هغې نه هر وخت څه ماده روانه وي) (نو ما د رسول الله ﷺ نه د مانځه متعلق تپوس اُوکړو چه څنگه طريقې سره مونځ اُوکړم؟ نو هغه اُوفرمايل: په ولاړه ئې کوه الخ) بيا دا حکم په باره د فرض مانځه کښې دې چه کله يو مريض په ولاړه مونځ نشي کولې نو بيا به ئې په ناسته کوي او ددې ناستې اَجر هم د ولاړې د اجر په شان دې څکه دا معذور دې. او د نفل مانځه حکم روستو راځي.

پدې حديث کښې په روايت د نسائي کښې ورسره دا زيادت باسناد صحيح راغلې دې. (فان لم تستطع فمستلقياً) (کهٔ په اړخ باندې طاقت نهٔ لرې بيا ستوني ستاق مونځ کوه)

دا حديث بيا په يوڅو مسئلو دليل دې: ۱- يوه دا چه په فرض مانځه کښې قيام فرض دې. کله چه ضرورت او عذر نهٔ وي. او که عذر وي نو بيا قيام ساقطيږي.

۲- دويم دا چه د مونځ قضاء کول پدې اُمت باندې نشته څکه که په ولاړه نشي نو په ناسته به ئې کوي او که په ناسته نهٔ وي نو بيا په ملاسته (اړخ) باندې او که اړخ باندې ئې هم نشي نو بيا به ئې د سر په اشاره کوي، په هر څنگ حالت چه وي.

## په اړخ باندې د مانځه طريقه

۳- مسئله: کله چه په اړخ باندې مونځ کوي نو څهٔ طريقه به وي؟:

نو احنافو دا غوره کړيده چه قبلې ته به خپې اُوغوزوي او سر ته به بالخت کيدي څکه

استقبال د قبلې فرض دے، هغه د قیام او قعود په سقوط سره نهٔ ساقطیږی. او دیته استلقاء علی الظهر وائی. ۲- جمهور وائی : داسے به څملی لکه څنګه چه قبر کښ څملولے شی یا اُوده کیدو دپاره څملی چه جنوب او شمال طرف ته به څملی په ښی طرف او مخ به قبلې طرفته متوجه کړی. او دا حدیث ددے جمهورو دلیل دے او رد دے په احنافو څکه چه دلته د قعود نه پس اَړخ ذکر شو نو اِستلقاء ئے پکښ ذکر نهٔ کړه.

او بل دلیل پدے باندے حدیث د علیؓ دے چه دارقطنی کښ مرفوعاً باسناد ضعیف ذکر دے : (یصلی المریض قائماً ان استطاع فان لم یستطع صلی قاعداً فان لم یستطع ان یسجد اَوْمَأَ برأسه وجعل سجوده اَخْفَضَ من رکوعه فان لم یستطع ان یصلی قاعداً صلی علی جنبه الایمن مستقبل القبلة فان لم یستطع ان یصلی علی جنبه الایمن صلی مستقلیاً رجلاه مما یلی القبلة) (وفی سنده الحسن بن الحسین العرنی وهو یروی المناکیر) لهذا دا طریقه افضله ده د استلقاء نه څکه هغے کښ صحیح حدیث نشته او اَړخ والا کښ دا دوه روایتونه راغلل. او په حدیث د علیؓ کښ دا هم راغلل چه استلقاء به روستو وی د اضطجاع علی الجنب نه. لکه څنګه چه پدے حدیث الباب کښ په روایت د نسائی کښ راغلی دی. وقد مرّ.

## په ناسته باندے د مانځه طریقه

بیا که په ناسته مونځ کوی نو څهٔ طریقه بهتره ده ؟ نو حافظ ابن حجرؒ فرمائی : پدے حدیث کښ کیفیت د قعود نهٔ دے ذکر نو ددے قول (فقاعدا) د اطلاق نه دا اِستدلال کیږی چه مونځ کونکے په هره طریقه ناسته اُوکړی نو دا به جائز وی.

لیکن بهتره کومه طریقه ده ؟ پدے کښ اختلاف دے ۱- ائمه ثلاثه وائی : تربع به کوی چه لاسونه به ئے په زنګنونو ایخی وی.

۲- بعض وائی : مُفترشاً به کینی یعنی تشهد کښ چه څنګه کینی. او دا موافق دے د قول د شافعیؒ سره په (مختصر المزنی) کښ.

۳- او بعض وائی : متورکاً (په تورك طریقه سره) به کینی. او پدے ټولو کښ احادیث راغلی دی. انتهیٰ. (فتح الباری ۵۸۶/۲) تحفة الاحوذی (۳۰۹/۲)

٤- او بعض وائی : تربع به کوی. او دا تربع د سالم، مجاهد، عطاء، ابن سیرین، ابو جعفر، حسن بصری وغیره نه نقل ده. او حاکم (۲۵۸/۱) کښ د عائشے حدیث دے : رأیت رسول الله ﷺ یصلی متربعاً) (صححه علی شرط الشیخین ووافقه الذهبی) وقال الالبانی فی صفة الصلاة ص (٥٤) وکان یجلس متربعاً- رواه النسائی (۲٤٥/۱) وابن

خزیمة والحاکم وصححه) (ما رسول الله ﷺ اُولیدلو چه په مانځه کښې تربع کولو) نو د معذور دپاره تربع پکار ده۔

☆- ابن ابی شیبه (۲۱۹/۲) د سماك بن سلمة الضبيؒ نه نقل کوی: (رأيت ابن عمر وابن عباس وهما يتربعان فی الصلاة) (ما ابن عمرؓ او ابن عباسؓ اولیدل چه دواړو به په مانځه کښې تربع کوله) ☆- او دغه شان عقبه فرمائی: (رأيت انساً يصلى متربعاً) (ابن ابی شیبة) (انسؓ به تربع کوله)

امام شوکانیؒ فرمائی: «د عائشې حدیث چه (رأيت النبی ﷺ يصلى متربعاً) دارقطنی راوړیدے او نسائی (۲٤٥/۱) ابن حبان او حاکم راوړیدے او نسائی وئیلی دی چه دا حدیث د ابوداود الحفری نه علاوه بل چا نۀ دے نقل کړے او دا ثقه راوی دے مګر زما په دۀ ګمان دے چه دا خطاء دے۔ لیکن حافظ ابن حجرؒ فرمائی: دا ابن خزیمة (۸۹/۱) رقم (۹۷۸) کښې او بیهقیؒ د محمد بن سعید بن الاصفهانی نه په متابعت د ابوداود راوړیدے نو ظاهره شوه چه پدے کښې هیڅ قسمه خطاء نشته، او بیهقی د طریق د ابن عیینه عن محمد بن عجلان عن عامر بن عبد الله بن الزبیر عن ابیه په سند راوړے دے (قال: رأيت رسول الله ﷺ يدعو هكذا ووضع يديه على ركبتيه وهو متربع جالس)۔

دارنګه بیهقیؒ د حُمَید نه نقل کوی: (رأيت انساً يصلى متربعاً على فراشه) (علقه البخاری) (ما انسؓ اُوئیلو چه په بستره باندے ئے پرلت وهلو سره مونځ کولو)

او فرمائی: دا حدیث دلیل دے چه مستحب - د هغۀ چا دپاره چه په ناسته مونځ کوی - دا ده چه تربع اُوکړی او دیته امام ابوحنیفۀ، مالكؒ او احمدؒ کښې ذهاب کړیدے او دا یو قول د امام شافعی دے۔

او بل قول د شافعیؒ دا دے چه مفترشاً به کینی لکه څنګه چه د دوه سجدو ترمینځ کینی، او صاحب د نهایه د بعض مصنفینو نه نقل کړیدی چه متورکاً به کینی۔

☆ - او قاضی حسینؒ د شوافعو نه وائی: په ګس پتون به کینی او ښے زنګون به اُودروی لکه څنګه چه قاری د خپل اُستاذ مخے ته کینی، او دا اختلاف په افضل کښې دے او پدے باندے اتفاق دے چه مریض له جائز دی چه په هره طریقه ناسته اُوکړی څکه په دوه حدیثونو د عائشه کښې اطلاق دے او په حدیث د عمران بن حصین کښې عموم دے» آه (نیل الاوطار ۲۵۳/۲)

د دوه حدیثونو د عائشېؓ نه مراد هغۀ دوه حدیثونه دی چه مسلم وغیره راوړیدی: (كان يصلى ليلاً طويلاً قائماً وليلاً طويلاً قاعداً) چه پدے کښې اطلاق راغلے دے۔ مطلقاً ناسته ذکر ده۔

مګر صحیح دا ده چه نوافلو مطلقو کښې او دارنګه د معذور دپاره په فرائضو کښې تربع سنت ده او د دغه اطلاق د حدیث د وجه نه افتراش (د تشهد په طریقه ناسته) هم جائز ده۔
تنبیه : کله چه په تربع سره مونځ کوی نو صرف د قیام او د رکوع په وخت کښې به تربع کوی او هرچه سجده او تشهد دے نو بیا به تربع نهٔ کوی۔
دلیل دا دے : بخاری (۱/۱۱٤) کښې د عبد الله بن عبد الله نه نقل دی چه دهٔ عبد الله بن عمر اولیدو چه تربع به ئے په مانځه کښې کوله کله چه به ناست وو۔ نو ما هم دا کار اُوکړو او زهٔ په دغه وخت کښې ماشوم (حدیث السن) وم، نو زهٔ عبد الله بن عمرؓ منع کړم او دائے راته اوفرمایل : (انما سنة الصلاة ان تنصب رجلك اليمنى وتثنى اليسرى) (د مانځه سنت دا دی چه ښیٔ خپه اُودروے او ګسه خپله ماته کړے) ما ورته اُوئیل : تهٔ دا کار کوے، وے فرمایل : زما خپے ما نشی پورته کولے - یعنی زهٔ بیماریم) نو دا حدیث دلیل دے چه سنت په تشهد کښې دا ده چه په خپو به کینی او تربع به نهٔ کوی او تربع به د سجدے او تشهد نه علاوه کښې کولے شی۔ او دا خبره په الشرح المختصر على بلوغ المرام (۱۷۷/۳) للشیخ ابن عثیمین رحمه الله کښې هم دغه شان بیان شویده۔ او دے ته ابن ابی شیبة (۲۲۰/۲) اشاره کړیده او دغه شان په فقه السنة (۲٤۳/) کښې هم اُوګوره۔ او ډیر آثار په قیام اللیل د ابن نصر (۲۰۱ - ۲۰٤) کښې راغلی دی۔ وراجع فتاوی الدین الخالص (۳٤٥/٥)

---

۹- وَعَنْهُ، اَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ ﷺ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ قَاعِدًا، قَالَ: اِنْ صَلّٰى قَائِمًا فَهُوَ أَفْضَلُ، وَمَنْ صَلّٰى قَاعِدًا، فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ، وَمَنْ صَلّٰى نَائِمًا فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِ الْقَاعِدِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او عمران بن حصین ﷺ نه روایت دے چه هغهٔ د نبی ﷺ نه د هغهٔ شخص په باره کښې تپوس اُوکړو چه (د طاقت باوُجُود) په ناسته مونځ کوی، نو نبی ﷺ اُوفرمایل : «کهٔ په ولاړه مونځ کوی نو دا ډیره بهتره ده او کهٔ په ناسته مونځ کوی نو دهٔ دپاره به نیمائی اَجر د ولاړ انسان وی او څوک چه (بغیر د ضرورت نه) په حالت د خوب (یعنی په اړخ نفل) مونځ کوی نو هغهٔ دپاره نیمائی اَجر د ناست دے»۔ (بخاریؒ)
تشریح : دا حدیث په نفل مانځه باندے حمل دے ځکه فرض مونځ بغیر د عذر نه په ناسته باندے صحیح نهٔ دے، هان که عذر وی نو بیا قیام ساقطیږی لکه مخکښې تیر شو او معذور په ناسته سره فرض مونځ ادا کولے شی، او اجرئے د ولاړ مونځ کونکی دے۔ نو د

حدیث مطلب دا دے چه بغیر د عذر نه په ناسته نفل مونځ کونکی ته پوره آجر او ثواب نهٔ ملاویږی بلکه خومره ثواب چه په ولاړه باندے کونکی ته ملاویږی د هغې په نیمائی ثواب به دهٔ ته ملاویږی، آوْ ! که عذر وی چه په اُودریدو باندے قادر نهٔ وی نو بیا په ناسته مونځ کونکی ته د ولاړے د مانځه په نسبت نیم ثواب نهٔ ملاویږی بلکه هغه ته هم پوره ثواب ملاویږی۔

ذکر د رجل نفی د ښځے نهٔ کوی ځکه دا قید غالبی دے، ورنه د ښځے هم دا حکم دے ځکه زنانه د سړو شقائقې دی۔

نائماً : په روایت د احمد وغیره کښې د نائماً په ځائے مضطجعاً دے۔ پدے کښې تحقیق دا دے چه نائماً لفظ د دوه معانو احتمال لری : ۱- یو دا چه ددے نه اضطجاع سره یعنی په ډډهٔ باندے مونځ کول مراد دی لکه څنګه چه اُوده سړے ډډهٔ لګوی۔ او دا په نفلو کښې جائز دی اګرکه په قیام او قعود باندے قادر وی۔ او په فرائضو کښې عند العجز جائز دے۔

۲- دویم دا چه نوم په خپل حقیقت بناء دے او ددے نه مراد نعاس (معمولی خوب) دے یعنی چا له چه خوب ورځی او مونځ کښې مشغول وی نو دهٔ ته د ناستے نیمائی آجر ملاویږی۔ او همدا اِحتمال ظاهر دے، او حکمت پدے کښې دا دے چه پدے کښې خشوع کمه وی۔

## آیا نفل مونځ په ملاسته جائز دے؟

بیا اختلاف دے چه آیا نفل مونځ بغیر د عذر نه په ملاسته (په اضطجاع) جائز دے او که نه ؟ یعنی اګرکه په ناسته او په ولاړه قادر وی خو بیا هم په ملاسته مونځ کوی۔ نو بعض وائی : نهٔ دے جائز، لکه دا د امام ابوحنیفهٔ رائے ده (مظاهر حق ۱/۸۱۲)۔

او یو قوم وائی چه جائز دے، او دهٔ ته به د ناست انسان نیمائی آجر ورکولے شی او دا قول د حسن بصریؒ دے۔ او همدا قول ډیر صحیح او غوره دے ځکه دا په سنت کښې ثابت دے۔ (طیبیؒ) ابن حجر هیثمی وائی : دا حدیث ډیر بلیغ رد کوی په هغه چا چه په نفل مانځه کښې اضطجاع ته حرام وائی سره د قدرت نه په قیام او قعود باندے۔

علامه خطابیؒ دا حدیث حمل کړیدے په فرض مانځه باندے او دائے وئیلی دی چه یو مریض فرض مونځ کونکے په ولاړه مونځ کولے شی لیکن د مشقت سره نو شارع د قاعد اجر، د قائم نیمائی اجر مقرر کړو، دهٔ ته ترغیب ورکوی چه تهٔ هم په ولاړهٔ مونځ اُوکړه اګرکه ستا قعود جائز دے۔ اجر به دِے زیات اُوشی۔ دارنګه په ناسته مونځ کولے شی

لیکن په مشقت سره نو دهٔ له جائز دي چه په ملاسته ئې اُوکړي (ځکه معذور دے) مګر اجر به ئې کم وي. لیکن که دا مشقت برداشت کړي او په ناسته ئې اُوکړي نو دا به افضل وي نو دهٔ ته ئې ترغیب ورکړو چه اے مریضه ! اګرکه ستا عذر شته لیکن که تهٔ مشقت برداشت کړے او د ناستے په ځائے په ولاړه مونځ اُوکړے یا د ملاستے په ځائے په ناسته مونځ اُوکړے نو ستا اَجر به زیات وي. او خطابيؒ وائي دا ځکه په فرضو حمل دے چه ما د هیڅ عالم نه نهٔ دي آوریدلي چه هغوی نفل مونځ په ملاسته جائز کړي وي.

(بلوغ الاماني ۱۵۳/۵)

لیکن خطابيؒ به نهٔ وي اوریدلي او نورو علماؤ آوریدلي دي ځکه دا قول د حسن بصريؒ دے چه امام ترمذيؒ ترے نقل کړیدے. او دا په درے اقوالو د امام مالك کښې یو قول دے، او د شوافعو په دوه قولونو کښې یو قول دے.او محدثینو غوره کړیدے.لکه امام بخاريؒ وغیره.

او د خطابيؒ دا خبره ضعیفه ده یو خو دا چه قیام فرض دے که څوك څه نا څه طاقت لري نو هغه نه قیام نهٔ ساقطیږي او که عذر لري او نشي اُودریدے نو بیا ددهٔ نه قیام ساقط دے او دهٔ ته په ناسته باندے دومره پوره اَجرملاویږي لکه څنګه چه ولاړ انسان ته ملاویږي.او دے حدیث کښې ئې خو نصف اجر القائم وئیلے دے. لهذا دا تاویل ددے حدیث سره سمون نهٔ خوري. بلکه دا حدیث په باره د نفل مونځ کونکي کښې دے چه قادر وي په قیام باندے. نو دهٔ له په ناسته او ملاسته هم مونځ جائز دے لیکن د ناستے درجه کمه او د ملاستے نیمهٔ کمه ده. ځکه په نوافلو کښې توسع ده. (نووی فی الخلاصة، نصب الرایة ۱/ فصل فی القرائة) او څوك چه دے حدیث کښې د ادراج قائل دي لکه علامه خطابيؒ وائي کیدے شي چه دا اِدراج د راوي وي یا ئې منسوخ او غلط ګنړي لکه ابن عبد البرؒ نو هغوی خطاء شویدي او حدیث صحیح دے او مدرج او منسوخ نهٔ دے. (التلخیص الحبیر ۴۴۶/۱ باب صفة الصلاة) د نسخ او ادراج هیڅ ثبوت ئې ندے پیش کړے. او په خطابيؒ باندے شیخ احمد شاکرؒ په تعلیق د ترمذيؒ (۲۱۰/۲) کښې تفصیلي رد کړیدے.

۲- بعض علماء د نائماً یوه بله توجیه دا بیانوي چه دلته خو مضطجعاً ندے وئیلے بلکه نائماً ئې وئیلے دے یعنی یو انسان مشقت برداشت کوي خوب ورله ورځي خو مونځ کوي نو ددهٔ د ناست انسان په نسبت نیم اَجر دے یعنی مثلاً رویۍ کښې څلور اَنے اَجر دے. ځکه چه دهٔ ډیره توجه نهٔ ده کړے.او دا خبره هم ظاهره معلومیږي، او د خطابيؒ توجیه هم ګوزاره کوي ځکه چه معذور دوه قسمه دے، یو هغهٔ معذور دے چه بالکل طاقت د قیام او قعود نشي لرلے نو دهٔ ته خو بالکل د قیام هومره اجر ملاویږي.

۲- او دویم هغه معذور دے چه مشقت سره برداشت د قیام یا د قعود لرلے شي نو دا هم معذور کښې حساب دے دهٔ ته هم رخصت دے چه جنب باندے مونځ اُوکړي لیکن کهٔ دهٔ په ناسته مونځ اُوکړو ډیر اجر دے او په ولاړه د هغې نه هم ډیر اجر دے۔
او شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ او ابن قیمؒ ددے قول ترجیح بیانوي چه د نبي ﷺ او صحابه کرامؓ نه چرته په ملاسته نفل نقل نهٔ دي، سره ددے نه چه هغوی ډیر حرص لرلو په سنن د پیغمبر باندے نو که دا جائز وے، صحابه کرامؓ به د نبي ﷺ په زمانه کښې کړي وے او د هغه نه روستو به مسلمانانو کړي وے۔ او دارنګه نبي ﷺ به یو کرت نیم د بیاناً للجواز دپاره کړي وے او حال دا چه رسول الله ﷺ به نوافل په ناسته هم کول او دارنګه په سورلۍ به ئې هم کول هرطرف ته به ئې چه مخ وو، او په هغې به ئې وتر هم کول۔ (مجموع الفتاوی ۲۳/۲۳۵) تفصیلاً۔
بیا ددے حکم د عموم نه نبي علیه السلام مستثنیٰ دے ځکه چه هغه ته په ناسته سره مونځ باندے هم د ولاړے په شان مکمل اجر ملاویدو لکه روستو حدیث د عبد الله بن عمروؓ کښې به راشي۔

## الفصل الثاني

۱۰- وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُولُ: مَنْ آوىٰ إِلَىٰ فِرَاشِهِ طَاهِرًا، وَذَكَرَ اللهَ حَتّٰى يُدْرِكَهُ النُّعَاسُ، لَمْ يَتَقَلَّبْ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ. ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِي «كِتَابِ الْأَذْكَارِ» بِرِوَايَةِ ابْنِ السُّنِّيِّ.

---

ترجمه: او ابوامامه ﷺ فرمائي: ما د نبي ﷺ نه آوریدلي دي، چه فرمایل ئې: «څوك چه خپلې بسترے ته د پاکۍ (اَودس یا تیمم) په حالت کښې راشي او د الله ذکر کوي تردے چه خوب پرے راشي، نو دا د شپے په هیڅ وخت کښې نهٔ اَوړي چه په هغې کښې د الله نه د دنیا او آخرت څهٔ خیر غواړي مګر الله به ئې ضرور ورکړي» ۔ دا حدیث نوویؒ په کتاب الاذکار کښې د ابن السنيؒ په روایت نقل کړیدے۔
تشریح: آویٰ: دا لفظ په مد او قصر دواړو سره یوه معنیٰ لري۔ یعنې څوك چه بسترے ته د خوب دپاره راشي۔ نو د شپے په ذکر او طهارت سره اُودهٔ کیدو کښې دا خیر او فائده ده چه د شپے په هر ساعت چه رابیدار شوے نو هره دعاء به ئې قبلیږي، کټ کښې دعاء کوه اے الله! ما ته هدایت اُوکړه، عافیت راکړه، علم راکړه، بخښنه راته اُوکړه نو الله به ئې

درله قبلوي۔

**تعارف د امام ابن السني رحمه الله :** ابن سُني الدينوري متوفى (٣٦٤هـ) د امام نسائیؒ شاګرد دے او خپله محدث او لوئی اِمام دے۔ او کتاب ئے «عمل اليوم والليلة» په اذکارو او دعاګانو کښې ليکلے دے، او دا د عمل اليوم والليلة د نسائی نه زيات ښائسته او جامع کتاب دے او امام منذریؒ د هغې اختصار کړيدے او أسانيد ئے ترے حذف کړيدی۔ شايد چه مصنف د ابن سنیؒ کتاب نۀ وی ليدلے ځکه په نوویؒ باندے حواله ورکوی۔

**درجة الحديث :** اسناده حسن: اخرجه الترمذی (٣٥٢٦) والنسائی فی عمل اليوم والليلة (٨٠٧) وابن السنی فی عمل اليوم والليلة (٧٢٤) وفيه شهر بن حوشب وهو صدوق كثير الارسال والاوهام (التقريب) وقال الالبانی فی كتبه ضعيف ثم رجع عنه فی تراجعاته فقال: صحيح دون قوله وذكر الله حتى يدركه النعاس) تراجعات الالبانی ص (٢٢) و الكلم الطيب ص(٨٢) رقم (٤٤) وللحديث شواهد بمعناه منها حديث معاذ (٥) الذی سبق فی باب ما يقول اذا قام من الليل) وحَسَّنه محمد عبد الرحمن عوض فی تحقيق الوابل الصيب لابن القيم (١٣٥) وانظر تنبيه القاری لتقوية ما ضعفه الالبانی ص (١٠٨)

---

١١ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَجِبَ رَبُّنَا مِنْ رَجُلَيْنِ: رَجُلٌ ثَارَ عَنْ وِطَائِهِ وَلِحَافِهِ مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ، فَيَقُوْلُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ: اُنْظُرُوْا إِلَى عَبْدِيْ، ثَارَ عَنْ فِرَاشِهِ، وَوِطَائِهِ مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ، إِلَى صَلَاتِهِ، رَغْبَةً فِيْمَا عِنْدِيْ، وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِيْ، وَرَجُلٌ غَزَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَانْهَزَمَ مَعَ أَصْحَابِهِ، فَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فِي الْاِنْهِزَامِ وَمَا لَهُ فِي الرُّجُوْعِ، فَرَجَعَ حَتّٰى هُرِيْقَ دَمُهُ، فَيَقُوْلُ اللهُ لِمَلَائِكَتِهِ: اُنْظُرُوْا إِلَى عَبْدِيْ رَجَعَ رَغْبَةً فِيْمَا عِنْدِيْ، وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِيْ حَتّٰى هُرِيْقَ دَمُهُ». رَوَاهُ فِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ».

---

**ترجمه :** او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : «زمونږ رب د دوه سړو نه تعجب کوی ١ - يو هغۀ سړے چه د خپلے بسترے او برستنے نه د خپل محبوب او اهل (بی بی) خوا نه (تهجد) مانځه ته راپاځی، نو الله خپلو ملائکو ته فرمائی: أوګورئ زما بنده ته، چه ما سره د څيزونو (جنت او ثواب) په شوق سره او زما سره د څيزونو (يعنی دوزخ او عذاب) نه د يرے په وجه د خپلے بسترے او برستنے نه او د خپل محبوب او بی بی نه مانځه ته راپاڅيدو۔ ٢ - او دويم هغۀ سړے دے چه د الله په لاره کښې غزا (جهاد) کوی نو

دا د خپلو ملګرو سره شکست اُوخوري نو دا د میدان جنګ نه د تختیدو ګناه (او عذاب) او میدان جنګ ته د واپس کیدو ثواب رایادکړي نو راواپس شي (او جنګ شروع کړي) تردے چه د هغهٔ وینه توی شي نو الله ملائکو ته فرمائي: اُوګورئ زما بنده ته چه ما سره د ثوابونو د شوق او ما سره د عذابونو د سزا د یَرے په وجه راواپس شو (او د الله په لار کښ جنګیدو) تردے چه وینه ئے توی شوه »۔ (شرح السنه)

تشریح : عَجِبَ رَبُّنَا : تعجب : (التحیر اللاحق عند ادراك الامر الغریب) ته وائي (یعنی یو ناشنا شے څوك وینی او هغے ته حیران شی) نو دا حالت په الله نه راځي بلکه ټول شیونه الله ته حاضر او شاهد دی او دا تعجب د بندګانو دے او د الله تعجب د متشابهاتو نه دے کیفیت ئے الله ته معلوم دے۔ او لازم ورسره لوئي ګنړل دی۔

مِنْ بَيْنِ حِبِّهِ : حِب په معنی د محبوب سره دے۔ دا قیدونه نبی ﷺ پدے وجه لګولی دی چه د داسے بسترے نه پاڅیدل چه د زنانه سره په یو کټ کښ پروت وی– ډیر ګران دی او دا انسان د الله د رحمت د امید او د اُور نه د یریدو په وجه راپاڅیږی نو الله ورته څکه تعجب کوی۔څکه دا د خواهشاتو خلاف دے او دا قانون دے چه هر عبادت چه د خواهش په خلاف اُوشی نو هغے کښ اثر زیات وی۔ او اَجرئے زیات وی او الله ته محبوب وی۔

وَلِحَافِهِ : لحاف هغه برستنی ته وائي چه انسان ئے اَغوندی، او وِطاء هغه ده چه لاندے ئے اَچوی (بستره)۔ او ثار معنیٰ ده راپورته شی، راپاڅیږی۔

مَا عَلَيْهِ : یعنی د تختیدو ګناه او د واپس کیدو ثواب کښ ئے فکر اُوکړو۔

بیا دا محمول دے په دوه حالتونو یو دا چه بالکل جنګ پریدی او کور ته اُوتختی او بیا جنګ ته نهٔ راځي نو داسے تختیدل هم حرام دی او که قرار ګاه (معسکر) ته راتختی او بیا واپس حمله کولو ته ځان تیاروی نو بیا دا ګناه نهٔ ده، ابن عمرؓ فرمائي: زهٔ یوه سریه کښ تلے وم نو ملګری اُوتختیدل نو زهٔ هم په هغوی کښ وم بیا نبی ﷺ ته راغلو نو هغهٔ ته مو اُووئیل : (نَحْنُ الفَرَّارُوْنَ) (مونږ تختیدونکی یو) نبی ﷺ اُوفرمایل : (لا بل انتم العَكَّارُوْنَ) (یعنی تاسو تختیدونکی نهٔ ئے بلکه دوباره حمله کونکی ئے) (ابوداود باسناد ضعیف و معناه صحیح)

۲- دویم صورت دا دے چه د شل زره کافرانو نه لس زره مسلمانان راتختی نو دا ګناه ده بلکه ځان به پرے شهید کوی خو تختی به نهٔ۔

او دے حدیث کښ چه کوم صورت راغلے دے نو پدے کښ دا هم داخل دے چه یو انسان د زرو کسانو مقابله کوی نو ضرور به دا شهید کیږی نو دا جائز ده کله چه په دشمن کښ

نِكَايَه او زخم كولے شي، هغوى ته ډير نقصان رسولے شي لكه په اُحُد كښ نضر بن انسؓ ملگرو ته اُووئيل چه تاسو چرته تختئ زه د اُحُد د طرفنه د جنت خوشبوئي محسوس كوم. او بيا يواځے لاړو د كافرانو مقابله ئے اُوكړه او شهيد شو. نو نبي ﷺ ورته دا اُونۀ وئيل چه ځان ئے هلاك كړو او دا كار ئے ښۀ اُونكړو.

درجة الحديث : اسناده حسن صححه الحاكم ووافقه الذهبي : اخرجه احمد (٤١٦/١) ورجاله ثقات لكن عطاء بن السائب كان اختلط وحماد بن سلمة وان روى عنه قبل الاختلاط فقد روى عنه بعد الاختلاط فلم يمكن تميز ما قبله عما بعده واخرجه ابوداود في السنن (٢٥٢٦) مختصراً وابن حبان والطبراني في الكبير (١٠٨٣) والهيثمي في المجمع (٢٥٥/٢) وقال اسناده حسن وعزاه الى ابي يعلى واورده المنذري في الترغيب (٢١٩/١، ٢٢٠) وقال الالباني حسن لغيره.

## الفصل الثالث

١٢ - عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: حُدِّثْتُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلَاةِ»، قَالَ: فَاَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّيْ جَالِسًا، فَوَضَعْتُ يَدِيْ عَلٰى رَأْسِهٖ. فَقَالَ: «مَالَكَ يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرٍو؟». قُلْتُ: حُدِّثْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ! اَنَّكَ قُلْتَ: «صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا عَلٰى نِصْفِ الصَّلَاةِ، وَاَنْتَ تُصَلِّيْ قَاعِدًا»، قَالَ: «أَجَلْ وَلٰكِنِّيْ لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه: او عبد الله بن عمرو ؓ فرمائي: ما ته دا حديث بيان شوے وو چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «د سړي (نفل) مونځ په ناسته د (ولاړے د مانځه) نيمائي دے». عبد الله فرمائي: بيا زۀ رسول الله ﷺ ته راغلم ما اُوموندو چه مونځ ئے په ناسته كولو (كله چه د مانځه نه فارغ شو) نو ما خپل لاس د هغۀ په سر مبارك باندے كيخودو، نو هغۀ اُوفرمايل : اے عبد الله بن عمرو! څۀ دي؟ ما عرض اُوكړو: يارسول الله! ما ته دا حديث بيان شوے دے چه تاسو فرمايلي دي چه: «د سړے مونځ په ناسته دا د ولاړے په نيمائي دے»، او حال دا چه تاسو (خپله) په ناسته مونځ كوئ؟ وے فرمايل : «آؤ (خبره صحيح ده) ليكن زۀ ستاسو د يو تن په شان (پدے حكم كښ) نۀ يم».(ما دپاره په ناسته مونځ هم د ولاړے اَجر راكړے كيږي) (مسلم)

تشريح : فَوَضَعْتُ يَدِيْ : دا د عربو عادت وو چه هغوى به د يو بل په سر لاس كيخودلو نو پدے كښ څه اشكال نشته چه ابن عمروؓ څنگه د نبي ﷺ په سر لاس كيخودلو څكه

چه عربو کښې داسې تکلفات نۀ وو.
بعض وائي : عرب چه کله د یو شي اهتمام کوي نو د سرې په سر لاس کیدی.
بیا د حدیث نه دا معلومه شوه چه د نبي ﷺ دا خصوصیت دے چه په ناسته مونځ کولو سره هغه ته د قیام اجر ملاویږي. ددے وجه دا ده چه کله انسان قیام باندے قادر وي او بیا هم په ناسته مونځ کوي نو دا سُستي او بے شوقئ ته اشاره ده ځکه د عام انسان نیم اجر دے او د نبي ﷺ پوره اجر دے ځکه چه یو خو اُمت دپاره حکم بیانول مقصود وي، دویم دا چه د هغۀ په ناسته مونځ کولو کښې داسے چُستي او چالاکي او نشاط او شوق وي لکه څنګه چه په ولاړه کښې وي.
لیکن دے کښې یوه استثناء شته چه نبي ﷺ مونځ په ناسته کړے وي او د هغه د تابعداریٔ په نیت انسان هغه مونځ په ناسته کوي نو دے اِنسان ته هُم په دے ناسته سره مکمل اَجر د ولاړے دے لکه روستو به راشي چه نبي ﷺ به د وترو نه روستو په ناسته دوه رکعاته کول نو که څوك د اتباع په نیت په ناسته اُوکړي نو ان شاء الله ددهٔ به هم پوره اَجر وي.
☆ - او بله فائده دا معلومه شوه چه کله یو عمل د نبي ﷺ پورے خاص وي نو د هغے بیان ضرور په احادیثو کښې راغلے وي چه دا کار ما پورے خاص دے او که داسے بیان نۀ وي موجود نو هسے دعوو سره یو شے د نبي ﷺ پورے نۀ خاص کیږي بلکه هغه به د اُمت دپاره شریعت وي. لکه ډیرو مقلدینو د خپل مذهب نه حدیثونه اَړولو دپاره دا چَلُو نه یاد کړیدی چه حدیث د مذهب مقابله کښې راشي، وائي دا د نبي ﷺ پورے خاص دی. نۀ، نبي ﷺ د اُمت سره په اَحکامو کښې شریك دے مګر هله چه دلیل د خصوصیت ئے راشي لکه دلته دلیل د خصوصیت موجود شو.

## نبي ﷺ پورے کوم احکام خاص دی؟

بیا د نبي ﷺ پورے بعض اَحکام خاص دی لکه د هغے ذکر امام نوويؒ د تهذیب الاسماء واللغات (۱/۲٦) په ابتداء کښې کړیدے.او سیوطيؒ په خصائص کبریٰ کښې ذکر کړیدی :
۱- لکه وصال روژے نیول، ۲- په خوب باندے ئے اُودس نه ماتیدو.
۳- د ناستے مونځ اجرئے د قیام د مانځه په شان وو. ٤- نهه بی بیانے کول،
٥- کله چه یوے ښځے ته د نکاح دعوت ورکړي نو هغے باندے فرض دی چه نکاح به ورسره کوي. ٦- د نبي ﷺ بی بیانے په اُمت حرامے دی.
٧- کومے زنانه باندے چه نبي ﷺ دخول اُوکړي هغه اُمت دپاره جائز نۀ ده.

۸- تهجد فرض کیدل بنا په یو قول۔
۹- په مانځه کښې ئې شاته نظر لګیدل۔
۱۰- په روژه کښې به الله خوراك څکاك ورکولو ظاهری یا معنوی۔

۱۳- وَعَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ: لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ، فَكَأَنَّهُمْ عَابُوْا ذٰلِكَ عَلَيْهِ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «أَقِمِ الصَّلَاةَ يَا بِلَالُ! أَرِحْنَا بِهَا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او سالم بن ابی الجعد رحمه الله فرمائی: د خزاعه (قبیلې) یو سړی أووئیل : ارمان دې چه ما مونځ کړې وې او په راحت کښې شوې وې، نو ګویا کښې خلقو په هغهٔ باندې (پدې خبره کولو کښې) عیب أووئیلو (چه په مانځه څنګه راحت حاصلوې؟) نو هغهٔ أوفرمایل : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمایل ئې : « اې بلال ! د مانځه دپاره اقامت أوکړه، او مونږ ته د مانځه په وجه راحت راکړهٔ !»۔ (ابوداؤد)۔

تعارف د سالم بن ابی الجعد :

سالم بن ابی الجعد الغطفانی الاشجعی، ثقه دې د اوساط التابعین نه دې په سنه (۹۷ھ) یا (۱۰۰) کښې وفات دې۔

تشریح : فَكَأَنَّهُمْ عَابُوْا : یعنی دوی أووئیل چه مونځ درته دومره ګران شویدې چه د مانځه نه ځان په راحت کښې کوې ؟ ځکه دوی دا فهم کړه چه دا راحت د مانځه د کولو نه غواړی چه زر مونځ خلاص کړو چه أوزګار شو، أودهٔ شو۔ځکه چه زهٔ د مانځه انتظار نشم کولې۔ نو هغه ورته جواب کښې أووئیل چه زما دا مقصد نهٔ دې بلکه دا مقصد دې چه د مانځه په کولو راته راحت ملاؤ شی لکه څنګه چه نبی ﷺ بلال ته أووئیل اې بلاله ! اَذان أوکړه چه مونځ أوکړو او په راحت کښې شو ځکه چه په مونځ کښې د زړهٔ یخوالې دې د الله سره مناجات دې۔ ۲- یا دا چه استراحت پدې وجه دې چه د الله د ذمه واری نه فارغه شی ځکه زړهٔ مو پدې باندې مشغول دې۔

لیکن اوله معنیٰ د نبی ﷺ د مقام او شان سره ډیره مناسب ده، ځکه هغهٔ فرمائیلی دی : (وجعلت قرة عینی فی الصلاة) (مسند احمد ۱۲۸/۳) (والنسائی) (زما د سترګو یخوالې په مانځه کښې ګرځولې دې شویدې پدې وجه نبی ﷺ به أوږد قیام کولو تردې چه

قدمونه به ئې اُوچاودل ليکن ددې سره به ئې ددې سترې والې نۀ محسوسولو بلکه لذت او راحت به ورتـلو. او دغـه شان پاك نـفسونه د مانځه په وجه په راحت کښ کيږې لکه دا واضحه خبره ده.

بيا هرکله چه دۀ ورته حديث اُووئيلو او خپل مطلب ئې ورته واضح کړو نو هغوى غلى شو.

درجة الحديث: اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٤٩٨٥) وسكت عليه هو والمنذرى وهو فى صحيح الجامع رقم (٧٨٩٢).



# باب الوتر

## د وتر مانځه بیان

وتر یو خاص مونځ دے چه د ماسخوتن مانځه نه روستو تر صبا پورے شریعت لازم کړیدی او بهترین مونځ دے۔ په وترو کښ تقریباً یویشت (۲۱) مسئلے دی چه امام ترمذیؒ ورته په مختلفو بابونو کښ إشاره کړیده۔ او پدے مشکوٰة کښ هم هغه اکثر بیان شویدی۔ لکه ۱– بیان د وقت، ۲– عدد د رکعاتو، ۳– پدے کښ قرائت، ٤– قضاء د هغے، ٥– په هغے کښ قنوت وئیل، ٦– حکم د وترو، ۷– په ناسته باندے ددے نه روستو دوه رکعاته کول، ۸– ددے نه روستو تسبیحات وئیل، ۹– محل القنوت، ۱۰– په سفر کښ کول ۱۱– په سورلئ کول، ۱۲– آخری وخت ئے څه دے، ۱۳– طریقه او کیفیت ئے څه دے۔ ۱٤– په ناسته کیږی او که نهٔ، ۱٥– اول وقت ئے څهٔ دے۔ ۱٦– دا افضل دی او که باقی سنن رواتب وغیره وغیره۔

وتر په کسره د واو سره طاق عدد ته وائی او په فتحه د واو سره بدلے اخستلو ته وائی۔ او په یو لغت کښ دواړه مترادفان استعمالیږی۔

### د وترو په حکم کښ اختلاف:

۱– د اکثر اُمت رایه دا ده چه وتر نهٔ فرض دی او نهٔ واجب دی بلکه سنت مؤکد دی او دا قول د صاحبینوؒ هم دے۔ ۲– امام ابوحنیفةؒ وائی: وتر واجب دی۔ استدلال کوی په هغه آحادیثو چه په هغے کښ اَمر راغلے دے د وترو په کولو۔ او یا په کښ وعید راغلے وی په نهٔ کولو۔ (ومن لم یوتر فلیس منا) او بیا د هغهٔ دا اصطلاح حادث ده چه واجب د سنتو نه بَره او د فرضو نه خکته کَنړی پدے باندے به د آحادیثو تفسیر نشی کولے۔ او دا اصطلاح د یوے ضعیفے قاعدے نه پیدا شویده چه وائی: احادیث ظنی دی پدے باندے فرضیت نهٔ ثابتیږی۔ شاه ولی الله په حجة الله (۱۳/۲) کښ فرمائی: حقه دا ده چه وتر سنت دی او د نورو سنتو په نسبت ډیر مؤکد دی انتهیٰ۔

**دلائل الجمهور**: ۱– ابوداود (۸٥/۱) رقم (٤۲٥) باب المحافظة علی وقت الصلاة کښ عبد الله بن الصنابحی فرمائی: (زعم ابومحمد ان الوتر واجب، فقال عبادة بن الصامت

: كـذب ابـو مـحـمـد، اشهد انى سمعت رسول الله ﷺ : خمس صلوات افترضهن الله تعالىٰ الحديث) (ابـو محمد يو سړے دے وائی چه وتر واجب دی نو عباده بن صامت ﷺ أوفرمايل : دغـه ابـو مـحـمـد دروغ وائی (يعنی په خطاء دے) څکه چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه صرف پنځه مونځونه الله فرض کړيدی)۔

٢- دليل : تـرمـذی (١٠٣/١) بـاب مـاجـاء ان الـوتـر ليـس بحتم) کښ د علی ﷺ قول راوړی : (الـوتـر ليـس بـحـتم کهيئة الصلوات المکتوبة ولکن سنة سنها رسول الله ﷺ حدثنا بـذلك بـنـدار نـا عبد الرحمن بن مهدی عن سفيان وهذا اصح من حديث ابی بکر بن عياش) (وتر د فرض مانځه په شان لازم نهٔ دی ليکن دا سنت دی چه رسول الله ﷺ عملی کړيدی)

او دوی جـواب کوی چه وعيد کله په ترك د سنتو هم راځی او أمر د فرضيت دپاره نهٔ دے بلکه قرينه صارفه د وجوب موجوده ده چه (خمس صلوات افترضهن الله) دے۔

## قول راجح او فائده د اختلاف :

ټـول اُمت ورتـه سـنـت وائی او امام ابوحنيفةؒ ورته واجب وائی او بيا عام اُمت واجب او فرض يـو گـنـړی او امـام ابـوحـنيفةؒ ئے د فرضو نه لاندے گنړی نو پدے کښ يو خو د اُمت مخالفت دے، دويم دا چه دا اصطلاح حادث ده چه احاديث پدے باندے تفسير کول صحيح نهٔ دی، صحابه کرامؓ او تابعينؒ وغيره نه دا اصطلاح نهٔ ده نقل۔

اُوس فائده ددے اختلاف څه شوه نو ځه په دوه مسائلو کښ ښکاره کيږی :

يـو دا چه امـام ابـوحـنيفةؒ وتر په سورلئ باندے جائز نهٔ گنړی څکه چه دا فرضو ته نزدی دی او فرض خو په سورلئ ندی جائز لهذا وتر هم ندی جائز۔

او جمهور وائی جائز دی بلکه سنت طريقه ده۔

دليل : سعيد بن يسارؒ فرمائی : زهٔ د عبد الله بن عمرؓ سره په سفر روان وم نو زهٔ د صبا د راختلو نه ويريدم نو راکوز شوم او وتر مے (په زمکه) اوکړل، بيا ابن عمرؓ پسے اُورسيدلم۔نو ابـن عـمرؓ اُوفرمايل : چرته وے ؟ ما ورته اُووئيل : زهٔ د صبا د راختلو نه ويريدم نو کوز شوم وتـر مے اُوکړل نو عبد الله اُوفرمايل : (اليس لك فی رسول الله ﷺ أسوة ؟) (آيـا تـا دپاره په رسـول الله ﷺ کـښ اقـتـداء نشتـه؟) ما اووئيل : ولے نهٔ ۔ قسم په الله۔ ابن عمرؓ اُوفرمايل : (ان رسول الله ﷺ کان يوتر علی البعير) (صحيح مسلم ٢٤٤/١) (رسول الله ﷺ به په اُوښ باندے وتر کول) او روستو مشکاة (١١٨/١) کښ به حديث راشی ويوتر علی راحلته)

٢- دويـم دا چه امـام ابـوحـنيفةؒ وائی : د چا نه چه وتر هير شی او د سحر په مانځه کښ

ورتـه راياد شو نو مونځ ئې باطل شو او دۀ باندې د مانځه نه وتل واجب دي چه وتر اُوکړي او دا مونځ بيا د سر نه اُوکړي۔

امام محمـد بـن نـصـر المروزي په قيام الليل (١٥) کښې فرمائي : دا قول د امام ابوحنيفهٌ خـلاف دے د هغـه احاديثو نه چه ثابت دي د رسول الله ﷺ نه، او خلاف دے د اجماع د اهل العلم نه او دا قول راپيدا شويدے د قلتِ معرفت د احاديثو نه او د قلتِ مجالست د علماؤ نه۔

## المسائل المترتبة على هذا الخلاف

پدے اختلاف باندے دا مسائل تفريع کيږي ١- يو دا چه په سورلۍ باندے وتر جائز دي۔ عند الجمهور او نۀ دي جائز عند ابي حنيفهٌ۔

٢- وتر په ناسته هم جائز دي۔ ځکه نبي ﷺ په سورلۍ باندے په ناسته کړيدي۔ امام ابوحنيفهٌ وائي نۀ دي جائز۔

٣- دا که چا پريخودل نو عذاب ئې د فرض د پريخودلو په شان نۀ دے۔

٤- پدے باندے د وجوب قول کول په صحيح احاديثو کښې قسماقسم بعيد تاويلات بارده راپيدا کوي۔ چه دا مناسب کار نۀ دے۔

٥- وتـر وتـه واجب وئيـل يـوه خـاصـه نـوے اصـطلاح راپيدا کول دي چه نۀ ئې صحابه پيژني او نۀ تابعين۔ او د اُمت خلاف کول دي بغير د څۀ دليل نه۔

٦- وتـر وتـه واجب وئيـل مَبنـي دي پـه يـوه ضعيفه غلطه قاعده چه احاديث ظني دي سوِی د متواتر نه۔

ددے ټولو مسائلو تفصيل په فتاوى الدين الخالص (٥/٥٨٥) کښې اُوګورئ۔

## الفصل الاول

١- عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى، مَثْنٰى، فَإِذَا خَشِيَ اَحَدُكُمُ الصُّبْحَ، صَلّٰى رَكْعَةً وَاحِدَةً، تُوْتِرُ لَهٗ مَا قَدْ صَلّٰى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : عبد الله بن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د شپے مونځ دوه دوه رکعاتـه دے، او کـلـه چه پـه تـاسـو کښې څوك د صبا د راختلو نه ويرېږي نو يو رکعت اُوکړي، چه دا (يو رکعت) به وتر اُوګرځوي هغۀ مونځ چه دۀ مخکښې (ددے نه) کړے دے»۔ (بخاريٌ ومسلمٌ)

تشريح : صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى : دا حديث په اصل کښې جواب د سوال د يو صحابي دے چه

د نبي ﷺ نه ئې د خطبې په دوران کښې تپوس اوکړو (کيف صلاة الليل ؟) (د شپې مونځ به څنګه کوو؟) نو نبي ﷺ اُوفرمايل : «دوه دوه رکعاته».

حافظ ابن حجرؒ فرمائي : د جواب نه ظاهره شوه چه دا سوال يا د عدد نه وو او يا د فصل او وصل نه وو. يعنې څلور رکعاته په يو سلام اُوکړو او که دوه دوه بيل بيل اُوکړو. او دا دويم (مَثنیٰ) تاکيد د اول (مَثنیٰ) دے ځکه چه اول مَثنیٰ کښې تکرار پخپله شته يعنې دوه دوه. او د دويم معنیٰ هم دوه دوه ده. او دا په ظاهر کښې خبر دے ليکن معنیٰ ئې امر او استحباب دے يعنې مونځ کونکي له دا مناسب دي چه دوه دوه رکعاته اُوکړي او صحيح مسلم کښې ددے معنیٰ د ابن عمرؓ نه داسے نقل ده، عقبه بن حُرَيث وائي : ما عبد الله بن عمرؓ نه تپوس اُوکړو چه د مَثنی مَثنیٰ معنیٰ څه ده؟ هغه اُوفرمايل : (تُسَلِّمُ من کل رکعتين) ـ (د هر دوه رکعاتو نه به سلام اَړوے) (المنتقى بشرح نيل الاوطار (٣٨/٣)

نو پدے کښې رد دے په بعض احنافو چه وائي د مَثنیٰ معنیٰ دا ده چه د هر دوه رکعاتو ترمينځ به تشهد وائي. دا معنیٰ ځکه خطاء ده چه راوي د حديث (ابن عمرؓ) د حديث په مراد او تفسير باندے د بل چا نه ښۀ پوهه وي، او بله دغه معنیٰ متبادر الى الفهم هم ده. او په څلور رکعاتي مونځ کښې داسے نۀ وئيلے کيږي چه دا دوه دوه رکعاته دي. او ددے تفسير په حديث مطلب بن ربيعه کښې په مسند احمد (١٦٧/٤) کښې مرفوعاً راغلے دے : (الصلاة مثنى مثنىٰ وتشهد وتسلم في کل رکعتين الخ) او مخکښې باب صلاة الليل کښې د عائشهؓ حديث تير شو چه فرمائي : (يسلم من کل رکعتين) (فتح الباري) ـ (يعنې نبي ﷺ به د هر دوه رکعاتو نه سلام ګرزولو)

## د شپې او د ورځې نوافل په کومه طريقه افضل دي ؟

بيا حديث کښې دا مسئله ده چه د شپې په مانځه کښې بهتره دا ده چه دوه دوه رکعاته جدا جدا اوکړے شي او پدے کښې اختلاف مخکښې په باب صفة الصلاة (١٤٨/٤) کښې ذکر شويدے. مختصر دا چه په پدے کښې اختلاف دے چه د شپې او د ورځې په نفلو کښې څلور په يو سلام بهتر دي او که دوه دوه رکعاته بهتر دي؟ ١ – امام احمد او شافعيؒ وائي : په ليل او نهار کښې دوه دوه رکعاته په جُدا جُدا سلام افضل دي.

٢– امام ابو حنيفهؒ وائي : په شپه او ورځ کښې څلور څلور افضل دي.

٣– بعض وائي : د شپې دوه دوه اَفضل دي او د ورځې څلور څلور په يو سلام او دا قول د سفيان الثوريؒ، ابن المبارکؒ، اسحاقؒ، ابويوسفؒ او محمدؒ دے.

٤- امام مالك وائي : د دوو نه زيادت جائز نهٔ دے۔ (المنتقى شرح الموطأ (١/٢٧٥) فتح الباري لابن رجب (٧/٨٨) شرح ابن بطال (٥/١٧٠) العرف الشذى (١/٤٨٧) شرح عمدة الاحكام لابن دقيق العيد (٢/٨٣) ومرعاة المفاتيح (٤/٢٥٦)

او دا اختلاف په هغهٔ صورت کښې دے چه د څلور رکعاتو اراده لري يا زيات د څلورو نه، ورنه کهٔ څوك دوه رکعاته کوی نهٔ زيات نو بيا پکښې دا اختلاف نشته۔

دلائل : امام مالك په ظاهر ددے حديث د ابن عمرؓ باندے عمل کوی چه پدے کښې مبتدا محصور ده په خبر کښې نو ګويا کښې معنی دا ده (ما صلاة الليل الا مثنى مثنىٰ) (سبل السلام) و شرح عمدة الاحكام لابن دقيق العيد (٢/٨٣)

ليکن جُمهور ددے نه جواب کوی چه دا حديث صرف د بيان د افضل دپاره دے ځکه چه د ﷺ فعل ددے مخالف دے، ځکه د هغهٔ نه زيات د دوو نه هم نقل دے لکه په حديث د عائشهؓ کښې مخکښې تير شويدی۔ يصلي اربعاً فلا تسأل عن حسنهن) او پنځه، اُووه او نهه رکعاته ئے په يو سلام کړيدی۔

٢- يا دا چه پدے کښې د نبی ﷺ مقصد اُمت ته د آسان عمل رهنمائی کول دی ځکه په هر دوه رکعاتو کښې سلام اړول آسان وی د څلورو رکعاتو وغيره نه ځکه پدے کښې راحت زيات وی او که کوم مُهم راپيښ شی نو هغه پوره کولے شی۔

(نيل الاوطار ٣/٣٩، و شرح مسلم (١/٢٥٧)

او د امام ابوحنيفهؒ دپاره هيڅ صريح دليل نشته چه د ورځے او شپے دڅلورو رکعاتو افضل والے ترے ثابت شی۔ سِوئ د يو حديث نه چه هغه په باره د صلاة الضحىٰ کښې په مسند ابی يعلى الموصلي کښې راغلے دے چه عائشهؓ فرمائی : (يصلى الضحى اربع ركعات لا يفصل بينهن بسلام) قال حسين سليم اسد اسناده صحيح) (نبی ﷺ به د چاشت مونځ څلور رکعاته په يو سلام کول) (عون المعبود ٣/٢٧٣) نصب الراية (٢/٩٢)

او د شپے په باره کښې د عائشےؓ حديث دے (يصلى اربعاً فلا تسأل عن حسنهن) ليکن دا دلالت په افضليت نهٔ کوی بلکه صرف په جواز باندے دلالت کوی ځکه بل طرفته صلاة الليل والنهار مثنى مثنىٰ والا روايت قانون کلی دے لکه چه تفصيل به ئے روستو راشی۔

او د سفيان ثوری ...... او صاحبين وغيره دپاره دليل نيولے شويدے پدے حديث د ابن عمرؓ باندے چه صلاة الليل مثنىٰ الخ ځکه چه هر کله د شپے مونځ دوه دوه رکعاته شو نو ددے مفهوم مخالف دا دے چه د ورځے مونځ به څلور رکعاته وی۔

ليکن جواب دا دے چه دا مفهوم لقب دے او دا په راجح قول سره حجت نهٔ دے۔ او که

اُومنو چه دا هم حُجت دے نو بيا دا په څلورو رکعاتو کښې منحصر نۀ دے، نو د هغوی مذهب ترے نۀ ثابتيږی۔ ۳- دارنګه دا حديث په جواب د سوال کښې وئيلے شويدے چه د شپے د مانځه باره کښې تپوس شوے وو نو د (ليل) قيد د سوال مطابق راغلے دے۔

٤- څلورم دا چه بل روايت د نسائی وغيره کښې ورسره (والنهار) لفظ هم راغلے دے او هغه هم صحيح دے لکه روستو راځی۔

نو پدے تولو کښې راجح قول د امام احمدؒ او شافعیؒ دے چه د شپے او د ورځے نوافل دوه دوه رکعاته په جدا جدا سلام أفضل دی۔ او دا قول محمد بن نصر المروزی په قيام الليل ص (۱۲۷) کښې او امام المحدثين بخاری غوره کړيدے۔او نووی فی شرح مسلم (باب صلاة الليل مثنی مثنیٰ) کښې۔

مګر ددے نه يو څو صورتونه مستثنیٰ دی ۱- د ماسپښين سنت، ۲- د جُمعے نه روستو څلور رکعاته۔ ۳- تراويح احياناً لکه حديث د عائشةؓ کښې دی : (کان يصلی اربعاً فلا تسئل عن حسنهن وطولهن) (بخاری ۱۵٤/۱) ۔

٤-صلاة التسبيح لکه روستو به راشی ٥-بعض طرق د وترو ٦- څلور رکعاته نفل قبل العصر په يو سلام سره کما تقدم وکذا فی الصحيحة (۱/٤۲۱رقم ۲۳۷) وتحفة الاحوذی (۳۲۹/۱)

۷- ابن مسعودؓ او ابن عمرؓ به د جُمعے د مانځه نه مخکښې په يو سلام سره څلور رکعاته نفل کول (رواه الطحاوی) نو دا سنت نۀ دی بلکه نفل دی۔لکه دا مسئله مخکښې ذکر شويده۔

## د دوه دوه رکعاتو د افضليت دلائل :

دليل دا دے چه ددے حديث الباب په بعض طرقو کښې داسے الفاظ دی : (صلاة الليل والنهار مثنیٰ مثنیٰ) اصحاب السنن الاربعة وصححه البخاری، وابن حبان وابن خزيمة) ۔ نو دا قانون کلی دے او قولی حديث دے چه د ورځے او د شپے مونځونه په نوافل مطلقه ؤ کښې دوه دوه رکعاته افضل دی۔ امام بخاریؒ په دے حديث باندے باب تړلے دے : (باب ما جاء فی التطوع مثنی مثنیٰ ۱/۱٥٥)

بيا ئے وئيلی دی چه دا عمل د عمار بن ياسرؓ، ابوذرؓ، انس بن مالكؓ، جابر بن زيدؒ، عکرمهؒ او زهریؒ نه نقل شويدے او يحيی بن سعيد الانصاریؒ وائی : ما د خپلے علاقے فقهاء موندلی دی چه هغوی به د ورځے په هر دوه رکعاتو سلام ګرځولو، بيا ئے احاديث د استخارے، تحية المسجد وغيره ذکر کړيدی چه په هغے کښې د دوه رکعاتو تذکره ده۔

پدې حدیث باندې اعتراض : بعض وائي دا حدیث امام نسائي معلول ګرځولے دے او دا ئے وئیلي دي چه دا زما په نزد خطاء دے، راوي پکښې خطاء شویدے۔ وجه د خطائي دا ده چه د ابن عمرؓ د پنځلس شاګردانو نه زیات دا حدیث په (والنهار) لفظ نۀ ذکر کوی (لکه څنګه چه په روایت د صحیحینو کښې هم صرف صلاة اللیل مثنیٰ مثنی) ذکر دے) او صرف یو راوي چه علي بن عبد الله الازدی البارقي دے۔ هغه پکښې د (والنهار) لفظ زیاتوي۔او دا د یحیی بن معین په نزد ضعیف دے۔ او امام دارقطنيؒ په العلل کښې وئیلي دي : دا وَهُم د راوي دے۔ او حافظ ابن حجرؒ پکښې لا دا وئیلي دي چه ابن وهبؒ د ابن عمرؓ نه په اسناد قوي سره موقوف روایت نقل کړیدے چه هغه وئیلي دي : (صلاة اللیل والنهار مثنی مثنی) اخرجه ابن عبد البر نو شاید چه آزدي باندے د موقوف او مرفوع اِختلاط راغلے وي، لهذا دا زیادت به صحیح نۀ وي په نزد د هغه چا چه په صحیح حدیث کښې دا شرط لګوي چه شاذ به نۀ وي. انتهیٰ۔ (فتح الباري ۳/ ٤٢٠ ما جاء في الوتر) فتح الباري لابن رجب کتاب الصلاة ۷جزء/۸٦) (تحفة الاحوذي ۳/ ۱۷۰)۔

لیکن ددے جواب دا دے چه دا خبره ضعیفه ده ځکه چه دا حدیث ابن خزیمهؒ، ابن حبانؒ، حاکمؒ په مستدرك کښې صحیح کړیدے او دا ئے وئیلي دي چه ددے رُواة ثقات دي۔ امام خطابيؒ نه صاحب د عون المعبود او تحفة الاحوذي او نیل الاوطار (۳/ ۳۸) نقل کړیدي چه هغه وئیلي دي : دا زیادت د ثقه راوي دے، او پدے کښې مخالفت نشته او زیادت د ثقه مقبول وي۔لهذا دا شاذ نۀ دے۔

امام بیهقيؒ وائي : دا حدیث صحیح دے او امام بخاريؒ نه ددے په باره کښې تپوس اُوشو نو هغهٔ هم دا حدیث صحیح کړو۔ او د محمد بن سیرینؒ د ابن عمرؓ نه مرفوعاً هم داسے روایت نقل کړیدے پداسے سند سره چه کل راویان ئے ثقات دي۔ انتهیٰ کلام البیهقي۔او ددے دپاره طرق او شواهد دي چه بعض حافظ په تلخیص الحبیر کښې ذکر کړیدي۔

او څوك چه دا وجه د ضعف بیانوي چه په (علي الازدي) باندے اختلاط د مرفوع او موقوف راغلے دے نو دا خبره ضعیفه ده، وجه دا ده چه ابن عمرؓ نه دواړه حدیثونه صحیح ثابت دي۔ لهذا کله ئے مرفوع نقل کړیدے او کله ئے موقوف نقل کړیدے۔

او څوك چه دا وائي چه وجه د ضعف دا ده چه یحی بن سعید الانصاريؒ د ابن عمرؓ نه نقل کړیدي چه هغه به د ورځے څلور رکعاته نفل کول او سلام به ئے پکښې نۀ ګرځولو نو که حدیث د ازدي صحیح وے نو ابن عمرؓ به ددے مخالفت نۀ کولے – نو دا وجه ضعیفه ده، وجه دا ده چه دوه دوه رکعاته کول خو څه واجب نۀ دي بلکه مستحب عمل دے او کله کله

ځلور رکعاته په یو سلام هم جواز لري. وبالله التوفيق.
فَإِذَا خَشِيَ أَحَدُكُمُ الصُّبْحَ ددې نه دا معلومیږي چه د صبا د راختلو نه پس نفلونه او وتر نۀ کیږي.
صَلّٰى رَكْعَةً وَاحِدَةً :

## وتر څو رکعاته دي؟

اختلاف دې چه وتر څو رکعاته دي ؟ ۱- امام ابو حنیفهٔ وائي : درې رکعاته په يو سلام دي چه مینځ کښې به قعده کوي، نۀ زیات شته او نۀ کم.نو ددۀ په نیز وتر د ماښام په شان دي چه دوه رکعاته پس به قعده کوي.

دوی استدلال کوي په هغه احادیثو چه په هغې کښې وتر په درې رکعاتو راغلي وي ليکن هغه ټول اجمالي دي مدعیٰ ترې پوره نۀ ثابتیږي لکه حدیث د نسائي (١/٢٥٠)، دارقطني، حاکم (١/٣٠٤) بیهقي (٣/٣١) کښې باسناد حسن او صحیح د عائشهؓ نه نقل دي : (ان رسول الله ﷺ كان لا يسلم في ركعتي الوتر) .(نبي ﷺ به د وترو په دوه رکعاتو کښې سلام نۀ اړولو) داڼگه حدیث کښې دي چه نبي ﷺ به په اول رکعت کښې «سبح اسم ربك الاعلىٰ» او په دویم کښې «قل يا ايها الكافرون» او دریم کښې «قل هو الله احد» لوستلو. نو معلومه شوه چه درې رکعاته دي.

**الجواب** : ددې روایاتو نه استدلال ددې مُدعیٰ دپاره صحیح نۀ دې. اول خو د عائشهؓ حديث مختصر دې او مُجمل دې پدې کښې دا تصریح نشته چه دوه رکعاته پس ئې قعده کړیده بلکه پدې حدیث کښې د وترو يو کیفیت ذکر دې چه هغه درې رکعاته په يو سلام کول دي. او مینځ کښې قعده نۀ کول دي.لکه چه دا ظاهر دي.

او دلیل پدې باندې دا دې چه په همدغه حديث کښې په روایت د حاکم (١/٣٠٤) کښې نفې د جلوس دې په دوه رکعاتو کښې لکه څنگه چه هغه حدیث حافظ په فتح الباري او تلخيص الحبير کښې او زرقانيؒ په شرح د المواهب اللدنیه (٨/٣٧٢) کښې او ذهبيؒ په تلخيص المستدرك کښې نقل کړیدې او امام نوويؒ په تعليق التعليق کښې هغې ته صواب وئیلې دې. او بیهقي هم (٣/٣١) نقل کړیدې.د هغې الفاظ دا دي : (كان النبي ﷺ يوتر بثلاث لا يقعد الا في آخرهن) (نبي ﷺ به درې رکعاته وتر کول چه نۀ به کیناستو مگر په آخر کښې) او په روایت د نسائي کښې دي : (لايسلم في ركعتي الوتر) او پدې باندې نسائي باب لګولې دې (باب كيف الوتر بثلاث) لهذا په مرفوع صحيح صريح حديث کښې

درے رکعاته په دوه قعدو چه مینځ کښې سلام نهٔ اړوی نهٔ دی ثابت۔

## آیا درے رکعاته وتر په دوه قعدو ثابت دی ؟

نو ددے وجه نه د علماؤ په دے کیفیت کښې اختلاف دے : ۱- عام اهل الحدیث علماء فرمائی : دا قسم وتر کول مکروه دی لکه دا قول حافظ ابن قیمؒ او شیخ البانی رحمه الله کړیدے۔ وجه د کراهت دا ده چه ددے نه منع راغلے ده په حدیث د ابن حبان (٦٨/٤)، دارقطنی(١٧٢/١) کښې چه نصب الرایه (١١٦/٢) هم نقل کړیدے۔ ابو هریره فرمائی : نبی ﷺ فرمائی : (لا توتروا بثلاث، واوتروا بخمس او بسبع، ولا تشبهوا بصلاة المغرب) دارقطنی وائی : رجال ئے ثقات دی۔

او حافظ ابن حجرؒ، امام البانیؒ او امام ابن حبانؒ وغیره ورته صحیح وئیلے دے۔ او د محمد بن نصر المروزیؒ، طحاویؒ، حاکمؒ او بیهقیؒ (٣١/٣) په روایت کښې داسے الفاظ دی : (لا توتروا بثلاث تشبهوا بالمغرب) ۔ (یعنی درے رکعاته داسے مهٔ کوئ چه د ماښام مانځه سره ئے مشابه کړئ) نو پدے روایت کښې ددرے رکعاتو نه منع راغله پداسے طریقه چه د ماښام د مانځه سره ئے مشابهت راشی۔ (دا خبره یاد ساتل پکار دی چه درے رکعاته په متواترو روایاتو کښې ثابت دی د هغینه منع نشته بلکه دلته درے رکعاته په دغه خاص کیفیت سره چه د ماښام مشابه شی منع دی لکه دا خبره حافظ په فتح الباری کښې هم ذکر کړیده۔ او ابن نصرؒ په قیام اللیل کښې د سلیمان بن یسار نه هم نقل کړیده۔ لهذا د احادیثو خپل مینځ کښې هیڅ تعارض نشته۔)

ددے نه بعض احناف جواب کوی چه زمونږ وتر د ماښام سره مشابه نهٔ دی ځکه مونږ په کښې قنوت وایو او درے واړه رکعاتونه ډک کوو او ماښام کښې خو یو رکعت تش دے۔ لهذا مشابهت ختم شو۔ لیکن نور علماء ورته وائی چه د ماښام سره ئے مشابهت په ارکانو کښې شته چه هغه درے رکعاته په دوه قعدو چه مینځ کښې سلام نهٔ وی لهذا من وجه منع ورته متوجه ده ددے وجه نه ئے دیته حرام نهٔ دی وئیلی بلکه مکروه ورته وائی۔

او عام علماؤ ددے مشابهت نه د خلاصوالی دپاره دوه وجے ذکر کړیدی یو دا چه درے رکعاته په دوه قعدو اوکړی او مینځ کښې سلام واړوی۔ دویم دا چه مینځ کښې قعده اونکړی او نیغ دریم رکعت ته پاڅیږی۔ او همدغه دواړه طریقے په احادیثو کښې ثابتے دی۔

او شیخ الاسلام حافظ ابن تیمیهؒ فرمائی : دا طریقه د احنافو مفضوله ده او غوره نه ده لیکن په ده باندے دا اعتراض کیدے شی چه د منع حدیث سره به څه کوے ؟ نو ددے

جواب به د هغه د طرفنه دا اُوکړے شي چه د (لا توتروا بثلاث......) پدے حدیث کښې منع د درے رکعاتو نه نشته بلکه ترغیب دے چه تاسو د شپے مونځ زیات کوئ او اکتفاء په درے رکعاتو مهٔ کوئ لکه د ماښام په شان۔ یعنی نفل (وتر) د فرضو مهٔ مشابه کوئ) بلکه مسلمان له د شپے په مانځه کښې زیادت پکار دے لکه دے سره ئے دا حکم هم ملګرے کړیدے چه (اوتروا بخمس او سبع......) اګرکه بیا هم په طریقه د ظهور سره منع د تشبیه بصلاة المغرب نه څه نا څه کراهت معلومیږی۔ حاصل دا چه علی کل حال د احنافو طریقه ناغوره او مفضوله یا مکروه ده۔ او بل طرفته صحیح طریقے د وترو شته چه بخاری او مسلم کښې راغلی دی نو په هغے باندے عمل پکار دے او که په حنفی طریقه د وترو چا عمل اُوکړو نو ان شاء الله چه جائز قدرے به وی اګرکه غوره به نهٔ وی۔

*- د درے رکعاتو ثبوت هم راغلے دے او پدغه روایت کښې ئے منع هم راغلے ده، نو بعض علماؤ دا جمع کړیده چه احادیث د نهی په هغهٔ وخت کښې دی درے رکعاتو مینځ کښې د ماښام په شان قعده کوی ځکه بیا د ماښام سره مشابه کیږی او کله چه مینځ کښې نهٔ کینی نو د ماښام سره مشابهت نهٔ راځی۔

او امیر یمانیؒ صاحب د سبل السلام وائی چه دا ډیره ښهٔ جَمع ده۔ حافظ فتح الباری کښې وائی: وجه د ښهٔ والی د جمع دا ده چه د منع حدیث به محمول شي په هغهٔ صورت چه درے رکعاته په دوه تشهدونو سره اُوکړی ځکه چه درے رکعاته په یو تشهد باندے د سلفو نه نقل دی بیا د عمر فاروق عمل ذکر کړیدے چه به درے واړه په یو تشهد کول۔ آه۔ او دا په حدیث د عائشه کښې هم راغلے دے لکه بره تیر شو۔

نو ددے په تردید کښې صاحب د آثار السنن (نیموی) د خپل مذهب د تعصب دپاره داسے جواب کړیدے : دا جمع بعیده ده په غایت بعد سره بلکه دا صریح غلطه ده او وائی چه د (لاتوتروا بثلاث ......) مطلب دا دے چه د درے کعاتو نه مخکښې سنت مهٔ پریدئ دے دپاره چه ددے او د ماښام ترمینځ فرق راشي۔

نو علامه محمد عبد الرحمن المبارکفوریؒ د هغهٔ په تردید کښې وئیلی دی : دا د نیموی فرطِ تعصب دے ځکه چه په اهل او انصاف باندے ددے جمع حُسن پټ نهٔ دے او نیموی چه کوم مطلب ذکر کړو نو دا صریح البطلان دے ځکه چه ددے نه خو دا لازمیږی چه د درے رکعاتو وترو نه مخکښې نفل کول ډیر واجب شي واللازم باطل فالملزوم مثله۔ او ددے د بطلان دپاره نور وجوه هم دی چه په متأمل باندے خفی نهٔ دی۔ (تحفة الاحوذی ۲/٤٥٣ طبع دار الکتب بیروت)

بیا په (احسن الفتاوی) کښې رشید احمد لدهیانوی د احنافو د مذهب د تائید دپاره درے روایاتونه ذکر کړیدي او ټول ضعیف جداً او موضوعي دي صرف یو روایت صحیح دے لیکن صریح نهٔ دے لهذا د هغے نه هم مُدعیٰ نهٔ ثابتیږي :

۱ - اول : عائشؓ نه مرفوعاً نقل دي : (الوتر ثلاث کثلاث المغرب) (طبراني في الاوسط) (دا ضعیف حدیث دے په سند کښې ئے (ابوبحر البکراوی) دے او هغه ډیر ضعیف دے لکه مجمع الزوائد (۲/۲٤۲) نصب الرایة (۲/۱۲۰) او العلل المتناهیة (۱/٤٥٤) کښې ئے اُوګوره.

۲- دویم دا چه دلته د تشبیه نه دا نهٔ لازمیږي چه تشبیه دے په ټولو څیزونو کښې وي بلکه دلته تشبیه په درے والي کښې ده، ځکه چه مخکښې صحیح روایت کښې د ماښام سره د وترو د مشابهت نه منع راغلے.

۳- د ابن مسعود موقوف اثر دے : (الوتر ثلاث کوتر النهار صلاة المغرب) (رواه الطحاوی)

الجواب: ۱- دا اثر دے چه عبادات پرے نهٔ ثابتیږي او د مرفوع حدیث خلاف دے.

۲- دویم دا چه پدے کښې د دوه قعدو تصریح نشته.

۳- دارنګه دلته هم تشبیه په درے والي او تاك والي کښې ده لکه تدبر پکښې اُوکړه.

۴- دریم دا چه د صحابي او د عالم په قول باندے وجوب نهٔ ثابتیږي بلکه د وجوب دپاره دلیل د کتاب او سنت مرفوعه پکار دے. او دا حدیث مرفوعاً دارقطني وغیره ضعیف ګرځولے دے.

۴- دویم حدیث مرفوع د ابن مسعود چه د هغه مور د نبي ﷺ خواته د وترو د لیدلو دپاره لاړه نو نبي ﷺ درے رکعاته اُوکړل او قعده ئے پکښې اُوکړه او بیا پاڅیدو او قنوت او دعاګانے ئے پکښې اُولوستے. مختصراً.

(الاستیعاب لابن عبد البر، اعلاء السنن ۲/ ٥١)

الجواب : دا روایت ضعیف جداً دے په سند ئے کښې (اَبان بن ابي عیاش) متروك راوي دے او دا روایت بعضو د خپل مذهب د ترویج دپاره وضع کړیدے، هیڅ ثبوت نهٔ لري. لهذا پدے مسئله کښې د حنفي مذهب دپاره هیڅ قسم تائید ندے موجود. او تفصیل د مسئلے په فتاوی الدین الخالص (٥/ ٥۳۸) کښې اُوګوره.

حافظ ابن حجرؒ فرمائي : محمد بن نصر المروزيؒ چه د ابن مسعودؓ او انسؓ او ابو العالیةؒ نه دا نقل کړیدي چه هغوی د ماښام په شان وتر کړیدي نو د هغے وجه دا ده چه هغوی ته د مذکوره نهي احادیث نهٔ دي رسیدلي. انتهیٰ. (فتح الباري ۲/ ٤٨١) طبع دار المعرفة

بیروت) باب الصلاة قبل العید وبعدها)۔

۲- وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اَلْوِتْرُ رَكْعَةٌ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « وتر يو رکعت دے د شپے په آخره حصه کښ» ۔(مسلمؒ)

تشريح : طيبيؒ فرمائي: مطلب دا دے چه د وترو دپاره آخري وخت د شپے آخري حصه ده، يا مطلب دا چه مستحب وخت د وترو دپاره بعض اجزء د آخرے حصے د شپے دے۔

دا حديث واضح دليل دے چه په وترو کښ يو مستقل رکعت کول هم سنت عمل دے چه نه ترے مخکښ څه مونځ وي او نۀ ترے روستو۔ علامه مناويؒ فرمائي : (فيه رد على ابي حنيفة في منعه الوتر بركعة واحدة) (پدے کښ رد دے په امام ابوحنيفهؒ چه هغۀ يو رکعت وتر دُرست نۀ گڼري) (فيض القدير ٤/٢٩٢)

## الاختلاف في الوتر بركعة واحدة:

۱- احناف وائي : يو رکعت وتر نشته۔ د دوي سره پدے خبره هيڅ دليل نشته سوئ د يو د روايت د بُتيراء نه چه تمهيد د ابن عبد البرّ او الاحكام د عبد الحق او تذکرة الموضوعات د فتني (١/١٦) او الفوائد المجموعة (١/٢٨) او الجوهر النقي (٣/٢٧) او اعلام الموقعين وغيره کښ راغلے دے۔ (چه يو رکعت وتر نه بتيراء (ناتمام) مونځ وئيلے شويدے)۔

الجواب : ۱- دا حديث ثابت نۀ دے بلکه ضعيف دے ځکه چه په سند کښ ئے عثمان بن محمد بن ربيعه دے او د هغه په احاديثو باندے وهم غالب وو۔

امام نوويؒ په «الخلاصه» کښ وائي : دا حديث مرسل ضعيف دے۔ ابن القطان په کتاب «الوهم والايهام» کښ وائي : دا حديث شاذ دے هيڅ اِعتماد پرے نشي کيدے ترڅو چه عدالت د رُواتو ئے معلوم نۀ شي او د عثمان بن محمد بن ربيعه په حديث باندے وَهم غالب دے۔

۲- دويم جواب : ددے روايت بل معارض موجود دے په ابن ماجه او طحاوي کښ چه مطلب بن عبد الله المخزوميؒ فرمائي : يو سړي د ابن عمرؓ نه د وترو متعلق تپوس اُوکړو نو هغۀ ورته په درے رکعاتو حکم اُوکړو چه په دوه رکعاتو به سلام اروي او يو رکعت به جُدا کوي۔ نو هغه سړي اُووئيل : زۀ يريږم چه خلق ديته بتيراء وائي : ابن عمرؓ اُوفرمايل : (هذه سنة رسول الله ﷺ) (دا د رسول الله ﷺ سنت دي) (وفي سنده انقطاع) نو دا حديث

دلیل دے چه وتر یو رکعت کول بالکل جائز دی۔ او دیته قریب روایت ابن خزیمه (۱۰۷٤) نقل کړیدے بسند صحیح انظر قیام رمضان ص (۲۲) للشیخ الالبانی ۔ لهذا یو رکعت وتر ته بُتَیراَء وئیل خلاف السنة دی او عظیمه گناه ده۔

۳- دریم دا چه روستو حدیث د ابوسعید الخدریؓ کښې راروان دی چه نبیﷺ فرمائی :
(......ومن احب ان یوتر بواحدة فلیفعل) (څوك چه غواړی یو رکعت وتر دے اُوکړی)

٤- څلورم دا چه راوی د خپل روایت په مفهوم باندے د بل چا نه زیات ښه پوهیږی نو د بتیراء معنی د ابن عمرؓ نه پخپله نقل ده بیهقی په المعرفة (۲/۳۱۳) او السنن الکبری (۲٦/۳) کښې نقل کړیده۔

ابو منصور مولی سعد بن ابی وقاص فرمائی : ما د ابن عمرؓ نه د شپے د وترو متعلق تپوس اُوکړو هغه اُوفرمایل : اے بچیه ! آیا ته د ورځے وتر پیژنے ؟ ما اُووئیل : آؤ ، د مابنام مونځ دے، هغه اُوفرمایل : رشتیا دے اُووئیل۔ او وتر د شپے یو رکعت دے پدے باندے رسول الله ﷺ امر کړیدے۔ ما اُووئیل : اے ابوعبد الرحمن ! خلق خو دیته بتیراء وائی؟ هغه اُوفرمایل : اے بچیه دا بُتیراء نهٔ دے۔ (انما البتیراء ان یصلی الرجل الرکعة یتم رکوعها وسجودها وقیامها ثم یقوم فی الاخریٰ ولا یتم لها رکوعاً ولا سجوداً ولا قیاماً فتلك البتیراء) انتهی (بتیراء خو دیته وائی چه یو سړے یو رکعت اُوکړی چه رکوع او سجده او قیام ئے ښه پوره کوی او په دویم رکعت کښې لنډ والے اُوکړی چه رکوع او سجده او قیام ئے مکمل طریقے سره نهٔ کوی نو دغه ته بتیراء (ناتمام او ناقص) مونځ وائی)۔
(المقاصد الحسنة للسخاوی (۲۳۳/۱) (تنقیح التحقیق فی احادیث التعلیق ۳٦٤/۱) کشف الخفاء (۲۸۰/۱)

ددے وجه نه امام ابن حزم په المحلی (۹۰/۲) کښې فرمائی : د نبی ﷺ نه نهی د بُتیراء په هیڅ صحیح حدیث کښې نهٔ ده ثابته۔ انتهیٰ۔ حافظ ابن القیمؒ : د سنت صریحه محکمه د رد کولو په مثال کښې دا راوړی دی چه دلته احنافو دا سنت (یو رکعت وتر کول) په دوه باطل حدیثونو رد کړیدے۔ یو پکښې نهی عن البتیراء والا حدیث دے چه ددے هیڅ صحیح او ضعیف سند نشته او نهٔ په معتمدو کتابونو د حدیث کښې شته بلکه که صحیح شی نو بتیراء به هغه مونځ ته وائی چه رکوع او سجده ئے نیمگړی شوے وی۔
(اعلام الموقعین ۳۷۲/۲)

شیخ البانیؒ فرمائی : د رسول الله ﷺ نه د یو رکعت وترو منع بالکل نهٔ ده ثابته، نهٔ په صحیح سند او نه په حسن او یو رکعت ته بتیراء وئیل هیڅ اصل نه لری بلکه خلاف

السنة دی ځکه عبد الله بن عمر یو رکعت اوکړو نو یو سړی تربے د وترو په باره کښې تپوس اوکړو، نو هغه ته حکم د جدا والی اوکړو بیا هغه اووئیل : خلق خو دیته بتیراء وائی : ابن عمر ورته اُوفرمایل : آیا د الله او د رسول طریقه غواړے؟ نو دا د الله او د رسول طریقه ده۔ (رواه ابن خزیمة فی صحیحه (۱۰۷٤) بتحقیق الاعظمی والالبانی بسند صحیح وانظر (قیام رمضان ص ۲۲)۔

لهذا ثابته شوه چه د یو رکعت وتر نه منع نشته۔ بلکه یو رکعت مونځ په دوه مقاماتو کښې ثابت دے۔ ۱- صلاة الخوف کښې۔ ۲- او وترو کښې ۔او تحیة المسجد به عمر فاروق یو رکعت کولو لیکن دا د هغه اجتهاد دے او مرفوع حدیث پکښې نشته۔

الجوبة : د احنافو د قولینو تعارض : یو طرفته وائی : یو رکعت وتر په اسلام کښې نشته او بیا شامی کښې لیکی چه یو سړے قسم اُوکړی چه زهٔ به مونځ نهٔ کوم او یو رکعت اُوکړی نو حانث دے ځکه چه یو رکعت ته په اسلام کښې مونځ وائی۔

۲- القول الثانی : جمهور علماء او مذاهب ثلاثه او محققین احناف وائی چه وتر یو رکعت شته او دا سنت عمل دے۔ عبد الحی اللکهنویؒ په التعلیق الممجد (۱۱۷/۱) کښې او سندیؒ په حاشیة د بخاری (۲۲۸/۱) علامه زبیدیؒ په شرح احیاء العلوم (۳۵۷/۳) کښې دیته ترجیح ورکړیده۔ شوافعو کښې امام نوویؒ په شرح مسلم (۲۵۳/۱) او المجموع شرح المهذب (۱۲،۱۱/٤) کښې او د مالکیه مذهب هم دا دے لکه شرح الزرقانیؒ علی الموطا (۲۲۹/۱) حاشیة الموطا (۱۱۰) لاشفاق الرحمن اُوګوره۔ دارنګه د حنابلو مذهب هم دا دے لکه المقنع د ابن قدامه (۱۸۳/۱) دارنګه المغنی (۷۸۷/۱) اُوګوره۔

دلائل : ۱- یو دا حدیث الباب دے چه دلته مستقل یو رکعت ته ئے وتر وئیلے دے۔

۲- دلیل : ددے نه مخکښې حدیث د ابن عمرؓ : (صلی رکعة توتر له ما قد صلی) ۔

۳- روستو حدیث د ابو ایوبؓ کښې راځی : (......ومن احب ان یوتر بواحدة فلیفعل) (نسائی ابو داود، ابن ماجه)

٤- ابو موسیٰ اشعریؓ د مکے او مدینے په مابین کښې وو نو د ماسخوتن مونځ ئے دوه رکعاته اُوکړو، بیا اُودریدو یو رکعت وتر ئے اُوکړو چه په هغے کښې ئے د سورة النساء نه سل آیتونه اُولوستل بیا ئے اُوفرمایل : ما هیڅ کوتاهی نهٔ ده کړه چه ما خپل قدمونه د رسول الله ﷺ د قدمونو په ځائے کیخودل او هغه څه مے اُولوستل چه نبی ﷺ به لوستل۔ (اخرجه النسائی ۲۵۱/۱) باسناد صحیح باب القراءة فی الوتر)

نو دا مرفوع او موقوف صریح نص دے چه یو رکعت مستقل شته چه مخکښې روستو

ورسره څه مونځ پیوست نۀ وی۔

۵- دارقطنی کښې د عائشۃؓ حدیث دے (ان النبی ﷺ اوتر برکعة) (نبی ﷺ یو رکعت وتر اُوکړو) (۳۳/۲) صححه العظیم آبادی، والمبارکفوری فی التحفة ۱/۴۹٦)

٦- یو رکعت وتر تقریباً د (۲۷) صحابه کرام رضی الله عنهم او د (۴۰) تابعین او محدثین او علماء کرامو نه نقل دے۔لکه الفتح الربانی شرح مسند احمد الشیبانی (۳۰۰/٤) نیل الاوطار (۳۹/۳) او فتاوی الدین الخالص (۵۵۲/۵) کښې د هغوی نومونه ذکر دی۔

۷- خلفاء اربعه ؤ به کول ۔ (ابن ابی شیبة ۱۹۲/۲) قیام اللیل لابن نصر (۱۰۵) طحاوی (۲۰٦/۱) دارقطنی (۳٤/۲) باسناد حسن مصنف عبد الرزاق (۲۷/۳) التعلیق الممجد (۱۱۷) تحفة الاحوذی (۳٤۱/۱)

۸- ابودرداء، فضاله بن عبید او معاذ بن جبل رضی الله عنهم به یو رکعت وتر کول (قیام اللیل لابن نصر ص : ۱۰٦) وتحفة الاحوذی (۳٤۱/۱)

۹- حذیفۃؓ، او ابن مسعودؓ دواړو یو رکعت وتر اُوکړل۔ (مصنف عبد الرزاق۲۵/۳) ابن ابی شیبة (۲۹۳/۲) وابن نصر (۲۰٦) نو ابن مسعود ﷺ هم یو رکعت وتر کړیدے او اَحناف د هغه خلاف کوی۔ او هر چه د ابن مسعودؓ د یو رکعت وتر نه تعجب کول دی نو هغه روایت ضعیف دے لکه مجمع الزوائد (۲٤۲/۲) کښې اُوکوره د حصین راوی ابن مسعودؓ سره ملاقات نۀ دے شوے۔

۱۰- روستو به راشی ابن ابی ملیکۀ وائی : معاویه ﷺ د ماسخوتن مانځه نه روستو یو رکعت وتر اُوکړل او د هغه سره کُرَیب مَوْلیٰ د ابن عباسؓ وو، نو هغه ابن عباسؓ ته راغلو او خبرئے ورکړو (چه معاویۃؓ یو رکعت وتر اُوکړو؟) ابن عباسؓ ورته اُوفرمایل : (دعه انه صحب النبی) وفی روایة (اصاب انه فقیه) (بخاری ۵۳۱/۱، دارقطنی (۳٤/۲) ابن ابی شیبة (۳۹۲/۱) وعبد الرزاق (۲۱/۳) والطحاوی (۱۹۹/۱) (هغۀ پریده ! (ځکه) هغه د نبی ﷺ سره ملګرے شوے دے) (او هغه حق کار کړیدے ځکه هغه په دین پوهه دے)

ددے نه د طحاوی د روایت ضعف معلوم شو چه طحاوی نقل کړیدی چه عکرمه وائی : زۀ د ابن عباسؓ سره د معاویۃؓ په مجلس کښې ناست وم، خبرے اترے مو کولے تردے چه څۀ حصه د شپے نه تیره شوه، بیا معاویۃؓ پاځیدو او یو رکعت وترئے اُوکړو۔نو ابن عباسؓ اُوفرمایل : (من این تری اخذها الحمار) (ګوره خر دا عمل د کوم ځائے نه زدۀ کړیدے) (طحاوی شرح معانی الآثار باب الوتر ۲۸۹/۱) نو دا روایت نۀ دے ثابت۔ ځکه دا ددے

حدیث د بخاری مخالف دے. او ددے نه د طحاوی د قول ضعف هم معلوم شو چه هغهٔ وائی : کیدے شی چه ابن عباس دا (اصاب) لفظ د تقیه په طور وئیلے وی.
١١ - ابن عمرؓ یو رکعت وتر کړیدے (طحاوی ١٩٢/١) نور اقوال او اعمال د صحابه کرامؓ په قیام اللیل د ابن نصر او ابن ابی شیبه او عبد الرزاق او فتاوی الدین الخالص (٥٤٨/٥) کښ اُوګوره. علامه عظیم آبادی په التعلیق المغنی (٢٧/٢) کښ فرمائی : د یو رکعت وتر احادیث متواتر دی.

٣- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، يُوْتِرُ مِنْ ذٰلِكَ بِخَمْسٍ، لَايَجْلِسُ فِيْ شَيْءٍ اِلَّا فِيْ آخِرِهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ به د شپے دیارلس رکعاته مونځ کولو، ددے نه به ئے پنځه رکعاته وتر کول چه سوا د آخری رکعت نه په هیڅ رکعت کښ (د تشهد دپاره) نهٔ کیناستو. (یعنی یو قعدے سره به ئے کول). (بخاریؒ ومسلمؒ).
تشریح : دے حدیث نه معلومه شوه چه عام حالت کښ به نبی ﷺ د شپے مونځ یولس رکعاته کول او کله نا کله به ئے دیارلس رکعاته هم کول.
بیا ددے حدیث نه - هر هغه څوک چه دا واوری - بالکل دا ظاهراً فهم کوی چه پنځه رکعاته وتر به نبی ﷺ کول او اوله قعده به ئے پکښ نهٔ کوله او نهٔ به ئے مینځ کښ سلام اړولو بلکه په یو سلام او یوه قعده به ئے پنځه رکعاته کول او کوم حدیث کښ چه مخکښ تیر شویدی چه نبی ﷺ به په هر دوه رکعاتو کښ تشهد دپاره کیناستو نو هغه په باره د فرائضو او نوافلو کښ دے او مونږ دا هم وئیلی وو چه وتر د هغے نه مستثنیٰ دی.
نو دا حدیث د احنافو د مذهب بالکل خلاف دے ځکه هغوی په وترو کښ د دریو نه زیات نهٔ منی نو هغوی ته دا حدیث ډیر مشکل شویدے. ددے وجه نه هغوی ددے تاویلات بارده کاسده کوی.
١- طحاویؒ خو لند وائی چه دا حدیث منسوخ دے لیکن دا خبره بیرته په هغه باندے مردوده ده ځکه د نسخ دپاره هیڅ دلیل نشته بلکه روستو حدیث نه رد په نسخ معلومیږی.
٢- ملا علی القاریؒ وائی : معنیٰ دا ده : نهٔ به کیناستو په یو شی د مانځه کښ د سلام دپاره لهذا قعده اوله ئے کړیده. لیکن خلیل احمد سهارنفوری په بذل المجهود کښ په هغه رد کړیدے چه دا خبره غلطه ده ځکه چه احناف خو په یو نیت سره پنځه رکعاته جائز

نهٔ ګنړي او د دريو نه زيادت حرام ګنړي. نو که په اول کښې ئې د وترو نيت وي نو هغه خو پنځه نهٔ دي او که د نفلو نيت ئې وي نو بيا خو وتر په نيت د نفلو اداء کول صحيح نهٔ دي. او کهٔ دا اُووئيلې شي چه دا په ابتداء د اسلام کښې وو نو ددې ترديد روستنۍ روايت د زرارة بن اَوفیٰ کوي چه نبي ﷺ به ترمرګه پورې پدې باندې عمل کولو. انتهیٰ.

باقي تاويلات ئې هم بعيد دي او د سنتو نه ګپ شپ او توقې جوړول دي. د نبي ﷺ مطلب او مراد خپل مذهب ته راړول دي او دهغه په سنتو باندې جرأتمندانه اَتيک دې. تې د صحيح ثابتو سنتو پورې استهزاء ده. بيا مقلدين وائي مونږ د نص په مقابله کښې تقليد نهٔ کوو او دلته ئې تاويلاتو ته اُوګوره صريح حديث ورانوي ځکه چه امام ابوحنيفهٔ پرې قول نهٔ دې کړې. تهول دين د يو امام نه قربانول دا کوم دين دې؟. «ليونو سپو اُوخوړلې د اُوبش په شا باندې»

٤ - وَعَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، قَالَ: اِنْطَلَقْتُ اِلٰى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ! اَنْبِئِيْنِيْ عَنْ خُلُقِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ؟ قَالَتْ: اَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ قُلْتُ: بَلٰى. قَالَتْ: فَاِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللهِ كَانَ الْقُرْآنَ. قُلْتُ: يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ! اَنْبِئِيْنِيْ عَنْ وِتْرِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ؟ فَقَالَتْ: كُنَّا نُعِدُّ لَهٗ سِوَاكَهٗ وَطُهُوْرَهٗ، فَيَبْعَثُهُ اللهُ مَا شَاءَ اَنْ يَّبْعَثَهٗ مِنَ اللَّيْلِ، فَيَتَسَوَّكُ، وَيَتَوَضَّأُ، وَيُصَلِّيْ تِسْعَ رَكَعَاتٍ، لَايَجْلِسُ فِيْهَا اِلَّا فِي الثَّامِنَةِ، فَيَذْكُرُ اللهَ، وَيَحْمَدُهٗ، وَيَدْعُوْهُ، ثُمَّ يَنْهَضُ، وَلَايُسَلِّمُ، فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ، ثُمَّ يَقْعُدُ، فَيَذْكُرُ اللهَ، وَيَحْمَدُهٗ، وَيَدْعُوْهُ، ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيْمًا يُسْمِعُنَا، ثُمَّ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ وَهُوَ قَاعِدٌ، فَتِلْكَ اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يَا بُنَيَّ! فَلَمَّا اَسَنَّ ﷺ وَاَخَذَ اللَّحْمَ، اَوْتَرَ بِسَبْعٍ، وَصَنَعَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِثْلَ صَنِيْعِهٖ فِي الْاُوْلٰى، فَتِلْكَ تِسْعٌ يَا بُنَيَّ! وَكَانَ نَبِيُّ اللهِ ﷺ اِذَا صَلّٰى صَلَاةً اَحَبَّ اَنْ يُّدَاوِمَ عَلَيْهَا، وَكَانَ اِذَا غَلَبَهٗ نَوْمٌ اَوْ وَجَعٌ عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ، صَلّٰى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً، وَلَا اَعْلَمُ نَبِيَّ اللهِ ﷺ قَرَأَ الْقُرْآنَ كُلَّهٗ فِيْ لَيْلَةٍ، وَلَاصَلّٰى لَيْلَةً اِلَى الصُّبْحِ، وَلَاصَامَ شَهْرًا كَامِلًا غَيْرَ رَمَضَانَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او سعد بن هشام رحمه الله فرمائي: زهٔ د عائشې رضي الله عنها په خدمت کښې حاضر شوم ما عرض اوکړو اې ام المؤمنين! ما ته د رسول الله ﷺ د اخلاقو په باره کښې خبر راکړه؟ هغې اُوفرمايل: آيا تا قرآن نهٔ دې لوستلې؟ ما عرض اُوکړو، آؤ ولې نهٔ، هغې اُوفرمايل: د نبي ﷺ اَخلاق قرآن کريم وو (يعني قرآن کريم چه څومره اخلاق کريمه او

صفات حميده ذکر کړی دی دا ټول په رسول الله ﷺ کښې موجود وو، د هغهٔ اخلاقی زندګی د قرآن کریم عملی نمونه وه) ما عرض اُوکړو : اے ام المؤمنین ! ما ته د رسول الله ﷺ د وترو متعلق خبر راکړه ؟ (چه هغهٔ به څو رکعاته او څنګه او په کوم وخت کښې وتر کول؟) هغې اُوفرمايل : مونږ به د رسول الله ﷺ دپاره د هغهٔ مسواك او اُوبه تیارولے نو هغهٔ به د شپې الله تعالیٰ راپاڅولو په کوم وخت کښې چه به د الله خوښه شوه چه راپا ئے څوی، نو مسواك به ئے اُووهلو او اَودس به ئے اُوکړو او نهه رکعاته (وتر) مونځ به ئے اُوکړو چه په هغې کښې به صرف په اتم رکعت کښې (د تشهد وئیلو دپاره) کیناستو نو د الله ذکر او حمد به ئے اُوکړو او دعا به ئے کوله بیا به (نهم رکعت ته) پاڅیدو او (مینځ کښې) به ئے سلام نهٔ اړولو نو نهم رکعت به ئے اُوکړو، بیا به کیناستو او د الله ذکر، حمدونه او دعاء به ئے اُوکړه او بیا به ئے داسے سلام واړولو چه مونږ ته به ئے راواورولو، بیا به ئے (د وترو) د سلام نه بعد دوه رکعاته په ناسته اُوکړل نو اے بچیه ! دا یولس رکعاته مونځ شو۔ او ددے نه پس هرکله چه د رسول الله ﷺ عمر زیات شو او غوښه ئے اُونیوله (ضعیف شی) نو اُووه رکعاته وتر به ئے کول او په دوه رکعاتو کښې به ئے هغهٔ شان کار کولو څنګه چه ئے مخکښې (په ناسته) کولو، نو اے بچیه ! دا نهه رکعاته شو، او د الله نبی ﷺ به چه کله یو مونځ کولو نو هغهٔ به دا خوښوله چه په هغې باندے همیش والے اُوکړی، او نبی ﷺ باندے به چه کله د قیام اللیل نه خوب یا درد غلبه اُوکړه (او قضاء به شی) نو هغهٔ به د ورځې دولس رکعاته مونځ کولو، او ما ته دا نهٔ دی معلوم چه د الله نبی په یوه شپه کښې ټول قرآن لوستلے وی او نهٔ ئے ټوله شپه تر صبا پورے مونځ کړیدے، او نهٔ ئے د رمضان نه علاوه ټوله میاشت روژے نیولی دی۔ (مسلمؒ)

تعارف د سعد بن هشام سعد بن هشام بن عامر الانصاری المدنی، د انس بن مالك د تره څوی دے۔ثقه دے د اوساط التابعین نه دے۔ تقریب کښې دی : دا په زمکه د هند کښې شهید شویدے۔ امام بخاریؒ ذکر کړیدی : چه په زمکه د مکران باندے په ښائسته حالت کښې قتل شویدے۔

تشریح : كَانَ الْقُرْآنَ : یعنی قرآن کریم کښې چه کوم ښائسته صفات او ښائسته اخلاق ذکر کیږی چه هغه تضرع، اِنابت، خشوع، اِخبات، توکل، اخلاص او توحید وغیره ټول په نبی ﷺ کښې په اعلیٰ درجه موجود وو۔

وِتْرِ رَسُوْلِ اللهِ : دلته ددے نه مراد صلاة اللیل دے چه وتر پکښې کیږی۔

تِسْعَ رَكْعَاتٍ : دا وتر هم دی او صلاة اللیل (تهجد) هم دی۔ ددے نه روستو یا مخکښې

نبی ﷺ جدا اته رکعاته ندی کړی بلکه صرف دوه رکعاته ئې روستو په ناسته کړیدی۔
فَيَذْكُرُ اللهَ، وَيَحْمَدُهُ : ددې نه مراد التحيات وئيل دی ځکه نور اذکار پدې ځائې کښې نشته۔
وَيَدْعُوهُ : ددې نه بعض علماؤ استدلال کړیدې چه په قعده اوله کښې دعاء او درود لوستل جائز دی ځکه پدې مقام کښې نبی ﷺ په قعده اوله کښې دعاګانې غوختلی دی۔
**الجواب** : دا استدلال صحیح نۀ دې ځکه چه دا خو نهه رکعاته وتر دی او زمونږ اختلاف په څلوریا درې رکعاتی مانځه کښې دې چه آیا زیادت د (عبده ورسوله) نه جائز دې او که نه ؟ نو دا قیاس صحیح نۀ دې۔ بله دا چه قیاس په باب د عباداتو کښې صحیح نۀ دې ددې نه انسان مبتدع جوړیږی۔ بلکه عبادات الله مقرر کړیدی او نبی ﷺ قولًا او عملًا اُمت ته خودلی دی نو په وترو کښې ترې زیادت نقل دې او په باقی ځایونو کښې نقل نشته نو بس د الله او د رسول د حکم مطابق چلیدل ایمان دې۔
او حدیث دلیل دې چه نهه رکعاته وتر هم سنت عمل دې۔ او احناف ئې نۀ منی او وائی دا منسوخ دی۔ **جواب** دا دې چه د نسخ خبره غلطه ده، دلیل پرې نشته، بله دا چه عائشهؓ دا حدیث د وفات د رسول الله ﷺ نه روستو سعد بن هشام ته بیانوی او منسوخ دین څوك چا ته نۀ بیانوی۔ که منسوخ وې نو عائشهؓ به ورته وئیلی وې چه نبی ﷺ به داسې کار کولو لیکن دا منسوخ دی۔ ☆– بله دا چه د نبی ﷺ د آخری ژوند حالت ورته بیانوی۔
تَسْلِيمًا : پدې کښې یو سلام کرزول هم جائز دی او دوه سلامه هم۔ دواړه اَحادیثو کښې ثابت دی۔ کما تقدم فی صفة الصلاة۔

## آیا د وترو نه روستو دوه رکعاته سنت دی؟

ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ : بیا ددې حدیث نه دوه رکعاته نفل پس د وترو نه ثابت شو او حال دا چه روستو فصل ثالث کښې حدیث راغلی دې : (اجعلوا آخر صلاتکم باللیل وترًا) ۔نو ظاهر کښې تعارض شو؟ نو ددې تعارض د دفعیه دپاره بعضو وئیلی دی چه دا دوه رکعاته د نبی ﷺ خصوصیت دې او مونږ ته ئې حکم کړیدې چه تاسو آخری مونځ د شپې وتر اُوګرځوئ۔ نو اتباعاً لِلامر به مونږ دا دوه رکعاته نۀ کوو (شوکانیؒ)۔
دا **جواب** ضعیف دې وجه دا ده چه نبی ﷺ یو عمل کړیدې او امت ئې د خپل عمل نه ندې منع کړې نو د هغې تابعداری پکار ده بلکه اُمت ته ئې امر هم کړیدې لکه حدیث د دارمی (۳۱۲/۱) باب الرکعتین بعد الوتر، صحیح ابن خزیمة (۱۵۹/۲) رقم (۱۱۰۳) او ابن

حبان رقم (٦٨٣) کښې دي :
( ان هذا السفر جهد وثقل فاذا اوتر احدکم فلیرکع رکعتین، فان قام من اللیل والا کانتا له)
(چه تاسو کله سفر کښې وئ او وتر مو اُوکړل نو روستو پسے دوه رکعاته اُوکړئ که د شپے تهجدو ته راپانۀ ځیدے نو دا به قائمقام د تهجدو شی)۔
دویم دا چه« اجعلوا» امر د استحباب او ندب دپاره دے او دا دوه رکعاته ددے دپاره نبی ﷺ کړیدی چه خلقو ته اُوښائی چه د وترو نه روستو هم مونځ جائز دے۔ لکه دا خبره امام ابن خزیمهؒ او امام نوویؒ کړیده نو د وترو نه روستو دوه رکعاته کول جائز دی۔ یعنی په عام حالت کښې به انسان وتر په آخره کښې کوی لیکن کله چه انسان تهجد کم کړی وی او صبا راختلو ته، وخت نزدے وی نو وتر دے اُوکړی ځکه دا ډیر مهم دی او بیا د وترو نه بعد که وخت وی نو مختصر دوه رکعاته دے په ناسته اُوکړی نو عدد د تهجدو به ئے هم پوره شی او په سنت به هم عمل اُوشی۔
۳- حافظ ابن قیمؒ هم ښۀ جواب کړیدے چه دا دوه رکعاته منافی نۀ دی د « اجعلوا » امر سره ځکه چه دا د متمماتو د وترو نه دی لکه څنګه چه د ماښام مونځ وتر النهار دی او د هغے نه روستو دوه رکعاته د متمماتو د ماښام نه دی نو دغه شان دلته هم دا دوه رکعاته د متمماتو د وترو نه دی۔ (زاد المعاد ۱/۳۲۱)
شیخ البانیؒ په الصحیحه کښې فرمائی : ما په تعلیق د صفة الصلاة (۱۲۳) کښې وئیلی وو چه احتیاط دا دے چه دا دوه رکعاته اتباعاً للامر پریخودے شی لیکن اُوس راته دا واضحه شوه چه دا دوه رکعاته د نبی ﷺ خصوصیت نۀ دے او دا اَمر د وجوب دپاره نۀ دے بلکه مقصود په دغه اَمر چه د شپے آخری مونځ وتر اُوګرځوئ) دا دے چه په آخر د شپه کښې وتر کول درنه پاتے نۀ شی۔
او دا مطلب نۀ دے چه روستو ترے دوه رکعاته وغیره ندی جائز۔ (قیام رمضان ص ۲۵) بیا دا دوه رکعاته همیشه نبی ﷺ ندی کړی بلکه کله کله ئے کړیدی۔
بعض علماء ددے دوه رکعاتو نه دوه سجدے مراد کوی دا هم صحیح نۀ ده او بعض ددے نه د سحر سنت مراد کوی دا هم صحیح نۀ دی بلکه دا مستقل دوه رکعاته دی۔ انظر (مجموع الفتاوی ۲۳/۹٤)
فَلَمَّا اَسَنَّ : یعنی بوډا شو دا حدیث دلیل دے چه اووه رکعاته او نهه رکعاته ندی منسوخ ځکه دا د بوډا والی عمل دے۔
قَرَأَ الْقُرْآنَ كُلَّهُ : ددے نه ثابته شوه چه شبینه کول (په یوه شپه کښې قرآن ختمول) صحیح

نۀ دی۔ او دکومو سلفو نه چه دا عمل نقل دے نو هغوی ته دا حدیث نۀ دے رسیدلے۔
اِلَی الصُّبۡحِ : ټوله شپه عبادت کول سِوئ د آخیری شپو د رمضان نه صحیح نۀ دی۔

٥- وَعَنِ ابۡنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «اِجۡعَلُوۡا آخِرَصَلَاتِكُمۡ بِاللَّيۡلِ وِتۡرًا»، رَوَاهُ مُسۡلِمٌ.

ترجمه : او عبد الله بن عمر ﷺ فرمائی : نبی ﷺ فرمائیلی دی : « د شپے په مانځه کښې آخری مونځ وتر اُوګرځوئ ! »۔ (مسلمؒ)

تشریح : حدیث نه دوه مسئلے ثابتیږی :

١- یو دا چه د شپے په مانځه کښې وتر په آخر کښې کول پکار دی او حکمت ئے مخکښې تیر شو چه مخکښې ټول نفلو نه وتر جوړیږی او وتر چونکه ډیر محبوب دی الله ته د باقی نوافلو نه نو ددے په وجه به د باقی نوافلو درجه هم اُوچته شی۔

٢- دویمه دا چه د شپے په آخره حصه کښې وتر پکار دی خو که انسان یَریږی چه رانه فوت به شی نو بیا ماسخوتن کولو کښې هم شریعت اِجازه ورکړیده، او چه کله ماسخوتن وتر اُوکړی بیا د شپے راپاځیږی نو آیا تهجد به کوے او که نۀ ؟ نو بعض کم علمه مولیان وائی : چه د شپے مونځ به د وترو نه پس نۀ کوی ځکه چه نبی ﷺ فرمائی : چه وتر د شپے آخری مونځ جوړ کړئ نو روستو مونځ کول صحیح نۀ دی، دا خبره ئے غلطه ده ځکه د نبی ﷺ غرض دا نۀ دے، بلکه غرض دا دے چه وتر په آخر د شپه کښې اُوکړئ، که آخر ته دے پریخودے شو او که نۀ شو پریخودے نو بیا که د شپے راپاځیدلے نو مونځ کولے شے۔

دلائل : ١- دلیل دا دے چه د ابوبکرصدیق طریقه دا وه چه ماسخوتن به ئے وتر کول نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : تا په اَحۡوَط باندے عمل کړیدے۔ نو کله چه هغه ماسخوتن وتر کړی وی نو آیا د شپے تهجد به ئے بیا نۀ وی کړی څۀ ؟۔ بلکه هغۀ به احتیاطاً ماسخوتن کښې وتر کول هسے نه چه پاتے نۀ شی، لکه ابوسلیمان الخطابی په خپل اسناد سره په هغۀ حدیث کښې د ابوبکر دا الفاظ زیات ذکر کړیدی چه هغۀ نه نبی ﷺ ته اُوفرمایل :

(اما انا فأصلی ثم أنام علی وتر فاذا استیقظت صلیت شفعاً شفعاً حتی الصباح) (المنتقی بشرح نیل الاوطار (٣/٥٦)

(هرچه زۀ یم نو زۀ وتر کولو سره اُودۀ کیږم او کله چه د شپے رابیدار شم نو د سحر پورے دوه دوه رکعاته کوم) او پدے باندے امام ابوداود باب لګولے دے (باب فی الوتر قبل النوم)۔

او دا روایت مصنف عبد الرزاق رقم (٤٦١٥) او شرح معاني الآثار (١٩٧/٢) هم په دغه الفاظو راوړیدے۔ ورواه الاثرم انظر المغني لابن قدامة (٨٣٠/١)

٢- دلیل: نبي ﷺ فرمائي: (من خاف ان لا يقيم من آخر الليل فليوتر أوله ومن طَمِعَ ان يقوم آخرهُ فليوتر آخر الليل فان صلاة آخر الليل مشهودة وذلك افضل) (مسلم١/٢٥٨) (وسيأتي)

څوك چه يَريږي چه په آخر د شپه كښ به راپانهٔ شيږي نو په اول كښ دِے وتر اُوكړي او څوك چه طمع لري چه په آخر د شپه كښ به راپاڅي نو هغهٔ دِے آخر كښ اُوكړي ځكه په آخر د شپه كښ مونځ ته ملائك حاضريږي او دا افضل دے) (مسلمؒ) نو څوك چه په ابتداء كښ وتر اُوكړي او بيا د شپے رابيدار شو نو هغهٔ له تهجد جائز دی۔

٣- دلیل: دارنګه روستو حديث كښ راځي چه نبي ﷺ په اول د شپه كښ هم وتركړيدي نو آيا بيا به نبيﷺ تهجد نه وي كړي څهٔ؟۔

٤- دلیل: قيس بن طلق فرمائي: طلق بن علي د رمضان په يوه ورځ كښ زمونږ ملاقات له راغلو او مونږ سره ئے بيګاه كړو او روژه ئے ماته كړه بيا ئے مونږ ته په دغه شپه تراويح اُوكړے او وتر ئے اُوكړل بيا خپل مسجد ته لاړو هلته ئے خپلو ملګرو ته مونځ اُوكړو، تردے چه كله وتر باقي پاتے شو نو بل سړے ئے مخكښ كړو او وے فرمايل: (أَوْتِرْ بِأَصْحَابِكَ فاني سمعت رسول الله ﷺ يقول: لَا وِتْرَانِ فِيْ لَيْلَةٍ) واسناده صحيح (ابوداود ٢١٠/١) رقم (١٤٣٩) (تهٔ خپلو ملګرو ته وتر اُوكړه (ما وتر كړيدی) ځكه ما د رسول الله ﷺ نه اَوريدلی دی چه فرمايل ئے: په يوه شپه كښ دوه وتره نشته)۔

٥- دلیل: د رافع بن خديج نه تپوس اُوشو نو هغهٔ اُوفرمايل: (اما انا فاني اوتر من اول الليل، فان رزقت شيئاً من آخره صليت ركعتين ركعتين حتى يدركني الصبح) مصنف عبد الرزاق (٤٦٢٠) تحفة الاحوذي (٤٧٠/٢)

٦- عمار بن ياسرؓ نه هم تپوس اُوشو: هغهٔ اوفرمايل: (اما انا فاوتر قبل ان انام، فان رزقني الله شيئاً صليت شفعاً شفعاً الى ان اصبح) مصنف عبد الرزاق (رقم ٤٦٢١) شرح معاني الآثار (٣٤٣/١) مختصر كتاب الوتر (١٠٦) لاحمد بن علي المقريزي) وابن سعد (١٤٩/٧) وسنده جيد) تغليق التعليق (٤٣٥/٢) لابن حجر وسنده صحيح۔

٧- دلیل: ابو هريرةؓ نه د وترو باره كښ تپوس اُوشو هغهٔ اُوفرمايل:

(اما انا فأوتر ههنا بخمس ثم ارجع فأرقد، فان استيقظت صليت شفعاً حتى أصبح) مصنف عبد الرزاق برقم (١٦/٣) (٤٦٢٢) (زهٔ اول وتر اُوكړم بيا كهٔ د شپے رابيدار شم نو تر صبا پورے دوه دوه ركعاته كوم)

## ٢- المسئلة الثانية نقض الوتر:

څوك چه په اول د شپه کښې وتر اُوکړي او بيا د شپې تهجدو دپاره رابيدار شي نو آيا دوباره به وتر کوي او که نهٔ؟ نو د ابن عمرؓ عمل دا وو چه هغه به د شپې تهجد کول نو په آخر کښې به ئې دوباره وتر کول پداسې طريقه چه يو رکعت به ئې ماسخوتن کړے وو او يو به ئې ورسره د شپې رابيداريدو نه پس پيوسته کړو۔ نو دوه رکعاته نفل به ئې ترے جوړ کړل (او ديته مسئله د نقض الوتر وائي) (اخرجه احمد ٣١٠/٤ مع الفتح الرباني) ومجمع الزوائد (٢٤٦/٢) او دا قول د علي ﷺ هم دے۔ په مسند الشافعي (١٩٥/١) او السنن الكبرئ للبيهقي (٣٧/٣) کښې دي:

علي ﷺ فرمائي: وتر درے قسمه دي څوك چه غواړي چه په اول د شپه کښې وتر اُوکړي نو کولے ئې شي بيا که رابيدار شي نو ددهٔ خوښه ده چه هغې سره يو رکعت يو ځائے کړي او بيا دوه دوه رکعاته کوي تر صبا پورے بيا وتر اُوکړي نو هم کولے ئې شي۔ الخ (نيل الاوطار ٥٦/٣) او دا قول د اسحاق دے۔ (ترمذي)

ليکن دا د هغه صحابه کرامؓ اجتهاد دے چه د مرفوع احاديثو خلاف دے۔ او د دوي سره باقي هيڅ مرفوع صحيح نص نشته۔لکه دا خبره علامه الشيخ مبارکفوري په تحفة الاحوذي کښې او شوکانيؒ په نيل الاوطار (٥٦/٣) او ابن حزم په محلي (٩١/٢) کښې کړيده۔

☆- عائشه رضي الله عنها نه تپوس اُوشو چه يو سړے وتر اُوکړي بيا رابيدار شي، او يو رکعت ورسره يو ځائے کړي او بيا آخر کښې وتر اُوکړي؟ (دا صحيح دي؟) هغې اُوفرمايل: (ذاك الذى يلعب بوتره) (دا سړے په خپلو وترو لوبے کوي)۔

او بعينه دغه شان قول د ابن عباسؓ نه نقل دے۔ (تحفة ٤٧٠/٢) باب ما جاء لا وتران في ليلة) وصلاة الوتر لمحمد بن نصر (٨٢)

٢- بل طرفته **جمهور اُمت** وائي: د وترو ماتول نشته بلکه د وترو نه روستو هم سونځ کول جائز دي۔ لکه دلائل ئې مخکښې ذکر شو او هر چه دا حديث دے چه وتر په آخر کښې اُوکرځوئ نو پدے کښې امر د ندب او استحباب دپاره دے۔ ورنه که څوك ماسخوتن وتر اُوکړي نو د شپے وتر کول ورته معاف دي صرف تهجد دِے اوکړي۔ نبي ﷺ نه داسے ندي نقل چه هغوي مات کړي وي۔ بلکه هغهٔ فرمايلي: (لا وتران في ليلة) (بسند صحيح) (صحيح الترمذي ٤٧٣) (ابوداود) التخليص الحبير (٤٣/٢) وقد مر۔

او دا قول د ائمه اربعو وغيرهم دے۔ بلکه په صحابه کرامؓ کښې دا قول د ابوبکر صديق،

عمار بن یاسر، رافع بن خدیج، عائذ بن عمرو المزنی، طلق بن علی، ابو هریره او عائشه -رضي الله عنهم- دي. او دا ابن ابی شیبه د سعد بن ابی وقاص، ابن عمر او ابن عباس (رضي الله عنهم) نه نقل کړیدي او په تابعینو کښ: سعید بن المسیب، علقمه، شعبی، مکحول، سعید بن جبیر، ابراهیم النخعي، الحسن البصري، طاوس، ابو مجلز رحمهم الله دي. او د امامانو نه سفیان الثوری، ابن المبارك، امام مالك او احمد دي چه ترمذیؒ نقل کړیدي او دي ته ئې اصح وئیلي دي. او علامه عراقیؒ د اَوزاعیؒ، امام شافعیؒ او ابو ثورؒ نه نقل کړیدي او قاضي عیاض د ټولو اهل فُتیا نه نقل کړیدي او د رسول الله ﷺ نه ددې مخالف هیڅ قسم دلیل نشته. (راجع فتاوى اللجنة الدائمة (۷/۱۷۷- صلاة التطوع)

او دوی جواب ورکوی قائلین د نقض الوتر ته او هغهٔ دا چه کله یو سړی په اول د شپه کښ وتر اُوکړل نو دهٔ وتر اداء کړل بیا چه کله دا خوب کوی او بیا راپاڅی او اَودس کوی او بیا یو رکعت کوی او د مخکښ سره ئې یو ځائې کوی نو دا رکعت غیر دې د هغهٔ رکعت نه چه ماسخوتن کښ شویدې، او عقل دا نهٔ مني چه دا رکعت دې د مخکني رکعت سره یو ځائې شي او دواړه دې یو مونځ اُوګرځي ځکه دواړو ترمینځ خوب، بې اَودسي او اَودس وغیره راغلل بلکه چا چه دا کار اُوکړو نو هغهٔ دوه کرت وتر اُوکړل بیا چه په آخر د مانځه کښ بیا وتر کوی نو دا دریم ځل وتر شو چه مشروع نهٔ دی. (لا وتران في ليلة) (تحفة الاحوذی ۲/٤٧٤- دارالکتب بیروت)

٦- وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه نبی ﷺ فرمایلی دی: «په وتر کولو سره د صبا د راختلو نه جلتي اُوکړئ» (یعنی چه صبا دریاندې راونهٔ خیژی). (مسلمؒ)

تشریح: بَادِرُوا: جلتي اُوکړئ په اداء کولو د وترو مخکښ د صبا راختلو نه. دا حدیث دلیل دې چه وتر د شپې په آخری حصه کښ کول بهتر دی. او وخت ئې د صبا د راختلو نه مخکښ دې او کله چه صبا راوخیژی نو وخت ئې ختم شو.

٧- وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «مَنْ خَافَ اَنْ لَّا يَقُوْمَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوْتِرْ اَوَّلَهُ، وَمَنْ طَمِعَ اَنْ يَّقُوْمَ آخِرَهُ فَلْيُوْتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ، فَإِنَّ صَلَاةَ آخِرِ اللَّيْلِ مَشْهُوْدَةٌ، وَذٰلِكَ أَفْضَلُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «چا سره چه دا خوف وي چه په آخر د شپه کښ به راپانۀ ځيږي، نو هغۀ دې په ابتداء د شپه (يعنی د ماسخوتن نه بعد) وتر اُوکړي، او څوك چه دا طمع لري چه په آخر د شپه کښ به راپاځيږي نو هغۀ له پکار دي چه په آخر د شپه کښ وتر اُوکړي، ځکه د آخر د شپې مونځ مشهود دے (يعنی په دے وخت کښ د رحمت ملائك او انوار او برکات نازليږي) او دا (يعنی آخر د شپه کښ وتر کول) افضل دي»۔ (مسلمؒ)

تشريح : من خاف نه معلوميږي چه ددۀ د تهجدو اِراده شته، خو د ضرورت په وجه په اول د شپه کښ وتر کوي احتياطاً۔

وَمَنْ طَمِعَ : دا دليل دے چه د (فليوتر) امر استحبابي دے۔ ځکه دا امرئے معلق کړو په طمع پورے۔ يعنی چه طمع ئے وي نو آخر کښ وتل کول بهتر دي۔ او که طمع ئے نۀ وي نو بيا به اول کښ وتر کوي۔

مَشْهُوْدَةٌ : يعنی آخر کښ وتر ځکه کول پکار دي چه دے مونځ ته د رحمت ملائك حاضري کوي نو مونځ ډيرول پکار دي ځکه تا به تهجد هم کړي وي او ورسره وتر به هم اُوکړے۔ نو دا بهترين وقت دے او دا بهترين مونځ ورته روستو کول پکار دي۔ امام نوويؒ فرمائي : دا حديث صريح دليل دے چه وتر د شپے آخر ته مؤخر کول افضل دي د هغه چا دپاره چه اعتماد د رابيداريدو لري په آخر د شپه کښ او که د چا اعتماد نۀ وي نو هغه له تقديم افضل دے۔ او ټول احاديث مطلقه به په دے تفصيل باندے حمل کولے شي۔ انتهیٰ۔

وَذٰلِكَ أَفْضَلُ او دغه د شپے په آخري حصه کښ مونځ کول ډير غوره دي۔

---

۸- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مِنْ كُلِّ اللَّيْلِ أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ، وَأَوْسَطِهِ، وَآخِرِهِ، وَانْتَهٰى وِتْرُهُ إِلَى السَّحَرِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائي : د شپے په هره حصه کښ رسول الله ﷺ وتر کړي دي، په ابتداء د شپه کښ (د ماسخوتن مانځه نه فوراً بعد) او په مينځ د شپه او په آخر د شپه کښ او د رسول الله ﷺ وتر (په آخر د عمر کښ) سحر ته رسيدلي دي۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

تشريح : دا حديث دليل دے چه تقديم د وتر على النوافل عند الضرورة جواز لري او که ضرورت نۀ وي نو نوافل به مخکښ کوي او که څوك وتر مخکښ کوي او نوافل ترے

روستــو كـوي نو دا د سنت خلاف ده۔ او حديث دليل دے چه وتر تو له شپه كښې كيږي كله ئے چه وخت داخل شي مګر افضل دا ده چه د صبا د راختلو نه مخكښې اوشي۔
او كـلـه چـه يـو انسـان جـمـع بين صلاتين كوي د ماښام په وخت كښې نو وتر به نۀ كوي بلكه وتر به په خپل وخت كښې كوي او په سورلۍ هم جائز دي۔

---

٩ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ بِثَلَاثٍ: صِيَامِ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ، وَرَكْعَتَيِ الضُّحٰى، وَاَنْ اُوْتِرَ قَبْلَ اَنْ اَنَامَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او ابـو هريره ﷺ فـرمـائـي : مـا تـه خپل دوست (رسول الله ﷺ) په دريے خبرو وصيـت كـړے دے : ١– يـو خـو پـه هـره مياشت كـښې دريے ورځے روژه نيول۔ ٢– دويم دوه ركعاته د چاشت۔ ٣–او دريم دا چه زۀ د اودۀ كيدو نه مخكښې وتر اوكړم۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)
تشريح : قَبْلَ اَنْ اَنَامَ : دۀ تـه ئے دا حـكـم څكه كړے وو چه دا طالب العلم وو، د احاديثو تـكـرار بـه ئے كـولـو نو دماغ به ئے ستړي شوي وو نو احتمال وو چه ددۀ نه د خوب په وجه وتر فوت شي۔
دا حديث دليل دے چه څوك د شپے په رابيداريدو يقين نۀ لري نو د هغه دپاره ماسخوتن نـه روستـو وتر افضل دي او څوك چه طاقت د رابيداريدو لري نو هغه دپاره آخر وخت كښې وتر افضل دي۔ د صلاة الضحى تشريح روستو راروانه ده۔

## الفصل الثاني

١٠ – عَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ : أَرَأَيْتِ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فِيْ اَوَّلِ اللَّيْلِ أَمْ فِيْ آخِرِهٖ ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِيْ اَوَّلِ اللَّيْلِ، وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِيْ آخِرِهٖ. قُلْتُ: اَللهُ اَكْبَرُ! اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْاَمْرِ سَعَةً، قُلْتُ: كَانَ يُوْتِرُ اَوَّلَ اللَّيْلِ أَمْ فِيْ آخِرِهٖ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا أَوْتَرَ فِيْ اَوَّلِ اللَّيْلِ، وَرُبَّمَا أَوْتَرَ فِيْ آخِرِهٖ. قُلْتُ :اَللهُ اَكْبَرُ! اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْاَمْرِ سَعَةً، قُلْتُ: كَانَ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَخْفِتُ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا جَهَرَ بِهَا، وَرُبَّمَا خَفَتَ. قُلْتُ: اَللهُ اَكْبَرُ! اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِي الْاَمْرِ سَعَةً . رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَه الْفَصْلَ الْاَخِيْرَ.

ترجمه : او غـضيف بـن حارث رحمه الله فرمائي : ما د عائشےؓ نه تپوس اوكړو : آيا تا رسول الله ﷺ ليدلے دے چه د جنابت نه ئے په اول د شپه كښې يا په آخر د شپه كښې غسل

کړې وي؟ عائشې اُوفرمایل: کله به رسول الله ﷺ په اول د شپه کښې (د جماع نه پس) غسل کولو او کله به ئې په آخر د شپه کښې غسل کولو۔ ما اُووئیل: الله ډیر لوئې دے، ټول حمدونه او صفتونه خاص الله لره دي چه هغهٔ په دیني امورو کښې آساني ګرزولې ده، او بیا مې تپوس اُوکړو، آیا رسول الله ﷺ په اول د شپه کښې وتر کول او که په آخر د شپه کښې؟ هغې اُوفرمایل: کله به ئې په اول د شپه کښې وتر کول او کله به ئې په آخر د شپه کښې کول، ما اووئیل: الله اکبر! حمدونه دي خاص الله لره چه پدې کار کښې ئې فراخي ګرزولې ده، ما اووئیل: آیا رسول الله ﷺ به (د تهجد و یا مطلقاً) په قراءت وئیلو جهر کولو او که پټوالے؟ نو هغې اُوفرمایل: کله به ئې په اُوچت آواز قراءت کولو او کله به ئې په آرام آواز سره"، ما اووئیل: الله اکبر، ټول د کمال صفتونه الله لره دي چه په دے کار کښې ئې فراخي ګرزولې ده۔ (ابوداود) او ابن ماجه ددے روایت صرف آخري فقره (چه په هغې کښې د قراءت تذکره ده) نقل کړیده۔

**تشریح:** اَللّٰهُ اَكْبَرُ: دا کلمه د تعجب دپاره ده۔

كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ: د سوال مطلب دا وو چه آیا رسول الله ﷺ به همیشه دپاره د جنابت نه فوراً روسته غسل کولو، او که نهٔ اودهٔ به شو بیا به ئې غسل کولو؟ لکه دا تشریح په بل روایت د نسائي کښې راغلې ده۔ او د جواب مطلب دا وو چه د رسول الله ﷺ حالات مختلف وو کله به ئې د جماع نه روستو متصلاً غسل کولو او کله به ئې د شپې په آخره شپه کښې غسل کولو دے دپاره چه امت ته آساني شي۔ نو ځکه غضیف پدے باندے حمد وئیلے دے چه ښهٔ دے چه الله داسې فراخي راوسته چه د شپې په کومه حصه کښې غسل کوے، اجازت دے۔ او پابندي ئې اُونهٔ لګوله چه ضرور به د جنابت پسې متصلاً غسل کوے۔ نو دا نعمت دے پدے باندے شکر اداء کول پکار دي۔

رُبَّمَا جَهَرَ بِهَا: دا د شریعت آساني ده چه تنوع ئې کړیده په بعض عباداتو کښې۔ رسول الله ﷺ به یوه شپه دوه شپې په قراءت کښې آواز اُوچتولو او کله به ئې په آرام آواز سره قرائت کولو د مقام او حالت مطابق قراءت به ئې کولو۔ او دا پټوالے به داسې نهٔ وي چه ځان ته ئې نهٔ اَوري بلکه دومره اندازه کښې به وي چه خپله ئې اَوري او پوهیږي چه زهٔ فلانے آیت وایم۔ لهذا دا دلیل دے چه د شپې په مانځه کښې مونځ کونکي ته اختیار دے چه قرائت په جهر کوي او که په پټه۔

**فوائد الحدیث:** ١– د شریعت په رخصت باندے خوشحالي کول پکار دي۔

٢– د وترو په اول اللیل کښې جواز ثابت شو۔

٣- رسول الله ﷺ وتر نهٔ دی مات کړی۔ نو د نقض الوتر مسئله کمزورے شوه۔ او نهٔ رسول الله ﷺ د وترو نه روستو تهجد پریخوستی دی۔ فتدبر۔
درجة الحديث: اسناده صحيح : اخرجه احمد فى المسند (٤٧/٦) وابوداود (٢٢٦) والنسائي مختصراً في المجتبیٰ (١٢٥/١) واخرجه ابن ماجه (١٣٥٤)

---

١١- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِي قَيْسٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِكَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُوْتِرُ ؟ قَالَتْ: كَانَ يُوْتِرُ بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ، وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ، وَعَشْرٍ وَثَلَاثٍ، وَلَمْ يَكُنْ يُوْتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ، وَلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او عبد الله بن ابی قیسؒ فرمائی: ما د عائشے رضی الله عنها نه تپوس اُوکړو، چه رسول الله ﷺ به څو رکعاتو سره وتر کول ؟ هغے اُوفرمايل : نبی ﷺ به کله څلور او درے (یعنی اُووه رکعاته) او کله شپږ او درے (یعنی نهه) او کله اته او درے ( یعنی یولس) او کله لس او درے (دیارلس) رکعاتو سره وتر کول، او نبی ﷺ به د اُووه رکعاتو نه کم او دیارلسو نه زیات رکعتونو سره هیڅ کله وتر نهٔ کول۔ (ابوداودؒ)۔
تعارف د عبد الله بن ابی قیس : عبد الله بن ابی قیس ابوالاسود النصری الحمصی دے د عطیه بن عازب مولیٰ دے د خپل مولی او ابن عمرؓ او عائشےؓ وغیره نه ئے نقل کړیدی۔ تقریب کښں دی : دا ثقه مخضرم دے عجلیؒ وائی : ثقه تابعی دے۔
تشریح : د حدیث مقصد دا دے چه د نبی ﷺ د شپے د مانځه مختلف مقدار وو کله به ئے د وترو سره اُووه رکعاته کول، څلور نفل او درے وتر۔ او کله به ئے نهه رکعاته کول شپږ نفل او درے وتر او کله به ئے یولس رکعاته کول، اَته نفل او درے وتر۔
او کله به ئے دیارلس رکعاته کول، لس نفل او درے وتر۔ نو دلته په ټول مونځ باندے اطلاق د وترو شویدے۔ ځکه چه نبی ﷺ به د نفلو پسے وترکول نو ټول مونځ به ئے وتر حساب شو۔ (توتر له ما قد صلی)
وَلَمْ يَكُنْ يُوْتِرُ : یعنی غالب عادت د نبی ﷺ دا وو چه د اُووه رکعاتو نه به ئے کمے نهٔ کولو او د دیارلس رکعاتو نه به ئے زیاتے نهٔ کولو او دا په مختلف اوقاتو حمل دی، کله به ئے طبیعت کښں تازګی وه او وخت به زیات وو نو زیات به ئے کول او کله به ئے طبیعت کښں تنګی وه او وخت به هم تنګ وو نو کم به ئے کول او د بیان د جواز دپاره ئے دا کارونه کړیدی۔

او كله نا كله د نبي ﷺ نه آته ركعاته نفل او يو وتر او كله لس ركعاته نفل يو وتر او كله دولس نفل يو وتر هم نقل دے بيا دلته درے ركعاته راغلل نو دا په كوم كيفيت شويدى نو د هغے كيفيت مخكښ تير شو چه په مينځ كښ به ئے سلام گرځولو۔
مخكښ مونږ وئيلى وو چه نبي ﷺ به تهجد د څلورو نه كم نهٔ كول او قولاً د هغه نه ثابت دى چه څوك دوه ركعاته أوكړى نو هم هغه ته د تهجدو أجر ملاويږى۔
درجة الحديث: اسناده صحيح : اخرجه احمد (١٤٦/٦) وابوداود (١٣١٦) والطحاوى فى شرح معانى الآثار (٢٨٥/١) ..................................................

١٢ - وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «اَلْوِتْرُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او ابوايوب رضي الله عنه فرمائى: رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « وتر په هر مسلمان باندے حق دے، لهذا څوك چه پنځه ركعاته وتر كول غواړى نو اُودے كړى او كه څوك غواړى چه درے وتر اُوكړى نو اُودے ئے كړى او څوك چه غواړى چه يو ركعت وتر اُوكړى نو اُودے ئے كړى»۔ (ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ)
تشريح : اَلْوِتْرُ حَقٌّ : حق په معنىٰ د ثابت سره راځى يعنى وتر په ذمه باندے ثابت شے دے او په شريعت كښ ثابت دى او پدے كښ تاكيد دے په وترو باندے او حق دلته په معنىٰ د واجب سره نهٔ دے ځكه چه وجوب په معنىٰ د فرضيت سره راځى او وتر خو فرض نهٔ دى نو د احنافو استدلال ترے نهٔ صحيح كيږى ځكه چه هغوى هم وترو ته فرض نهٔ وائى او واجب د هغوى خپله جُدا اصطلاح ده چه د سنتو نه بره او د فرضو نه ښكته درجه ده۔ لهذا په خپله مُبتدَعه مُختَرَعه اِصطلاح باندے به الفاظ شرعيه نهٔ شى حمل كولے۔
او حق دلته په معنىٰ د واجب نهٔ دے ځكه چه مجد بن تيميهؒ په «المنتقىٰ» كښ ذكر كړيدى چه ابن منذرؒ دا حديث روايت كړيدے په لفظ : (الوترحق وليس بواجب) نو دا صريح دليل دے چه حق دلته په معنىٰ د ثابت دے، نهٔ په معنىٰ د واجب سره۔ بلكه دا چه حق لفظ د غسل يوم الجمعه په باره كښ هم راغلے وو او هلته جمهور علماؤ ترے سنت مؤكد اخستے وو نو دغه شان دلته هم ترے سنت مؤكد اخستے شى۔
فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ : پدے حديث كښ د وترو درے طرق راغلل۔

## طرق وكيفيات الوتر:

۱- يو ركعت مستقل كول۔ لكه مخكښې تير شو۔

۲- دريے ركعاته په دوه طريقو يو دا چه په دوه سلامونو سره۔

۲- يا په يو سلام او يوه قعده سره۔ او ددے تفصيل هم مخكښې تير شو۔

۳- دريم كيفيت: پنځه ركعاته په يوه قعده او يو سلام لكه مخكښې د عائشة حديث ذكر شو۔ (يوتر من ذلك بخمس لا يجلس في شيءِ الا في آخرها) (مسلم۱/۲۵٦)

٤- اُووه ركعاته كول او پدے كښې دوه كيفياته دى ۱- يو دا چه په شپږم ركعت قعده اوله اُوكړى بيا پاځى اُووم ركعت اُوكړى۔ كما في حديث النسائي (۱/۲۵۰) واحمد وابي داود۔ نيل الاوطار (۳/٤۳)

۲- دويم دا چه ټول په يوه قعده اُوكړى كما في حديث النسائي (۱/۲۵۰) (صلى سبع ركعات لا يقعد الا في آخرهن) مسلم ۱/۲۵٦)

(۵) - نهه ركعاته په يوه طريقه چه اتم ركعت باندے قعده اوله اُوكړى بيا پاځى او نهم ركعت اُوكړى كما مر في حديث سعد بن هشام۔

درجة الحديث: اسناده صحيح: اخرجه احمد (۵/٤۱۸) وابوداود (۱٤۲۲) واخرجه النسائي (۳/۲۳۸) وابن ماجه (۱۱۹۰) والطحاوي في شرح معاني الآثار (۱/۲۹۱) والدارقطني في السنن (۲/۲۲) رقم (۱) والحاكم (۱/۳۰۳)

---

۱۳- وَعَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ اللهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ، فَأَوْتِرُوْا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ!». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه: او علي رضي الله عنه فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دى: «الله وتر (تاك) دے، د تاك سره مينه كوى، نو اے أهل قرآن! وتر اُوكړئ!»۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ)

تشريح: ان الله وتر: ددے نه بعض علماء استدلال كوى چه يو ركعت وتر افضل دے ځكه چه الله هم يو وتر دے او يو ركعت هم يو دے لهٰذا دا افضل شو۔ ليكن دا اِستدلال صحيح نۀ دے ځكه چه د نبي ﷺ نه دريے ركعاته زيات ثابت دى او يو ركعت كله كله۔ او دريو ته هم وتر وائي او پنځو ته هم، خو الله رب العالمين ته د خپلو نومونو مشابهت خوښ دے، او په ټولو كښې مناسبت شته۔

يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ!: ددے نه يا مؤمنان مراد دى۔ هر مسلمان به وتر كوى۔

۲– یا ددے نه مراد قاریان د قرآن دی چه دوی دپاره وتر کول ډیر مهم دی، عام مسلمانان به ئے هم کوی لیکن د قرآن قاریانو سره ددے مناسبت زیات دے ځکه چه دوی له پکار دی چه د شپے راپاڅی او د الله په کتاب باندے خوش آوازی اُوکړی او بیا وتر اُوکړی۔
مصنف عبد الرزاق (۴/۴) او ابوداود باب استحباب الوتر) او ابن ماجه کښې یو روایت راځی : د وترو متعلق نبی ﷺ اُوفرمایل : (اَوۡتِرُوۡا یا اَهۡلَ القرآن) نو یو اعرابی اُووئیل : رسول الله ﷺ څه وائی؟ نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : (لیس لك ولا لاصحابك) (دا ستا او ستا د ملګرو (اعرابو) دپاره نۀ ده ځکه جاهلانو ته ګوره او تهجدو او وترو ته)۔
بیا ددے مطلب دا نۀ دے چه عام خلق به تهجد او وتر نۀ کوی۔ بلکه مطلب دا چه عوام به هم ددے اهتمام کوی لیکن که هغوی اُونکړو نو د قاریانو په شان ګناهګار نۀ دی او هر چه قاریان دی نو د هغوی د شان مناسب دا ده چه دا به ضرور کوی۔ بله دا چه هغۀ روایت کښې د وترو نه مراد تهجد دی او تهجد اعراب نشی کولے ځکه هغوی ته قرآن یاد نۀ وی۔
درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (۱۱۰/۱) وابوداود (۱٤۱٦) والترمذی (٤٥۳) والنسائی (۲۲۸/۳) وابن ماجه (۱۱٦۹) وابن خزيمة (۱۰٦٦) وحسن اسناده الالبانی فی صحيح الجامع الصغير (۱۸۳۱) ورجاله ثقات غيرابی اسحاق السبيعی وهو مختلط وسفيان الثوری ممن سمع منه بعد الاختلاط۔

---

١٤– وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَقَالَ: «اِنَّ اللهَ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمُرِ النَّعَمِ: اَلْوِتْرُ جَعَلَهُ اللهُ لَكُمْ فِيْمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ اِلٰى أَنْ يَّطْلُعَ الْفَجْرُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او خارجه بن حذافه ﷛ فرمائی: رسول الله ﷺ په مونږ باندے (د کور نه) را بهر شو وے فرمایل : «الله تاسو ته داسے مونځ درکړے دے (یعنی د پنځو مونځونو نه علاوه مونځ دے) چه هغۀ ستاسو دپاره د سرو اُوښانو نه بهتر دے، او هغۀ وتر مونځ دے، دا الله تعالیٰ ستاسو دپاره د ماسخوتن مانځه نه تر صبا راختلو پورے مقرر کړیدے»۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ)
تعارف د خارجه بن حذافه : خارجه بن حذافه بن غانم القرشی العدوی، صحابی دے په فتح د مکه کښې په اسلام مشرف شو او د قریشو یو شاهسوار وو، بعض وائی : دا د زر شاهسوارانو برابر وو۔ یو موقعه کښې عمرو بن عاص د عمر فاروق نه د درے زره

شاهسوارانو مدد طلب کړو نو عمرورته دا خارجه او زبیر بن العوام او مقداد بن الاسود اُولیږل۔ چه دا د دریے زرو په ځائے کار ورکوی۔ خارجه په مصر کښې اُوسیدو او هلته د عمرو بن العاص دپاره قاضی مقرر شو۔ بیا د یو خارجی د لاسه قتل شو کوم دریے خارجیانو چه د علیؓ او معاویهؓ او عمرو بن العاصؓ د قتل اراده کړے وه۔ نو یو خارجی د عمرو بن العاصؓ د قتل په اراده راروان شو نو دا خارجه بن حذافه ئے شهید کړو پدے گمان چه دا عمرو بن العاصؓ دے۔ وجه دا وه چه په دغه ورځ باندے عمرو بن العاصؓ خارجهؓ له د صبا په مانځه باندے مقرر کړے وو، کله چه خارجی قتل اُوکړو نو اُونیولے شو او عمروؓ ته راوستے شو نو وے وئیل : (اردت عَمْرًا واراد الله خارجة) (زما د عمرو د قتل اراده وه او الله د خارجه اراده کړے وه) نو دا بیا مَثَلْ شو۔ او دا قتل په هغه شپه اُوشو په کومه شپه چه علی بن ابی طالب ﷺ قتل شو۔ سنه (۴۰ هـ)

تشریح : حُمُرِ النَّعَمِ: حُمُر جمع د اَحْمَر ده او نَعَم گډو بزو او اُوښانو ته وائی۔ بعض وائی : اُوښانو پورے خاص دے خو دلته ترے اُوښان مراد دی۔ او دا په اصل کښې یوه نوعه وه د اُوښانو د عمان نه یا د هغے په شان، داسے رنګ کښې وو چه سور والے پکښې وو، او ډیر ښائسته شکل والا وو، مزیدار قِوَام والا وو، او دا په ټولو انواعو د اُوښانو کښې ډیر ښائسته وو، او هرکله چه مخاطبین په هغهٔ دور کښې د اُوښانو والا وو نو هغوی ته ئے هغهٔ څه ذکر کړل چه هغوی ته ډیر محبوب وو، او دائے ذکر کړل دپاره د ترغیب ورکولو هغوی ته څکه چه هغوی ته دا ډیر عزتمند مال وو، اُوس به ددے په ځائے تهٔ داسے خطاب اُوکړے چه د ښائسته بنګلو، او ښائسته ګاړو نه ډیر ښائسته دی، لیکن بیا هم د نبوی تعبیر نه څوك ښهٔ تعبیر نشی کولے، اګرکه هرڅومره د ترقی زمانه راشی او اګرکه خلق فضاء ته هم اُورسیږی، وجه دا ده چه اُوس هم فکر اُوکړه اُوښان نن صبا هم د زینت او جمال شے دے، فائدے پکښې دی، سترګے پرے یخیږی او ددے نه علاوه څیزونو نه کله انسان یَرېږی، خطرات ورسره وی، او اُوښان چه کله ته په یوه صحراء کښې اُوویني چه ښائسته مزل کوی نو نظر خوشحاله کوی او سینه کولاوه وی۔

فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ : پدے کښې ئے د وترو وخت اُوخودلو چه د ماسخوتن مانځه نه پس تر صبا راختلو پورے۔ او دلیل دے چه وتر واجب نهٔ دی څکه خلقو ته اختیار ورکړو چه څوك حمر النعم اراده لری نو هغهٔ دِے ئے اُوکړی او که څوك ئے اراده نهٔ لری نو نهٔ دِے کوی نو که چا پریخودل د فرضو په شان به ګناهګار نهٔ وی بلکه سنت مؤکد درجه کښې به ماخوذ وی څکه نور احادیثو نه ئے تاکید معلومیږی، او امدکم نه هم معلومیږی څکه

(امد) د مدد نه دے او مدد زیاتی شے وی۔ یعنی الله ستاسو مدد کرے دے په دے مونځ سره۔

درجة الحديث: اسناده حسن : اخرجه ابوداود (١٤١٨) والترمذی (٤٥٢) وابن ماجه (١١٦٨) والدارقطنی (٣٠/٢) رقم (١) والحاكم (٣٠٦/١) وقال صحيح الاسناد والبيهقی (٤٦٩/٢) كلهم من طريق عبد الله بن راشد الزوفی ابی الضحاك عن عبد الله بن ابی مرة عن خارجة بن حذافة وعبد الله بن راشد قال فی التقريب : مستور واشار البخاری الی ان رواية ابن ابی مرة عن خارجة منقطعة وقال ابن حبان : اسناد منقطع ومتن باطل انتهیٰ لكن الحديث له شواهد عامتها ضعيفة ومنها حديث ابی سعيد اخرجه الطبرانی فی مسند الشاميين قال الحافظ فی الدراية (١١٢) باسناد حسن (المرعاة ٢٧٩/٤) وقال الالبانی فی الارواء (٤٢٣) والصحيحة (١٠٨) وغيرهما (صحيح) دون قوله : (خير لكم من حمر النعم)

---

١٥ – وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : «مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهٖ فَلْيُصَلِّ إِذَا أَصْبَحَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

ترجمه : او زید بن اسلم ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : څوك چه د وترو نه اُوده پاتے شو نو هغهٔ دِے دا اُوکړی کله چه صبا کړی »۔ ترمذیؒ دا روایت په طریقه د ارسال نقل کړیدے۔

تشریح : زید بن اسلم د عمر فاروق آزاد کړه غلام دے او مشهور ثقه تابعی دے۔

دا حدیث دلیل دے چه څوك د وترو نه اُوده پاتی شو یا ترے هیر شو نو کله چه رابیدار شو یا ورته یاد شو نو په همغه وخت به ئے کوی او دده حکم په شان د هغه چا دے چه د فرضو نه اُوده پاتے شوے وی یا ترے هیر شوی وی۔

## آیا د وترو قضائی شته ؟

٢ – دارنګه دا حدیث دلیل دے چه د وترو قضائی هم شته۔

١ – امام مالك وائی : د صبا د مانځه پورے قضائی شته او د مانځه نه بعد ئے قضاء نشته۔ مشروع نهٔ ده۔

او امام بیهقیؒ د امام مالك نه داسے نقل کړیدی چه بعد الفجر به هغهٔ څوك وتر کوی چه د وترو نه اُوده پاتے شوے وی او یو تن له دا جائز نهٔ دی چه قصداً دا کار اُوکړی تردے چه وتر د صبا نه روستو کوی (٢٨٠/٢)

٢ – امام شافعیؒ او احمدؒ وائی : قضاء د وترو سنت عمل دے او لیلًا او نهاراً علی کل حال

قضائي راوړل مستحب دي او واجب نۀ دي۔ او همدا راجح قول دے۔

۳- امام ابوحنيفهٗ او صاحبينؒ وائي : قضائي راوړل واجب دي۔ (المرعاة ٤/٢٧٩)

٤- ابن حزم رحمه الله فرمائي : که چا قصداً پريخودل نو قضاء نشي راوړے بلکه سخت گناهگار دے او توبه به اُوباسي او قضائي پرے نشته او که د چا نه هير شو يا اُودهٔ پاتے شو نو بيا به ئے قضائي راوړي او دا قول شوکانيؒ راجح کړيدے د وجه د ظاهر ددے حديث نه څکه دلته ئے نسيان او نوم ذکر کړيدے۔ نه قصد (او همدا خبره حقه ده) او ابن حزمؒ ورله دليل دا وئيلے دے چه دا په عموم ددے حديث : (من نام عن صلاة او نسيها فليصلها اذا ذكرها) کښې داخل دے څکه چه وتر هم صلاة دے۔

۲-دويم دليل ابوسعيد خدريؓ مرفوعاً روايت نقل کوي : (من نام عن وتره او نسيه فليصله اذا اصبح او ذكره) (ابوداود ١/٢١٠) والدارقطني ٢/٢٢) وصححه العراقي والعظيم آبادي والحاكم (١/٣٠٢) كما في الارواء (٢/١٥٣)

۳- دليل : ابوسعيد خدريؓ فرمائي : نبي ﷺ ته اُووئيلے شو : (ان احدنا يصبح ولم يوتر قال : فليوتر اذا اصبح) (يو تن زمونږ صبا کړي او وترئے نۀ وي کړي (نو څۀ به کوي ؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : کله چه صبا کړي وتر دے اُوکړي) (الدارقطني ٢/٢٧)

٤- ابن مسعود، ابن عباس، على بن ابى طالب او عائشه رضي الله عنهم به د طلوع الفجر نه روستو وتر اُوکړو۔ البيهقي (٢/٤٧٩- ٤٨٠)

٥- ابوهريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : (اذا اصبح احدكم ولم يوتر فليوتر) (حاكم ١/٣٠٣) بيهقي (٢/٤٧٩) وسنده حسن) (کله چه يو تن ستاسو صبا کړي او وتر ئے نۀ وي کړي نو وتر دے اُوکړي)

٦- دليل : ابن عمر فرمائي : نبي ﷺ (يوه ورځ) صبا کړو نو (د صبا نه روستو ئے) وتر اُوکړل) (بيهقي ٢/٤٧٩) وسنده حسن)

او نور دلائل په فتاوى الدين الخالص (٥/٢٨٣) کښې اُوګوره۔

علامه شوکانيؒ فرمائي : وتر چه کله فوت شي نو ددے په قضاء باندے قول کړيدے د صحابه کرامؓ نه على بن ابى طالب، سعد بن ابى وقاص، عبد الله بن مسعود، عبد الله بن عمر، عبادة بن الصامت، عامر بن ربيعة، ابوالدرداء، معاذ بن جبل، فضالة بن عبيد او ابن عباس – رضي الله عنهم– لکه عراقي وئيلي دي۔ او د تابعينو نه عمرو بن شرحبيل، عبيدة السلماني، وابراهيم النخعي، ومحمد بن منتشر، وابو العاليه، وحماد بن ابى سليمان۔ او د امامانو نه : سفيان الثوري،ابوحنيفه، اَوزاعي، مالك، شافعي، احمد،

اسحاق، ابوایوب سلیمان بن داود الهاشمي او ابوخیثمة دے چه د دوی نه محمد بن نصر المروزیؒ نقل کړیدی۔ (نیل الاوطار ۵۸/۳) عون المعبود (۲۱۷/٤ - دار الکتب بیروت)

نو حقه دا ده چه که چا قصداً پریخودل نو سخت گناهگار دے توبه پرے لازمه ده او قضاء پرے نشته۔ او کهٔ نسیاناً یا د خوب په وجه ترے فوت شو نو قضاء به راوړی۔ او کوم علماء چه وائی قضاء به نهٔ راوړی نو هغوی پدے باب کښ بعض احادیثو ته نظر کړیدے او ټول احادیث ئے نهٔ دی راجمع کړی۔ او دا قضاء به په هغهٔ وخت کښ راوړی چه کوم وخت ورته رایاد شو یا راپاڅیدو او دا په مکروه وخت کښ هم کیږی۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه احمد (۳۱/۳) وابوداود (۱٤۳۱) والترمذی (٤٦٥) من روایة ابی سعید الخدری واخرجه ایضاً مرسلاً من روایة زید بن اسلم (٤٦٦) وقال هذا اصح من الحدیث الاول)

۱٦- وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَأَلْنَا عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ قَالَتْ: كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولٰى بِ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى﴾ وَفِي الثَّانِيَةِ بِ ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ وَفِي الثَّالِثَةِ بِ ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ. ۱۷- وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزٰى ۱۸- وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. ۱۹- وَالدَّارِمِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَلَمْ يَذْكُرُوا «وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ».

---

ترجمه : او عبد العزیز بن جریج رحمه الله فرمائی : مونږ د عائشےؓ نه تپوس اُوکړو، رسول الله ﷺ به په کومو سورتونو وتر کول؟ هغے اُوفرمایل :"رسول الله ﷺ به په اول رکعت کښ (سبح اسم ربك الاعلیٰ) او په دویم رکعت کښ (قل یا ایها الکافرون) او په دریم رکعت کښ (قل هو الله احد) او معوذتین (آخری دوه سورتونه) لوستل"۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ) او نسائیؒ دا روایت د عبد الرحمن بن ابزیٰؓ نه او امام احمدؒ د اُبیؓ بن کعبؓ نه او دارمیؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړیدے او دوی پکښ معوذتین لوستل نهٔ دی ذکر کړی۔

عبد العزیز بن جریج دا تابعی دے لین پکښ دے۔ عجلیؒ وائی د عائشےؓ نه ئے سماع نهٔ ده ثابته او راوی ددے حدیث (خصیف) خطاء شویدے چه ددهٔ په سماع ئے تصریح کړیده د عائشےؓ نه۔ (تقریب)

تشریح : دا حدیث هم ظاهر دے دلیل دے چه نبی علیه السلام درے رکعاته کړیدی۔ لیکن دوه قعدے په کښ نشته چه په یو سلام سره وی۔

۲- تخصیص د قراءت په وترو کښې شته او احناف د تخصیص قائل نهٔ دی۔

۳- دویم رکعت کله نا کله په اول رکعت اُوګدول جواز لری۔ لکه دلته آخری درے سورتونو کښې تطویل قلیل دے د قل یا ایها الکافرون په نسبت۔

او په دریم رکعت کښې کله صرف قل هو الله احد وئیل هم راغلی دی۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعیف و بسند آخر صحیح: اخرجه ابوداود (۱۴۲۴) والترمذی (۴۶۳) وابن ماجه (۱۱۷۳) لکن رواه الحاکم (۳۰۵/۱) من طریق اخری صحیحة وقال: صحیح علی شرط الشیخین ووافقه الذهبی ورواية النسائی (۲۴۴/۳، ۲۴۷) اسنادها صحیح (صحیح النسائی (۱۶۳۷)۔

۱۰۲- وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: عَلَّمَنِي رَسُوْلُ اللهِ ﷺ كَلِمَاتٍ أَقُوْلُهُنَّ فِيْ قُنُوْتِ الْوِتْرِ: «اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ، فَإِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ، إِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: او حسن بن علی رضی الله عنهما فرمائی: ما ته رسول الله ﷺ یو څو کلمات راخودلی دی چه هغهٔ زهٔ په قنوت الوتر کښې اُووایم: (اللهم اهدنی) اے الله! ما ته هدایت اُوکړهٔ د هغهٔ چا سره (انبیاء او اولیاؤ سره) کوم ته چه تا هدایت کړے دے او(د دنیا او آخرت د مصیبتونو نه) ما بچ اُوساتهٔ د هغهٔ خلقو سره چه تا بچ ساتلی دی، او ما سره محبت اُوکړه د هغهٔ خلقو سره چه تا ورسره محبت کړے دے، او تا چه ما له څهٔ راکړی دی (یعنی عمر، مال، علم او نیك اعمال) په هغے کښې برکت واچوه، او تهٔ چه د کومو شیزونو فیصله کړے د هغے د شر (او ضرر) نه مے اُوساته، ځکه تهٔ (چه څهٔ غواړے) فیصله کوے، او ستا په خلاف فیصلے نهٔ شی کیدے، (یعنی تهٔ حاکم مطلق ئے او محکوم نهٔ ئے)۔ تهٔ چه چا سره دوستی اُوکړے هغهٔ نهٔ ذلیله کیږی، اے ربه! تهٔ برکت والائے او تهٔ اُوچت ئے۔ (ترمذیؒ، ابوداوُدؒ، نسائیؒ، ابن ماجهٔ، دارمیؒ)

**تشریح**: ددے الفاظو سره په آخر کښې (ولا یعز من عادیت) په صحیح سند ثابت دی کما قال الحافظ فی التخیص) نو هغهٔ هم وئیل پکار دی۔ په الفاظو د قنوت الوتر کښې دا الفاظ وئیل افضل دی ۔وجه دا ده چه روایت ئے صحیح دے او د نبی ﷺ نه صحیح ثابت دے او هر چه اللهم انا نستعینك الخ نو هغه اګرکه په بعض صحیح روایاتو کښې راغلی د

ليکن بعض وائی چه دغه دعاء په قنوت نازله کښ راغلے ده نهٔ په قنوت الوتر کښ لکه ددے بحث به لګ روستو باب القنوت کښ تفصيلاً راشی۔

## وترو کښی به کوم قنوت وائی ؟

بيا دا مسئله رامخکښی کړه چه وترو کښی به کوم قنوت وائی ؟ ١ – احناف وائی : سورتی ابیّ بن کعب به وائی یعنی سورة الخلع وسورة الحفد۔ یعنی اللهم انا نستعينك الخ دیته سُورَتَیٔ ابی بن کعب ځکه وائی چه د هغه په مصحف کښ دا دوه سورتونه وو او د هر يو سره بسم الله وه يعنی بسم الله الرحمن الرحيم (اللهم انا نستعينك و نستغفرك ونثنی عليك الخير ( وفی رواية الطحاوی) ونشكرك (وفی رواية البيهقی) ونخضع لك) ونخلع ونترك من يفجرك۔ بسم الله الرحمن الرحيم اللهم اياك نعبد ولك نصلی ونسجد واليك نسعی ونحفد ونرجو رحمتك ونخشی عذابك ان عذاب بالكفار ملحق (طحاوی ١٧٧/١) والبيهقی (٢١٠/٢) وابن ابی شيبة (٣١٤/٢) واسناده صحيح الارواء (١٧/٢)

او په بل روايت د ابن ابی شيبه کښ ورسره دا هم زيات دی : (ونثنی عليك الخير كله ونؤمن بك ونتوكل عليك)

شيخ البانیؒ وائی : دا روايات ټول په قنوت الفجر کښ راغلی دی۔ او په قنوت الوتر کښ ما ندی ليدلی۔ ليکن صحيح دا ده چه دا د صحابه کرامؓ نه په قنوت الوتر کښ هم راغلی دی لکه څنګه چه په قنوت الفجر کښ ثابت دی۔

حسن بصریؒ فرمائی : (القنوت فی الوتر وفی الصبح اللهم انا نستعينك ونستغفرك الخ (عبد الرزاق ١١٦/٣) ليکن ددے سره پدے حديث کښ نور الفاظ هم زيات دی چه هغه احناف نهٔ وائی لکه (اللهم عذب الكفرة والمشركين والق فی قلوبهم الرعب وخالف بين كلمتهم وانزل عليهم رجزك وعذابك، اللهم عذب كفرة اهل الكتاب الذين يصدون عن سبيلك الی آخرها۔

نو ددے نه معلوميږی چه دا قنوت نازله دے ليکن بعض صحابه کرامؓ په قنوت الوتر کښ هم وئيلی دی۔ اګرکه دا قنوت په وترو کښ مرفوعاً ندے ثابت۔ مګر په بعض آثارو د صحابه کرام او تابعينو کښ ثابت دے۔

لکه ابن ابی شيبه (٩٥/٢) کښ دی : ابو عبد الرحمنؒ فرمائی : عبد الله بن مسعودؓ به مونږ ته دا دعاء په قنوت کښ راخودله ليکن ددے په سند کښ مقال دے عطاء بن السائب ثقه دے اختلط بآخره۔ او عبد الرزاق ذکر کړيدی چه عبيد بن عميرؒ ته رسيدلی دی چه دا

دوه سورتونه په مصحف د ابن مسعودؓ کښې د قرآن نه حساب وو او ابن مسعودؓ به هره شپه په وترو کښې دا لوستل۔ مصنف عبد الرزاق (۳/۱۱۱، ۱۱٤)

۲- نور علماء کوم چه په قنوت قائل دی فرمائی : په قنوت الوتر کښې به (اللهم اهدنی فیمن هدیت ......) دعاء وائی ځکه دا روایت صحیح مرفوع ثابت دے۔ رسول الله ﷺ حسن بن علیؓ ته ددے تعلیم ورکړیدے۔ او همدا خبره صحیح ده۔

## د اللهم اهدنی فیمن هدیت (دعاء) نه روستو درود وئیل شته؟

مسئله : آیا ددے دعاء نه روستو درود په نبی ﷺ زیاتول شته او که نهٔ؟ نو صحیح دا ده چه کوم روایاتو کښې درود راغلے دے نو هغه په قنوت نازله کښې دی او قنوت الوتر کښې زیادت مناسب نهٔ دے۔ او په دے حدیث د الحسن بن علی کښې چه زیادت د (وصلی الله علی النبی) په روایت د نسائی (۱/۲٥۲) کښې راغلے دے نو د هغے سند ضعیف دے۔ او اگرکه امام نوویؒ په المجموع (۳/٤۹۹) کښې وائی : چه د هغے سند صحیح یا حسن دے لیکن حافظ ابن حجر په التلخیص الحبیر ص (۹٤) کښې د هغهٔ تعقیب کړیدے او دا ئے وئیلی دی چه د نوویؒ دا خبره صحیح نهٔ ده ځکه چه دا سند منقطع دے ځکه چه عبد الله بن علی - چه دا ابن الحسین بن علی دے- د حسن بن علی سره ئے ملاقات نهٔ دے شوے۔

پدے وجه عز بن عبد السلام په خپله فتاوی (۱/٦٦) کښې فرمائی : ولم تصح عن رسول الله ﷺ الصلاة فی القنوت ولا ینبغی ان یزاد علی صلاة رسول الله ﷺ شیء وهذا هو الحق الذی یشهد به کل من علم کمال الشریعة وتمامها ......)

(او په قنوت کښې په رسول الله ﷺ باندے درود وئیل نهٔ دی ثابت او مناسب نهٔ دی چه د رسول الله ﷺ په مانځه باندے د یو شی (د ځان نه) اضافه اُوکړے شی، او همدا هغهٔ حق دے چه هر هغهٔ څوك پدے باندے گواهی کوی چه د شریعت کمال او تمامیت ئے پیژندلے وی) (ارواء الغلیل (۲/۱۷٦) رقم (٤۳۱)

مگر شیخ البانیؒ فرمائی : چه زهٔ په بعض آثارو خبر شوم چه د صحابه کرامؓ نه د درود زیادت پدے دعاء کښې ثابت دے نو زهٔ د هغے د وینا په جواز باندے قائل شوم۔ لکه دا خبره ما په تلخیص د صفة الصلاة کښې هم ذکر کړیده۔ انتهیٰ۔ لکه ابوحلیمه معاذ الانصاریؒ به د عمر فاروق په دور خلافت کښې خلقو ته امامتی کوله او په آخر د قنوت کښې به ئے صلاة علی النبی ﷺ وئیلو۔ رواه اسماعیل بن اسحاق الجهضمی القاضی المالکی فی (فضل صلاة النبی) ص (۸۷) رقم (۱۰۷) بتحقیق الالبانی وسنده صحیح) انظر صفة الصلاة

للالباني (١٤٢) وقيام الليل لابن نصر (٣٢٣) وزاد المعاد (٣٢٤/١) جلاء الافهام (٣٦١)
لهذا كه چا درود زيات كړو نو ان شاء الله چه جائز به وي ځكه سلفو پدې باندې عمل كړيدې. او ابي بن كعبؓ به هم پدې دعاء كښې درود زياتولو لكه ابن خزيمة رقم (١٠٩٧) كښې راغلي دي (البانیؒ) ليكن هغه په باره د قنوت نازله كښې دي لكه په هغې باندې حديث د ابن خزيمة (١٥٦/٢) دلالت كوي. وانظر فتاوى الدين الخالص (٥٩٤/٥)

وَتَوَلَّنِيْ : دا امر دې د تولي نه په معنىٰ د محبت كولو سره. يا د ولايت نه دې په معنىٰ د تصرف او واكدارئ سره. معنى د دواړو دا شوه چه د نورو نيكانو سره مينه كوې نو ما هم په هغې كښې حساب كړه ما سره هم مينه اُوكړه. يا زما د كارونو واكداري او اصلاح اُوكړه د هغۀ چا سره چه تۀ ئې واكداري او اصلاح د كارونو كوې.

شَرَّ مَا قَضَيْتَ : يعني د ضرر او شر د هغۀ څه نه مې اُوساته چه تا ما له مقرر كړې وي. يا ما مصدري ده يعني قني شر قضاء ك (ستا د بدلې فيصلې نه مې اُوساته) چه د ګناه په وجه راباندې بده فيصله اُوشي.

فَإِنَّكَ : په بل روايت كښې بغير د فاء نه هم راغلې دې.

وَلَايُقْضٰى عَلَيْكَ : مجهول صيغه ده. يعني فيصلې نشي كيدې په تا باندې يعني د هيچا حكم په تا باندې نۀ واقع كيږي، دارنګه په تا باندې نۀ واجبيږي هيڅ شے مګر هغۀ چه تا ځان باندې د وعدې مطابق واجب كړې وي.

اِنَّهٗ لَايَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ : يعني ته چه چا سره دوستي كوې نو هغۀ نۀ ذليله كيږي په اعتبار د آخرت اګركه په دنيا كښې پرې د كفارو د طرفنه امتحانات راشي نو همدا د الله په نيز عزت دې.

درجة الحديث: اسناده صحيح: اخرجه احمد (١٩٩/١) والدارمي (٣٧٣/١) وابوداود (١٤٢٥) والترمذي (٤٦٤) والنسائي (٢٤٨/٣) وابن ماجه (١١٧٨) والحاكم في المستدرك (١٧٢/٣)

---

٢١ - وَعَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا سَلَّمَ فِي الْوِتْرِ قَالَ: «سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَزَادَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ يُطِيْلُ فِيْ آخِرِهِنَّ.

٢٢ - وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلنَّسَائِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبْزٰى، عَنْ اَبِيْهِ قَالَ: كَانَ يَقُوْلُ اِذَا سَلَّمَ: «سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ» ثَلَاثًا وَيَرْفَعُ صَوْتَهٗ بِالثَّالِثَةِ.

ترجمه : او ابي بن كعب ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ به چه كله د وترو نه سلام

اُوګرزولو، نو (داسې به ئې) فرمايل : «سبحان الملك القدوس» (پاکې ده هغۀ ذات لره چه پاك دے)۔ (ابوداوّد، نسائیؒ) نسائیؒ دا الفاظ هم نقل کړی دی چه : نبی ﷺ به دا (تسبيح) درے ځل وئيل، او په دريم ځل به ئې آواز اُوږدولو "۔ او نسائیؒ يو روايت د عبد الرحمن بن ابزیٰ نه نقل کړيدے چه هغۀ د خپل والد (ابزیٰ) نه نقل کوی چه "نبی ﷺ به کله سلام اُوګرزولو نو درے ځل به ئې (سبحان الملك القدوس) وئيل او په دريم ځل به ئې آواز پورته کړو"۔

تشريح : دا ذکر به په دريم کرت کښې اُوګدوی او دومره جهر به کوی چه خوا کښې څوك وی هغه ئې هم واوری۔ په روايت د دارقطنی او سنن البيهقی کښې ورسره دا الفاظ زيات دی چه آخر کښې به ئې په جهر سره داسې وئيل: (سبحان الملك القدوس، رب الملائكة والروح) وسنده صحيح)

اَلْقُدُّوْسِ: د مبالغې صيغه ده (الطاهر المنزه عن العيوب والنقائص) (هغۀ ذات چه د هر قسمه عيبونو او نقصاناتو نه پاك وی)

بيا دلته مشکوة کښې عبد الرحمن بن اَبزیٰ ذکر دے او دا خطائی ده ځکه چه دا روايت د ابن عبد الرحمن بن ابزیٰ نه نقل دے لکه چه دا په نسائی او مسند احمد کښې همدغه شان دے۔ځکه چه د ابزیٰ نه خو صرف يو حديث نقل دے او هغه دا نۀ دے۔ او عبد الرحمن او ابزیٰ دواړه صحابه دی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (۱۲۳/۵) وابوداود (۱۴۳۰) والنسائی (۲۳۵/۳)

۲۳- وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ آخِرِ وِتْرِهٖ: «اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ اَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوْبَتِكَ، وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْكَ، لَا اُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ، اَنْتَ كَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِكَ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او علی رضی الله عنه فرمائی : نبی ﷺ به د وترو په آخر کښې داسې وئيل : « اللهم انی اعوذ ...... ) (اے الله ! زۀ ستا په رضا سره ستا د غصے نه پناه غواړم او ستا د عافيت په ذريعه ستا د عذاب نه، او زۀ پناه غواړم ستا په ذات سره ستا د آثارو د صفات نه (يعنی غضب او عذاب وغيره)، زۀ ستا داسے صفتونه پوره نۀ شم راګيرولے لکه څنګه چه تا د خپل ځان صفات کړی دی»۔ (ابوداوّد، ترمذیؒ، نسائیؒ او ابن ماجهؒ)

تشریح : دا دعاء مخکښې تیره شویده چه رسول الله ﷺ په سجده کښې وئیلې ده۔ دلته وائی په آخر د وترو کښې ئې لوستلې ده ۔ لهذا دواړو کښې ئې لوستل ثابت شو۔ بیا د آخر الوتر نه څه مراد دے؟ ۱– بعض وائی : د آخر الوتر نه مراد قنوت دے، یا قعده آخره ده۔ لکه دا خبره علامه سندیؒ په حاشیه د نسائی کښې ذکر کړیده۔ لیکن دا خبره ضعیفه ده ځکه د نبی ﷺ نه داسې الفاظ په قنوت الوتر کښې ندی ثابت۔ ۲– بلکه صحیح دا ده چه دا دعاء ده پس د سلام د وترو نه لکه دا خبره په بل روایت د نسائی کښې راغلې ده : (کان یقول ذلك اذا فرغ من صلاته الخ) نو دا روایت تفسیر شو د دغه حدیث الباب دپاره لکه دا خبره ملاعلی القاریؒ، او ابن القیمؒ په زاد المعاد (۸۹/۱) کښې او شوکانیؒ په تحفة الذاکرین (۱۲۹) کښې ذکر کړیده۔ نو دا د وترو په قنوت کښې داخله نشوه۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۹٦/۱) وابوداود (۱٤۲۷) والترمذی (۳٥٦٦) والنسائی (۳/۲٤۸–۲٤۹) وابن ماجه (۱۱۷۹)

## الفصل الثالث

٤۲– عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قِيلَ لَهُ : هَلْ لَكَ فِيْ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ مُعَاوِيَةَ مَا أَوْتَرَ اِلَّا بِوَاحِدَةٍ ؟ قَالَ: أَصَابَ، اِنَّهُ فَقِيهٌ. وَفِيْ رِوَايَةٍ: قَالَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ: أَوْتَرَ مُعَاوِيَةُ بَعْدَ الْعِشَاءِ بِرَكْعَةٍ، وَعِنْدَهُ مَوْلًى لِابْنِ عَبَّاسٍ، فَأَتَى ابْنَ عَبَّاسٍ فَأَخْبَرَهُ. فَقَالَ: دَعْهُ فَاِنَّهُ قَدْ صَحِبَ النَّبِيَّ ﷺ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : ابن عباس ﷺ ته اُووئیل شو : د امیر المؤمنین معاویهؓ په باره کښې څه وائے چه هغهٔ وتر یو رکعت کوی؟ نو هغهٔ اُوفرمایل : « هغهٔ حق کار کړیدے ځکه هغهٔ فقیه (په دین باندے پوهه) دے۔ او په یو بل روایت کښې ابن ابی ملیکهؒ فرمائی: چه معاویه ﷺ د ماسخوتن مانځه نه روستو یو رکعت وتر اُوکړو، او د هغهٔ په خوا کښې د ابن عباسؓ آزاد کړده غلام (کریب) هم موجود وو(کله چه هغه دا اُولیدل) نو ابن عباسؓ ته راغلو او دا خبر ئې ورته ورکړو (چه معاویهؓ یو رکعت وتر اُوکړو) نو ابن عباسؓ اُوفرمایل : « هغهٔ پریږدهٔ (د هغهٔ په باره کښې زهٔ هیڅ نهٔ وایم) هغهٔ د رسول الله ﷺ سره ملګرتیا کړیده (کیدے شی چه د هغهٔ عمل ئې داسې لیدلې وی) » (بخاریؒ).

تشریح : هَلْ لَكَ : یعنی (هل لك جوابٌ او اِفْتَاءٌ) د هغه په باره کښې څه جواب یا فتوی ورکولے شے۔ او ددے متعلق غالباً رغبت وی۔ (هل لك رغبة فی معاویة وهو مرتکب هذا المنکر) یعنی ستا د معاویه په باره کښې څهٔ رغبت شته چه د هغهٔ په باره کښې څه

اُووائے ځکه چه هغهٔ خو دا منکر کار کوی) نو استفهام انکاری دے۔(طیبیؒ)

دا حدیث صریح دلیل دے چه یو رکعت وتر مستقلًا سنت طریقه ده او دا فتویٰ د امیر المومنین معاویهؓ او د ابن عباسؓ او باقی موجود صحابه کرامؓ ده۔

او ظاهر دا ده چه دا یو رکعت مستقلًا شویدے مخکښ ئے ترے دوه رکعاته نهٔ دی کړی، ځکه خو کریب تعجب کړیدے۔

مولی د ابن عباسؓ نه مراد کریبؒ دے چه هغه ته تر اُوسه پورے دا مسئله نهٔ ده معلومه۔

اِنَّهٗ فَقِیْهٌ : یعنی هغه په دین باندے پوهه دے هغه ته به حدیث معلوم وی ځکه به داسے عمل کوی۔ دغه شان جواب هر عالم له پکار دے چه کله ورته یو اُمی سړے د بل عالم د یو عمل یا قول خبر ورکړی نو دغه شان جواب سره د امی سړی وسوسه او شر ختم شی۔

ابن ابی ملیکهؒ دده نوم زهیر التیمی القرشی دے مشهور ثقه عالم فقیه تابعی دے، دیرش صحابه کرامؓ ئے موندلی دی او ابن حبان په «ثقات» کښ لیکی : چه اَتیا (۸۰) صحابه کرامؓ ئے لیدلی دی، د عبد الله بن زبیرؓ دپاره په طائف باندے قاضی وو۔ په سنه (۱۱۷) بعض وائی (۱۱۸ھ) کښ وفات شویدے۔

---

۲۵– وَعَنْ بُرَیْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ یَقُوْلُ: «اَلْوِتْرُحَقٌّ، فَمَنْ لَمْ یُوْتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا. اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَّمْ یُوْتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا، اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ یُوْتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او بریده ﷺ فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه فرمایل ئے : «وتر حق (او ثابت) دی، پس چا چه وتر اُونهٔ کړل نو هغهٔ زمونږ نه نهٔ دے، وتر حق (او ثابت) دی، نو چا چه وتر اُونهٔ کړل نو هغهٔ زمونږ نه نهٔ دے، وتر حق دی، چا چه وتر اُونهٔ کړل هغهٔ زمونږ نه نهٔ دے»۔ (ابوداوٗدؒ)

تشریح : اَلْوِتْرُ حَقٌّ : یعنی وتر په دین کښ ثابت او مؤکد عمل دے۔

او دا مطلب نهٔ دے چه واجب دی ځکه چه واجب خو فرضو ته وائی او دا خو ټول علماء فرض نهٔ گنړی او هر چه اصطلاح د احنافو ده نو په هغے باندے به احادیث نشی حمل کولے۔ لهذا وتر سنت مؤکد ضرور دی او فرض نهٔ دی۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف : اخرجه ابوداود (۱۴۱۹) وفیه عبید الله بن عبد الله العتکی وهو المروزی ضعیف تکلم فیه البخاری والنسائی وابن حبان والعقیلی وقال ابواحمد الحاکم : لیس بالقوی عندهم، وقال البیهقی لایحتج به۔ وللحدیث شاهد ضعیف اخرجه

احمد (٤٤٣/٣) وهو منقطع بين معاوية بن قرة وابى هريرة وفيه خليل بن مرة ضعيف منكر الحديث قاله البخاری۔

٢٦ - وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَ أَوْ إِذَا اسْتَيْقَظَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « څوك چه د وترو نه اُودهٔ پاتے شی یا ترے هیر شی نو هغهٔ دے وتر مونځ اُوکړی کله ئے چه راپاد شی او یا کله چه راببیدار شی»۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)

تشریح : حدیث دلیل دے چه د وترو قضائی ضروری ده او چه هر وخت پرے انسان قادر شو نو کړی به ئے۔ او مسئله مخکښې بیان شوه۔

درجة الحديث: اسناده صحيح : اسناد ابى داود صحيح وهو برقم (١٤٣١) صححه العراقى والحاكم والدارقطنى والبيهقى وقد سبق فى المسئلة بخلاف اسناد الترمذى وكذا ابن ماجه فانه ضعيف فى سندهما عبد الرحمن بن زيد بن اسلم وهو ضعيف۔

---

٢٧ - وَعَنْ مَالِكٍ، بَلَغَهُ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْوِتْرِ: أَوَاجِبٌ هُوَ؟ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: قَدْ أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ، وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُوْنَ. فَجَعَلَ الرَّجُلُ يُرَدِّدُهُ عَلَيْهِ، وَعَبْدُ اللهِ يَقُوْلُ: أَوْتَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ، وَأَوْتَرَ الْمُسْلِمُوْنَ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأِ.

ترجمه : او امام مالك ته رسيدلی دی چه يو سړی د عبد الله بن عمرؓ نه د وترو په باره کښې تپوس اُوکړو : چه آيا دا واجب دی ؟ نو عبد الله اُوفرمايل : «رسول الله ﷺ وتر کړی او مسلمانانو (هم) وتر کړی دی»، نو هغهٔ سړی شروع شو چه بار بار ئے دغه تپوس کولو، او عبد الله بن عمرؓ به فرمايل : "رسول الله ﷺ وتر کړی دی او مسلمانانو وتر کړی دی"۔ (يعنی ستا ددے سره څهٔ کار چه وتر واجب دی او کهٔ سنت بلکه صرف عمل کوه) (موطأ)

تشريح : د صحابه کرامؓ په دور کښې دا مسئلے نهٔ وے چه وتر واجب دی او کهٔ سنت دی او که فرض دی ؟ دارنگه مانځه کښې څو فرائض دی او څو سنن او څو مستحبات او څو مکروهات دی ؟۔ بلکه د نبی ﷺ عمل ته ئے کتلی دی چه هغه کړيدی او که نهٔ ؟۔ کله کله د هغے تپوس شويدے۔ ددے وجه نه عبد الله بن عمرؓ ورته د هغے جواب نهٔ ورکوی

بلکه د نبی ﷺ او د مسلمانانو عمل ورته ذکر کوی چه فرض او واجب ئے څه کوے خو د پیغمبر عمل ته گوره۔ نو دا دلیل دے چه د هر چا دپاره د فرائض او سنن او مستحباتو بیله بیله درجه پیژندل ضروری نهٔ دی۔

لکه نن صبا مقلدین دا اعتراض کوی چه اُوښایئ چه په مانځه کښې (سبحانك اللهم) فرض ده که واجب ده که مستحب ؟ یو صحیح صریح مرفوع حدیث راوړئ۔ مونږ وایو : اول خو تهٔ دا ثابت کړه چه دا فرض او واجب او مستحب بیل بیل معلومول په دین کښې په هرهٔ مسئله کښې ضروری دی، دا کوم ځائے کښې نبی ﷺ وئیلی دی چه دا فرض دی او دا واجب ؟ بلکه مونږ له دا خبره کافی ده چه آیا دا د الله رسول کړیدی او که نه ؟۔ صرف علماء دا درجات پدے وجه معلوموی چه عوامو ته پرے فتوے ورکړی۔ لکه ددے خبرے تفصیل بار بار مخکښې تیر شویدے۔

بعض وائی : ابن عمرؓ ورته جواب په وجوب سره ورنکړو ځکه چه وتر د هغه په نیز واجب نه؟ دی بلکه دا سنت معمول بها دی او طریقه مسلوکه ده او که واجب وے نو هغه ته به ئے صراحةً وئیلی وے چه واجب دی بله دا چه بل طرفته دلائل موجود دی چه وتر سنت مؤکد دی۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه مالك فی الموطأ (۱۲٤/۱) وسنده منقطع لکن اخرجه احمد (۵۸/۲) موصولاً و قال شعیب الارناووط والشیخ احمد شاکر فی شرح المسند (۲۹/۲) : صحیح علی شرط الشیخین) وانظر المرعاة (۲۹۳/٤)

---

۲۸- وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ، يَقْرَأُ فِيْهِنَّ بِتِسْعِ سُوَرٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ، يَقْرَأُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ بِثَلَاثِ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ ﴿ قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ ﴾. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه: او علی رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ به درے رکعاته وتر کول چه په هغے کښې به ئے د مفصلاتو نه نهه سورتونه لوستل، په هر رکعت کښې به ئے درے سورتونه لوستل چه آخرنے د هغے نه سورة (قل هو الله احد) دے۔ (ترمذیؒ)

تشریح : په روایت د احمدؒ کښې ئے داسے تفصیل راغلے دے چه په اول رکعت کښې به ئے (الهاکم التکاثر، انا انزلناه فی لیلة القدر او اذا زلزلت الارض) او په دویم رکعت کښې به ئے (والعصر، اذا جاء نصر الله او انا اعطیناك الکوثر) او په دریم رکعت کښې به ئے (قل یا ایها الکافرون، تبت یدا ابی لهب او قل هو الله احد) لوستلو۔ او دا حدیث دلیل دے چه دا

سورتونه په وترو کښې لوستل مستحب دی لیکن حدیث ضعیف دے۔ صحیح او غوره دا ده چه اول رکعت کښې (سبح اسم ربك الاعلیٰ) او دویم کښې (قل یا ایها الکافرون) او دریم کښې (قل هو الله احد) اُووائی ځکه چه هغه حدیث صحیح او قوی دے۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف جداً : (الترمذی : ٤٦٠) وسکت علیه وفی اسناده الحارث الاعور ضعیف جداً متهم۔ وقال الحافظ فی نتائج الافکار (١ /٥١٦) واخرجه محمد بن نصر من طریق اخری عن علی موقوفاً و کأنه ارجح والله اعلم۔

---

۷۹ – وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ بِمَكَّةَ، وَالسَّمَاءُ مُغَيِّمَةٌ، فَخَشِيَ الصُّبْحَ، فَأَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ، ثُمَّ انْكَشَفَ، فَرَأَى أَنَّ عَلَيْهِ لَيْلًا، فَشَفَعَ بِوَاحِدَةٍ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، فَلَمَّا خَشِيَ الصُّبْحَ أَوْتَرَ بِوَاحِدَةٍ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

ترجمه : او نافع رحمه الله فرمائی: زهٔ د ابن عمرؓ سره په مکه کښې وم او آسمان وریځ والا وو، کله چه ابن عمرؓ ته د صبا راختلو نه یَره اُوشوه نو یو رکعت وترئے اُوکړو، بیا وریځه لرے شوه نو وے لیدل چه تراُوسه لا شپه (ډیره) پاتے ده، نو یو رکعت ئے ورسره (بل) یو ځائے کړو، (نو دوه شو) ددے نه پس ئے دوه دوه رکعاته (نفل) کول، کله چه بیا د صبا د راختلو نه اُوویریدو نو یو رکعت وترئے اُوکړو۔ (مالك)

تشریح : مُغَيِّمَةٌ: دا یا د تغییم نه دے په صیغه د مفعول یا د اغامة نه دے (اَیْ مُغِیْمَةٌ) د دواړو معنیٰ ده په وریځ باندے پټیدل۔ یعنی آسمان باندے وریځے احاطه کړے وه۔

مطلب دا دے چه ابن عمرؓ اول کښې د صبا د راختلو په یَره یو رکعت وتر اُوکړو، د سلام نه روستو چه کله ورته پته ولګیده چه صبا لا نهٔ دے راختلے نو د هغهٔ مخکنی رکعت سره ئے په مستقل نیت سره بل رکعت یو ځائے کړو، دے دپاره چه دواړه یوه شفعه (نفل) شی او آخر کښې ئے بیا یو رکعت وتر اُوکړو۔

نو پدے حدیث کښې هم مسئله د نقض الوتر ده او مخکښې مونږ وئیلی وو چه دا د ابن عمرؓ اجتهاد دے او استدلال ئے کړیدے د « اجعلوا آخر صلاتکم باللیل وتراً » نه او مرفوع حدیث ورسره نشته۔ ځکه نبی ﷺ داسے عمل نهٔ دے کړے۔ او دغه شان د علیؓ، عثمانؓ، ابن مسعودؓ، اسامهؓ، عروهؒ، مکحولؒ او عمرو بن میمونؒ نه نقل دے۔

لیکن بل طرفته ابوبکر صدیقؓ، ابی هریرهؓ، عمارؓ او عائشهؓ د دوی مخالف وو، دوی د نقض الوتر قائل نهٔ وو۔ او دا قول د ائمه اربعوؒ، اوزاعیؒ، ابی ثورؒ وغیره دے۔

بل دا حدیث دلیل دے چه د صلاة اللیل دپاره څۀ خاص مقدار نشته، هرڅومره کولے شي۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه مالك فی الموطأ (۱۶/۱۲۵/۱) ومن طریقه الشافعي في مسنده (۲۲۷/۱) وصححه الالباني۔ انظر موسوعة التخریج (۳۰٤۳۶/۱) الشاملة) ..............................

۳۰ – وَعَنْ عَائِشَةَ: اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ جَالِسًا، فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ، فَاِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَآءَتِهٖ قَدْرُ مَا يَكُوْنُ ثَلَاثِيْنَ اَوْ اَرْبَعِيْنَ آيَةً، قَامَ وَقَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ يَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ..............................

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها نه روایت دے چه رسول الله ﷺ به په ناسته مونځ کولو نو قرائت به ئے په ناسته کولو، کله چه به د هغۀ د قراءت نه د دیرش یا څلویښت آیتونو په اندازه پاتے شو نو پا به څیدو او په ولاړه به ئے قراءت اُوکړو بیا به ئے رکوع اُوکړه بیا به ئے سجده اُوکړه بیا به ئے دغه شان کار په دویم رکعت کښې کولو۔ (مسلم)
تشریح : دا هم د نبی ﷺ د نفل مانځه په کیفیاتو کښې یو کیفیت دے چه ابتداء کښې په ناسته مونځ شروع کړی او قراءت هم په ناسته اُوکړی او چه کله د دیرش یا څلویښتو آیتونو اَندازه تلاوت پاتے شي نو هغه په ولاړه اُوکړی۔

---

۳۱ – وَعَنْ اُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ بَعْدَ الْوِتْرِ رَكْعَتَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَزَادَ ابْنُ مَاجَه: خَفِيْفَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ. ..............................

ترجمه : او ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ به د وترو نه روستو دوه رکعاته مونځ کولو۔ (ترمذیؒ) او ابن ماجهؒ دا الفاظ زیات نقل کړی دی : "دوه رکعاته مختصر په ناسته"۔
تشریح : دا حدیث دلیل دے چه نقض الوتر د نبی ﷺ نه ندی ثابت ځکه چه هغه مسئله بناء ده پدے چه د وترو نه روستو مونځ نۀ کیږی او حال دا چه دا حدیث دلیل دے چه د وترو نه روستو هم مونځ کول جواز لری۔ دا دوه رکعاته په ناسته نبی ﷺ د وترو نه روستو کړیدی۔ بیا که څوك دا په ناسته کوی دپاره د تابعدارئ د نبی ﷺ اګرکه قادر وی په ولاړه نو دۀ له د اتباع په وجه الله د ولاړے په شان آجر ورکوی۔
درجة الحدیث : اسناده حسن او صحیح : اخرجه الترمذی (٤۷۱) وفی سنده میمون بن موسی المرئی وهو صدوق وقال احمد ما رأی به باساً وقال الفلاس : صدوق لکنه یدلس

وقال ابوداود: ليس به بأس وكذا البيهقي: لا بأس به) وقال الالباني في صحيح ابن ماجة (۹۸۱) وتعليق المشكاة (۱/۲۸۵) (سنده صحيح)

۳۲- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُوْتِرُ بِوَاحِدَةٍ. ثُمَّ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ يَقْرَأُ فِيْهِمَا وَهُوَ جَالِسٌ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : "رسول الله ﷺ به يو ركعت وتر كولو بيا به ئے (د هغے نه روستو) دوه ركعاته كول چه په هغے كښ به ئے په ناسته قراءت كولو، كله به ئے چه د ركوع كولو اراده اُوكړه نو پاڅيدو به او ركوع به ئے (د ولاړے نه) كوله"۔ (ابن ماجهؒ)۔

تشريح : دا حديث د مخكښني حديث منافي نهٔ دے ځكه چه نبي ﷺ به كله دا دوه ركعاته تهول په ناسته كول او كله به ئے ابتداء د هغے په ناسته اُوكړه او بيا به ركوع ته پاڅيدو نو هغه به ئے په ولاړه كوله۔ او حديث دليل دے چه يو ركعت وتر مستقلاً بالكل جائز دے۔ ځكه مخكښ ترے هيڅ دوه ركعاته وغيره نهٔ دي ذكر۔ نو دا تاويل غلط دے چه وائي دا يو ركعت منضم وو دوه ركعتونو سره۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابن ماجه (۱۱۹۶) في الزوائد : اسناده صحيح ورجاله ثقات) (وكذا قال الالباني)

۳۳- وَعَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «إِنَّ هٰذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَثِقْلٌ، فَإِذَا أَوْتَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ، فَإِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ، وَإِلَّا كَانَتَا لَهُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

ترجمه : او ثوبان ﷺ نه روايت دے چه نبي ﷺ فرمائيلي دي : «(د تهجد مانځه دپاره) دا بے خوبي (رابيداريدل) مشكل او گران كار دے، پدے وجه كله چه يو تن ستاسو وتر اُوكړي نو د هغے پسے دِے دوه ركعاته (نفل) اُوكړي نو كه د شپے راپاڅيدو (نو بهتره ده) او كهٔ بيدار نهٔ شو نو دا دوه ركعاته به د هغهٔ دپاره كافي كيږي»۔ (يعني ددے دوه ركعاتو كولو په وجه به هغهٔ ته د تهجدو ثواب ملاويږي) (ترمذيؒ، دارميؒ)

تشريح : السَّهَرَ : بې خوبي ته وائي يعني دا بے خوبي چه تاسو ئے د الله په طاعت كښ تيروئ دا تكليف او ثقالت (درندوالي) دے۔ بعض رواياتو كښ لكه دارقطني (۲/۳۶)، بيهقي (۳/۳۳) طحاوي وغيره كښ دا لفظ (ان هذا السفر) دے۔ دارقطني كښ دوه ځائے

لفظ د سفر دے۔ دلیل دا دے چه دا قصه په سفر کښ واقع شویده لکه په روایت د ابن خزیمه (١٥٩/٢) رقم (١١٠٣) او ابن حبان (٦٨٣) کښ دی : ثوبان فرمائی : (کنا مع رسول الله فی سفر فقال : ان هذا السفر جهد وثقل ......الخ)۔

او دارمی چه دا حدیث په (السهر) سره نقل کړیدے نو هغه خطاء شویدے۔ ځکه هغه سره دا حدیث مجملًا نقل دے او د سفر واقعه پکښ نده ذکر۔ او همدا خبره راجحه ده۔(انظر الصحیحة ١٩٩٣/٤) ص (٦٤٦) او مطلب د حدیث دا دے چه کله چه د یو انسان په سفر کښ د شپے په راپاسیدو باندے باور نۀ وی او ماسخوتن کښ وتر اُوکړی نو هغه له پکار دی چه روستو ترے دوه رکعاته اُوکړی که د شپے راپاڅیدو نو بس لا خه شوه او که راپانه څیدو نو دا دوه رکعاته به ددۀ دپاره د قیام اللیل قائمقام شي۔

فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ: دے کښ بعض خلق دا تاویل کوی چه (اَوْتَرَ) نه مراد (اذا اراد ان یوتر فلیرکع قبله رکعتین) ۔ یعنی کله چه اراده د وترو اُوکړی نو مخکښ دے ترے دوه رکعاته اُوکړی) لیکن دا تاویل د حدیث د ظاهر خلاف دے۔

او د وترو نه روستو مونځ کول جواز لری۔ لکه پدے باندے ابن خزیمة په خپل صحیح کښ استدلال کړیدے۔ چه د وترو نه بعد مونځ مباح دے۔ او دا دوه رکعاته د نبی ﷺ خصوصیت هم نۀ دے۔ او بیا دلته دوه رکعاتو سره د ناستے قید نۀ دے راغلے نو په ناسته او په ولاړه دواړه قسمه جائز دی۔ لیکن په ناسته باندے اَجر کم دے۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح: اخرجه الدارمی (٣٧٤/١) بسند جید واخرجه الطحاوی والدارقطنی (١٧٧) والطبرانی فی الکبیر والاوسط والبیهقی (٣٣/٣) وفی سند الثلاثة عبد الله بن صالح ابو صالح کاتب اللیث بن سعد وفیه کلام۔ وصححه الالبانی فی السلسلة (٤٤٦/٤) (١٩٩٣)

---

٣٤- وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ:اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ وَهُوَ جَالِسٌ، يَقْرَأُ فِيْهِمَا ﴿ اِذَا زُلْزِلَتْ﴾ وَ﴿ قُلْ يَا اَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ﴾. رَوَاهُ اَحْمَدُ.

ترجمه : او ابو امامه ﷛ نه روایت دے : چه نبی ﷺ به د وترو نه روستو دوه رکعاته په ناسته کول چه په هغے کښ به ئے (اذا زلزلت) او (قل یا ایها الکافرون) لوستل۔ (احمدؔ)

تشریح : یعنی کله نا کله به نبی علیه السلام د وترو نه روستو دوه رکعاتو کښ دا دوه سورتونه لوستل اذا زلزلت په اول رکعت کښ او قل یا ایها الکافرون په دویم رکعت کښ۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٢٦٠/٥)

# باب القنوت

## د قنوت بيان

قنوت په لغت كښې په ډيرو معنو راځي ابن عربيؒ په شرح د ترمذی كښې او حافظ ابن حجرؒ په «فتح الباری» كښې په آخر د باب الوتر كښې لس معاني ذكر كړيدی. ١- دعاء ٢- خشوع ٣- عبادة ٤- طاعت، ٥- قيام. ٦- اقرار بالعبودية. ٧- سكوت ٨- صلاة ـ ٩- طول القيام ١٠ -دوام الطاعة (په يو عبادت باندې هميش والې كول).

دلته ترې مراد دعاء قنوت دې چه په آخر د وترو كښې په ولاړه وئيل كيږي.

په قنوت كښې مسائل دی :

### ١ - المسئلة الاولیٰ : حكم القنوت :

١- عند الجمهور مستحب دې او دا قول د صاحبينوؒ هم دې.

٢- او د احنافو په نيز واجب دې. علامه ابن الهمامؒ په فتح القدير باب سجود السهو (٤٣٩/١) كښې ليكي : قنوت الوتر ته واجب وئيل ضعيف دی. (وكأنه لضعف وجوب القنوت وهو به جدير) ځكه چه قنوت ته مستحب وائي : هغوی دليل دا وائي : چه نبي ﷺ نه دا قنوت هميشه نۀ دې ثابت بلكه يو كرت نيم ثابت دې ځكه هغه صحابه كرامؓ چه د وترو نقل كونكي دی هغوی په وترو كښې د نبي ﷺ نه قنوت نۀ دې نقل كړې نو كه چرې دا نبي ﷺ هميشه لوستلې نو هغه ټولو به نقل كولې، صرف ابی بن كعبؓ نه ابوداود (٢٠٨/١، ٢٠٩) باب القنوت) كښې نقل كړيدی (ان النبي ﷺ كان يقنت (فی الوتر) قبل الركوع) چه نبي ﷺ په وترو كښې د ركوع نه مخكښې قنوت لوستلې دې.

نو دا په هميش والي دلالت نۀ كوی بلكه په كله نا كله كولو باندې دلالت كوی. بله دا چه دغه روايت د ابی بن كعب ته امام ابوداود ضعيف وئيلې دې.او دې شذوذ ته ئې اشاره كړيده. (نصب الراية ١٦٩/٣) باب صلاة الوتر) وصفة الصلاة للالبانی (١٤٢) ليكن صحيح دا ده چه هغۀ روايت صحيح دې لكه شيخ البانيؒ په ارواء الغليل (١٦٥/٢) (٤٢٦) كښې فرمائي : دا حديث ابوداود (١٠٧) او نسائي (٢٤٨/١) او ابن ماجه (١١٨٢) والضياء المقدسي فی الاحاديث المختارة (١/ ٤٠٠- ٤٠١) كښې راوړيدې او سند ئې صحيح دې او ابوداود چه كومه وجه د ضعف ذكر كړيده نو هغۀ صحيح نۀ ده وجه دا ده

چه د هغهٔ روایت متابعات او ډیر سندونه دي چه په هغې سره حدیث بالکل صحیح ګرځي او د ثقاتو یو جماعت ددې په نقل کولو اتفاق کړیدې لهذا دا زیات مقبول دې.

ددې وجه نه ډیر علماؤ هغهٔ روایت ته صحیح وئیلې دې او چا چه معلول ګرځولې دې نو د هغهٔ سره هیڅ حجت نشته. او حافظ په التلخیص (۱۱۸) کښې ددې شواهد ذکر کړیدي چه بیهقي دا حدیث په روایت د ابن مسعود، او ابن عباس ذکر کړیدې او هغهٔ ئې ضعیف کړیدې لیکن عمر به دا قنوت وئیلو. انتهیٰ. او شیخ البانی فرمائی : ددې تائید دا هم کوی چه د انس بن مالك نه تپوس اُوشو چه قنوت فی الصلاة قبل الرکوع دی او که بعد الرکوع ؟ نو هغهٔ اُووئیل : قبل الرکوع) بیائې ذکر کړل چه قنوت بعد الرکوع خو صرف یو میاشت پورې وو (یعنی قنوت نازله وو) انتهی معنیٰ عبارة الالبانیؒ)

شیخ ابن بازؒ په فتاوی هیئة کبار العلماء (۲۷۹/۱) کښې فرمائی : «په وترو کښې قنوت لوستل سنت دی لیکن استمرار پدې باندې سنت نهٔ دې بلکه چه کله نا کله ئې قنوت اُولوستو نو هم خیر دې او که پریخودو نو هم خیر دې».

۲- دلیل : صحابه کرامو کښې درې جماعته وو.

۱- بعضو به تول عمر قنوت لوستلو. ۲- بعضو به صرف رمضان کښې لوستلو.

۳- بعضو به بالکل نه وئیلو نو که قنوت واجب وې نو دې صحابه کرامو ولې پریخودو. او دا فائده شیخ الاسلام په مجموع الفتاوی (۳۷۴/۲۳) کښې ذکرکړیده. (وانظر بعض الآثار فی قیام اللیل لابن نصر ص (۱۳۶)

۳- دلیل : په دې دعاء قنوت باندې هیڅ حدیث کښې امر ندې راغلې او نه پرې د نبی ﷺ همیش والې ثابت دې. نو څنګه به واجب شي؟ نو ظاهر دا ده چه ددې وئیل مستحب دی. او که څوك ئې په تول کال کښې لولی هم مستحب عمل دې. ځکه چه نبی علیه السلام نه یو کرت ثابت دې. لکه حدیث د بیهقی (۲۱۰/۲) کښې دی : محمد بن الحنفیةؒ او ابن عباسؓ دواړو به وئیل : (کان النبی ﷺ یقنت فی صلاة الصبح وفی وتر اللیل بهؤلاء الکلمات : اللهم اهدنی فیمن هدیت......) واسناده قوی کما اشار الیه البیهقی)

دارنګه ابن مسعودؓ نه نقل دی : (ان النبی ﷺ قنت فی الوتر قبل الرکوع) (ابن ابی شیبة، الدارقطنی (۱۷۵) (البیهقی (۴۱/۳) مصنف عبد الرزاق (۱۲۰/۳) (کنز العمال) (ابن الترکمانی په الجوهر النقی (۴۲/۳) کښې وئیلی دی : ددې په سند کښې ابان بن عیاش متروك راوی دې، لیکن اعمش راوی دده متابعت کړیدې کما فی مختصر الخلافیات للبیهقی آه. والارواء (۱۶۶/۲) لهذا حدیث صحیح شو ځکه چه سفیان الثوری د دواړو

نه روایت کړیدي۔

۳- علقمهٔ فرمائي : (ان ابن مسعود، واصحاب النبي ﷺ كانوا يقنتون في الوتر قبل الركوع) (ابن ابي شيبة- قال الحافظ في الدراية (١١٥) اسناده حسن)۔ (ابن مسعودؓ او صحابه کرامؓ به په وترو کښې د رکوع نه مخکښې قنوت وئیلو)۔ (المرعاة ۲۹۹/٤)

٤- د عمر فاروق باره کښې نقل دی چه هغهٔ به د رکوع نه مخکښې او د قراءت نه بعد په وترو کښې قنوت وئیلو (ابن ابي شيبة ٥٦/٢ -القنوت قبل الركوع) وابن نصر (١٣٣)

نو ثابته شوه چه قنوت الوتر مستحب دی او همیش والے کول پرے هم مستحب دی او وجوب باندے ئے هیڅ دلیل نشته۔

## المسئلة الثانية: د قنوت اقسام

قنوت په دوه قسمه دے : ١- قنوت مستمره في الوتر۔ ٢- قنوت نازله۔ او دا په فرض مانځه کښې دی د وجه د یو مصیبت راتلو نه په مسلمانانو لکه د کافرانو غلبه راشي نو په دغه وخت کښې امام په مانځه کښې ښیرے کوی او روستو خلق آمین وائی۔

قنوت الوتر قنوت مستمره : کښې دا قانون دے چه پدے کښې به د شرعي الفاظو تبدیلي هم نشي کولے او منقول الفاظو نه به زیادت هم نشي کولے۔ او قنوت نازله کښې هر قسم دعاء لوستل جواز لري۔ او قنوت نازله په نز د بعض علماؤ منسوخ شویدی۔ لیکن قول ئے غلط دے۔

## آیا قنوت الوتر به همیشه تول کال وئیلے شي؟

او قنوت مستمره باره کښې اختلاف دے۔ ١- احناف او حنابله وائي : تول کال کښې به ئے وائي۔ ٢- مشهور مذهب د شوافعو دا دے چه قنوت الوتر مختص دی په نصف آخیر د رمضان پورے، او دا یو روایت دے د امام مالك نه۔

٣- او مشهور قول د مالکیه ؤ دا دے (كما في المدونة) چه بالکل قنوت نشته، نهٔ په رمضان کښې او نهٔ په غیر رمضان کښې او نهٔ په وترو کښې۔

او دا د ابن عمرؓ او عروهؓ نه نقل دی چه هغه به په هیڅ مونځ کښې قنوت نهٔ وئیلو او طاوس رحمه الله قنوت ته بدعت وائي۔ (قيام الليل لابن نصر ص (١٣٦) نيل الاوطار (٥٤/٣)

مګر راجح باعتبار الدلیل دا ده چه قنوت په وترو کښې مستحب دے په تول کال کښې او واجب نهٔ دے ځکه دا په وترو کښې مشروع ذکر دے نو بس په تول کال کښې ئے مشروعیت هم شته لکه د باقي اذکارو په شان۔ بلکه دا چه په حدیث کښې لفظ الوتر مطلق راغلے دے

لکه مخکښې ئې دلائل ذکر شو۔ او دا قول د ابن مسعودؓ وغيره دے۔

المسئلة الثالثة : آيا په غير د وترو نه قنوت شته او که نۀ ؟

نو اول خو پدے کښې اتفاق دے چه په غير د څه سبب نه قنوت په ځلورو مونځونو کښې نشته۔ او هر چه د صبا مونځ دے نو پدے کښې اختلاف دے نو يو جماعت وائي چه سِویٰ د وترونه قنوت په غير د سبب نه نشته اګرکه د صبا مونځ وی۔ او ديته ذهاب کړيدے ابو حنيفهؒ، احمدؒ۔ دوی وائي چه دا قنوت صرف په نوازلو او مصيبت راتلو پورے خاص دے۔ ۲- او يو جماعت وائي : چه د صبا په مانځه کښې بغير د سبب نه قنوت وئيل شته او دا به هميشه دپاره علی الدوام لوستلے شی۔ او ديته امام مالك (علی قول) او شافعیؒ ذهاب کړيدے۔ دوی دليل دا وائي : چه حديث د انس بن مالكؓ کښې دی : (مازال رسول الله ﷺ يقنت في الفجر حتى فارق الدنيا) (نبی ﷺ به تر مرګه پورے د صبا په مانځه کښې قنوت وئيلی) (الدارقطنی ص ۱۱۸) وعبد الرزاق (واحمد (۱٦۲/۳) والحاكم والبيهقی فی السنن (۲/۱/۲۰۱)

ليکن دا نور علماء جواب ورکوی چه دا روايت ضعيف دے ځکه پدے کښې ابو جعفر الرازی راوی متکلم فيه دے بعضو ورته ثقه وئيلے دے او اکثرو ورته ضعيف وئيلے دے۔ انظر الكلام فی المرعاة (۳/۲۰۰) ۲- دويم دا که صحيح شی نو ددے معنیٰ دا ده چه په مصيبتونو نازليدو وخت کښې به نبی ﷺ تر مرګه قنوت وئيلو۔

۳- حافظ ابن قيمؒ فرمائي : دلته په حديث کښې دا نشته چه د قنوت نه مراد دعاء قنوت دے بلکه قنوت په ډيرو معنو راځی نو دلته قنوت نه مراد طول القيام دے۔ يعنی د رکوع نه بعد به ډير حصاريدو، ربنا لك الحمد او نورے دعاګانے به ئے وئيلے لکه څنګه چه د نبی ﷺ دا عادت مبارك وو چه هغه به د سحر مونځ اُوګد کولو۔ نو هميشه د سحر په مانځه کښې قنوت وئيل بدعت دے۔ هيڅ صريح دليل پرے نشته۔

علامه شوکانیؒ وائي : که دا حديث د انسؓ د احتجاج دپاره صلاحيت اُولری نو بيا پکښې تاويل د ابن قيمؒ ډير ښائسته مَحْمَل دے۔ او په صحيح ابن خزيمه او کتاب القنوت د خطيب کښې د انس بن مالك ﷺ په روايت کښې ددے تائيد موجود دے، هغه فرمائي : (ان النبی ﷺ لم يقنت الا اذا دعا لقوم او دعا على قوم) (قال الحافظ فی الدراية وابن عبد الهادی فی التنقيح ،والالبانی فی الصحيحة (۲۳۹/۲) : سنده صحيح وله شاهد من حديث ابی هريرة) (نبی ﷺ به صرف قنوت په هغه وخت کښې وئيلو چه کله به ئے يو قوم ته دعاء

کوله او یو قوم ته به ئے خیرے کولے)۔
لهذا ثابته شوه چه بغیر د سبب نه قنوت وئیل په هیڅ مونځ کښ ندی پکار بلکه دا صرف د نوازلو پورے مختص دے۔

المسئلة الرابعة :

قنوت نازله د یو خاص سبب او حادثے د وجه نه او آیا د سحر پورے خاص دی؟

کله چه یو سبب موجود شی مثلاً قحط، وباء یا د دشمن غلبه وغیره نو آیا قنوت نازله شته او که نه ؟ او آیا دا صبا مانځه پورے خاص دی یا د جهری مونځونو پورے او که نه تولو مونځونو کښ ئے وئیل جائز دی ؟

۱ - جمهور اهل الحدیث او امام شافعیؒ فرمائی : چه دا په تولو مونځونو کښ وئیل جائز دی۔ ۲ - حنابله وائی : قنوت نازله به صرف په صبا مانځه کښ وائی۔ او دا مُفتیٰ بهٖ قول د احنافو دے۔ لکه د احنافو دوه قوله دی، یو دا چه دا د جهری مونځونو پورے خاص دے۔ بنایه شرح الهدایه کښ وائی : دا قول د اکثرو دے۔ او بل قول دا چه دا صرف د صبا پورے خاص دے۔ لیکن راجح دا ده چه پدے تخصیص باندے هیڅ مرفوع صحیح یا ضعیف حدیث دلیل نشته بلکه دا قنوت په تولو مونځونو کښ لوستل جواز لری۔ او دا قول علامه شوکانیؒ په نیل الاوطار باب القنوت فی المکتوبة) کښ او مبارکفوری په المرعاة (۳/ ۲۰۱) کښ راجح کړیدے۔

المسئلة الخامسة : قنوت الوتر دپاره الله اکبر وئیل نشته

قنوت مستمره فی الوتر دپاره الله اکبر وئیل شته او که نه ؟ نو تحفة الاحوذی (۲/ ۵۶۷) کښ او شیخ البانی په صفة الصلاة او ارواء الغلیل (۲/ ۱۶۹) کښ لیکی : چه پدے باره کښ هیڅ مرفوع صحیح صریح حدیث نشته۔ صرف بعض آثارو کښ راغلی دی چه قیام اللیل د ابن نصر (۲۱۹) راوړیدی او د هغے آثارو سندونه هم ندی معلوم لکه علی ﷺ به د قنوت افتتاح په تکبیر سره کوله او ابن مسعودؓ به په وترو کښ د قنوت نه مخکښ او روستو تکبیر وئیلو۔ عمر بن الخطاب به چه کله د قراءت نه فارغ شو نو تکبیر به ئے وئیلو بیا به ئے قنوت وئیلو بیا به ئے تکبیر اُووئیلو او رکوع ته به لاړو یعنی په سحر مانځه کښ۔ او دا اثر د عمرؓ په طحاوی (۱/ ۱۷۱) کښ هم راغلے دے۔

لیکن ددے آثارو نه سنیت د تکبیر نهٔ ثابتیږی۔ وجه دا ده چه یو خو ددے اسانید ندی معلوم۔ دویم دا چه مرفوع حدیث کښ ندے راغلے۔ دریم دا چه دا اکثر آثار په باره د قنوت

الفجر کښې دی۔ صرف د ابن مسعودؓ اثر په باره د قنوت الوتر کښې دے۔
لهذا تکبیر وئیل ندی پکار څکه اُمت مُکلف دے په مرفوع احادیثو۔

المسئلة السادسة : -- په قنوت کښې رفع اليدين نشته

آیا په قنوت کښې رفع اليدين شته لکه څنګه چه تکبیر تحریمه وخت کښې کولے شي؟۔ نو قنوت په دوه قسمه دے یو قنوت مستمره د وترو۔ دویم قنوت نازله نو په قنوت نازله کښې خو رفع اليدين په ډیرو صحیح احادیثو کښې راغلی دی۔ خو په شکل د دعاء سره۔ چه هغه په السنن الكبرىٰ للبيهقي (۲۱۱/۲) صفة الصلاة للالباني (۱۷۸) کښې کتلے شئ۔

او قنوت الوتر کښې رفع اليدين په هيڅ مرفوع حديث کښې ندی ثابت البته د بعض سلفو نه نقل دی چه هغوی به رفع اليدين کول ليکن هغه هم په شکل د دعاء سره دی لکه هغه آثار علامه مبارکفوری په تحفة الاحوذی کښې د جزء رفع اليدين د بخاريؒ نه او «كتاب الوتر» د مروزيؒ نه نقل کړيدی او بيائے وئيلی دی چه دا رفع اليدين د تکبير تحريمه په شکل باندے ندی بلکه ظاهر دا ده چه دا د دعاء په شکل دی څکه قنوت هم دعاء ده۔

لکه جزء رفع اليدين د بخاری (۸۷) او قيام الليل د ابن نصر (۳۲۰) کښې دی : (عن الاسود ان عبد الله بن مسعود كان يرفع يديه في القنوت الى صدره واللفظ لابن نصر، وفي لفظ البيهقي : كان ابن مسعود يرفع يديه في القنوت الى ثدييه) (۴۱/۳) (عبد الله بن مسعود به په قنوت کښې رفع اليدين کول تر سينے پورے) نو سينے پورے رفع اليدين کول دليل دے چه دا رفع اليدين د دعاء دپاره دی۔

امام بخاريؒ په جزء رفع اليدين کښې د ابو هريرةؓ نه نقل کوی چه هغه به رفع اليدين کول۔ ونحوه في البيهقي (۲۱۲/۲) (نو په دے کښې هم بيان نشته، ظاهر دا ده چه دا هم د دعاء په شکل رفع اليدين وو)۔

بنوری په معارف السنن (۲۴۶/۴) کښې ليکی : اثر د ابن مسعودؓ نص نهٔ دے په رفع اليدين کښې د تحريمے په شان بلکه دواړه احتماله لري چه د دعاء په شکل وی یا د تحريمه په شکل ۔ او حديث د ترفع الايدي في سبعة مواطن) هيڅ دليل نهٔ ګرځی څکه چه دا ضعيف دے او ثابت نهٔ دے۔ انتهىٰ۔

دارنګه په دے روايت کښې عرفات هم ذکر دے او هلته خو لاسونه د دعاء په شکل پورته کولے شي۔نو څنګه په يو حديث کښې دوه قسمه رفع اليدين مراد کړے شي۔ چه په قنوت کښې د تحريمه په شان رفع اليدين مراد شي او په عرفات کښې د دعاء په شکل او بيان په

یوکښ هم نشته۔

لهذا رفع اليدين د غوږونو پورې په دعاء القنوت کښې ندی ثابت۔ او که د دعاء په شکل ئې څوك اُوچتوی نو جائز دی د وجه د دغه آثارو نه۔ والله اعلم۔ راجع فتاوی الدين الخالص (۹۲/٤) و(٥٩٠/٥)

المسئلة السابعة -- آیا قنوت نازله قبل الرکوع دے او که بعد الرکوع ؟

قنوت قبل الرکوع دے او که بعد الرکوع ؟ نو تحقیق دا دے چه قنوت نازله د نبی ﷺ نه بعد الرکوع نقل دے او د صحابه کرامؓ نه قبل الرکوع او بعد الرکوع دواړه نقل دے۔ لهذا راجح دا ده چه بعد الرکوع اُوکړے او کله نا کله قبل الرکوع هم جائز دے۔ او هر چه قنوت الوتر دے نو دا قبل الرکوع دے۔ او پدے باره کښې شپږ روایات راغلی دی، بعض دا دی :

۱- عبد الله بن مسعودؓ فرمائی : نبی ﷺ به په وترو کښې قنوت د رکوع نه مخکښې لوستل (الجوهر النقی ٤٢/٣) والارواء (١٦٦/٢) بسند صحيح) وتقدم ان فی سنده ابان لكن تابعه الاعمش)

۲- ابی بن کعبؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به په وترو کښې قبل الرکوع قنوت کولو (وسنده صحيح : ابوداود ٢٦٨/١) رقم (١٤٢٧) والنسائی (٢٤٨/١) وابن ماجه رقم (١١٨٢) والبيهقی (٤٠/٢) والدارقطنی وغيرهم)

۳- اسودؓ فرمائی : عمر بن الخطاب به په وترو کښې قنوت قبل الرکوع وئیلو (قيام الليل لابن نصر ص (٣١٨) ابن ابی شيبه (٣٠٢/٢) ارواء الغليل (١٦٥/٢)

٤- او دغه شان ابن عمرؓ به هم قنوت فی الوتر قبل الرکوع کولو۔ ابن ابی شیبه)

٥- ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : اوتر النبی ﷺ بثلاث فقنت فيها قبل الرکوع (نصب الراية ١٢٤/٢) (نبی علیه السلام درے رکعاته وتر اُوکړل او په هغے کښې ئے قبل الرکوع قنوت اُوکړل)

٦- او دغه شان مرفوع روایت د ابن عمرؓ هم دے۔ نصب الرایه (١٢٤/٢)

نو دا احادیث دلیل دے چه قنوت الوتر قبل الرکوع دی صرف امام احمد بن حنبل وئیلی دی چه دا قنوت الوتر هم بعد الرکوع دی۔ دوی قیاس کوی په قنوت نازله باندے چه نبی ﷺ په سحر مانځه کښې قنوت نازله بعد الرکوع اُوکړل نو وترو کښې به هم بعد الرکوع کولے شی لکه دا قیاس د امام احمدؒ نه په قیام اللیل د ابن نصر (۱۳۳) کښې نقل دے۔ لیکن کله چه نص ثابت شی نو بیا قیاس ته ضرورت نشته بله دا چه عباداتو کښې

قیاسونه جاری کول صحیح نهٔ دی۔

دارنگه استدلال کوی په حدیث د علی بن ابی طالب ﷺ چه هغه به قنوت بعد الرکوع کولو (طحاوی ۱٤۸/۱) ابن ابی شیبة (۲/۲) والبیهقی (۳۹۰/۳) وفی سنده عطاء بن السائب وقد اختلط (ارواء الغلیل ۱٦٦/۲)

دارنگه استدلال کوی په حدیث د حسن بن علیؓ باندے چه مستدرك (۱۷۲/۳) کښې حاکم راوړیدے او د هغه نه بیهقی (۳۹،۳۸/۳) نقل کړیدے هغه فرمائی :

(علمنی رسول الله ﷺ ان اقول فی وتری اذا رفعت رأسی ولم یبق الا السجود اللهم اهدنی الخ ......) (وسنده حسن)

(ما ته رسول الله ﷺ دا تعلیم ركړیدے چه زهٔ په وترو کښې د رکوع نه سر پورته کړم نو داسے دعاء قنوت اُووایم اللهم اهدنی الخ) لیکن دا حدیث ابن منده په « التوحید»(۷۰/۲) کښې او ابن ابی عاصم په «الآحاد والمثانی» (۳۰۱/۱) کښې راوړیدے او په هغے کښې داسے الفاظ دی : (اذا فرغت من قراءتی فی الوتر (فلم یبق علیّ الا الرکوع) (یعنی د رکوع نه مخکښې دغه دعاء قنوت راغلے دے) نو دا روایت د مخکښې روایت مخالف شو۔

لهذا رجوع به اُوکړو هغه روایاتو ته چه په هغے کښې قنوت قبل الرکوع دے نو بس راجح دا ده چه قنوت الوتر قبل الرکوع اُوکړے شی او بعد الرکوع هم کله نا کله جائز دے د وجه د دغه دلائل مذکوره ؤ نه۔

الفصل الاول

۱ ــ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ، اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ اِذَا اَرَادَ اَنْ یَّدْعُوَ عَلٰی اَحَدٍ، اَوْ یَدْعُوَ لِاَحَدٍ، قَنَتَ بَعْدَ الرُّکُوْعِ، فَرُبَّمَا قَالَ اِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ، رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ: اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِیْدَ بْنَ الْوَلِیْدِ، وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، وَعَیَّاشَ بْنَ اَبِیْ رَبِیْعَةَ، اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلٰی مُضَرَ، وَاجْعَلْهَا سِنِیْنَ كَسِنِیْ یُوْسُفَ»، یَجْهَرُ بِذٰلِكَ، وَكَانَ یَقُوْلُ فِیْ بَعْضِ صَلَاتِهٖ: «اَللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَفُلَانًا »، لِاَحْیَاءِ الْعَرَبِ، حَتّٰی اَنْزَلَ اللهُ: ﴿ لَیْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ﴾ الْآیَةَ. مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

ترجمه : ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ به کله اراده اُوکړه چه چا ته خیرے اُوکړی یا چا ته دعا اُوکړی نو د رکوع نه روستو به ئے قنوت وئیلو، نو کله چه به ئے « سمع الله لمن حمده، ربنا لك الحمد» اُووئیله نو دا دُعاء به ئے کوله : «اللهم انج الخ » (اے

الله تـه ولید بن الولید او سلمه بن هشام او عیاش بن ابی ربیعه، راخلاص کړے، اے الله ! په مضر قبیلـه بانـدے سـخـت عـذاب نـازل کـړه او دغـه عـذاب په هغوی باندے د قحط په صورت کښې مسلط کړه، داسے قحط چه د یوسف علیه السلام د قحط په شان وی (کوم چه د هغهٔ په زمانه کښې په قوم مصر باندے راغلے وو) نبی ﷺ به په دے دعاء باندے جهر کولو، او په بـعـض مـونـځـونو کښې به ئے (د عربو قبائلو ته بنیرے کولو سره) داسے فرمایل : « اے الله په فلانئ، فلانئ قبیلے د عربو باندے لعنت اُوکړهٔ » (د خپل رحمت نه ئے جُدا کړه)، تردے چه الله تـعـالیٰ دا آیت نازل کړو : «لیس لك من الامرشیء » ( یـعـنـی پدے باره کښې ستا هیڅ اختیار نشته)۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ دا دلیـل دے چه دا قنوت نازله دے او بعد الرکوع دے۔ او دا صریح حدیث دے۔

اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِيْدَ: دا مثال دے د دعاء دپاره او« اللهم اشدد» دا مثال د بنیرو دے۔

## ولید بن الولید او سلمه او عیاش څوک وو ؟ او دوی دپا ره قنوت کښې دعاء

بیا دکوم صحابه کرامؓ دپاره چه نبی علیه السلام د نجات دعـاء کوله نو وجه دا وه چه دوی په مـکـه کښې د کفارو په لاسونو کښې قیدیان وو۔ ولید بن الولید د خالد بن الولید المخزومی القرشی ورور دے، بدر ته مشرکً حاضر شو نو عبد الله بن جحش رضی الله عنه قیدی کړو، بیا د هغهٔ د آزادولو او فـدیـه ورکـولـو دپاره د هغه دوه ورونه خالد او هشام راغلل او هشام ئے د مور او پلار نـه سَـکـه ورور وو۔ نو هغوی دا په څلور زره درهم آزاد کړو۔ هر کله چه ددهٔ فدیه اداء شوه او دوارو ځان سره بوتلو نو دهٔ اسلام راوړو نو دهٔ ته اُووئیل شو، تا ولے مخکښې د فدیه ورکـولـو نـه اسلام نهٔ راوړو کله چه ته د مسلمانانو په لاس کښې وے۔نو هغه اُووئیل : ما دا بـده گـنـړلـه چه تاسو به په ما بدگمانی کوئ چه زهٔ د قید نه اُویریدم۔ نو هغوی دا په مکه کښې قیـدی کړو نو رسول الله ﷺ به د هغه د نجات دپاره د نورو مستضعفین مسلمانانو سـره په قنوت کښې دعاء کوله۔ آخر دا چه د هغوی د قید نه راوتختیدو او د رسول الله ﷺ سره یو ځائے شو او د هغه سره عمرة القضاء ته حاضر شو۔

حـافـظ فتـح البـاری کـښې فـرمائی : دا بدر ته د مشرکانو په ډله کښې حاضر شو بیا قیدی شـو او د ځان فدیه ئے اداء کړه بیا ئے اسلام راوړو نو په مکه کښې قیدی شو بیا دهٔ او سلمهٔ او عیاشؓ درے واړو وعـده اُوکړه چه د مشرکانو نه به تختو، نو راوتختیدل نبی علیه السلام د هغوی په راوتـلـو خبـر شو نو د هغوی دپاره ئے دعاء کوله تردے چه راورسیدل بیا ئے دعاء د هغوی

دپاره پریخودله۔ بیا چه کله ولید نبی ﷺ ته راورسیدو نو وفات شو۔

او هر چه سلمه بن هشام بن المغيرة المخزومي القرشي دے نو دا د حبشو د مهاجرینو نه دے او د فضلاء او غوره صحابه کرامؓ نه دے، د ابوجهل بن هشام ورور دے او د خالد بن الولید د تره ځوی دے۔او پخوانے مسلمان دے په مکه کښ قیدی شویدے او د الله دپاره ورته ډیر عذاب ورکړے شویدے۔ابوجهل ورپسے تړلے وو۔ او د مدینے د هجرت نه منع شویدے۔ او د همدے وجه نه بدر ته هم حاضر نشو۔ نو رسول الله ﷺ به دۀ له په قنوت کښ دعاء کوله تردے چه د هغوی نه راخلاص شو او د رسول الله ﷺ سره پیوسته شو او د نبی ﷺ د وفات پورے په مدینه کښ اُوسیدو۔بیا شام ته د جهاد دپاره لاړو کله چه ابوبکر شام ته فوجونه لیږل۔نو دا په مرج الصفر (د دمشق په خوا) کښ د محرم سنه (۱٤ هـ) کښ شهید شو۔ بعض وائی په اجنادین کښ۔ او دے دواړو واقعو ترمینځ شل ورځے وے اول مرج الصفر وو بیا اجنادین۔ ابن عساکر وائی: ددۀ نه هیڅ روایت نۀ دے نقل۔

او هر چه عیاش بن ابی ربیعه عمرو بن المغيرة المخزومي دے، دا د ابوجهل د مور د طرفنه (اَخیافی) ورور وو۔ پخوانے مسلمان دے نبی ﷺ لا دار الارقم ته نۀ وو داخل شوے چه دا په اسلام مُشرف شو۔ دوه هجرتونه ئے کړیدی۔ بیا ابوجهل چه ددۀ ورور وو ورسره دوهوکه اُوکړه پدے طریقه چه دا عیاش کله مدینے ته راغلو نو ابوجهل او حارث چه ځامن د هشام دی۔ ددۀ خواله راغلل او دا ئے ورته اُووئیل چه ستا مور قسم کړیدے چه په سر به تیل نه لګوم او سوری ته به نۀ کینم تردے چه خپل ځوی اُووینم۔ نو دا د هغوی سره واپس لاړو، هغوی اُوتړلو او په مکه کښ ئے قیدی کړو۔ نو رسول الله ﷺ به دۀ له هم دعاء طلب کوله بیا راخلاص شو او د دغه مذکورو ملګرو سره راوتختیدو۔ او د عمر فاروق د دور خلافت پورے ژوندے وو۔نو په سنه (۱۵ هـ) کښ۔ بعض وائی ددے نه مخکښ وفات شو۔

اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ : (وطأة) اصل کښ یو شے په خپو باندے پائیمال (د خپلو غوبل) کولو ته وائی، دلته ترے مراد هلاك کول دی۔ ځکه څوك چه یو شے په خپو پائیمال کړی نو هغه پوره هلاك کړی۔ نو معنیٰ دا ده چه اے الله ! مضر قبیله سخته راونیسه او هلاکه ئے کړه۔علامه سندیؒ وائی : دا روستو کلام دلالت کوی چه ددے نه هلاك کول ندی مراد بلکه سزاء او عذاب ورکول مراد دی۔ او دلته د مضر نه کفار اَولاد د مضر دی۔

وَاجْعَلْهَا : « ها » ضمیر یا راجع دے (سنین) ته یا (ایام) ته یا (وطأة) ته ۔

سِنِيْنَ : جمع د سَنَة ده په معنیٰ د قحط سره۔

كَسِنِيْ يُوْسُفَ : یعنی اُووه کاله په دوی باندے قحط راولے لکه څنګه چه په زمانه د

یوسف ﷺ کښې اُووه کاله قحط راغلي وو۔

فوائد الحدیث :۱- حدیث دلیل دے چه په غیر د وترو نه هم قنوت وئیل شته چه د ضعیف مسلمانانو د راخلاصو دپاره دعاء پکښې اُوکړے شی۔

۲- کفارو ته ښیرے کول په قحط او مصیبتونو باندے جائز دی۔

۳- قنوت نازله باندے جهر کول مشروع دی۔

٤- یو قوم ته دعاء کول او د هغوی نومونه او د پلار نومونه په مانځه کښې یادول مونځ نۀ ماتوی، اګرکه فرض مونځ وی۔ ٥- کفارو او ظالمانو ته ښیرے کول هم مونځ نۀ ماتوی۔

۶- او حدیث دلیل دے چه کله نا کله په اجتماعی طریقه دعاء هم د نبی ﷺ نه نقل ده، لکه پدے مقام کښې یا په صلاة الاستسقاء کښې۔یا د ختم القرآن نه روستو۔

فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ : په روایت د بخاری کښې دی چه دا د سحر مونځ وو۔ حافظ فرمائی : پدے کښې اشاره ده چه نبی ﷺ به پدے کار همیش والے نۀ کولو۔

لِأَحْيَاءٍ : جمع د حی ده قبیلے ته وائی۔

لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ : یعنی اے نبی ! ستا هیڅ اختیار د دوی په باره کښې نشته بلکه الله د دوی مالك دے یا به ئې هلاك کړی که په کفر همیشه شو او بیا پرے مړه شو او یا به پرے الله مهربانی اُوکړی نو د ایمان توفیق به ورکړی او یا به عذاب ورکړی۔ نو تۀ د دوی کار الله ته سپاره، او ښیرے ورته مه کوه۔ او پدے کښې اشاره وه چه روستو به دے خلقو کښې مومنان پیدا کیږی۔ نو الله خپل نبی د ښیرو نه منع کړو۔ چه عمومی ښیرے اُونکړی۔

امام ابویوسفؒ وائی : قنوت نازله پدے آیت منسوخ شویدے، لیکن دا خبره صحیح نۀ ده بلکه صحیح دا ده چه دلته الله خپل نبی منع کړو چه ددے خاصو قبیلو نومونه مۀ اخله ځکه چه الله ته معلومه وه چه دوی کښې مومنان پیدا کیږی، نو بیا د پیغمبر ښیرے ضائع کیږی۔

فائده : تقدیر دوه قسمه دے یو هغۀ دے چه الله یو شے تقدیر کښې لیکلے وی او لا فیصله کړے ئې نۀ وی لیکن کله چه انسان الله ته دعاء او تضرع اُوکړی نو هغۀ مصیبت ترے اړوی۔ ۲- دویم هغۀ تقدیر دے چه الله د هغے په امضاء او جاری کولو باندے مهر وهلے وی چه دا به کیږی لکه پدے حدیث کښې همدا مراد دے چه دے بعض خلقو له الله د ایمان توفیق ورکولو او بعضو له ئې عذاب ورکولو نو ځکه ئې پیغمبر د ښیرو کولو نه منع کړو۔ لیکن چونکه مونږ انسانانو ته خو د الله اراده نۀ ده معلومه او عقل هم دا نۀ شی معلومولے چه آیا فلانے کافر به ایمان راوړی او که نۀ۔ (او زۀ به مومن لیکلے شوے یم او که

کافر) لهذا بندګانو له کفارو ته دعاء او ښیرے جائز دی ځکه چه دعاء عبادت دے۔ او بندګان که په تقدیر کښ هرڅنګه لیکلے شوی وی لیکن دعاء به ضرور کوی۔ (ابن بطال)

**اشکال** : ددے آیت په باره کښ خو بعض مفسرینو دا نقل کړیدی چه دا آیت د رعل او ذکوان په قصه کښ نازل دے چه اُوویا قاریان (صحابه کرام) ئے شهیدان کړی وو۔ لکه په بخاری کښ د ابن عمر نه او په مسلم کښ د انس نه نقل دی۔ او دا واقعه خو د اُحُد نه روستو وه او دلته وائی چه دا آیت په واقعه کښ اُحُد کښ نازل دے۔

**الجواب** : حافظ وائی : دا قول : حتی انزل الله) دا منقطع دے ځکه زهریؒ وئیلی دی (بلغنا انه ترك ذلك لما نزلت) لکه دا په روایت د مسلم کښ بیان شویدی او قصه د رعل او ذکوان د اُحُد نه علاوه ده۔ ۲- او کهٔ چرته محفوظ وی نو بیا به داسے وئیلے شی چه قصه د رعل او ذکوان د اُحد نه روستو وه او د آیت نازلیدل به لږ شان د سبب نه روستو شوے وی، بیا دے په دے ټولو کښ نازل وی۔

۲- وَعَنْ عَاصِمِ الْاَحْوَلِ، قَالَ: سَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فِي الصَّلَاةِ، كَانَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ اَوْ بَعْدَهُ ؟ قَالَ: قَبْلَهُ، اِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا، اِنَّهُ كَانَ بَعَثَ اُنَاسًا يُقَالُ لَهُمْ: الْقُرَّاءُ، سَبْعُوْنَ رَجُلًا، فَأُصِيْبُوْا، فَقَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا يَدْعُوْ عَلَيْهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او عاصم اَحول رحمه الله فرمائی: ما د انس بن مالك ﷺ نه په مانځه کښ د قنوت په باره کښ تپوس اُوکړو چه آیا دا قبل الرکوع دی او که د رکوع نه روستو دی؟ هغهٔ اُوفرمایل : د رکوع نه مخکښ دی، رسول الله ﷺ (صرف) یوه میاشت د رکوع نه روستو قنوت وئیلے دے، (وجه دا وه) چه هغوی څهٔ کسان (صحابه کرام) لیږلی وو چه هغوی ته قراء (قاریان) وئیلو شو، اَویا (۷۰) کسان وو، نو (د هغهٔ ځائے خلقو) هغوی لره ئے شهیدان کړل، پدے وجه رسول الله ﷺ یوے میاشت پورے هغوی ته د رکوع نه بعد ښیرے کولے۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تعارف د عاصم الاحول** : دده نوم دے عاصم بن سلیمان الاحول ابوعبد الرحمن البصری ثقه تابعی دے په سنه (۱۴۰) یا (۱۴۱) یا (۱۴۲) کښ وفات شویدے۔ ابن سعدؒ وائی : دا د بصرے والو نه وو او دهٔ به ولایتونه ګورنریانے کولے په کوفه کښ په حسبه باندے په پیمانو او وزنونو باندے مقرر وو او په مدائن کښ د ابوجعفر د طرفنه قاضی مقرر وو۔

**تشریح** : قَبْلَهُ : یعنی قنوت دائمی (قنوت الوتر) قبل الرکوع دی او هر چه قنوت نازله

دي نو هغه بعد الركوع يو مياشت شويدى د څه خاص سبب په بناء چه اَويا (۷۰) قاريان رِعْل او ذكوان او عُصَيّه قبيلو دا شهيدان كړي وو۔ او دا اَويا قاريان د مختلفو خلقو نه وو، اَصحاب الصفه وو، د قرآن او دين زدهٔ كولو پسے رامسافر شوي وو۔ دوی به د مسلمانانو مددو نه كول او د هغوی سره به ئې په جنګونو كښې شركتونه كول جنګي زمريان وو۔ او د مسجد نبوی صحيح آبادونكي وو۔

رسول الله ﷺ دوی د اهل نجد نه قبيله بني عامرو پسے ليږلي وو چه هغوی اسلام ته رادعوت كړي او هغوی ته قرآن اُوښائي۔ نو كله چه دوی بئر معونه ته اُورسيدل نو عامر بن الطفيل د بني سليم د څه قبيلو (رعل، ذكوان، عصيه) سره په شريكه د دوی د قتل اراده اُوكړه، نو دوی ئې قتل كړل۔ او صرف يو صحابي كعب بن زيد الانصاريؓ د هغوی نه راخلاص شو چه لګ رمق پكښې وو د هغوی ګمان وو كنې چه دا هم ختم دے۔ هغه بيا ژوندے وو، تردے چه په غزوه خندق كښې شهيد شو۔

او عمرو بن اميه الضمري پكښې قيدي شو۔ او دا كار په څلورم كال د هجرت د صفر په مياشت كښې څلور مياشتے روستو د جنګ اُحُد نه اُوشو نو رسول الله ﷺ د دوی په قتل باندے انتهائي سخت خفګان اُوكړو، انس بن مالكؓ وائي : ما رسول الله ﷺ په بل چا باندے دومره خفګان كونكے نهٔ وو ليدلے څومره چه ددے قاريانو په قتل خفه وو۔

دا حديث دليل دے چه د يو مصيبت راتلو نه ماسوئ رسول الله ﷺ قنوت نازله نهٔ دے وئيلے، نهٔ قبل الركوع او نهٔ بعد الركوع۔ ۲- دارنګه قنوت نازله بعد الركوع دے۔

دلته ظاهر دا ده چه تپوس دے په باره د قنوت الوتر كښې۔ او بعض وائي : دا تپوس په باره د قنوت نازله كښې دے په فرائضو كښې۔

*- دارنګه رسول الله ﷺ په غيبو عالم نهٔ وو۔ په انبياؤ باندے هم مصيبتونه راځي۔

## الفصل الثاني

۳- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ شَهْرًا مُتَتَابِعًا فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَصَلَاةِ الصُّبْحِ، إِذَا قَالَ: «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ» مِنَ الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ، يَدْعُوْ عَلٰى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ: عَلٰى رِعْلٍ، وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ وَيُؤَمِّنُ مَنْ خَلْفَهُ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : ابن عباس ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ يوه مياشت پرله پسے د ظهر او عصر او مغرب او عشاء او فجر په مانځه كښې قنوت اُووئيلو كله چه به ئې «سمع الله لمن حمده» د

آخری رکعت اُووئیلو نو د بنو سلیم قبیلو ته یعنی رعل، ذکوان او عُصیَه ته ښیرے کولے، او روستو مقتدیانو به آمین وئیلو۔ (ابوداودؒ)

تشریح : رِعْلٍ: دا درے واړه د بنو سلیم قبیلے دی رعل بن خالد بن عوف بن امرئ القیس بن بهثة بن سلیم۔ او ذکوان بن ثعلبه بن بهثه بن سلیم۔ او عصیه بن خفاف بن امرئ القیس بن بهثة بن سلیم۔ ټول د سُلیم اَولاد دے۔

دا حدیث دلیل دے چه په قنوت نازله کښ به امام قنوت وائی او روستو خلق به آمین وائی۔ نو آمین بالجهر هم ثابت شو۔ اګرکه دا د ولا الضالین نه پس نهٔ دے بلکه د دعاء نه پس دے۔ او په مسند احمد کښ ورسره دا هم دی چه رفع الیدین به ئے هم پکښ کول۔

او دلیل دے چه په قنوت نازله کښ به قنوت بعد الرکوع وی د سمع الله لمن حمده نه پس۔

او حدیث دلیل دے چه قنوت نازله د بعض مونځونو پورے خاص نهٔ دے نو پدے کښ رد دے په هغه چا چه دا جهری مونځونو پورے یا د صلاة الفجر پورے خاص کوی۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٣٠١/١، ٣٠٢) وابوداود (١٤٤٣) وفی اسناده هلال بن خباب ابو العلاء العبدی وثقه احمد وابن معین وابوحاتم الرازی وقال الحافظ انه صدوق تغیر بآخرة قال الشیخ الالبانی والصواب انه حسن لحال هلال (ارواء الغلیل ١٦١/٢)

---

٤ – عَنْ اَنَسٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَنَتَ شَهْرًا ثُمَّ تَرَكَهٗ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

ترجمه : انس ﷺ نه روایت دے چه نبی ﷺ یوه میاشت قنوت اُولوستلو بیا ئے پریخودو۔ (ابوداودؒ، نسائیؒ)

تشریح : یعنی نبی ﷺ په فرائضو کښ قنوت نازله یو میاشت اُولوستو بیا چه کله سبب زائل شو یعنی مصیبت ختم شو نو بیا ئے پریخودو۔ یا الله منع کړو۔ امام شافعیؒ او د هغه موافقین پدے کښ دا تاویل کوی چه په څلورو مونځونو کښ ئے پریخودو نهٔ په سحر مانځه کښ او یا ښیرے ئے دے قبائلو ته پریخودے۔ لیکن دا تاویل ضعیف دے، هیڅ دلیل پرے نشته۔

او دا حدیث دلیل دے چه قنوت نازله علی سبیل الدوام په فرائضو کښ نشته۔ لکه امام مالكؒ او شافعیؒ ئے علی الدوام وائی۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه ابوداود (١٤٤٥) والنسائی (٢٠٣/٢-٢٠٤) وابن ماجه (١٢٤٣)

٥- وَعَنْ اَبِيْ مَالِكٍ الْاَشْجَعِيِّ، قَالَ: قُلْتُ لِاَبِيْ: يَا اَبَتِ! اِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَلْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَعَلِيٍّ، هٰهُنَا بِالْكُوْفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِيْنَ، أَكَانُوْا يَقْنُتُوْنَ ؟ قَالَ: أَيْ بُنَيَّ! مُحْدَثٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او ابو مالك أشجعي رضی الله عنه فرمائي : ما خپل پلار ته أووئيل: اے پلاره ! تا خو د رسول الله ﷺ، ابوبكر، عمر او عثمان (رضي الله عنهم) او د علي (رضي الله عنه) نه روستو دلته پدے كوفه كښ تقريباً پنځه كاله مونځ كړيدے نو آيا هغوى به قنوت وئيلو ؟، نو هغوى أوفرمايل : « بچيه ! (هميشه) قنوت وئيل بدعت دے».

(ترمذيؒ، نسائيؒ، ابن ماجهؒ).

### تعارف د ابومالک الاشجعی رضی الله عنه :

ابو مالك الاشجعي نوم ئے سعد بن طارق الكوفي دے د ثقات التابعين نه دے. په حدودو د سنه (١٤٠) كښ وفات شويدے. پلار ئے طارق بن أشَيم صحابي دے قليل الحديث دے. صرف څو ترے احاديث نقل كړيدي.

تشريح : نَحْوًا : يعني علي پسے دِے په كوفه كښ پنځه كاله مونځ كړيدے. او نورو پسے دِے په مدينه كښ هم څه وخت كړيدے.

أَكَانُوْا يَقْنُتُوْنَ ؟ : يعني آيا هغوى به هميشه (دائماً) قنوت نازله لوستو؟ نو هغه أوفرمايل : دا بدعت دے يعني دا دوام على قنوت النازله بدعت دے، نو دا دليل دے چه په قنوت نازله باندے په هرمانځه كښ هميشه دپاره دوام كول صحيح نهٔ دی.

يا هميشه په صلاة الفجر كښ لوستل بدعت دے.

او كه عام قنوت مراد كړے شی چه نهٔ ئے قنوت نازله كړيدے او نهٔ ئے قنوت الوتر نو بيا به دا روايت محمول شی په علم د طارق بن اشيم باندے لكه امام بيهقيؒ او طيبيؒ فرمائي : طارق بن أشيم به پرے خوك نهٔ وی ليدلی نو ځكه ورته بدعت ښكاره شويدے ځكه چه دا قنوت نازله به نبی ﷺ هميشه دپاره نهٔ كولو. بلكه دا به ئے صرف په نوازل او واقعاتو كښ كولو نو كيدے شی چه طارق بن أشيم نهٔ وی ليدلی او نورو صحابه كرامؓ نبی ﷺ ليدلے دے نو هغه ئے نقل كړيدی او مُثبت مقدم وی په نافی باندے.

دارنګه په قنوت الوتر ئے هم څوك نهٔ دی ليدلی نو پدے كښ هم اشاره ده چه قنوت الوتر هم څه واجب نهٔ دی او هميش والے پرے ضروری نهٔ دے. بلكه صحابه كرامؓ به كله

قنوت کولو او کله نه۔ مګر ظاهر دا ده چه دلته نفی د دوام ده۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٣٩٤/٦) والترمذی (٤٠٢) والنسائی (٢٠٤/٢) وابن ماجه (١٢٤١) قال الحافظ فی التلخيص ص (٩٣) اسناده حسن.

٦- عَنِ الْحَسَنِ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ جَمَعَ النَّاسَ عَلٰى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَكَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً، وَلَا يَقْنُتُ بِهِمْ إِلَّا فِي النِّصْفِ الْبَاقِي، فَإِذَا كَانَتِ الْعَشْرُ الْأَوَاخِرُ تَخَلَّفَ فَصَلّٰى فِيْ بَيْتِهِ، فَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ: أَبَقَ أُبَيٌّ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : حسن بصری رحمه الله فرمائی: عمر بن الخطاب ﷺ خلقو لره (په رمضان کښې د تراویح دپاره) په ابی بن کعبؓ باندے راجمع کړل نو دهٔ (ابی بن کعبؓ) به هغوی ته شل شپے مونځ کولو، او قنوت به ئے د نصف رمضان نه ماسوا په نورو ورځو کښې نهٔ لوستلو، اوکله چه آخری لس روژے پاتے شوے نو ابی بن کعبؓ به نهٔ راتلو (بلکه) کور کښې به ئے (یواځے) مونځ کولو نو خلقو به وئیل چه ابی بن کعبؓ اُوتختیدلو۔ (ابوداودؒ)
تشریح : ددے نه مراد تراویح دی۔ خلقو به یواځے یواځے مونځونه کول نو عمرؓ په ابی بن کعبؓ باندے راجمع کړل نو هغه ورته شل شپے مونځ اُوکړو ځکه چه د عمرؓ خبره ئے هم نهٔ غورزوله او د نبی ﷺ تابعداری ئے هم غرض وه چه هغه خو یواځے کړیدی۔
بعض وائی : د رمضان آخری شپے افضل دی نو هغه دا غوختل چه ځان له ئے په ډیر توجه او زاری سره ادا کړی ځکه چه په جَلْوَتْ کښې هغه توجه نهٔ وی کومه چه په خَلْوَتْ کښې وی۔ یا د نبی ﷺ اتباع کول مقصد وو۔
بیا دلته (عشرين ليلة) دے او په بعض دیوبندی نسخو کښې مقلدینو دا تحریف کړیدے چه د (ليلة) په ځائے (ركعة) لګولے دے۔ دے دپاره چه شل تراویح ثابتے کړی۔ لکه دا کار محمود الحسن دیوبندی کړیدے۔
پدے حدیث باندے شوافعو استدلال کړیدے چه قنوت الوتر د نصف آخیر د رمضان پورے مخصوص دی لیکن دا استدلال ضعیف دے ځکه چه حدیث ضعیف منقطع دے۔ اګرکه اصل حدیث د جمع کولو د عمرؓ خلقو لره په ابیؓ باندے په بخاری کښې راغلے دے۔ لیکن د قنوت ذکر پکښې نشته۔ او د تراویح متعلق ابحاث روستو باب کښې راروان دی۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (١٤٢٩) لانه من رواية الحسن : ان عمر

بن الخطاب وهذا منقطع ________

٧- وَسُئِلَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ. فَقَالَ: قَنَتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَعْدَ الرُّكُوْعِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ: قَبْلَ الرُّكُوْعِ وَبَعْدَهُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجه. ________

ترجمه : او انس بن مالك ﷺ نه د قنوت متعلق تپوس اُوشو، (چه د رکوع نه مخکښ وئيل پکار دی او که روستو) نو هغهٔ (په جواب کښ) اُوفرمايل : رسول الله ﷺ د رکوع نه بعد قنوت لوستلی دی، او په يو روايت کښ دی : د رکوع نه مخکښ او د رکوع نه بعدئے لوستلی دی۔ (ابن ماجة)

تشريح : يعنی په فرائضو کښ به قنوت نازله نبی عليه السلام د رکوع نه پس لوستلو۔

وَفِيْ رِوَايَةٍ : دا مستقل حديث دے چه دمشکوٰة مصنف د انتهائی اختصار نه کار اخستے دے او دا مناسب نهٔ ده ځکه چه عام خلق چه خطائی کښ واقع کيږی نو هغه پدے وجه چه پوره روايت ته اُونهٔ گوری۔ دا بل روايت د ابن ماجة دے : (عن حميد عن انس قال سئل عن القنوت فی صلاة الصبح فقال کنا نقنت قبل الرکوع وبعده)۔

(مونږ به په فرائضو کښ قنوت نازله قبل الرکوع او بعد الرکوع لوستلو) لهذا دا دويم روايت موقوف دے د انسؓ وينا ده۔ او ابن المنذرؒ د حُمَيد عن انسؓ نه نقل کړيدی : (ان بعض اصحاب النبی ﷺ قنتوا فی صلاة الفجر قبل الرکوع وبعضهم بعد الرکوع) (بعض صحابه کرامؓ به په فجر کښ قبل الرکوع قنوت لوستلو او بعضو به بعد الرکوع)

او ددے بعض صحابه کرامؓ نه يو عثمان ﷺ رو هغه به ددے وجه نه قبل الرکوع قنوت لوستلو چه خلق رکعت رالاندے کړی) کما فی قيام الليل لابن نصر (١٣٣) وارواء الغليل (١٦١/٢) (باسناد صحيح)

نو دا ټول دلالت کوی چه د صحابه کرامؓ عمل په محل د قنوت نازله کښ مختلف وو، بعضو به قبل الرکوع لوستلو او بعضو به بعد الرکوع او هرچه نبی ﷺ دے نو هغه نه په فرائضو کښ قنوت نازله صرف بعد الرکوع ثابت دے۔ لکه مخکښ په حديث د عاصم اَحوَل کښ نقل شو۔ او قنوت الوتر ترے يو کرت ثابت دے او تعليم ئے حسن بن علیؓ ته ورکړيدے۔ او دا به د رکوع نه مخکښ وو۔

نو ددے آخيری جملے (کله به ئے قنوت قبل الرکوع لوستلو او کله بعد الرکوع) مطلب دا دے چه قنوت الوتر به ئے قبل الرکوع لوستلو او که څهٔ حادثه به راغله نو په هغهٔ موقع به

ئے قنوت بعد الرکوع لوستلو چه هغے ته قنوت نازله وائی۔ پدے سره تطبیق په تولو روایاتو کښې راځی۔

درجة الحديث :

اسناد كلتا الروايتين صحيح : اخرجه ابن ماجه (١١٨٤) وصححه الالباني في (الارواء).



# باب قیام شهر رمضان

## د رمضان د میاشتې قیام (تراویحو) بیان

مخکښې وتر او قنوت وو اُوس د رمضان تراویح بیانوی۔ ددې نه روستو د نوافلو بابونه راروان دی چه تراویح، صلاة الضحی، صلاة التسبیح، صلاة الاستخارة دی۔
او د قیام شهر رمضان نه مراد د رمضان په شپو کښې اُودریدل او هغه په عبادتونو د تراویح او تلاوة القرآن وغیره باندې رُونړی کول دی۔ او قیام رمضان تراویح ته هم شاملیږی او تهجدو ته هم۔ وهو الحق۔
امام نوویؒ او کرمانیؒ وائی : د علماؤ پدې اتفاق دې چه د قیام رمضان نه مراد تراویح دی۔ تراویح جمع د تَرْوِيْحَة د راحت نه ماخوذ دې، یو ځل راحت ته وائی۔ لکه تسلیمة د سلام نه دې۔ او تراویح د رمضان په شپو کښې د جَمعې سره مونځ کولو ته وائی۔ دیته تراویح پدې وجه وائی چه صحابه کرامؓ کله په ابتداء کښې تراویحو ته راجمع شو نو دوی به د هر دوه سلامونو په مینځ کښې دمه او راحت کولو۔ (فتح الباری صلاة التراویح) بیا تراویح ته صلاة اللیل هم وائی۔ صاحب د فیض الباری وائی : تراویح او تهجد او صلاة اللیل یو شې دې۔ (المرعاة ٣١١/٤)

### د نوافلو اقسام :

بیا نوافل یوځو اقسام دی ١ – تهجد ٢ – تراویح ۔دا دواړه تقریباً یو شې دې خو فرق دا دې چه تراویح قبل النوم وی او تهجد (غالباً) بعد النوم وی او دواړو ته قیام رمضان وئیلې شی۔
٣ – صلاة الاشراق : دا مونځ احادیثو کښې راغلې دې اګرکه نُوم ئې اَحادیثو کښې نشته۔
٤ – صلاة الضحیٰ ددې نوم او مونځ دواړه احادیثو کښې راغلی دی۔ دیته صلاة الاوابین هم وائی۔ ٥ –صلاة تحیة الوضوء دې، ددې نوم نشته اګرکه دا مونځ شته۔
٦ – صلاة تحیة المسجد (نوم ئې نشته) ٧ – صلاة التوبة دا په حدیث د علی کښې شته اګرکه نُوم ئې نشته۔ ٨ – صلاة المصیبة یعنی د مصیبت او ناشنا کار په وخت مونځ اُوکړې شی دیته صلاة الآیات هم وائی۔ ٩ – صلاة الحاجة۔ ١٠ – صلاة التسبیح۔

۱۱ – صلاة الاستخارة : دا ټول صحيح احاديثو کښې راغلی دی۔ يو بل مونځ دے صلاة حفظ القرآن څلور رکعاته د ذهن تيزولو او قرآن يادولو دپاره) دا په ضعيف حديث کښې راغلی دے۔ ۱۲ – سنن رواتب پکښې داخل کړه نو دولس اقسام د نوافلو شو۔ او ددے نه علاوه باقی نوافل مطلقه دی۔

## تراويح کور کښې افضل دی او که مسجد کښې ؟

بيا تراويح کښې دوه مسئلے دی۔ ۱ – المسئلة الاولیٰ : تراويح کورکښې افضل دی او که مسجد کښې ؟ ۱ – قول اول دا دے چه يواځے يواځے کور کښې افضل دی او دا قول د امام مالك او ابويوسفؒ او بعض شوافعو دے۔ دليل دا دے چه نبی ﷺ فرمائی : (فان افضل صلاة المرء فی بيته الا المکتوبة) (دفرضو نه سِویٰ د سړی مونځ په کورکښې افضل دے) او روستو حديث کښې راځی (فصلوا فی بيوتکم) – (کورونو کښې دا مونځونه کویٔ)

۲ – قول ثانی : په مسجد کښې د جماعت سره افضل دی۔ او دا قول د شوافعو، ابوحنيفةؒ او احمدؒ او بعض مالکيةؒ دے۔ دليل دا دے چه تراويح د ښکاره شعائرو د اسلام نه دی نو په مسجد کښې افضل دی۔ ۲ – دويم دا چه نبی ﷺ درے ورځے په مسجد کښې د جماعت سره کړيدی۔ او بيائے پريخودل او علت ئے دا بيان کړو چه زهٔ څکه راونه وتم چه يَره ده چه په تاسو فرض نشی، نو که دا علت نهٔ وے نو نبی ﷺ به هميشه کولے۔

۳ – عمر ﷺ په خپل دور خلافت کښې خلق په ابی بن کعبؓ او تميم الداریؓ باندے راجمع کړی وو نو د هغه وخت نه تر نن زمانے پورے دا عمل مستمره د مسلمانانو راروان دے۔ او دا صحيح حديث دے۔ او د عدد د تراويح په باره کښې اختلاف راروان دے۔

(شرح مسلم باب الترغيب فی قيام رمضان)

۳ – قول ثالث : پدے کښې تحقيقی قول دا دے چه خشوع ته کتل پکار دی چه که د يو انسان توجه او خشوع کورکښې مانځه سره پيدا کيدله نو کورکښې افضل دی او که کور کښې انسان سُستيدو نو بيا مسجد افضل دے۔

نصيحت : ليکن دا خبره ياد لرل پکار دی چه تراويح نفلی عبادت دے او چه کله انسان عبادت زيات کوی نو د هغه په زړهٔ کښې نرمی پيدا کيږی ليکن زمونږ په مسلمانانو دا افسوس دے چه کله د تراويح مياشت راشی نو دوی په کښې جګړے شروع کړی چه شل دی او که اته دی۔ بعض ضديان پکښې وائی که چا اته رکعاته ثابت کړهٔ نو جهاز به انعام کښې ورکړو، داسے بکواس کوی۔

د عبادت چه کومه مزه وه هغه خلقو وانخسته نو دا د جګړو مسائل ندی بلکه که چا اته اُوکړے او که شل او که چا مسجد کښې اُوکړے او که کور کښې تولو دپاره دلائل شته۔

## تراویح څو رکعاته دی؟

**المسئلة الثانية** : تراويح څو رکعاته دی ؟ پدے کښې اختلاف دے سَلَفاً وخَلَفاً۔

۱- امام مالك وائی : یولس رکعاته دی۔

۲- احمدؒ شافعیؒ، ابوحنیفهٔ فرمائی : شل رکعاته دی۔ دلائل : د دوی سره قوی دلائل نشته سِوَیٰ د عمل د عُمر فاروق ﷺ نه چه هغه خلق په شلو راجمع کړیدی لکه حدیث د یزید بن خصیفه عن السائب بن یزید کښې دی : (قال : کانوا یقومون علی عهد عمر رضی الله عنه فی شهر رمضان بعشرین رکعة قال: و کانوا یقرأون بالمئین و کانوا یتوکؤن علی عصیهم فی عهد عثمان من شدة القیام (البیهقی فی السنن ٤٩٦/٢) ورجاله ثقات)

لیکن بل طرفته د عمر فاروقؓ نه په همدغه روایت د سائب بن یزید کښې په طریق د محمد بن یوسف کښې یولس رکعاته ثابت دی۔لکه روستو فصل ثالث کښې اُوګوره۔

نو شیخ البانیؒ په «صلاة التراویح »کښې وائی : روایت د یزید بن خصیفه عن السائب (د شلو رکعاتو) شاذ دے او روایت د محمد بن یوسف عن السائب محفوظ دے او بیا ئے د محمد بن یوسف روایت په درے وجو هو سره راجح کړیدے :

۱- یو دا چه محمد بن یوسف ثقه او ثَبت دے او یزید بن خصیفه صرف ثِقَه دے، بلکه په یو روایت کښې امام احمدؒ ورته منکر الحدیث هم وئیلے دے۔ او ذهبیؒ په «میزان الاعتدال» کښې راوړیدے او هغه په میزان کښې هغه راویان ذکر کوی چه کلام پکښې شوے وی لهٰذا روایت د ثقه او حجت راوی به مقدم وی په روایت د صرف ثقه باندے۔

۲- دویم دا چه یزید بن خصیفه په خپل روایت کښې په عدد د رکعاتو کښې مضطرب دے، اسماعیل بن اُمیه د هغهٔ نه نقل کوی (فقال یزید بن خصیفهٔ : حسبت ان السائب بن یزید قال : احدی وعشرین رواه عبد الرزاق) نو دا روایت مخالف شو د روایت د عشرین نه او حسبت لفظ د هغه دلالت کوی په اضطراب د هغه باندے په عدد التراویح کښې۔

۳- دریم دا چه محمد بن یوسف د سائب خورئے دے نو دا ورته په قرابت کښې نزدے دے نو دا ډیر أعرف دے په روایت د سائب باندے۔

لیکن اصح دا ده چه د یولس او شلو مینځ کښې هیڅ منافات نشته ځکه چه جائز ده چه اول ئے یولس رکعاته کړی وی او بیا ئے پکښې زیادت کړے وی۔ لکه دا خبره بیهقیؒ هم

کړیده۔ ځکه په یولسو باندے زیادت جائز دے لکه چه روستو به راشی۔ او دریمه وجه خو بالکل صحیح نۀ ده ځکه چه په باب د مصطلح الحدیث کښې دا قاعده هیچرے نشته چه د قرابت او نسب په وجه د راوی توثیق شوے وی بلکه کله اَجنبی ډیر اَحۡفَظ او اَوۡثَق وی د قریب نه دارنګه یزید بن خصیفه د سائب بن یزید وراوره دے نو دا هم د سائب قریب دے۔

لیکن راجح دا ده چه وجه د ترجیح داسے هم بیان کړے شی چه د محمد بن یوسف ډیر متابعین موجود دی لکه یحیی بن سعید القطان هم یولس نقل کړیدی اخرجه ابن ابی شیبة فی المصنف (٣٩١/٢) ـ ٢– اسماعیل بن اُمیه ٣– اُسَامه بن زید ٤– إسماعیل بن جعفر ٥– محمد بن اسحاق، دے ټولو د محمد بن یوسف نه یولس رکعاته نقل کړیدی اګرکه محمد بن اسحاق دریالس نقل کړیدی (هغه د سحر سنت هم پکښې داخل کړیدی) کما فی صلاة التراویح للشیخ الالبانی ص (٤٦) او د یزید بن خصیفه دومره متابعین نشته لهذا روایت د یولسو راجح شو په شلو باندے۔ هرکله چه تعارض اُومنو۔

مګر صحیح دا ده چه شل هم جائز دی او د یزید بن خصیفه روایت هم ګوزاره حال صحیح دے۔

٢– دلیل : حدیث د ابن عباسؓ دے : (عن ابی شیبة ابراهیم بن عثمان عن الحکم عن مقسم عن ابن عباس ان رسول الله ﷺ کان یصلی فی رمضان عشرین رکعة والوتر (اخرجه ابن ابی شیبة (٣٩٦/٢) وعبد بن حمید (٤٣/١) والطبرانی فی الکبیر (٤٨/٣) والاوسط وابن عدی فی الکامل (٢/١) والبیهقی (٤٩٦/٢) والخطیب فی الموضح (٢١٩/١) وکذا فی نصب الرایة (١٥٣/٢) والحاوی للفتاوی للسیوطی (٧٣/٢) وفتح الباری (٢٠٥/٤)

الجواب : دا حدیث ضعیف جداً دے ابوشیبه متروك الحدیث دے (تقریب) حافظ ابن حجرؒ په الفتاوی الکبری (١٩٥/١) کښې فرمائی : شدید الضعف اشتد کلام الائمة فیه لانه یروی الموضوعات۔ بیهقی وائی : (تفرد به ابوشیبة وهو ضعیف)

هیثمیؒ په مجمع الزوائد (٧٣/٢) کښې فرمائی : (ان ابا شیبة هذا ضعیف)

حافظ فتح الباری کښې فرمائی : (اسناده ضعیف) دارنګه حافظ زیلعیؒ سنداً او متناً ضعیف ګرځولے دے۔ او دا ئے وئیلی دی چه دا په اعتبار د متن سره د صحیح حدیث د عائشےؓ خلاف دے چه هغے کښې دا دی چه نبی ﷺ به په رمضان وغیره کښې په یولس رکعاتو زیادت نۀ کولو (غالباً) (متفق علیه) (نصب الرایة (١٥٣/٢)

حافظ ابن حجرؒ وائی : عائشہؓ د نبی ﷺ د شپے په حال باندے ډیره عالِمه ده د بل چا نه۔ ددے وجه نه حافظ ذهبیؒ په میزان الاعتدال کښې دا روایت د مناکیرو د ابوشیبه نه حساب

کړیدے۔ لهٰذا دا روایت ساقط دے او هیڅ قسم قابل د احتجاج نهٔ دے۔

٢- بله دا چه که د دین مزاج ته چه اُوکتلے شی نو نبی ﷺ د شپے په مانځه کښې رکعاتو نه ډیر نه دی کړی، دے دپاره چه امت باندے تخفیف راشی۔

٣- محمد بن کعب القرظیؒ فرمائی : (کان الناس یصلون فی زمان عمر بن الخطاب فی رمضان عشرین رکعة یطیلون فیها القرائة ویوترون بثلاث) قیام اللیل لابن نصر (٢٢٠) واسناده مرسل)

٤- امام مالك د یزید بن رومان نه روایت نقل کوی چه هغه فرمائی : (کان الناس یقومون فی زمان عمر بن الخطاب رضی الله عنه بثلاث وعشرین رکعة (الموطأ ٩٢) والسنن الکبریٰ (٤٩٦/٢) وشرح السنة (١٢٠/٤) وقیام اللیل (٢٢٠) وعمدة القاری (١٧٨/٧) وغیرهم)

لیکن ددے سند منقطع دے۔ یزید بن رومان ثقه دے لیکن عمر فاروق ئے ندے موندلے۔

٥- یحیی بن سعید فرمائی : (ان عمر بن الخطاب امر رجلاً ان یصلی بهم عشرین رکعة) (ابن ابی شیبة ٢٩٣/٢) لیکن دا هم د یحیی بن سعید او عمر ترمینځ منقطع دے لیکن که د ماقبل سره ملګرے شی نو یو نوع قوت پیدا کوی۔

٦- حسنؒ فرمائی : (ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه جمع الناس علی ابی بن کعب فی قیام رمضان فکان یصلی بهم عشرین رکعة) (ابوداود رقم ١٤٢٩) والذهبی فی السیر (٤٠١/١)

لیکن دا هم منقطع دے ځکه حسن بصری د عمر فاروق سره ملاقات ندے شوے۔ دویم دا چه په عامو نسخو د ابوداود کښې (عشرین لیلة) لفظ دے او بعض مقلدینو د (لیلة) په ځائے رکعة لفظ اولګولو تحریف ئے اُوکړو۔

٧- عبد العزیز بن رُفَیعؒ وائی : (کان ابی بن کعب رضی الله عنه یصلی بالناس فی رمضان بالمدینة عشرین رکعة ویوتر بثلاث) (ابن ابی شیبة (٣٩٣/٢)

دا سند قوی دے لیکن منقطع دے د عبد العزیز او ابی بن کعبؓ ترمینځ۔ او دا مرسل نهٔ دے لکه چه بعض وائی ځکه پدے باندے تعریف د مرسل نهٔ صادقیږی۔

٨- (عن علی رضی الله عنه - انه امر الذی یصلی بالناس صلاة القیام فی شهر رمضان یصلی بهم عشرین رکعة یسلم فی کل رکعتین ...... الحدیث) (مسند زید بن علی ص : ١٣٩)

لیکن مسند د زید بن علی، ابوخالد الواسطی الکوفی نقل کړیدے او هغه کذاب وضاع دے کما فی میزان الاعتدال (٢٥٧/٣) لهٰذا دا د شیعه ګانو کتاب دے او هیڅ حیثیت ئے نشته۔ ابن عدیؒ فرمائی : (عامة ما یرویه موضوعات) الکامل (١٧٧٤/٥)

٩- (عن وکیع عن نافع بن عمر قال : کان ابن ابی ملیکة یصلی بنا فی رمضان عشرین

رکعة) (ابن ابی شیبة ٣٩٣/٢) ددے سند صحیح دے لیکن دا د یو تابعی اثر دے۔
١٠- (عن ابی الحسناء عن علی رضی اللّٰه عنه انه اَمَرَ رجلاً یصلی بهم عشرین رکعة) (الجوهر النقی ٤٩٦/٢) السنن الکبری (٤٩٧/٢)
ددے رجال ثقات دی سوی د ابی الحسناء الکوفی نه چه دا مجهول دے دارنگه د ابو الحسناء او د علیؓ مینځ کښې کله یوه واسطه وی او کله دوه نو احتمال د مُعضل والی هم لری۔
١١- زید بن وهبؒ وائی : (کان ابن مسعود یصلی بنا فی شهر رمضان فینصرف وعلیه لیل قال الاعمش : وکان یصلی عشرین رکعة ویوتر بثلاث) (قیام اللیل لابن نصر ص ٢٢٠)
لیکن قول د اعمشؒ منقطع دے ځکه دے د ابن مسعودؓ سره ندے ملاؤ شوے۔
١٢- شتیر بن شکل د علی ﷺ ملګرے دے (انه کان یؤمهم فی شهر رمضان بعشرین رکعة ویوتر بثلاث) (السنن الکبری للبیهقی (٤٩٦/٢)
لیکن دا هم د یو تابعی اثر دے صرف د تائید په درجه کښې دے۔ دارنگه په سند کښې ئے عبد الله بن قیس مجهول دے کما قال النیموی۔
١٣- (عن عطاء ، قال : ادرکت الناس وهم یصلون ثلاثة وعشرین رکعة بالوتر) (ابن ابی شیبة ٣٩٣/٢) واسناده حسن کما قال النیموی فی آثار السنن)
١٤- سوید بن غفلة انه کان یؤمهم فی رمضان فیصلی خمس ترویحات عشرین رکعة) (البیهقی ٤٩٦/٢)
سوید بن غفله تابعی دے او د تابعین اقوال دلیل نۀ وی، دارنگه په سند کښې ئے ابو الخصیب زیاد بن عبد الرحمن لین الحدیث دے۔
دا آثار بعض صحیح دی او بعض ضعیف دی او بعض د تابعینو اقوال دی، ددے نه صرف دا تائید کیدے شی چه شل رکعاته تراویح جائز دی او د نبی ﷺ نه بالکل ثابتے نۀ دی البته د بعض صحابه کرامؓ نه نقل دی۔ اګرکه د هغوی نه مختلف قسم اعمال نقل دی بعضو به د وترو سره نهه دیرش کولے لکه نافع مولی ابن عمر فرمائی : (انه ادرك الناس یصلون بتسع وثلاثین رکعة ویوترون منها بثلاث) (المنتقی شرح الموطأ : ٢٦٥/١)
☆- زُرَاره بن اَبِی اَوْفیٰ ﷺ به په بَصْرَه کښې (٣٤) کولے او بیا به ئے وتر کول۔
دارنگه ترمذیؒ وائی (٤١) هم شویدی۔ او د عمر فاروق په دور خلافت کښې شل هم شویدی او یو لس هم او دیارلس هم۔ فتح الباری (٦جزء/٢٩٢)
علامه مبارکفوریؒ فرمائی : د شلو رکعاتو په باره کښې چه څو مره روایات راغلی دی هغه ټول ضعیف دی (تحفة الاحوذی ٦٠٨/٣) او دغه شان علامه ابو الحسن المبارکفوریؒ په

المرعاة (۳/ ۳۲۲) کښې ضعيف ورته وئيلی دی۔

نتيجه : لهذا ددې نه دا نتيجه راحاصله شوه چه تراويح نفل عبادت دې زيادت هم جائز دې او کم والې هم۔ د نبی ﷺ نه آته (۸) رکعاته ثابت دی او د صحابه کرامؓ نه مختلفې طريقې، نو اصلی سنت اته رکعاته دی نو بس دا أفضل دی او شل هم جائز دی د وجه د عمل د صحابه کرامؓ نه، او ديته بدعت نشي وئيلې ځکه بدعت به هله وې چه ددې په دين کښې اصل نۀ وې او حال دا چه په شريعت کښې نوافلو ته ترغيبات راغلی دی چه څوك څومره کوی اګرکه فعلی سنت د نبی ﷺ اته رکعاته دی او د زيادت نه ئې منع نۀ ده کړې بلکه ترغيب ئې ورکړې دې۔ په (من قام رمضان ايمان واحتساباً غفر له ما تقدم من ذنبه)

او نبی ﷺ په قولی حديث کښې څه حد هم ندې مقرر کړې چه بس آته شوې او زيادت ندې جائز بلکه د هغه نه پخپله هم کله نا کله په يولس او ديارلس رکعاتو زيادت ثابت دې۔ لکه احياناً به ئې د وترو نه پس دوه رکعاته په ناسته کول۔

۲- په حديث د ابن عباسؓ کښې دی چه بيا نبی ﷺ کور ته راغلو او څلور رکعاته ئې أوکړل او بيا أودۀ شو (بخاری ۲۲/۱) قيام الليل ص (۹۲) نو نبی ﷺ د ماسخوتن نه پس څلور رکعاته د خوب نه مخکښې أوکړل او بيا د شپې ئې اته رکعاته يا لس رکعاته يا دولس رکعاته أوکړل نو دې کښې زيادت د آتو نه ثابت شو۔

۳- عبد الله بن عمروؓ فرمائی : (من صلی بعد العشاء الآخرة اربع رکعات، کن کعدلهن ليلة القدر) (ابن ابی شيبة ۱/۷۲/۲) بسند صحيح (وهو فی حکم المرفوع) (الضعيفة رقم : ٥٠٦٠) (چا چه د ماسخوتن نه روستو څلور رکعاته مونځ أوکړو نو داسې به حساب شی لکه د ليلة القدر په شپه چه ئې کړی وی) ٤- په حديث د عمرو بن عبسةؓ کښې تير شويدی چه د درې مکروه أوقاتو نه ماسویٰ کښې نبی ﷺ د هر څومره نوافلو اجازت ورکړيدې (مشکوة ۹٤/۱) لهذا په اتو باندې زيادت جواز لری۔

ددې وجه نه شاه انور شاه په العرف الشذی (۱/۱۰۱) کښې ليکی : (قوله ما کان يزيد فی رمضان الخ : هذه الرواية رواية الصحيحين وفی الصحاح صلاة تراويحه عليه السلام ثمانی رکعات، وفی السنن الکبریٰ وغيره بسند ضعيف من جانب ابی شيبة فانه ضعيف اتفاقاً عشرون رکعة واما عشرون رکعة الآن انما هو سنة الخلفاء الراشدين ويکون مرفوعاً حکماً وان لم نجد اسناده قوياً) انتهیٰ

(عائشةؓ فرمائی : نبی ﷺ به په رمضان کښې د يولسو رکعاتو نه زيادت نۀ کولو الخ دا روايت د صحيحينو دې او د صحاحو په روايت کښې د نبی ﷺ تراويح اته (۸) رکعاته ذکر

دی، او په سنن کبریٰ وغیره کښې شل رکعاته دی لیکن هغهٔ ضعیف دی سنداً ځکه ابوشیبه اتفاقاً ضعیف دے، او هرچه نن صبا شل رکعاته دی نو دا د خلفاءِ راشدینو سنت دی او دا مرفوع دی حکماً اګرکه ددے هم قوی سند مونږ نهٔ دے موندلے) انتهیٰ۔

نو ګوره حنفی عالم دے اقرار کوی چه د شلو رکعاتو قوی سند نشته۔

دارنګه ابن الهمام په فتح القدیر (٤٤٨/٢) کښې تصریح کړیده چه شل رکعاته د نبی ﷺ سنت نهٔ دی بلکه دا په زمانه د عمرؓ کښې شویدی نو اته رکعاته سنت او شل مستحب دی۔ دغه شان رد المحتار (٢٩٠/١) کښې دی : چه شل رکعاته سنت د عمرؓ دی او نبی ﷺ ندی کړیدی بلکه هغه صرف اته رکعاته کړیدی۔

ایضاً (٢٩٥/٢) حاشیة البخاری لاحمد علی السهارنفوری (١٥٤/١) ونحوه فی البراهین القاطعة ص (١٨)۔

او صاحب د البحر الرائق (٦٦/٢) او صحاب مرقاة (١٩٤/٣) هم : اصل تراویح سره د وترو نه یولس ګڼړی او اته رکعاته د نبی ﷺ نه صحیح ثابت ګڼړی"۔ (انظر فتاوی الدین الخالص (٤١١/٥)

انور شاه په فیض الباری (٤٢٠/٢) کښې لیکی : (ثم ان التراویح لم یثبت مرفوعاً أزْيَد من ثلاث عشرة رکعة الا بطریق ضعیف)

(د نبی ﷺ نه د دیارلسو رکعاتو نه زیاتے تراویح نهٔ دی ثابتے مګر په ضعیفه طریقه)

طحطاوی علی مراقی الفلاح (٢٢٤) کښې دی : یولس رکعاته تراویح سنت دی او د شلو رکعاتو د نبی ﷺ نه حدیث ضعیف دے۔ انتهیٰ ملخصاً۔ نو ددے نه د هغه خلقو د قول ضعف معلوم شو چه وائی : شل رکعاتو باندے امت اتفاق کړیدے۔ او دارنګه د هغهٔ خلقو چه وائی : په اته رکعاتو باندے زیادت بدعت دے۔ فتدبر۔

**دلائل د اتو رکعاتو** : ١ – (عن ابی سلمة بن عبد الرحمن انه سأل عائشة کیف کانت صلاة رسول الله ﷺ فی رمضان ؟ فقالت : ما کان یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدی عشرة رکعة یصلی اربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم یصلی اربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم یصلی ثلاثاً (بخاری ١٥٤/١) ومسلم (٢٦٠١) وابوعوانة (٣٢٧/١) واحمد (١٠٤،٧٣/٣٦/٦) واصحاب السنن والبیهقی (٤٩٥/٢)

نو دے حدیث کښې راغلل چه نبی ﷺ به په رمضان او غیر رمضان کښې غالباً د یولس رکعاتو نه زیادت نهٔ کولو۔ پدے حدیث کښې بعض خلق چالاکی کوی چه یو تهجد دی او یو تراویح دی او دواړه د یو بل نه جُدا شے دے او دا یولس رکعاته او اته رکعاته تهجد دی او

تراویح نهٔ دی لکه دا خبره رشید احمد گنگوهی په فتاوی رشیدیه کښې ذکر کړیده. نو دا خبره غلطه ده ځکه چه مونږ وایو نبی ﷺ د ماسخوتن مانځه نه پس تر صبا پورے یولس ، او دیارلس رکعاته کړیدی سَره د وترو نه په رمضان او غیر رمضان کښې نو څوك وے د هغه نه زیات ثابت کړی چه هغه شل کړی وی. نو دا هسے فرق دے بلکه تراویح، تهجد، قیام اللیل او قیام رمضان ټول د یو شی نوم دے، او نبی ﷺ به تراویح د نصف اللیل نه پس کولے او یا د هغے نه لږ مخکښې یا د هغے نه لږ روستو. او د ماسخوتن نه روستوئے مباشرة نهٔ دی کړی اګرکه مباشرةً جائز دی. ځکه اُمت ته ئے اِجازت ورکړیدے.
بله دا چه دا قسم احادیث په تهجدو باندے حمل کول د سیاق د حدیث خلاف دی ځکه دلته ابوسلمهٔ د عائشهٔ نه په رمضان کښې د نبی ﷺ د شپے د مانځه تپوس کړیدے. نو معلومه شوه چه دا تپوس د تراویح په باره کښې دے. نو که دا حدیث بیان د تراویح اُونکړی نو بیا خو به جواب موافق د سوال نهٔ وی.
۲- دلیل : جابر بن عبد الله رضی الله عنه فرمائی : (صلی بنا رسول الله ﷺ فی شهر رمضان ثمان رکعات واوتر، فلما کانت القابلة اجتمعنا فی المسجد ورَجَوْنَا ان یخرج فلم نزل فیه حتی اصبحنا ثم دخلنا فقلنا یارسول الله ! اجتمعنا البارحة فی المسجد ورجونا ان تصلی بنا فقال : انی خشیت ان یکتب علیکم) (تفرد به یعقوب وهو ثقة) (اخرجه الطبرانی فی الصغیر ص: ۱۹۰) وابن نصر فی قیام اللیل (۲۱۷) وابن حبان (۱٦۹/٦) وابن خزیمة (۱۳۸/۲) کما فی الفتح (۱۰/۳) عنه وفی التلخیص (۱۱۹/۱) واشار الی تقویته (ومسند ابی یعلی (۳۷٦/۲)
(ددے په سند کښې عیسیٰ بن جاریه د جمهورو په نیز ثقه دے او ذهبیؒ په میزان الاعتدال (۳۱۱/۳) کښې وائی : (اسناده وَسَط). زیلعیؒ پرے سکوت کړیدے (نصب الرایة (۱۱٤/۲-۱۵۲۲) او عینیؒ پدے حدیث باندے استدلال کړیدے په جواز د اته رکعاتو. (عمدة القاری ۱۷۷/۷) او ددے حدیث تائید مخکښې په حدیث د عائشهٔ کښې هم راغلو.
۳- دلیل : جابر بن عبد الله رضی الله عنه فرمائی : ابی بن کعبؓ نبی ﷺ ته راغلو وے فرمایل : یارسول الله ! ما نه بیګاه شپه په رمضان کښې یو کار اُوشو. نبی ﷺ اُوفرمایل : څه اُوشو ابے اُبی؟ . هغه اُووئیل : زمونږ د کور زنانو اُووئیل : مونږ تا سره مونځ کوو . نو ما هغوی ته اته رکعاته اُوکړل. بیا مے وتر اُوکړل. نو هغه فرمائی : نبی ﷺ هیڅ وُنهٔ وئیل نو دا د رضا مشابه شو. (قیام اللیل ص ۲۱۷) ورجاله ثقات غیر عبد الاعلی بن حماد الفرسی قال الحافظ فی التقریب : لابأس به من کبار العاشرة وفی اسناده عیسی بن جاریة وقال الالبانی یحتمل التحسین وقال الهیثمی فی المجمع (۷٤/۲) واسناده حسن) فالحدیث لا ینحط عن

درجة الحسن لغيره ويؤيده الاحاديث الصحيحة من فعل النبی)
٤- **دليل** : (عن محمد بن يوسف ان السائب بن يزيد اخبره ان عمر جمع الناس علی ابی وتميم فكانا يصليان احدیٰ عشرة يقرء ان بالمئين يعنی فی رمضان) (ابن ابی شيبة ٣٩١/٢) واخرجه مالك (٩٨) والبيهقی (٤٩٦/٢) وابوبكر النيسابوری فی الفوائد (١٣٥/١) وقيام الليل (٢٢٠) وسنده صحيح)
(عمر فاروق په ابی بن كعب او تميم داری باندے خلق راجمع كړل نو دوی دواړو به يولس ركعاته مونځ كولو چه سلګونو آيتونه به ئے لوستل)
دا بالكل صفا صحيح حديث دے ځكه سائب وړوكے صحابی دے او محمد بن يوسف ثقه حجة دے او يحيی بن سعيد القطان خو معروف امام دے۔ نو د عمر فاروق په زمانه كښې اته ركعاته شويدی او درے وتر۔او دا روايت قوی دے د شلو ركعاتو والا روايت نه لكه چه مخكښې تير شو۔لهذا محققين د ځلورو مذاهبو فرمائی چه د نبی ﷺ نه صرف اته ركعاته ثابت دی۔(شرح مختصر الخليل للخرشی ٣٢٨/٤) فصل فی بيان صلاة النافلة)
**خلاصه** دا شوه چه نبی ﷺ نه قولاً تحديد د ركعاتو په تراويح كښې ندے نقل چه هغه وئيلی وی چه دومره شوے او نۀ به زيادت كولے شی او نۀ نقصان لكه دا خبره عامو علماؤ كړيده (انظر توضيح الكلام ٢٠٢/٢ ) وطرح التثريب ٣١١/٣ ) ومجموع الفتاوی ٢٧٢/٢/٢ )
او فعل د نبی عليه السلام اته ركعاته وو او اجازه ئے د زيادت وركړيده نو شل او شپږ ديرش او ځلويښت ركعاته جائز دی۔خو د هغه چا دپاره چه اته ركعاتو ته سنت وائی او رمضان د عبادتونو مياشت ده نو چه څومره بنائسته مونځ انسان كولے شی او زيات كولے شی نو كوی دے ئے هيڅ مانع نشته۔
**ليكن** دے سره دا خبره ياد ساتل پكار دی چه دا نن صبا مساجدو كښې چه كومے تراويح كولے شی چه د نهه ويشت (٢٩) ركعاتو نه په نيمه ګينټه كښې ځان خلاص كړی نو دا سو چه بدعت دے داسے يوه تراوَه هم نشته پاتے لا اته او شل دا د قرآن او مسجد او مونځ پورے خندا ده۔ ددے نه نۀ كول بهتر دی۔انظر ايضاً سبل السلام (٢٦٨/٢)
او كوم صحابه كرامؓ چه به شل ركعاته كول نو هغوی به د پيشنمی پورے كول، او د اُوګدو اُودريدو په وجه به ئے په آمسا ګانو باندے تكيه وهله۔ نو مقلدين خو دے د دغه صحابه كرامؓ عمل بالكل نۀ پيش كوی ځكه چه دوی د هغوی په شان شل ركعاته بالكل نۀ كوی۔
**بيا كوم** خلق چه دا وائی چه په شلو ركعاتو باندے اجماع د اُمت شويده د زمانے عمرؓ

نـه لهذا دا افـضـل دی نـو دا خبـره مـردوده ده ځکه چه تا مخکښ اُوپیژندل چه په صحیح سـند سره د عمر فاروق نه دا ثابت شو چه هغه ابی بن کعبؓ او تمیم داریؓ ته حکم په یولس رکعاتو کړے وو۔

۲- او دارنـګـه نـافـع مـولـی ابـن عـمـر فرمائی : ما خلق (صحابه کرامؓ) موندلی دی چه هغوی به نهه دیرش (۳۹) رکعاته کول درے به ئے پکښ وتر کول۔

او دا قـول امام مـالك غـوره کړیدے۔ (الـمـنـتـقـی شـرح الـمـوطأ ١/٢٦٥) عمدة القاری ١٥٨/١٧ باب فضل من قام رمضان)

امام مالك وائی : (وعلی هذا العمل بالمدینة قبل الحرة منذ بضع ومائة سنة)۔

۳- او مشهور روایت د امام مالك نه دا دے چه (٤٦) تراویح او درے وتر به کوی۔

٤- او زُراره بن ابی اوفیؒ به (٣٤) تراویح کولے۔ کما مرّ

٥- او سعید بن جبیرؒ به (٢٤) یا (١٦) رکعاته علاوه د وترو نه کول۔

(فتح الباری (٢٩٣/٦)

٦- عینی لیکی : ابـن عبـد البرّ په الاستذکار کښ د اَسود بن یزید نه نقل کړیدی چه هغه به (٤٠) تراویح او نهه رکعاته وتر کول۔ (تحفة الاحوذی (٣٤٩/٢)

۷- امام شافعیؒ فرمائی : ما خلق لیدلی دی چه په مکه کښ به ئے (۲۳) او په مدینه کښ به ئے (۳۹) رکعاته کول او پدے تولو کښ فراخی ده۔(فتح الباری)

۸- ابن سیرینؒ فرمائی : معاذ ابوحلیمة القاری به په رمضان کښ خلقو ته (٤١) رکعاته کول۔

۹- ابن ابی ذئبؒ نه نقل دی چه صالح مولی التؤمة فرمائی : (ادرکت الناس قبل الحرة یقومون باحدی واربعین یوترون منها بخمس) قیام اللیل لابن نصر (تحفة الاحوذی ٣٤٩/٢)

امام ترمذیؒ وائی : دا بعض علماؤ غوره کړیدے او دا عمل د اَهل مدینه دے۔ انتهیٰ۔

او دا قول د اسحاقؒ دے۔(تحفة الاحوذی وعمدة القاری ١٢٦/١١)

نو اُوګوره کوم ځائے د اجماع دعوه صحیح ده ؟ !۔

او ددے نه دا سوال د بعض مقلدینو هم حل شو چه هغوی وائی تاسو اته رکعاته کوئ او حرمینو کښ شل رکعاته کیږی ؟ مونږ وایو چه اته رکعاته د نبی ﷺ فعلی سنت دی او اجازه ئے د زیاتـو هـم ورکړیده لهذا اتو ته به سنت وائے او که چا زیادت اُوکړو نو نوافل دی اجازت پکښ راغلے دے لیکن شل رکعاته به د حرمینو په شان کولے شی۔ مقلدین دا عمل اهـل الـحق تـه پیش کـوی لیـکـن حـرم کښ څو مره سنت طریقے عملی کیږی هغے ته نۀ

ګوری بیا وائی دا د هغوی خپل مذهب دے۔
بشهٔ تفصیل ددے مسئلے په فتاوی الدین الخالص (٤١٠/٥) تحفة الاحوذی او الجامع لاحکام الصلاة (٦٥/٣) لمحمود عبد اللطیف عویضة وغیره کښې اُوګوره۔

## الفصل الاول

١ – عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اِتَّخَذَ حُجْرَةً فِي الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيرٍ، فَصَلّٰى فِيهَا لَيَالِيَ، حَتّٰى اجْتَمَعَ عَلَيْهِ نَاسٌ، ثُمَّ فَقَدُوا صَوْتَهُ لَيْلَةً، وَظَنُّوا اَنَّهُ نَامَ، فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَتَنَحْنَحُ لِيَخْرُجَ اِلَيْهِمْ. فَقَالَ: «مَا زَالَ بِكُمُ الَّذِيْ رَأَيْتُ مِنْ صَنِيعِكُمْ، حَتّٰى خَشِيتُ اَنْ يُكْتَبَ عَلَيْكُمْ. وَلَوْ كُتِبَ عَلَيْكُمْ مَا قُمْتُمْ بِهِ فَصَلُّوْا اَيُّهَا النَّاسُ فِيْ بُيُوْتِكُمْ، فَاِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهِ اِلَّا الصَّلَاةُ الْمَكْتُوْبَةُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : زید بن ثابت ﷺ فرمائی : نبی ﷺ په مسجد کښې د بزکی (پوړ، پوزی، چټائی) نه یوه حجره (کوټنۍ) جوړه کړه په هغې کښې ئے یو څو شپے (د تراویح)مونځ اُوکړو، تردے چه خلق (صحابه کرام) ورته راجمع شی (نو بیا ئے په شریکه جماعت سره شروع کړے) تردے چه یوه شپه هغوی د رسول الله ﷺ آواز ورك کړو (یعنی هغهٔ ورته راوُنهٔ وتو) نو خلقو دا ګمان اُوکړو چه هغهٔ به اُودهٔ شوے وی، نو بعض خلق شروع شو چه نَحْنَحَهٔ (غاړے ئے تازه) کولے، دے دپاره (چه هغهٔ راښیدار شی چه) صحابه کرامو ته راښهر شی (او تراویح ورته اُوکړی) نو رسول الله ﷺ ورته (راوُوتو یا ئے د حُجرے نه اُوفرمایل یا ئے سحر کښې ورته اُوفرمایل لکه دا د بل روایت نه معلومیږی) چه ستاسو کار کوم چه ما اُولیدو په تاسو جاری وو (یعنی جماعت سره د تراویح کولو شوق همیشه شو) تردے چه ما ته دا یَره اُوشوه چه په تاسو باندے به (دا تراویح) فرض شی او کهٔ دربانډے فرض شوی وے نو بیا به دے ته (پورهٔ) نشوے اُودریدلے، (همیش والے به مو نهٔ وے کړے) لهذا اے خلقو! تاسو کورونو کښې مونځ کوئ ځکه د سړی بهترین مونځ هغهٔ دے چه په کور کښې وی، سوا د فرض مانځه نه (چه دا په مسجد کښې د جماعت سره بهتر او لازم دے) (بخاریؒ ومسلمؒ)

### تشریح : ---- د تراویح د شروع کیدو ابتداء :

کله چه رمضان میاشت داخله شوه نبی ﷺ صحابه کرامؓ ته ترغیب ورکړو په قیام رمضان باندے او ددے فضائل ئے ورته بیان کړل نو صحابه کرامؓ به ځوك مسجد ته راتلل او چا به کور کښې ځانله ځانله نوافل کول۔ یو ورځ کور نه راوُوتو، وے لیدل چه بعض خلق د

بعضو پسے ولاړ وو، تپوس ئے اوکړو دا څۀ چل دے ؟ چا جواب ورکړو چه دا بعض خلق دی چه قرآن کریم ئے نۀ دے یاد او د قاریانو پسے مونځ کوی نو نبی ﷺ غلے شو او دغه شان ئے پریخودل ـ او بعض روایاتو کښ دی وے فرمایل : (اَحۡسَنُوۡا) (ښۀ کار کوی) (قیام اللیل لابن نصر) بیا نبی ﷺ څه وخت روستو عائشےؓ ته اُوفرمایل : چه ما دپاره د حُجرے په دروازه کښ د پوزی (بزکی) نه یوه کوټه جوړه کړه نو نبی ﷺ د ماسخوتن مونځ اُوکړو او کور ته داخل شو بیا نیمه شپه راووتو او څانله ئے مونځ ئے شروع کړو نو مسجد کښ حاضر خلق هم ورسره اُودریدل نو نبی ﷺ پرے پوهه شو چه خلق راپسے اُودریدل نو قراءت ئے ورته په جهر شروع کړو ـ دغه شپه خو لاړه بله شپه له خلق خبر شو نو د اولے شپے نه زیات راغلل بیا دلته روایاتو نه مختلف دی چه آیا دا کار دوه یا درے شپے شوے وو او که یوه شپه وو ـ

لیکن یوه شپه نبی ﷺ د ماسخوتن مونځ اُوکړو او کور ته لاړو بیا د شپے راووتو ګوری چه مسجد د خلقو نه ډك دے ـ عائشهؓ فرمائی : نزدی وو چه مسجد د خلقو نه تنګ شوے وے ـ وے فرمایل : اے عائشےؓ دا څه چل دے؟ عائشےؓ اُوفرمایل : خلق ستا د وتلو انتظار کښ دی، چه تا پسے مونځ اُوکړی لکه څنګه چه پرون خلقو مونځ کړے وو ـ نبی ﷺ اُوفرمایل : دا بزکے غونډ کړه او کور ته داخل شو او صبا راووتو ـ

وے فرمایل : (والله ما بت بحمد الله غافلاً لیلتی هذه وما خفی علیّ صنیعکم ولکنی خشیت ان اخرج الیکم فتفرض علیکم) (قسم په الله ! ما بیګاه شپه الحمد لله په غفلت کښ نۀ ده تیره کړے او ستاسو دا کار هم راباندے څه مخفی نۀ وو لیکن زۀ څکه راوُنه وتم چه په تاسو باندے فرض نشی) ـ

(شرح بلوغ المرام للشیخ عطیة سالم ١٥/٢) ونصب الرایة (٢٢٨/٣)

او پدے موقعه کښ نبی ﷺ صحابه کرامو ته اته رکعاته اُوکړل لکه چه مخکښ په روایت د جابر بن عبد الله کښ تیر شو ـ

حُجۡرَةً : اعتکاف دپاره مسجد کښ کوټه جوړول چه د خلقو نه په کښ جُدا وی او دے دپاره چه نظر ئے محفوظ وی، زړۀ فارغه وی، توجه هر طرفته نۀ بدلیږی ـ ښۀ کار دے ـ کله چه نورو مونځ کونکو ته پکښ تکلیف نۀ وی ـ حرمینو کښ تکلیف جوړوی ـ

یَتَنَحۡنَحُ : دے نه دا حاصلیږی چه څوك د چا د خبرولو یا اِجازت طلب کولو دپاره غاړۀ تازه کول جائز دی ـ

فَقَالَ: دا ئے په سحر مانځه کښ وئیلی وو ـ لکه د بل روایت نه معلومیږی ـ

اَنۡ یُّکۡتَبَ عَلَیۡکُمۡ : سوال : دلته اشکال دا دے چه په حدیث د اسراء کښ راغلی دی چه

الله تعالى نبي ﷺ ته أوفرمايل : (هن خمس وهن خمسون لا يبدل القول لدىّ) (يعنى مونځونه پنځه شو او اجرئې د پنځوسو دے او زما قول کښې تبديلى نه راځي) نو ددے روايت نه معلوميږي چه د نورمونځونو د فرض کيدو خطره ختمه شويده۔ او دلته وائى چه تراويح مې ځکه أونکړے چه يَره ده دفرض کيدو نه؟۔

**الجواب** : ددے نه حافظ ابن حجرؒ يو څو جوابونه ورکړي دي اول جواب دا چه يَره د قيام الليل د فرض کيدو نه وه په دے معنىٰ چه په مسجد کښې د شپے د نفلو د صحت دپاره جَماعت شرط دے۔ او ديته اشاره کوى دا لفظ چه (ولو کتب عليكم ما قمتم به فصلوا ايها الناس في بيوتكم) نو په مسجد د راجمع کيدو نه ئې منع کړل۔ د وجه د دغه خطرے نه۔

۲- **جواب** : احتمال شته چه دلته د قيام الليل فرض کفايه کيدو خطره وه نه فرض عين کيدو، نو دا بيا د پنځونه نۀ زياتيږي۔ ۳- **جواب** : يا يَره ده د خاص قيام رمضان د فرض کيدو نه۔ ځکه قيام رمضان هره ورځ تول کال نۀ دے فرض بلکه صرف يوه مياشت وي۔ ليکن بيا وائى زما په نظر کښې اول جواب راجح دے۔ انتهىٰ۔

بيا دا حديث دليل دے چه، تراويح په جَمع او اِنفرادي دواړو طريقو سره سنت عمل دے۔

**فَإِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ**: دا حديث دليل دے چه نوافل اګرکه قيام رمضان وي په کور کښې بهتر دي ليکن که مسجد کښې ښائسته طريقے سره کيدے شوے او په کور کښې انسان کښې سُستي راتله يا أُمي دے، قرآن ورله نۀ ورځي نو هغه دپاره مسجد کښې بهتر دي ځکه تراويح د شعائرو د اِسلام نه دي لکه د عيد او استسقاء وغيره په شان نو مسجد کښې بهتر دي او کور کښې هله بهتر دي چه انسان قاري وي، دارنګه توجه ئې کور کښې زياته پيدا کيږي او ددۀ د پاتے کيدو په وجه مسجد نۀ مُعطل کيږي۔

(كما في شرح مختصر الخليل للخرشي ٤/ ٣٣٠)

**فوائد الحديث** : ۱- حديث دليل دے چه تراويح اِنفراداً او اِجتماعاً دواړه طريقو سره مستحب دي۔ کوم علماء چه وائي جماعت پکښې بدعت دے نو هغه صحيح نۀ وائى ځکه چه نبي ﷺ جماعت کړيدے او د پريښودو علت ئې يَره د فرضيت خودلے ده، او دا علت زائل شويدے نو بيرته جماعت ته خبره واپس شوه ددے وجه نه عمر فاروق صحابه کرامؓ او تابعينؒ په يو امام راجمع کړل۔ صرف په اَفضليت د جماعت کښې اِختلاف دے۔ آؤ ! څوك چه تراويح د فرضو په شان لازم ګنړي نو بيا به بدعت وي۔

۲- ددے روايت نه مذهب د ابو يوسفؒ او احمدؒ وغيره معلوميږي چه تراويح کور کښې افضل دي۔ ۳- په ځان باندے په عمل کښې تشدد نۀ دے پکار، چه نبي ﷺ يو کار نۀ وي

ضروری کړے او یو انسان ځان په تشدد کښې آچوی دا ندے پکار۔
٤- په کور کښې نوافل او سنن د مسجد نبوی نه هم ډیر افضل دی، سَره ددے نه چه هغے کښې یو فرض مونځ په یو زر دے۔ د وجه ددے حدیث نه چه نبی ﷺ فرمائی: نوافل کور کښې کوئ۔ ددے په وجه کور کښې الله خیر راولی۔
٥- دا امر د ندب او استحباب دپاره دے او د وجوب دپاره نهٔ دے۔ که چا مسجد کښې نفل او سنت اُوکړل نو هم جواز لری۔ نبی ﷺ او صحابه کرامؓ مسجد کښې هم کړیدی۔
٦- دا حکم عام دے، تولو نوافلو او سُننو ته شامل دے چه کور کښې کول ئے افضل دی لیکن ددے نه بعض مونځونه مُستثنیٰ دی۔ (١) - تحیة المسجد (٢) - رکعتی الطواف۔ ځکه دا نوافل سببی دی۔ (٣) - یا هغه نوافل چه د اسلام شعار وی لکه عید او صلاة الکسوف او صلاة الاستسقاء۔ چه دا په کور کښې افضل نهٔ دی۔
٧- نبی ﷺ تراویح کور کښې اُونکړے او مسجد ته راووتو نو ددے نه جُمهور علماؤ دا استدلال کړیدے چه تراویح په مسجد کښې اَفضل دی۔ لیکن اصح دا ده چه نبی ﷺ پدے وخت کښې په اعتکاف کښې دے او مُعتَکِف به مسجد کښې مونځونه کوی۔
دارنګه هرکله ئے چه په حُجره د حَصِیر کښې مونځ اُوکړو نو دا داسے دے لکه د کور په شان۔
یا دا چه د نبی ﷺ د بیان الجواز دپاره مسجد کښې مونځ کړیدے او د هغه دپاره په مفضول باندے عمل کولو کښې د افضل عمل اجر ملاویدو ځکه هغه داعی دے۔ والله اعلم۔
٨- حدیث نه ثابته شوه چه مَشر له پکار دی چه کله یو کار د خپل اَتباعو خلاف عادت اُوکړی نو هغوی ته عذر او حکمت بیان کړی۔
٩- د نبی ﷺ څومره شفقت دے په اُمت باندے چه د فرضیت د ویرے په وجه ئے تراویح په جماعت سره پریخودے۔
١٠- بعض مصالح د خوف د مَفسَدَتُ په وجه پریخودل جائز دی۔
١١- اَهَمُّ الْمَصْلَحَتَيْن اختیارول پکار دی۔ یعنی په دوه مُهمو کارونو کښې ډیر اَهَم مخکښې کول پکار دی۔
١٢- دلته نبی ﷺ د صحابه کرامؓ د امامتئ نیت نهٔ وو کړے او بغیر د نیت نه جماعت جوړ شو نو دے نه دا فائده معلومه شوه چه د امام او د مقتدی نیت کښې یو والے ضروری نهٔ دے۔ او اقتداء د مُفترِض د مُتنفل پسے بالکل جائز ده۔

---

٢- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُرَغِّبُ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَّأْمُرَهُمْ

فِيهِ بِعَزِيْمَةٍ، فَيَقُوْلُ: «مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَالْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ، ثُمَّ كَانَ الْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِيْ خِلَافَةِ اَبِيْ بَكْرٍ، وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلٰى ذٰلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ......................................

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به د رمضان په قيام (الليل، تراويح کولو کښې) ډير ترغيب ورکولو مګر دومره وه چه هغوی ته به ئې مؤکد حکم نۀ کولو، نو هغۀ به فرمايل : « څوك چه د ايمان په وجه او د ثواب ګڼرلو په نيت د رمضان قيام (الليل، تراويح) اُوکړی نو هغۀ ته به مخکني ګناهونه اُوبخلے شي»، نو رسول الله ﷺ وفات شو او حالت همدغه شان وو، (يعني د تراويح دپاره جماعت مقرر نۀ وو، بلکه چا چه به څۀ غوختل نو د ثواب په نيت به ئې کول) بيا په خلافت د ابوبکر کښې هم دغه شان صورت وو، او د عمر فاروق په ابتدائي زمانه د خلافت کښې هم حالت همدغه شان وو۔ (مسلمؒ)

تشريح : بِعَزِيْمَةٍ : يعني د تراويحو په باره کښې ئې ترغيب ورکړو او مضبوط حکم ئې د فرضو په شان اُونکړو نو دا دليل دے چه تراويح او قيام رمضان مستحب عمل دے او فرض او واجب نۀ دے، نو ددے فرض ګڼرل بدعت دے۔ روستو فيقول الخ ددے ترغيب تفصيل دے۔

اِيْمَانًا : دے قيدونو ته فکر اُوکړه د مؤمن سرې ايمان خو د رمضان نه مخکښې وی نو څنګه بيا ايمان ذکر کوی نو يره فائده دا ده چه پدے کښې د ايمان مرتبه ښائي چه دا فضيلتونه او ثوابونه ګوره صرف ايمان والو دپاره دی نۀ د کفارو او منافقينو دپاره، د عملونو د قبليدو دارومدار په ايمان باندے دے۔

٢– دويم پدے کښې ناشنا نکته ده چه په هر مؤمن باندے لازم دی چه د رمضان د اَهميت د وجه نه به د رمضان دپاره نۀ وے ايمان راوړی او د زړۀ کيفيت به د مخکښې حالت نه بدلوی او ځان به ورته د مخکښې نه تياروی او دعاګانے به کوی لکه څنګه چه د نبی عليه السلام او سلفو دا عمل وو چه مخکښې نه به ئې فرمائيل : (اللهمّ بَارِكْ لَنَا فِيْ شَعْبَانَ وبَلِّغْنَا رَمَضَانَ) (اے الله ! مونږ رمضان ته په خير اُورسوے چه د هغے خيرونه حاصل کړو) او پدے کښې اشاره ده چه دا به په ډيره جذبه سره کوی ايمان به پرے باعث وی۔

وَاحْتِسَابًا : يعني دا عمل به د رياء او سمعت او ورزش په نيت نۀ کوی بلکه ددے اعمالو د ثواب حساب به لګوی چه په دے باندے الله دومره دومره خيرونه ورکوی نو پدے کښې اخلاص ته اشاره ده۔ او هر عمل کښې احتساب شرط دے که څوك هر عمل کوی او ثواب ئې نۀ ګڼړی او هسے د عادت په طريقه ئې کوی نو اجر ورته نۀ ملاويږی۔

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ : په روایت د احمدؒ وغیره کښې ورسره (وما تأخر) هم راغلي دے۔ (مجمع الزوائد ۱۷۵/۳) و کنز العمال ۵٤٤/۸)

یعني روستني ګناهونه هم ورسره معاف کیږي۔ او د روستنو ګناهونو معاف کیدو به معنیٰ دا ده چه الله به ددوی حفاظت اُوکړي د ګناهونو نه یا دا چه که روستو ترے کومه ګناه کیږي نو سمدست به معاف کیږي۔ بیا دلته کوم ګناهونه معاف کیدل مراد دي نو جُمهور وائي صغائر دي۔ لیکن ابن المنذرؒ وغیره وائي دا صغائر او کبائر ټولو ته شاملیږي او همدا خبره حقه ده د الله د رحمت نه بعیده نهٔ ده۔

کَانَ الْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ : یعني ددغه زمانے نه واخله تر زمانے د عمر فاروق پورے به خلقو ځانله ځانله تراویح کولے او د جماعت اهتمام به نهٔ وو بعضو به پکښې جُمعه کوله او بعضو به کور کښې کول او بعضو به مسجد کښې کول، بعضو به په اول د شپه کښې کول او بعضو به په آخر د شپه کښې کول۔

وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ : صدر اول سرته وائي۔ بعض وائي : ددے نه مراد اول کال د خلافت د عمر فاروق دے ځکه چه د عمر خلافت په جمادي الثانیه دیارلسم (۱۳) هجري کښې وو او د تراویح په جماعت سره کیدو اهتمام په (۱٤) هجري کښې په دویم کال د خلافت د عمرؓ باندے اُوشو۔ لکه دا خبره سیوطيؒ، ابن الاثیرؒ او ابن سعدؒ کړیده۔

ددے نه معلومه شوه چه په اول امر باندے عمل کول افضل دي۔ چه یو اځے تراویح کور کښې اُوکړي خو پدے شرط چه قرآن ورله ورځي او توجه ئے زیاته وي او ددهٔ په وجه مسجد نهٔ شړیږي۔ ځکه مسجد کښې کول ئے هم شعار الاسلام دے۔

---

۳– وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اِذَا قَضٰى اَحَدُكُمُ الصَّلَاةَ فِيْ مَسْجِدِهٖ، فَلْيَجْعَلْ لِبَيْتِهٖ نَصِيْبًا مِنْ صَلَاتِهٖ، فَاِنَّ اللهَ جَاعِلٌ فِيْ بَيْتِهٖ مِنْ صَلَاتِهٖ خَيْرًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «کله چه یو ستاسو په مسجد کښې (فرض) مونځ اُوکړي نو هغهٔ له پکار دي چه د خپل کور دپاره د خپل مانځه نه څهٔ حصه مقرر کړي، ځکه الله تعالیٰ ددهٔ په کور کښې ددهٔ د مانځه په وجه خیر (او برکت) راولي»۔ (مسلمؒ)

تشریح : دا حدیث دلیل دے چه کله انسان کور کښې تراویح کوي نو فرض مونځ به مسجد کښې کوي، داسے نهٔ چه کور کښې فرض او تراویح ټول اُوکړي۔

خَيْرًا: یعنی کور کښې نوافل او سنن کولو سره په دے کور کښې خیر نازلیږی، په رزقونو او عُمرونو کښې برکت پیدا کیږی، او دے کور والو ته الله توفیق او هدایت نصیب کوی، شیطانان ترے نۀ تختی۔ جنګ جګړے ختمیږی۔ ملائك ورته حاضریږی او هغه بیا دے انسان له استغفار او دعاګانے طلب کوی او برکات او سکینه نازلیږی۔

او دا حدیث مصنفؒ دے دپاره راوړو چه نوافل په کور کښې کول بهتر دی لیکن دے سره به دا خبره زدۀ کړے چه تراویح په مسجد کښې هم بهتر دی ځکه چه نبی ﷺ او صحابه کرامؓ مسجد کښې هم کړیدی، مګر قاری وغیره دپاره کور کښې افضل دی په مخکنو شرطونو۔

## الفصل الثانی

٤ - عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ، قَالَ: صُمْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَلَمْ يَقُمْ بِنَا شَيْئًا مِنَ الشَّهْرِ حَتّٰى بَقِيَ سَبْعٌ، فَقَامَ بِنَا حَتّٰى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا، فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ قَامَ بِنَا، حَتّٰى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ، فَقُلْتُ: يَارَسُوْلَ اللهِ! لَوْ نَفَّلْتَنَا قِيَامَ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ ؟ فَقَالَ: «اِنَّ الرَّجُلَ اِذَا صَلّٰى مَعَ الْاِمَامِ حَتّٰى يَنْصَرِفَ، حُسِبَ لَهٗ قِيَامُ لَيْلَةٍ»، فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا حَتّٰى بَقِيَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ، جَمَعَ اَهْلَهٗ وَنِسَاءَهٗ وَالنَّاسَ، فَقَامَ بِنَا حَتّٰى خَشِيْنَا اَنْ يَفُوْتَنَا الْفَلَاحُ. قُلْتُ: وَمَا الْفَلَاحُ ؟ قَالَ: السُّحُوْرُ. ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَى ابْنُ مَاجَه نَحْوَهٗ، اِلَّا اَنَّ التِّرْمِذِيَّ لَمْ يَذْكُرْ: «ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا بَقِيَّةَ الشَّهْرِ».

ترجمه : او ابوذر ﷺ فرمائی : مونږ د رسول الله ﷺ سره (په رمضان کښې) روژه اُونیوله، نو هغۀ د میاشتے په اکثرو ورځو کښې زمونږ سره قیام اُونۀ کړو (یعنی مونږ سره ئے د فرضو نه علاوه نور مونځ اُونکړو) تردے چه کله اُووه ورځے پاتے شوے (یعنی درویشتمه شپه راغله) نو هغۀ مونږ سره د دریمے حصے د شپے پورے اُودریدو (یعنی مونږ ته ئے د تراویح مونځ اُوکړو) کله چه شپږ شپے باقی پاتے شوے (یعنی څلیریشتمه شپه شوه) نو نبی ﷺ قیام اُونۀ کړو بیا چه کله پنځه شپے باقی پاتے شوے (یعنی پنځه ویشتمه شپه شوه) نو مونږ سره ئے نیمے شپے پورے قیام اُوکړو، نو ما عرض اُوکړو چه یارسول الله ! کاش چه تا د شپے قیام نور زیات کړے وے (یعنی کۀ د نیمائی شپے نه دے زیات مونځ کړے وے نو ډیره به ښۀ وه) وے فرمایل : «کله چه یو شخص د امام سره مونځ

اُوکړی تردے چه هغهٔ (امام) واپس شی۔ (یعنی د اِمام د فراغت پورے اِمام سره شامل وی) نو هغهٔ له د ټولے شپے د عبادت ثواب لیکلے کیږی۔ کله چه څلور شپے پاتے شوے (د باقی شپو نه یعنی شپږ ویشتمه شپه شوه) نو مونږ سره ئے قیام اُونکړو تردے چه دریمه حصه د شپے پاتے شوه (او مونږ د هغهٔ په انتظار کښ وو چه اُوس به راوځی او مونځ به راته کوی) کله چه درے شپے باقی پاتے شوے (یعنی اُووه ویشتمه شپه راغله) نو رسول الله ﷺ خپل کور والا، زنانه، ماشوم او نور خلق راجمع کړل او مونږ سره ئے قیام اُوکړو (یعنی ټوله شپه ئے مونږ ته مونځ اُوکړو) تردے چه مونږته دا خطره اُوشوه چه چرته فلاح زمونږ نه فوت نهٔ شی۔ راوی وائی چه ما تپوس اُوکړو: فلاح څهٔ شے دے؟ ابوذرؓ اُوفرمایل: پیشمنے کول دی، بیا رسول الله ﷺ مونږ سره د میاشتے په باقی شپو (اته ویشتمه او نهه ویشتمه شپه) کښ قیام اُونهٔ کړو۔ (ابوداوُدؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ) او ابن ماجهٔ ددے په شان روایت نقل کړے دے مګر ترمذی پکښ «ثم لم یقم بنا بقیة الشهر» الفاظ نهٔ دی ذکر کړی۔

**تشریح**: یعنی نبی ﷺ درویشت شپے صحابه کرامؓ ته تراویح اُونکړے بلکه هر سړی به ځانله ځانله کړلے او بیا په درویشتمه شپه صحابه کرامؓ ته اُودریدو او هغه هم په دے طریقه چه نبی ﷺ په تهجدو اُودریدو په خپله کوټه د بزکی کښ نو صحابه کرام وریسے اُودریدل او د مخکښ نه پروګرام نهٔ وو نو بس جماعت ترے جوړ شو او د مخکښ نه اهتمام د جمعے نهٔ وو۔

**ثُلُثُ اللَّيْلِ**: یعنی په اوله شپه کښ ئے تراویح اُوکړے، د ماسخوتن نه تر ثلث اللیل پورے ولاړ وو لکه دا ظاهر ددے حدیث دے نو ددے نه بیا دا ثابته شوه چه نبی ﷺ ماسخوتن کښ هم تراویح کړیدی۔ یا معنیٰ دا ده چه د ثلث اللیل په اَندازه تراویح ئے اُوکړے۔

او بله شپه نیمائی شپه او په بله شپه تر پیشمنی پورے۔ او په روستنو شپو کښ ئے قیام زیات کړو یو خو د صحابه کرامؓ درخواست وو او بل اُووه ویشتمه شپه دلیلة القدر ده نو ځکه ئے اهل هم راجمع کړل۔ او عرب ددے شپے ډیر اهتمام کوی۔ او بیا ئے په تاک شپو کښ عبادت اُوکړو ځکه دا د لیلة القدر شپے دی۔

**السَّادِسَةُ**: د عربو عادت دا دے چه کله میاشت شلو ته اُورسی نو بیا د آخر طرف نه حساب کوی نو دلته د السادسة نه مراد دا دے چه شپږ شپے پاتے شوے یعنی څلیریشتمه شپه شوه۔ او دا حساب پدے طریقه دے چه دوی د آخری دریشتمے شپے نه حساب شروع کړیدے تر اُووه شپو پورے نو د هغهٔ دیرشتمے نه چه حساب شروع کړے نو شپږمه شپه څلیریشتمه راځی۔

لَوْ نَفَّلْتَنَا : يعني كه تا مونږ ته زياتي كړې وې قيام الليل ددې شپې. نو ډير به ښه وې. يا لو تمنائيه دې نو جزاء نۀ غواړي.يعني اَرمان دې چه تا مونږ ته ددې شپې تراويح زياتي كړې وې. تراويح ته ئې نفل اُووئيل ځكه چه د فرضو نه زائد شي ته نفل وائي. او دا هم د فرضو نه زياتي دي. د صحابه كرامؓ شوق ته اُوګوره نيمه شپه عبادت ئې ورته اُوكړو او د نورو شوق هم لري، زړونه ئې ډير صفا وو.

اِنَّ الرَّجُلَ : دا ورته نبي ﷺ فضيلت د تراويح بيان كړو چه څوك د امام سره تراويح اُوكړي تر فراغت د هغه پورې نو دۀ دپاره الله د پوره شپې ثواب د قيام الليل ليكي.

بيا پدې كښې دوه معاني دي ١ – يو دا چه ددې نه مراد فرض مونځ دې يعني چا چه د ماسخوتن مونځ د امام سره اُوكړو نو د فرضو په مقدار د قيام الليل ثواب ورته ملاويږي.

٢– دويمه معنىٰ : ددې نه مراد تراويح دي يعني څوك چه د امام سره تراويح اُوكړي نو دۀ له د ټولې شپې د نوافلو اَجر وركولے شي.او دا معنىٰ ظاهره ده لكه چه په بل روايت د ترمذي كښې دي : (من قام مع الامام) نو قيام لفظ دليل دې چه ددې نه مراد تراويح او قيام الليل دي. بله دا چه ددې الفاظو نه معلوميږي چه انصراف (ګرزيدل) د امام نه ممكن دې او په فرائضو كښې خو د امام نه انصراف ممكن نۀ دې. ځكه جماعت خو فرض دې. لهذا ددې نه مراد تراويح دي.فتدبر.

فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ : ددې نه مراد شپږويشتمه شپه ده.

حَتّٰى بَقِيَ ثُلُثُ اللَّيْلِ : دلته په مصابيح او مشكوة كښې خطائي ده دا لفظ په مصابيح كښې داسې دې (لم يقم بنا حتى بقى ثلاث) او په مشكوٰة كښې ورسره (الليل) لفظ زيات شويدې نو دا خطائي ده، اصل كښې دا دوه روايتونه په يو بل كښې مندرج شويدي دا لفظ په ابوداود كښې نشته صرف هلته داسې دي : (فلما كانت الرابعة لم يقم).

په روايت د ترمذيؒ كښې دي : (ثُمَّ لم يُصَلِّ بنا حتى بقى ثلث من الشهر) . او نسائي كښې دي : (ثم لم يصل بنا ولم يقم حتى بقى ثلث من الشهر).

نو امام بغويؒ دا نيمائي لفظ د ترمذي او نسائي نه راخستے دے او دلته په روايت د ابوداود كښې ئې يو ځائے كړيدے او د (من الشهر) لفظ ئې هم اُوغورزولو او بيا په مشكوٰة كښې دهغے په ځائے ئې (الليل) لفظ ذكر كړو.نو دا خطائي ده. او عام شراحو ديته توجه نۀ ده وركړې.

حال دا چه معنىٰ دا ده : په شپږويشتمه شپه اُونۀ دريدو تردې چه درې ورځې د مياشتې پاتې شوې يعني اوويشتمه شپه شوه نو پدې كښې اُودريدو او پدې شپه ئې اُوګد قيام كړيدے دا دليل دے چه دا په ټولو شپو كښې ډيره افضله ده.

قِيَامُ لَيْلَةٍ : ددے نه جمهور استدلال کوی چه تراویح په جماعت سره په مسجد کښې افضل دی دومره اجر پکښې دے، لیکن دا په حق د هغه چا کښې دے چه قاری نهٔ وی، یا کور کښې سستیږی. نو بیا په مسجد کښې افضل دی او که کور کښې ئے بناٸسته کولے نو بیا په کور کښې افضل دی او پدے کښې جمع د دلائلو ده. او نبی علیه السلام چه په کومو شپو کښې تراویحو ته راوتۀ وتو نو دا نۀ دی نقل چه صحابه کرامؓ خپل جماعت اُوکړو بلکه دوی انفرادی کړیدی، او څوك به کور ته تلی وی او څوك به مسجد کښې حصار شوی وی.

قُلْتُ: ددے قائل جبیر بن نفیرؒ دے چه د ابوذرؓ نه روایت نقل کوی.

الْفَلَاحُ : پیښنمی ته ئے فلاح (کامیابی) اُوویله ځکه چه فلاح وائی مقصد ته رسیدلو ته او څوك پیښنمے اُوکړی نو هغه ته مدد ملاوېږی په پوره کولو د روژے او په رسولو کښې خپل وخت ته. او روژه پوره کول په دنیا او آخرت کښې کامیابی ده.

السَّحُوْرُ : دا په فتحه د سین سره هغه خوراك څكاك ته وائی چه چربانګ وخت کښې د صبا د راختلو نه لږ مخکښې کولے شی. او په ضمه د سین سره مصدر دے، پیښنمے کولو ته وائی.

بَقِيَّةَ الشَّهْرِ: ددے نه مراد اته ویشتمه او نهه ویشتمه شپه ده.

سوال : په صحیحینو کښې د حدیث د عائشےؓ نه معلومیږی چه د نبی ﷺ مونځ په رمضان کښې د جمعے سره متصلو شپو کښې وو او ددے حدیث د ابوذرؓ نه معلومه شوه چه جدا جدا (تاکو) شپو کښې وو؟. الجواب : بعض وائی : دا مختلف واقعے دی.

او بعض وائی : په حدیث د عائشےؓ کښې صراحةً وصل ندے راغلے بلکه اختصاراً ئے وئیلی دی چه اوله او دویمه او دریمه شپه کښې ئے مونځ اُوکړو. یعنی درے شپے مونځ اُوشو. نو هغه محمول دی په فصل باندے لکه ددے حدیث د ابوذرؓ په شان. وهو الراجح.

---

٥– وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: فَقَدْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لَيْلَةً، فَإِذَا هُوَ بِالْبَقِيْعِ، فَقَالَ: «أَكُنْتِ تَخَافِيْنَ أَنْ يَّحِيْفَ اللهُ عَلَيْكِ وَرَسُوْلُهُ؟» قُلْتُ: يَارَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ ظَنَنْتُ أَنَّكَ أَتَيْتَ بَعْضَ نِسَائِكَ. فَقَالَ: «إِنَّ اللهَ تَعَالٰى يَنْزِلُ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، فَيَغْفِرُ لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ غَنَمِ كَلْبٍ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه. وَزَادَ رَزِيْنٌ: «مِمَّنِ اسْتَحَقَّ النَّارَ». وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا– يَعْنِي الْبُخَارِيَّ– يُضَعِّفُ هٰذَا الْحَدِيْثَ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی: ما یوه شپه رسول الله ﷺ په بستره اُونهٔ

مونـدلـو (كله چه ما تلاش كړو) نو ناځاپه هغهٔ په بقيع كښې موجود وو (زهٔ ئې چه اُوليدم) وې فرمايل : «آيا تهٔ ددې خبرې نه يَرېږې چه الله او د هغهٔ رسول به په تا باندې ظلم اُوكړى ؟» ما عرض اُوكړو چه يارسول الله ما گمان اُوكړو چه تهٔ به خپلې كومې بى بى خوا ته راغلې ئې. هغهٔ اُوفرمايل : «الله تعالىٰ د شعبان د مياشتې په نيمائى (پنځلسمه) شپه كښې آسمان د دنيا ته ته راكوزيږى او د كلب قبيلې د گډو بزو د ويښتو نه زيات تعداد كښې بخنه كوى ». (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) امام ترمذیؒ فرمائى : ما د محمد يعنى امام بخارىؒ نه آوريدلى دى چه دې حديث ته ئې ضعيف وئيلو.

## د پنځلسى فضيلت

تشريح : پدې حديث كښې د ليلة النصف من شعبان (پنځلسى) فضيلت راغلو نو دا قانون زدهٔ كړه چه د پنځلسى د روژو فضائل يا د مانځه فضائلو په باره كښې هيڅ قسم حديث ندې ثابت، ټول موضوعى يا ضعيف دى. او هرچه د پنځلسى په شپه باندې د الله آسمان د دنيا ته راكوزيدل او ټولو انسانانو ته بخنه كول سِوىٰ د مشرك او بُغضى نه.

نو شيخ البانىؒ وائى زما په نيز دا حديث صحيح دې ځكه دا د صحابه كرامؓ د يو جماعت نه ثابت دې، سره د اختلاف د الفاظو نه، او په هر سند كښې څهٔ نا څه كلام دې ليكن داسې كلام نشته چه هغه دا حديث بالكل ساقط كړى. لهذا دغه يو حديث ثابت دې. باقى ټول ضعيف او موضوع دى. (تحريم آلات الطرب ص (٢٥) ظلال الجنة (١٦٤/١رقم الباب ١٠٦) صحيح الترغيب والترهيب (٣٣/٣) الصحيحة (١٣٥/٣)

لهذا پدې شپه باندې د رزقونو د فراخوالى خبره يا داسې رواجونه كول چه خپل خپلوان پدې شپه راغوختې شى او هغوى له دعوتونه كولې شى او پدې شپه كښې اُورونه آسمان ته پورته كول (يعنى غونډسكې ويشتل) او يا په مساجدو كښې لالټينونه او شمعې بلول او يا ډير راډونه لگول په نيت د ثواب باندې دا ټول بدعات او منكرات دى لكه بعض د هغې نه ابن امير الحاجؒ په المدخل (٣٠٨/١) كښې او شيخ البانىؒ په الثمر المستطاب (٥٩٨/١) كښې او ابوشامهؒ په الباعث على انكار البدع والحوادث ص (٢٢،٢٣) كښې ذكر كړيدى. او لږ روستو ئې نور تفصيل راروان دې.

يَحِيْفَ : يعنى الله او رسول به په تا ظلم اُوكړى چه ستا نمبر به زهٔ بلې بى بى له وركوم.

غَنَمِ كَلْبٍ : د كلب قبيله ئې خاص كړه ځكه چه د دوى گډې بزې زياتې وې.

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه احمد (٢٣٨/٦) والترمذى (٧٣٩) وابن ماجه

(١٣٨٩) منقطع بين يحيى بن ابى كثير وعروة وبين الحجاج ويحيى ـ وصحيح بلفظ آخر: يطلع الله الى جميع خلقه وفى رواية ينزل ربنا الى سماء الدنيا ليلة النصف من شعبان فيغفر لجميع خلقه الا لمشرك او مشاحن (اى المبتدع المفارق للجماعة) (طبرانى فى الاوسط وابن حبان فى صحيحه والبيهقى) (صحيح الترغيب ٣٣/٣) والصحيحة (١٣٥/٣) بسند حسن صحيح)

٦- وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «صَلاةُ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهٖ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهٖ فِيْ مَسْجِدِيْ هٰذَا، اِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او زيد بن ثابت ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « د سړي مونځ په خپل كور كښې د هغهٔ مونځ نه زيات بهتر دے چه زما په مسجد (يعنى مسجد نبوى) كښې اُوكړے شي، سوا د فرض مونځ نه (چه هغهٔ په مسجد كښې افضل دے) (ابوداوٗد، ترمذيؒ)

تشريح : يعنى فرض په مسجد كښې اَفضل دے او نوافل او سنن په كور كښې افضل دي، وجه دا ده چه په دے كښې اخفاء فى العمل راځي او عمل چه څومره پټ وي نو الله ته خوښ وي. دويم په دے كښې رياء نهٔ راځي، دريم په دے سره په كور كښې خير راځي لكه مخكښې ئے تفصيل تير شو.

او فرائض چونكه د اسلام د شعائرو د ښكاره كولو دپاره دي او د دين د اقامت دپاره دي نو په مسجد كښې په ښكاره طور كول افضل دي. او ددے حديث تشريح بار بار ذكر شويده.

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (١٠٤٤) وفى عزوه للترمذى بهذا اللفظ نظر.

## الفصل الثالث

٧- عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدٍ، الْقَارِيِّ، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ لَيْلَةً اِلَى الْمَسْجِدِ، فَاِذَا النَّاسُ أَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُوْنَ، يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهٖ، وَيُصَلِّي الرَّجُلُ فَيُصَلِّيْ بِصَلَاتِهِ الرَّهْطُ، فَقَالَ عُمَرُ: اِنِّيْ لَوْ جَمَعْتُ هٰؤُلَاءِ عَلٰى قَارِئٍ وَاحِدٍ لَكَانَ أَمْثَلَ، ثُمَّ عَزَمَ، فَجَمَعَهُمْ عَلٰى اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: ثُمَّ خَرَجْتُ مَعَهٗ لَيْلَةً أُخْرٰى، وَالنَّاسُ يُصَلُّوْنَ بِصَلَاةِ قَارِئِهِمْ. قَالَ عُمَرُ: نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هٰذِهٖ، وَالَّتِيْ تَنَامُوْنَ عَنْهَا أَفْضَلُ مِنَ الَّتِيْ تَقُوْمُوْنَ - يُرِيْدُ آخِرَ اللَّيْلِ -، وَكَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ اَوَّلَهٗ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : عبد الرحمن بن عبد القاريؒ فرمائي: زۀ يوه شپه (په رمضان کښې) د عمر بن خطاب ﷛ سره مسجد طرف ته اُووتلم، نو څۀ ګورم چه خلق متفرق او خوارۀ وارۀ دي، يو سړے خپل ځان له مونځ کوي او بعض داسے مونځ کوي چه څو کسان د هغۀ پسے ولاړ دي (يعنې څۀ کسان يواځے تراويح کوي او څه کسان جماعت سره کوي، عمر فاروق چه دا صورت اُوليدلو) وے فرمايل : کۀ زۀ دا خلق په يو قاري باندے راجمع کړم نو ډيره بهتره به وي۔ بيا عمر فاروقؓ ددے خبرے اراده اُوکړه او ټول خلق ئے په ابي بن کعب ﷛ باندے راجمع کړل۔ عبد الرحمنؒ فرمائي : بيا زۀ د هغۀ سره په بله شپه اُووتلم چه خلق د خپل قاري (ابي بن کعبؓ) پسے مونځ کوي، نو (دے ليدو سره) عمر فاروق اُوفرمايل : "دا ډير ښۀ بدعت دے"۔ او هغۀ مونځ چه تاسو ترے اُودۀ پاتے کيږئ ډير بهتر دے د هغۀ مونځ نه چه تاسو هغے ته اُودريږئ يعنې د عمرؓ اراده وه چه د آخر د شپے مونځ ډير بهتر دے او خلق به په اول د شپه کښې اُودريدل۔ (بخاريؒ)

تعارف د عبد الرحمن بن عبد القاري : عبد الرحمن بن عبد القاري چه د قاره بن ديش مشهورے قبيلے نه دے۔ او عبد باندے تنوين دے۔ دا په زمانه د رسول الله ﷺ کښې پيدا شويدے خو نه ئے هغه ليدلے دے او نه ئے ترے احاديث آوريدلي دي۔ بعض وائي : وړوکوالي کښې پيغمبر ته راوستے شو او امام عجليؒ په ثقات التابعين کښې ذکر کړيدے۔ واقديؒ کله وائي صحابي دے او کله وائي تابعي دے۔ مشهوره دا ده چه دا د عظيم الشان تابعينو د مدينے نه دے او د عمر فاروق په بيت المال باندے ګورنر (وزير خزانه) وو۔ په (٨٨ هـ) کښې د (٧٨) کالو په عمر وفات شويدے۔

تشريح : لَيْلَةً : يعنې په رمضان کښې زۀ د عمر فاروقؓ سره يوه شپه اُووتلم نو خلق په مسجد کښې مختلف وو۔ دا دليل دے چه صحابه کرامؓ به تراويح او تهجدو دپاره مسجد ته هم راتلل، نو په مسجد کښې تهجد کول هم صحيح دي او پدے کښې رياء نۀ واقع کيده ځکه ټولو خلقو به کول۔ او دا ولے به مسجد ته راتلل؟ نو وجه دا وه چه د صحابه کرامؓ کورونه به تنګ وو۔ يا به نور حکمتونه وو يو دهغے نه دا چه وړے وړے جَمعے به کيدلے۔

اَوْزَاعٌ : يعني جماعات متفرقة (مختلفې ډلے وے) متفرق وو۔ ددے مفرد من لفظه نشته۔

لَوْ جَمَعْتُ : يعنې زړۀ کښې ئے اُوئيل چه که زۀ دا خلق په يو قاري راجمع کړم دا به غوره وي ځکه چه شور به نۀ وي او اختلاف او تفرق به ختم شي او جَمعه خو بدعت نۀ ده ځکه چه د نبي ﷺ په زمانه کښې به وړے وړے جمع کيدلے او دغه شان نبي ﷺ خو د جماعت نۀ کولو وجه د فرضيت خطره بيان کړے وه او هغه خو د وفات د نبي ﷺ نه روستو زائله شوه۔

فَجَمَعَهُمْ عَلٰى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ : عمر فاروق‌ؓ په څو رکعاتو راجمع کړل ؟ نو دا روستو راځي چه یولس رکعاته وو۔
او عمر فاروقؓ ورسره نهٔ په یولس رکعاتو کښې شریك دے او نهٔ په شلو کښې بلکه هغه به څانله کور کښې کولے۔ خو د خلقو د اختلاف ختمولو دپاره ئے په یو امام راجمع کړل۔او دے روایت کښې دی چه اُبيؓ باندے ئے راجمع کړل او روستو روایت کښې دی چه تمیم الداريؓ هم ورسره وو نو ددے تفصیل په روایت د سعید بن منصور کښې دے چه ابی بن کعبؓ به سړو ته مونځ کولو او تمیم الداريؓ به زنانو ته او ابن نصرؒ په قیام اللیل کښې د تمیم الداريؓ په ځائې سلیمان بن ابی حثمه ذکر کړیدے حافظ ابن حجرؒ فرمائي : شاید چه دا کار په بیل بیل وخت کښې وو۔ چه کله به تمیم الداريؓ وو او کله به سلیمان وو۔

## د نعمت البدعة هذه صحیح معنیٰ

نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هٰذِهٖ : یعنی دا خلق په یو امام راجمع کول او یوه جَمعه کول ډیره ښهٔ کارنامه ده۔ دلته د بدعت نه مراد لغوي بدعت دے یعني نوے کار او کارنامه کول۔
او بدعت شرعي نهٔ دے مراد ځکه بدعت شرعي هغه دے چه په دین کښې انسان داسے نوے کار پیدا کړي چه هغه د دین نه نهٔ وي او هیڅ اصل ئے په دین کښې نهٔ وي یا کیفیت ئے بدل کړي۔نو دا سُوچه ګمراهي ده (کل بدعة ضلالة)۔
۔ او د عمرؓ دا کار بدعت شرعي نهٔ دے ځکه چه د نبي ﷺ په زمانه کښې جماعت شویدے، خو لږ لږ۔ او عمرؓ پرے همیشه دپاره راجمع کړل۔ نو دا بدعت لغوي دے او په بدعت لغوي کښې ښهٔ او بد وي۔ نو دیته ئے ځکه ښه اُووئیلو۔
وَالَّتِيْ تَنَامُوْنَ : اُوس ترغیب ورکوي چه تراویح په آخر د شپه کښې بهترے دی۔ نو پدے کښې بیا دوه مطلبه دی یو دا چه ترغیب ورکوي چه کله مو تراویح اُوکړے نو پدے اکتفاء مهٔ کوئ بلکه تهجد هم ورسره کوئ۔
۲– یا ترغیب ورکوي چه دا مونځ د شپے کوئ او ماسخوتن کښې دومره بهتر نهٔ دی۔

---

۸– وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ، قَالَ:أَمَرَ عُمَرُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ، وَتَمِيْمًا الدَّارِيَّ أَنْ يَّقُوْمَا لِلنَّاسِ فِيْ رَمَضَانَ بِإِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً فَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ بِالْمِئِيْنَ، حَتّٰى كُنَّا نَعْتَمِدُ عَلَى الْعَصَا مِنْ طُوْلِ الْقِيَامِ، فَمَا كُنَّا نَنْصَرِفُ إِلَّا فِيْ فُرُوْعِ الْفَجْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه : او سائب بن زيد ﷺ فرمائي : عمر فاروق، اُبي بن كعب او تميم داريّ دواړو ته حكم اُوكړو چه خلقو ته په رمضان كښې يولس ركعاته (تراويح) مونځ اُوكړي، او (په هغه وخت به) قاري هغه سورتونه لوستل چه په هغې كښې سل سل آيتونه دي، تردے چه د اُوږد قيام په وجه به مونږ په آمساګانو تكيه لګوله او صبا راختلو ته نزدے به مونږ فارغيدو۔ (مالك)

تشريح : د عمر فاروقؓ، ابي بن كعبؓ او تميم داريؓ ته د حكم كولو مطلب دا وو چه يوه ورځ به يو قاري تراويح كوي او بله ورځ به بل قاري۔ يا دا چه دواړو به په يوه شپه ركعتونه تقسيمول څۀ تراويح به تميم داري اُوكړے او څۀ به اُبي بن كعبؓ اُوكړے۔

بِإِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً : يولس ركعاتو كښې اته تراويح او درے وتر دي۔

بِالْمِئِيْنَ : هغه سورتونه دي چه دوه سوه آيتونه پكښې وي۔لكه سوره توبه، هود او يونس وغيره سورتونه۔

فوائد الحديث : ١- د يو مسجد دپاره دوه امامان مقررول جائز دي۔ چه كله يو امامتي كوي او كله بل۔ ٢- يولس ركعاته د عمر فاروقؓ نه صحيح ثابت دي بلا اشكاله، او دا ئے د نبي ﷺ د عمل نه معلوم كړے دے چه هغه به د شپے په دے ركعاتونو زيادت نۀ كولو۔

اُوس شل به د هغه نه يا ثابت وي يا نه۔ بعض علماء خو وائي چه بالكل شل ندي ثابت۔ نو كه ثابت شي نو پدے شلو سره دغه يولس ركعاته ندي منسوخ شوي ځكه چه نسخ د عمرؓ په عمل نۀ ثابتيږي، نسخ د پيغمبر په الفاظو راځي۔

او د صحابيؓ په عمل د پيغمبر عمل نۀ منسوخ كيږي نو پدے كښې رد دے په هغه خلقو چه وائي : اته ركعاته تراويح منسوخ شويدي او شلو باندے د اُمت اجماع شويده۔

مونږ وايو : اول خو د اجماع دعوه غلطه ده او مخكښې د هغې بطلان تير شويدے او كه اُومنو اجماع چه اُوشوه نو پدے اجماع سره خو د پيغمبر عمل نۀ منسوخ كيږي۔ نو د پيغمبر عمل خو يولس ركعاته وو هغه سنت شو او د عمرؓ نه هم اته (٨) ثابتے دي۔ او پدے باندے زيادت په درجه د جواز كښې دے او د شلو په ثابتيدو كښې خو لا شك هم دے، خو مونږه ئے د دلائل عامه وُد وجه نه ثابتے ګڼړو۔نو شل او ديرش او څلويښت تول جائز دي۔

فُرُوْعِ الْفَجْرِ : يعني اوائل الفجر : دومره اُوګدے تراويح به كيدلے، چه د صبا د راختلو خطره به وه۔ اُوس خو تراويح نوم ګرځيدلے دے د زرزر مونځ كولو۔ بعض ضديان شلو ته ګوري ليكن دے لفظ ته سوچ نۀ كوي چه هغوى به څنګه شل كولے، او څۀ وخت به فارغه كيدل ؟۔ (د خود غرضه يوه ستركه پټه وي)۔

٩- وَعَنِ الْأَعْرَجِ، قَالَ: مَا أَدْرَكْنَا النَّاسَ إِلَّا وَهُمْ يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ فِي رَمَضَانَ قَالَ: وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ سُورَةَ الْبَقَرَةِ فِي ثَمَانِ رَكَعَاتٍ، وَإِذَا قَامَ بِهَا فِي ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً رَأَى النَّاسُ أَنَّهُ قَدْ خَفَّفَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه : او اعرج فرمائي: مونږ همیشه، خلق موندلي دي چه هغوی په رمضان کښې په کفارو باندې لعنت وئیلے دے (یعنې قنوت نازله ئے وئیلی دی) او (په هغهٔ زمانه کښې) قاری به په اته رکعاتو کښې سورة بقره لوستله او کله به ئے چه سورة البقره په دولس رکعاتو کښې اُولوستله نو خلقو به دا گمان اُوکړو چه مونځ ئے آسان اُوکړو- (مالك)-

تعارف د الاعرج : عبد الرحمن بن هرمز ابوداود المدني مولى ربيعة بن الحارث د مشاهير او ثقات التابعين نه دے، اسكندريه كښې په سنه (١١٧ هـ) كښې وفات دے-

تشريح : دا روايت هم دليل دے چه د صحابه كرامؓ په زمانه كښې به اته هم كيدلے او د اتو نه به زيادت هم كيدو كله به ئے دولس ركعاته كول- نو دا تائيد دے چه زيادت په اتو جائز دے- او اصلي سنت اته ركعاته دي-

او خلقو به د اتو په ځائے په دولس ركعاتو كښې تخفيف گنړلو ځكه چه كله ركعاتو نه زر زر خلاصه كيږي نو انسان ډير نهٔ ستړے كيږي او كله چه قراءت اُوگد شي نو انسان تنگ شي- خپے خارج شروع كړي- الْكَفَرَةَ : جمع د كافر ده-

فِي رَمَضَانَ : دا په قنوت الوتر كښې مراد دے- او دا حديث په ظاهر كښې د شوافعو دپاره دليل دے چه هغوى وائي : قنوت الوتر صرف د رمضان د نيمائي نه شروع كيږي تر آخر د رمضان پورے او په ټول كال كښې سنت نهٔ دے-

بعض علماء (حنفيه) وائي : پدے روايت كښې د قنوت الوتر ذكر نشته نو دا په صبا باندے هم صادقيږي او ممكن ده چه دلته د سحر په مانځه كښې قنوت نازله مراد وي- (طيبيؒ)-

او ملاعلي القاريؒ دا محمول كړيدے په قنوت الوتر باندے او دا ئے وئيلي دي چه كيدے شي چه دا زيادت د لعنت خاص وي په نصف اخير د رمضان پورے-

او پدے باندے جمع د احاديثو راځي نو دا منافي نهٔ دے د هغهٔ حديث سره چه د عمر فاروق نه صحيح ثابت دے چه هغه فرمائي :

(السنة اذا انتصف رمضان ان يلعن الكفرة في ركعة من الوتر بعد ما يقول القارئ سمع الله لمن حمده، ثم يقول اللهم العن الكفرة) (اسناده حسن كما قال الحافظ في التلخيص (١٢٠)-

(سنت دا ده چه کله رمضان نیمائی ته اُورسی – چه د وترو په رکعت کښې د سمع الله لمن حمده نه روستو په کفارو باندے لعنت (ښیرے) اُووئیلے شی او داسے اُووائی : اللهم اللعن الکفرة) انتهیٰ (مرقاة المفاتیح) یعنی مطلب دا دے چه د رمضان د نیمائی نه اخوا به ئے په قنوت د وترو کښې ورسره لعنت زیاتولو یعنی قنوت نازله به ئے ترے جوړولو۔ او دا خصوصیت د رمضان د نصف اخیر دے۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه مالك فی الموطأ (١/١١٥ رقم ٦) ومن طریقه عبد الرزاق والبیهقی وغیرهم۔ وصححه الالبانی۔

١٠ – عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ اَبِي يَقُوْلُ: كُنَّا نَنْصَرِفُ فِيْ رَمَضَانَ مِنَ الْقِيَامِ، فَنَسْتَعْجِلُ الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ فَوْتِ السَّحُوْرِ وَفِيْ اُخْرٰى: مَخَافَةَ الْفَجْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

ترجمه : عبد الله بن ابی بکر فرمائی : ما د خپل پلار نه اُوریدلی دی چه فرمایل ئے : مونږ به په رمضان کښې د قیام (اللیل، تراویحو) نه سلام (داسے وخت کښې) اړولو چه په خادمانو باندے به مو د طعام په راوړلو کښې جلتی کوله پدے یَره چه پیشمنے فوت نهٔ شی۔ او په یو بل روایت کښې دی : "پدے یَره چه صبا راونهٔ خیژی"۔ (مالك)۔

تعارف د عبد الله بن ابی بکر : عبد الله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم الانصاری۔ دے او دا روستو لفظ ابی دے یعنی پلار نه ئے اوریدلی دی چه هغه ابوبکر بن محمد دے او ددے نه ابی بن کعب نه دے مراد ځکه چه ابی بن کعب په (٢٢) هجری خلافت د عمر فاروق کښې وفات دے او دا عبد الله په سنه (١٣٥) کښې وفات دے دا د صغار التابعین نه دے۔

تشریح : د القیام نه مراد قیام اللیل (تراویح) مراد دی او دیته قیام ځکه اُووئیلو شو چه پدے کښې به اُوګده اُودریدل۔ اَلْخَدَمَ جمع د خادم ده۔

مَخَافَةَ : ددے او د فوت السحور منافات نشته ځکه چه سحور هم لګ شان مخکښې د صبا نه کیږی۔ نو مآل د دواړو روایتونو یو راوځی۔ بیا د صحابه کرامؓ مختلف اَحوال وو، بعض به په اول د شپه کښې اُودریدل او بعضے به په آخر کښې او بعضو به د اول نه تر آخره پورے په قیام کښې همیش والے کولو نو دا د بعض صحابه کرامؓ حال ذکر کړی۔ چه په آخر کښې د شپه کښې به ئے تراویح کولے یا هغه ځوك چه د اول نه تر آخره پورے به ئے اُوګدوالے کولو۔ او کوم چه به اول د شپه کښې اُودریدل نو هغه مخکښې په قول د عمرؓ کښې

تیر شو (والتی تنامون عنها خیر) نو هغه نور خلق مراد وو۔
ابـن عبـد البرؒ پـه الاستذکار کښې د عبد الله بن عباسؓ روایت راوړیدے چه زۀ د رمضان په میاشت کښې (یوه شپه) عمر فاروق پیشمنی کولو ته راوغوختم نو هغۀ د خلقو یو آواز واوریدو کله چه هغوی د قیام اللیل نه راوګرزیدل نو عمر فاروقؓ اُوویل : خبر دار ! هغۀ شپه چه پاتے ده ما ته ډیره محبوبه ده د هغۀ حصے نه چه کومه تیره شوے ده) ابن عبد البرؒ وائی : دا دلیل دے چه د صحابه کرامؓ قیام اللیل په اول د شپه کښې وو، بیا عمر آخر د شپه کښې اُوګرزولو نو بیا په همدغه حال باندے خبره راروانه وه تر زمانے د ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم پورے چه هغۀ وائی مونږ به په رمضان کښې د قیام اللیل نه فارغیدو سره په خادمانو باندے د پیشمنی جلتی کوله۔ (الاستذکار ٢/٦٦) باب ما جاء فی قیام رمضان)
الدرر السنیة فی الاجوبة النجدیة (٣٧٧/٤) لعلماء النجد) کښې ئے آثار د صحابه کرامؓ او تابعینو ذکر کړیدی او بیا ئے وئیلی دی چه ددے آثارو نه واضحه شوه چه صحابه کرامؓ به مونځ (په تراویحو کښې) د صبا راختلو ته قریب اُوګډولو۔ مګر د مجموعه آثارو نه دا ظاهریږی چه دا کار په بعضو شپو کښې وو، او دا احتمال هم شته چه دا په آخری عشره د رمضان کښې وی۔ لکه دا د نبی ﷺ هم طریقه وه۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه مالك فی الموطأ (١١٥/١ رقم ٧) وعبد الرزاق فی المصنف (٢٦٢/٤) رقم (٧٧٣٤) ..............................

١١ – وَعَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «هَلْ تَدْرِيْنَ مَا هٰذِهِ اللَّيْلَةُ ؟» – يَعْنِيْ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ – قَالَتْ: مَا فِيْهَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ؟ فَقَالَ: « فِيْهَا اَنْ يُّكْتَبَ كُلُّ مَوْلُوْدٍ مِنْ بَنِيْ آدَمَ فِيْ هٰذِهِ السَّنَةِ، وَفِيْهَا اَنْ يُّكْتَبَ كُلُّ هَالِكٍ مِنْ بَنِيْ آدَمَ فِيْ هٰذِهِ السَّنَةِ، وَفِيْهَا تُرْفَعُ أَعْمَالُهُمْ، وَفِيْهَا تُنْزَلُ أَرْزَاقُهُمْ. فَقَالَتْ: يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! مَا مِنْ اَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ اِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى؟ فَقَالَ: «مَا مِنْ اَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ اِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى» ثَلَاثًا. قُلْتُ: وَلَا أَنْتَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! فَوَضَعَ يَدَهٗ عَلٰى هَامَتِهٖ فَقَالَ: «وَلَا أَنَا اِلَّا أَنْ يَّتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهٖ». يَقُوْلُهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيْرِ. ______________________

ترجمه: او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ فرمایلی دی : آیا تاسو ته پته شته چه پدے شپه یعنی پنځلسمه شپه د شعبان کښې څۀ کیږی ؟ ما عرض اُوکړو : یارسول الله ! څۀ پکښې کیږی (مونږ ته خو معلوم نۀ دی تاسو ئے بیان کړئ) نبی ﷺ اُوفرمایل : « پدے کښې دا کیږی چه د بنی آدم هر بچے چه پدے کال کښې پیدا کیږی هغۀ پکښې لیکلے شی،

او پدے کښې د بنی آدم هر شخص چه وفات کیږی پدے کال کښې هغهٔ پکښې لیکلے شی، او پدے شپه کښې د بندګانو اعمال (بَره) پورته کولے شی، او پدے کښې د هغوی رزقونه رانازلیږی»۔ عائشې اُوفرمایل : یا رسول الله ! د الله د رحمت نه علاوه هیڅوك جنت ته نهٔ شی داخلیدے۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : (آؤ) هیڅ شخص هم د الله د رحمت نه بغیر جنت ته نهٔ شی داخلیدے۔ رسول الله ﷺ دا الفاظ درے کرته اُووئیل۔ ما عرض اُوکړو : او نهٔ تهٔ یارسول الله ! (یعنی تهٔ هم د الله د رحمت نه بغیر جنت ته نهٔ شے داخلیدے؟) نبی ﷺ خپل لاس مبارك په خپل سر مبارك باندے کیخودو او وے فرمایل : «او نهٔ زهٔ ! (یعنی زهٔ هم د الله د رحمت نه بغیر جنت نهٔ شم داخلیدے) مګر دا که الله تعالیٰ ما لره په خپل رحمت کښې پټ کړی »۔ دا الفاظ هم رسول الله ﷺ درے ځله اُوفرمایل۔ بیهقیؒ دا روایت په دعواتِ کبیر کښې نقل کړیدے۔

تشریح : پدے حدیث کښې چه کوم کارونه ذکر دی نو دا په شپه د لیلة القدر کښې کیږی نهٔ په لیلة النصف من شعبان کښې نو ځکه دا روایت ضعیف دے۔ اګرکه په شعبان کښې د اعمالو پورته کیدو باره کښې د نسائی وغیره حدیث صحیح دے۔

اُسامه بن زید فرمائی : ما عرض اُوکړو: (لم ارك تصوم فی شهر من الشهور ما تصوم فی شعبان، قال ذاك شهر یغفل عنه الناس بین رجب ومضر، وهو شهر ترفع فیه الاعمال الی رب العالمین، واحب ان یرفع عملی، وانا صائم) (نسائی ٢٣٥٧) وقال الالبانی اسناده حسن وصححه ابن خزیمة – تمام المنة ص (٤١٢ ) اخرجه احمد)

(زهٔ تا په نورو میاشتو کښې دومره په روژو نهٔ وینم څومره چه تهٔ په شعبان کښې روژے نیسے ؟ (ددے څهٔ سبب دے؟) نبی اُوفرمایل : دا یو داسے میاشت ده چه په رجب او مضر (رمضان) ترمینځ ده او غافل ددے نه غافله وی او دا یوه داسے میاشت ده چه رب العالمین ته پدے کښې اعمال (دبندګانو) پورته کیږی او زهٔ دا خوښوم چه زما عمل پورته کړے شی پداسے حال کښې چه زهٔ روژه داریم) او د شعبان په میاشت کښې د کال مرګو نو لیکلو باره کښې یو د عائشې دے چه علامه مبارکفوری ورته په مرعاة (٤/ ٣٤٠) حسن وئیلے دے او حسین سلیم اسدؒ په تعلیق د ابویعلیٰ او شیخ البانیؒ ورته ضعیف وئیلے دے۔

عائشهؓ فرمائی : (ان النبی ﷺ کان یصوم شعبان کله، قالت : قلت : یارسول الله ! احب الشهور الیك ان تصومه شعبان ؟ قال : ان الله یکتب فیه علی کل نفس میتة تلك السنة، فاحب ان یأتینی اجلی وانا صائم) (ابویعلی بسند حسن او ضعیف وضعیف الترغیب والترهیب رقم (٦١١)

(نبی ﷺ به ټول شعبان کښې روژے نیولے، ما اووئیل : یارسول الله ! شعبان تاسو ته د روژو

په نیولو کښې ډیر محبوب دے؟ هغۀ اوفرمایل: الله تعالیٰ پدے کښې په هر نفس باندے د دغه کال مرګ لیکی، نو زۀ دا خوښوم چه ما ته د روژے په حالت کښې مرګ راشی)

درجة الحديث : اسناده واهٍ جداً لا يجوز الاحتجاج به كما ذكر طرقه الثلاثة وضعفها الشيخ علي حشيش في سلسلة الاحاديث الواهية ص (٢٤)) ونحوه في شعب الايمان (٣٨٥/٣) رقم (٣٨٣٨) وجامع الاحاديث (مسند عائشة) للسيوطي) في سنده النضر بن كثير قال ابن حبان في المجروحين (٤٩/٣) كان النضر ممن يروى الموضوعات عن الثقات على قلة روايته) قال ابو حاتم : (فيه نظر) وقال البخاري (عنده مناكير) (ميزان الاعتدال)

---

١٢- وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ، عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، قَالَ: «اِنَّ اللهَ تَعَالٰى لَيَطَّلِعُ فِيْ لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، فَيَغْفِرُ لِجَمِيْعِ خَلْقِهٖ اِلَّا لِمُشْرِكٍ اَوْ مُشَاحِنٍ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

١٣- وَرَوَاهُ اَحْمَدُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَفِيْ رِوَايَتِهٖ: «اِلَّا اثْنَيْنِ: مُشَاحِنٍ وَقَاتِلِ نَفْسٍ».

---

ترجمه : او ابو موسی اشعری ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «الله تعالیٰ د نیمائی شعبان په شپه (پنځلسی) باندے راځکاره کیږی، نو ټول مخلوق ته بخنه کوی سویٰ د مشرك او کینه ساتونکی سره». (ابن ماجه) اوامام احمدؒ دا روایت د عبد الله بن عمرو بن العاص نه نقل کړیدے او د هغوی په روایت کښې دا الفاظ دی : چه "دوه کسانو ته بخنه نۀ کیږی کینه ساتونکے او ناحقه یو نفس قتلونکے ته".

تشریح : مُشَاحِنٍ : کینه کونکی ته وائی، یعنی بغیر د دین سبب نه چه څوك د مسلمان سره کینه او عداوت کوی نو ددے خیر نه به محروم وی.

علامه ابو الحسن مبارکفوریؒ کښې دا قسم ډیر احادیث ذکر کړیدی او بیا ئے وئیلی دی چه دا احادیث دلالت کوی په دے چه د پنځلسی شپے ډیر عظیم خطر او لوئی شان او قدر دے او دا د نورو شپو په شان نۀ ده نو مناسب دی چه ددے نه انسان غافل نۀ شی بلکه دا شپه په عبادت او دعاء او ذکر او فکر باندے آباد ول پکار دی او ددے په عبادت باندے د ژوندی کولو په باره کښې روستو یو حدیث د علی راغلے دے.

لیکن هغۀ ضعیف جداً دے. لهذا کوم خلق چه خاص همدا شپه عبادتونه کوی او په نورو شپو ئے نۀ کوی، یا فرض مونځونو کښې کوتاهی کوی او د نور واجباتو دومره اهتمام نۀ کوی او صرف دے شپے ته متوجه شوے وی نو پدے کښې شك نشته چه دا یو قبیح

عمل دے څکه چه مستحب باندے مشغول کیدل او فرائض مهمل کول لویه بے دینی او بے عقلی ده۔ دارنګه پدے شپه کښې زیارة القبور خاص کول چه په نور کال کښې ئے نهٔ کوی او صرف په همدے شپه زیارة القبور کوی دا هم سنت کښې نهٔ دی راغلی، او پدے شپه باندے بقیع ته د نبی ﷺ د وتلو باره کښې دوه حدیثونه راغلی دی۔

لیکن هغهٔ ضعیف جداً دی۔

☆ – او دارنګه پدے شپه باندے بعض عوام طعامونه په فقراؤ تقسیموی نو دا هم په هیڅ مرفوع، موقوف او صحیح او ضعیف حدیث کښې نهٔ دی راغلی، دارنګه پدے شپه باندے د روحونو د حاضریدلو عقیده ساتل او ددے د اکرام دپاره کورونه صفا کول او د هغے دیوالونه چونه کول، یا د خپل عادت نه زیاتے ډیوے او لالټینونه بلول دا (ټول) بے شکه بدعات او ضلالات دی۔

☆– ملاعلی القاریؒ لیکی : د اُورونو بلول اول برامکه ؤ راپیدا کړل دا د اُور عبادت کونکی وو کله ئے چه اسلام راوړولو نو په سلام کښې ئے د ځان نه طریقے ایجاد کړے او دا ئے دین ګڼړلو او ددوی مقصود پدے کښې د اُور عبادت کول وو او د مسلمانانو سره به ئے رکوع او سجده دغه اُورونو ته کول۔ انتهیٰ ما فی المرعاة (٣٤٢/٤)

درجة الحديث : هذا السند ضعيف وبسند آخر صحيح كما مرّ: اخرجه ابن ماجه (١٢٩٠) وفيه ابن لهيعة وقد اضطرب في اسناده وفيه انقطاع ايضاً نص على ذلك المنذرى، ولجهالة الضحاك بن ايمن الكلبي، وتدليس الوليد بن مسلم۔ واسناد احمد في المسند (١٧٦/٢) فيه ابن لهيعة ايضاً وهو لين الحديث وبقية رجاله وثقوا كما في المرعاة (٣٤٢/٣) ومجمع الزوائد (٦٥/٨) وحسنه المباركفورى في المرعاة (٣٤١/٤)

---

١٤ – وَعَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«اِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، فَقُوْمُوْا لَيْلَهَا، وَصُوْمُوْا يَوْمَهَا، فَاِنَّ اللهَ تَعَالٰى يَنْزِلُ فِيْهَا لِغُرُوْبِ الشَّمْسِ اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَقُوْلُ: اَلَا مِنْ مُسْتَغْفِرٍ فَاَغْفِرَ لَهٗ اَلَا مِنْ مُسْتَرْزِقٍ فَاَرْزُقَهٗ اَلَا مُبْتَلٍ فَاُعَافِيَهٗ اَلَا كَذَا اَلَا كَذَا حَتّٰى يَطْلُعَ الْفَجْرُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او علی ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « کله چه د نیمائی شعبان شپه راشی نو پدے شپه قیام (اللیل تهجد) اُوکړئ او ددے په ورځ کښې روژه شئ څکه الله تعالیٰ آسمان د دنیا ته د نمر په ډوبیدو سره راکوزیږی او فرمائی: آیا څوك بخښنه

غوختونکې شته چه زۀ ورته بخنه اُوکړم، آیا څوك رزق طلب کونکې شته چه زۀ ورته رزق ورکړم، آیا څوك مصیبت زدۀ شته چه زۀ هغۀ ته عافیت ورکړم، آیا څوك داسې داسې شته (یعنی دغه شان الله تعالیٰ د هر ضرورت او تکلیف نوم اخستو سره خپل بندګانو ته آوازونه کوی مثلاً فرمائی: آیا څوك غوختونکې شته چه زۀ ورته ورکړم، آیا څوك غمجن شته چه زۀ ورته خوشحالی ورکړم وغیره وغیره) تردې چه صبا راوخیژی »۔ (ابن ماجۀ)

تشریح : ددې حدیث نه دا ثابتیږی چه د پنځلسی د شپې په ورځ کښې روژه کیدل مستحب او مندوب دی لیکن دا حدیث ضعیف جداً دې قابل د عمل نۀ دې او اباحت او ندب د احکام شرعیه ؤ نه دی او په احکامو کښې په اتفاق سره په ضعیف حدیث باندې عمل کول جائز نۀ دی لکه دا خبره په خپل ځائې کښې ثابته شویده۔

او په فضائلو کښې په ضعیف حدیث باندې عمل په شرطونو جائز دې۔ او دلته یو شرط هم نۀ دې موجود ځکه چه یو خو دا حدیث شدید الضعف دې، او دا د یو معمول بۀ اصل (قاعدې) لاندې مندرج هم نۀ دې۔ او څوك چه په دې عمل کوی نو هغۀ ئې عقیده د ثبوت لری لکه څوك چه ددې ورځې روژه نیسی د هغۀ د حال نه دا ظاهریږی۔ او ددې ورځې د روژو دپاره په ایام البیض باندې استدلال کول هم صحیح نۀ دی ځکه چه هغۀ خو درې ورځې دی نو د دواړو ترمینځ ډیر فرق دې۔ لهذا ددې ورځې د روژې په باره کښې مرفوع صحیح یا حسن یا ضعیف خفیف الضعف یا قوی اثر یا ضعیف هیڅ قسم نۀ دې موجود۔ والله اعلم راجع المرعاة (٤/٣٤٤)

درجة الحدیث : اسناده ضعیف : اخرجه ابن ماجه (١٣٨٨) وفی اسناده ابن ابی سبرة وهو ابوبکر بن عبد اللّٰه بن محمد بن ابی سبرة قال احمد وابن معین یضع الحدیث۔



# باب صلاة الضحی

## د څاښتې مانځه بيان

دلته دوه مونځونه بيانوی : ١- د اشراق مونځ. ٢- او د ضحیٰ (څاښت) مونځ.
بعض علماء دواړه يو ګڼړی ليکن اصح دا ده چه د صلاة الاشراق نوم په آحاديثو کښې نۀ دے راغلے اګرکه دا مونځ ثابت دے. نبی ﷺ صلاة الاشراق ته دعوت او ترغيب ورکړيدے. او عملاً به ئے کله کولو او کله به ئے پريخودو. نو علماؤ پکښې فرق کړيدے او هغه داسے چه د صلاة الاشراق وخت د نمر راختو نه پس دے. چه اوله کښې نمر راپورته شی په اندازه د يوے نيزے او مکروه وخت ختم شی يعنی د طلوع الشمس نه تقريباً شل منټه پس، نو دا وخت د صلاة الاشراق شو او دا اول الضحیٰ هم دے. او هر چه صلاة الضحیٰ دے نو ددے وخت دا دے چه نمر څلورمے حصے د آسمان ته راپورته شی تر ماقبل د زوال پورے. يعنی د ورځے څلورمه حصه تيره شی تر زوال نه مخکښې پورے.
او حديث کښې ئے وخت دا خودلے شويدے چه زمکه په نمر سره ګرمه شی چه د اُوښانو د بچو خپے پرے سوزی. او دائے مستحب وخت دے او اول وخت د ضحیٰ د اِشراق نه شروع کيږی او اُوږديږی تر زوال نه ماقبل پورے. لهذا اشراق لږ وخت دے او ضحیٰ اُوګد وخت دے. په بل تعبير اشراق په ضَحْوَه صُغریٰ کښې اَدا کيږی او ضحیٰ په ضَحْوَه کبریٰ کښې ادا کولے شی. او ضحیٰ اِشراق ته شامليږی او اشراق ضحیٰ ته نۀ شامليږی.
(فيض القدير للمناوی ٦ جزء/٢١٨) والمرعاة (٣٤٤/٢)
په کومو احاديثو کښې چه د صبا د مانځه پس تر اِشراق الشمس پورے په مسجد کښې کيناستو ته او بيا دوه رکعاتو کولو ته ترغيب راغلے دے نو هغے نه مراد صلاة الاشراق دے او دغه شان هغه آحاديث چه په هغے کښې ترغيب دے څلور رکعاتو کولو ته په اول د ورځ کښې هغه هم صلاة الاشراق دے.
او پدے تفريق باندے دليل حديث د ترمذی، نسائی او ابن ماجه دے (عن علی كان النبی ﷺ اذا زالت الشمس من مطلعها قيد رمح او رمحين كقدر صلاة العصر من مغربها صلى ركعتين، ثم أمْهَلَ حتى اذا ارتفع الضحى صلى اربعاً هذا لفظ النسائی وقال الترمذی حسن)

(حدیث حسن : الالمام باحادیث الاحکام ۸۸/۱ باب صلاة التطوع) لابی الفتح تقی الدین القشیری المصری) طبع بیروت) (علیؓ فرمائی : کله چه به نمر د یو یې نیزې یا دوه نیزو په مقدار د ځائې د راختو نه زائل شو نو دوه رکعاته به ئې اُوکړل بیا به ئې انتظار اُوکړو تردې چه کله به ثابت وخت راپورته شو نو څلور رکعاته به ئې اُوکړل) نو دا حدیث نص دې په تفریق د صلاة الاشراق او صلاة الضحیٰ کښې.

تنبیه : په احادیثو کښې صلاة الضحیٰ دواړو مونځونو ته وئیلې شویدې. کله إشراق ته هم صلاة الضحیٰ وئیلې شی لهذا دیته به سوچ کولې شی، او مصداق د هریو باندې ئې فرق کولې شی.

## حکم صلاة الضحیٰ :

حافظ ابن قیمؒ په (زاد المعاد ۳۵۲/۱، ۳۵۵) کښې په حکم د صلاة الضحیٰ کښې شپږ اَقوال ذکر کړیدی. ۱- یو دا چه دا بدعت دې او دا قول صحیح ثابت دې د ابن عمرؓ نه. لیکن دا قول ضعیف دې او د ابن عمرؓ دا قول به په ډیر محملونو حمل کړو :

۱- یا دا چه صحیح اَحادیث ورته ندی رسیدلی او نبی ﷺ او ابوبکر او عمرئې پرې ندی لیدلی. نو ځکه ورته بدعت ښکاری. ۲- یا دا چه دهٔ په جماعت سره کولو باندې رد کړیدې. ۳- یا ددې التزام کولو ته بدعت وائی.

٤- یا په مساجدو کښې ښکاره طریقې سره کولو ته (قاضی عیاض -فتح الباری ۵۵/۳) او حافظ په فتح الباری کښې دا هم نقل کړیدی چه ابن عمرؓ به چه د سفر نه کله راغلو یا به مکې ته راغلو یا به مسجد قُباء ته راغلو نو دا دوه رکعاته به ئې کول.

★- او دارنګه د طواف دوه رکعاته به ئې هم پدې وخت کښې کول. (صحیح ابن خزیمة، ومسند سعید بن منصور) هرځنګه چه وی خو قول ضعیف دې، د صحیح احادیثو خلاف دې.

۲- قول ثانی : بالکل نهٔ دې مستحب. او عبد الرحمن بن عوف او عبد الله بن مسعودؓ به نهٔ کول. ۳- قول ثالث : کله کول او کله پریخودل ئې مستحب دی. او همیش والې پرې نهٔ دې پکار. دلیل ئې روستو حدیث د ابوسعید الخدریؓ دې چه په فصل ثالث کښې راځی لیکن روایت ضعیف دې.

٤- قول رابع : صلاة الضحیٰ په کورونو کښې په دائمی طور باندې مستحب دې. دې دپاره چه بهرئې څوك لازم اُونهٔ ګنړی. ۵- قول خامس : (لا تشرع الا بسبب) (د سبب په وجه مستحب او که سبب نهٔ وی نو بیا مستحب نهٔ دې) او دا قول حافظ ابن قیمؒ راجح

کړيدے يعنی که څوك د سفر نه راشي يا د چا کور ته د ضحیٰ په وخت کښ ورشي يا فتح د يوے علاقے اُوشي يا ديو کافر قتل اُوشي نود شکر دپاره کول ئے مشروع دی۔ او پدے باب کښ راغلی ټول حديثونه ئے په سبب باندے حمل کړيدی چه دا مونځ ددے اسبابو په وجه شويدے او اتفاقی طور سره په ضُحیٰ وخت کښ واقع شويدے۔ او دا مونځ ددے وخت نه دے۔ ليکن دا رأيه هم ضعيفه ده وجه دا ده چه پدے باب کښ مصنف" هغه احاديث ذکر کړيدی چه دا مونځ پکښ بغير د څه سبب نه شوے وی لکه روستو به راشي۔

٦- قول سادس : ائمه اربعه وغيره وائی : دا مونځ مطلقاً مستحب دے بغير د څه سبب نه وی او که په کور کښ وی او که په مسجد کښ وی او هميش والے پرے هم مستحب دے۔ وهوالحق الراجح۔ وجه دا ده چه پدے کښ د نبی ﷺ عمل هم ثابت دے ځکه چه نبی ﷺ دا کله کله کړيدی۔ او بل قول د نبی ﷺ هم دے نو قولی احاديثو کښ خو ډير تاکيد راغلے دے پدے مانځه باندے او ددے اَجرونه ئے بيان کړيدی۔ لهذا د اُمت دپاره دا مستحب عمل دے، کول ئے پکار دی، ډير خير پکښ دے۔

## صلاة الضحی څو رکعته دے؟

بيا دا څو رکعاته دی؟۔ ١- بعض وائی : اقل ئے دوه رکعاته دی او اکثر او افضل اته (٨) رکعاته دی، او دا قول د حنابله او مالکيه او معتمد قول د شوافعو دے۔

٢- قول ثانی دا دے چه اقل دوه رکعاته دی او اکثر دولس (١٢) دی او افضل اته (٨) رکعاته دی۔ او اته په قول او فعل د نبی ﷺ کښ راغلی دی نو ځکه اته افضل دی۔ او دولس صرف په قول ثابت دی۔

٣- بعض وائی : اقل ئے دوه رکعاته دی او اکثر له ئے حد نشته۔ او دا قول د ابوجعفر الطبریؒ، حليمیؒ، رويانیؒ د شوافعو نه او باجیؒ د مالکيه و نه- دے۔ ٤- بعض وائی : څلور غوره دی ځکه پدے کښ احاديث زيات راغلی دی۔ ليکن راجح قول ثانی دے۔

## الفصل الاول

١ – عَنْ اُمِّ هَانِيءٍ، قَالَتْ: اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ دَخَلَ بَيْتَهَا يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ، فَاغْتَسَلَ، وَصَلّٰى ثَمَانِيَ رَكْعَاتٍ، فَلَمْ اَرَصَلَاةً قَطُّ اَخَفَّ مِنْهَا، غَيْرَ اَنَّهُ يُتِمُّ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ. وَقَالَتْ فِيْ رِوَايَةٍ اُخْرٰى: وَذٰلِكَ ضُحًى. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : ام هانئ رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ د فتح د مکے په ورځ ددے کور ته

داخـل شـو، نو(اول ئې) غسل اُوکړو او (بیا ئې) اته رکعاته مونځ اُوکړو، ما ددے نه مخکښې د نبي ﷺ ددے نه مختصر مونځ کله نۀ وو لیدلے، لیکن هغۀ به رکوع او سجده پوره کول۔ په یو بـل روایت کښې ام هانئ اُوفرمایل: "او دا د چاشت مونځ وو"۔ (یا دا د چاشت وخت وو) (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : دیته بعض خلق صلاة الفتح وائي او دا صلاة الضُحیٰ نۀ دے لیکن دا احتمال شته چه نبي ﷺ پکښې تداخـل کړے وي ځکه په نوافلو کښې تداخل جائز دے۔ چه یو انسـان اَودس اُوکـړي او بیـا مسجد تـه داخـل شـي نـو دا تحیة الوضوء هم دے او تحیة المسجد هم، یا سنت اُوکړي نو تحیة المسجد هم شو۔

فَاغْتَسَلَ : ددے روایت نـه معلـومیږي چه ددے په کور کښې ئې غسل کړے دے لیکن په مسلم کښې د موطأ په شان په روایت د ابو مره کښې دي : ام هانئ فرمائي : زۀ نبي ﷺ خوا ته راغلم او هغۀ په اعلیٰ د مکه کښې وو۔نو ما په غسل اُوموندلو۔

حافظ فرمائي : ددے دواړو تطبیق دا دے چه دا کار د پیغمبر نه مکرر واقع شوے دے۔ او ددے تائید دا دے چه په روایت د ابن خزیمهؒ کښې دي د ام هانئ نه چه : نبي ﷺ کله غسل کولو نو ابوذرؓ ئې خپله سُتره کړه۔ او په روایت د ابو مُرة کښې دي چه فاطمےؓ ورته سُتره اُوکړه۔ ۲- او دے کښې دا امکان هم شته چه نبي ﷺ د اُم هانئ کور ته داخل شوے وي کوم چه په اعلیٰ طرف د مکه کښې دے، او ام هانئ په مکه کښې په بل کور کښې وي او بیا ورته راغلې وي او په غسل باندے ئې موندلے وي۔ نو دواړه قولین صحیح شو۔

او هرچه د سُترے خبره ده نو دا احتمال شته چه یو پټ کړے وي په ابتداء د غسل کښې او بل په مینځ د غسل کښې۔ انتهیٰ۔

نو د حدیث نه معلومه شوه چه په سفر کښې هم دا مونځ جائز دے او په حضر کښې هم، او بعض علماؤ وئیلي دي چه په صلاة الضحیٰ کښې تخفیف سنت دے لیکن دا استدلال په محل د نظر کښې دے ځکه چه دلته احتمال شته چه نبي ﷺ نورو کارونو ته ځان فارغولو په مُهم کښې وو نو ځکه ئې مختصر اُوکړل او د نبي ﷺ نه په روایت حذیفه کښې په مصنف ابن ابي شیبه کښې د صلاة الضحیٰ تطویل هم نقل دے۔

وَصَلّٰى ثَمَانِيَ رَكْعَاتٍ : بیا دا اته رکعاته په جدا جدا سلام وو لکه په روایت د ابوداود او ابن خزیمه کښې کریبؒ د ام هانئ نه دا زیادت نقل کړیدے۔

وَذٰلِكَ ضُحًى : ۱- یعنی دا مونځ د ضُحیٰ وو۔ لکه په روایت د ابوداودؒ او ابن عبد البرؒ او المعجم الکبیر (۱۸/۱۶۱) وغیره کښې دغه شان راغلي دي۔ (فصلى الضحى ثمان ركعات)

۲–یا نبی ﷺ چه دا اته رکعاته کول نو دا وخت، وخت د ضُحیٰ وو.

---

۲ – وَعَنْ مُعَاذَةَ، قَالَتْ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ : كَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ صَلاةَ الضُّحى؟ قَالَتْ: أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَيَزِيْدُ مَا شَاءَ اللهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او معاذهؒ فرمائی: ما د عائشےؓ نه تپوس اُوکړو: رسول الله ﷺ به څو رکعاته صلاة الضُحیٰ کولو ؟ هغې اُوفرمایل : "څلور رکعاته به ئې کول او ددے نه زیات به ئې کول څومره چه به الله غوختل". (مسلم).

تشریح : د عائشےؓ نه مختلف روایات په باب د صلاة الضُحیٰ کښې نقل دی، په بعضو کښې مطلقاً صلاة الضُحیٰ ثابت دے، لکه پدے روایت د باب کښې دی چه نبی ﷺ به څلور رکعاته صلاة الضُحیٰ کول او زیادت به ئې هم پرے کولو. او په بعضو کښې مطلقاً نفی ده لکه فرمائی : (مارأیت رسول الله ﷺ یصلی سبحة الضحیٰ قط وانی لَاُسَبِّحُهَا) (متفق علیه) (نبی ﷺ ما نهٔ دے لیدلے چه صلاة الضُحیٰ ئې کړی وی او زهٔ ئې کوم) څکه نوافل دی) او په بعضو کښې نفی مقیده راغلې ده لکه فرمائی : نبی ﷺ به صلاة الضُحیٰ نهٔ کولو مگر که د سفر نه به راغلو- نو بیا به ئې کول) (مسلمؒ) لهذا تعارض معلومیږی ؟

نو علماؤ ددے تطبیقونه کړی دی.

۱– بعضو د مطلقاً نفی روایت ته ترجیح ورکړیده څکه چه دا متفق علیه روایت دے نو دا به مقدم وی په هغه روایت چه مسلمؒ یوائې نقل کړے وی. لکه دا خبره د ابن عبد البرؒ او د یو جماعت نه نقل ده.

۲– او بعضو ترجیح روایت د اثبات ته ورکړیده او دا ئې وئیلی دی چه نهٔ لیدل د عائشےؓ دلیل نهٔ دے د نهٔ واقع کیدو څکه چه کیدے شی نبی ﷺ کړے وی او عائشےؓ به په دغه موقعه نهٔ وی لیدلی. ۳– بعضو جمع کړیده لکه ابن حبانؒ فرمائی : (ماکان یصلی الا ان یجئ من مغیبه) (د سفر نه پس به ئې کولو) روایت خاص دے په مسجد پورے یعنی چه د سفر نه به راغلو نو صرف په مسجد کښې به ئې کولو. او کوم روایت کښې چه دی (یصلی اربعاً ویزید) لکه دا روایت د باب نو دا محمول دے په کور باندے یعنی کور کښې به ئې دا مونځ کولو. او په کوم روایت کښې چه نفی راغلې ده نو هلته د یو خاص صفت نفی ده. چه هغه یا مسجد وغیره کښې جهراً دعوةً کول دی.

٤- قاضی عیاضؒ وائی : په کوم کښې چه نفی ده نو محمول ده په نهٔ لیدلو د عائشےؓ

چه هغې پخپله نهٔ دے لیدلے او کوم کښې چه اثبات کوی نو هغه ورته بل چا خبر ورکړے دے۔ ٥- یا دا چه اول کښې ئې نهٔ دے لیدلے او روستو ئې لیدلے دے او بل چا هم ورته په لیدلو خبر ورکړیدے۔یا نبی ﷺ ورته خبر ورکړیدے نو ځکه اثبات کوی۔

٦- احتمال شته چه عائشې خاص عدد او خاص کیفیت او خاص وخت د صلاة الضحی منفی کړے وی ځکه چه نبی ﷺ به کله کم کول او کله زیات۔

---

٣- عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« يُصْبِحُ عَلٰى كُلِّ سُلَامٰى مِنْ اَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ، فَكُلُّ تَسْبِيْحَةٍ صَدَقَةٌ، وَكُلُّ تَحْمِيْدَةٍ صَدَقَةٌ، وَكُلُّ تَهْلِيْلَةٍ صَدَقَةٌ، وَكُلُّ تَكْبِيْرَةٍ صَدَقَةٌ، وَاَمْرٌ بِالْمَعْرُوْفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، وَيُجْزِيءُ مِنْ ذٰلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحٰى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابوذر ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: « صبا کیدو سره ستاسو په هر هډوکی باندے صدقه لازمیږی، نو هره تسبیح (یعنی سبحان الله وئیل) صدقه ده، هر تحمید (یعنی الحمد لله وئیل) صدقه ده، هر تهلیل (یعنی لا اله الا الله وئیل) صدقه ده، هر تکبیر (یعنی الله اکبر وئیل) صدقه ده، د نیکئ حکم کول صدقه ده او د بدئ نه منع کول صدقه ده، او ددے ټولو په بدله کښې دوه رکعاته مونځ کافی کیږی چه د چاشت په وخت کښې ئې اُوکړی»۔ (مسلم)

تشریح : سُلَامٰی : جمع د سُلَامِيَة ده۔ بعض وائی : مفرد او جمع دواړه ئې په یو وزن دی۔ او بعض وائی : جمع ئې سُلَامِيَات راغلی ده۔ اصل کښې د لاس د ګوتو هډوکی او د ټول ورغوی هډوکو ته یا د ګوتو سرونو یا د لاس او خپو هډوکو ته وائی (ابن الاعرابیؒ) دلته ترے مراد د ټول بدن هډوکی او اندامونه دی، په انسان کښې درے سوه شپیته هډوکی دی او دوه سوه څلویښت جوړونه دی۔ او حدیث کښې هم راغلی چه د هر هډوکی په مقابله کښې به نیکی کولے شی او صدقه به ورکولے شی۔

مطلب دا دے چه په انسان کښې په هرهډوکے او هر جوړ باندے د مصیبتونو او آفاتونه روغ او محفوظ طریقے سره صبا راخیژی نو په دهٔ باندے ددے د شکر په طور صدقه لازمه ده۔

فَكُلُّ تَسْبِيْحَةٍ صَدَقَةٌ : بل روایت کښې ورسره دا دی چه صحابه کرامو عرض اُوکړو چه څوك به هره ورځ دا درے سوه شپیته صدقات ورکړی ؟ ددے طاقت څوك لرلے شی؟ نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : چه حاصل ئې دا دے) یوه صدقه ستاسو په نیز ده او یوه صدقه د

شریعت په نیز ده، په شریعت کښې صدقه هر نیك عمل ته شامليږي چه بعض صورتونه ئې دغه تسبيحات هم دي۔
يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحٰى : دا حديث دليل دے چه په انسان باندے هره ورځ دغه اندازه نيکيانے لازم دي او ددے په بدله کښې دوه رکعاته د ضُحىٰ کافي کيږي نو دليل شو چه صلاة الضحىٰ هميشه دپاره کول مستحب دي۔
او حديث دليل دے چه صَلاة الضحىٰ ډير لوئی اجر لري چه د درے سوه شپيتو نيکيانو په مقابله کښې کافي کيږي۔نو دا لائق دے چه پدے باندے هميشوالے اُوکړے شي۔نو پدے کښې ترغيب دے چه دا دائماً کوئ۔
او په بل روايت کښې دي چه چا د درے سوه شپيته نيکئ اُوکړے نو (فقد زحزح عن النار) دهٔ ځان د اُور نه بچ کړو۔
نو حديث دليل دے چه د صلاة الضحىٰ ډير عظيم موقعيت او فضيلت دے او ددے په مشروعيت کښې ډير تاکيد دے او دا دوه رکعاته د درے سوه شپيته نيکيانو په بدله کښې کافي کيږي او هر هغهٔ مونځ چه داسے وي نو لائق ده چه په هغې باندے مداومت او مواظبت اُوکړے شي، دارنګه دليل دے چه تسبيحات، تحميد او تهليل، امر بالمعروف او نهي عن المنکر او د دين هر عمل او قربت زياتول پکار دي دے دپاره چه ددے په وجه په هره ورځ کښې په انسان باندے لازم صدقات ساقط شي۔

---

٤ – وَعَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ، اَنَّهٗ رَاٰى قَوْمًا يُصَلُّوْنَ مِنَ الضُّحٰى، فَقَالَ: لَقَدْ عَلِمُوْا اَنَّ الصَّلَاةَ فِيْ غَيْرِ هٰذِهِ السَّاعَةِ اَفْضَلُ، اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ: «صَلَاةُ الْاَوَّابِيْنَ حِيْنَ تَرْمَضُ الْفِصَالُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او زيد بن اَرقم ﷺ نه روايت دے چه دهٔ څهٔ خلق اُوليدل چه په چاشت وخت کښې ئې مونځ کولو، وے فرمايل : دے خلقو معلومه ده چه ددے وخت نه علاوه په بل وخت کښې مونځ اَفضل دے، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« الله ته د کامل توجه کونکو مونځ وخت هغهٔ دے چه کله د اُوښانو بچي (يعني د هغوی خپے په کاڼو) ګرم شي »۔ (مسلمٌ)
تشريح : رَاٰى قَوْمًا : يعني زيد بن اَرقَم په مسجد کښې قباء کښې څه خلق اُوليدل چه د چاشت مونځ ئې په اول وخت کښې کولو نو ورته ئې اُوفرمايل : چه دوی ته ښهٔ معلومه ده چه مُختار وخت ددے مانځه دپاره ناوخته وخت دے۔ چه د اُوښانو د بچو خپے په زمکه

اُوسوزي، او دا هغه کېږي چه لس يولس بجې شي او زمکه د نمر په وهلو ګرمه شي. نو حديث نه معلومه شوه چه د چاشت غوره وخت لس يولس بجو تايم دے او وختي کول ئې هم جائز دي.

تَرْمَضُ : د سمع يسمع نه مصدر ئې (رَمْضَاء او رَمْض) دے په معنی د سوزولو او سخت براس د زمکې سره چه شرېږي ئې نمر وهلی وي.

الْفِصَالُ : جمع د فَصِيل ده، د اُوښانو بچو ته وائي چه کله د مور نه جُدا شي. دا وخت ځکه غوره دے چه دا وخت د استراحت دے او کله چه انسان استراحت پرېږدي او الله ته رجوع اُوکړي، په مانځه مشغول شي نو دا ضرور مستحق د ښائسته صفت دے.

او ديته ئې د آوابينو مونځ اُووئيلو ځکه د اَوّاب معنیٰ ده الله ته ډير ورګرزيدونکے انسان، او ځولک چه ددے استراحت او غفلت په وخت کښې آرام او استراحت پرېږدي او مونځ ته ورشي نو دهٔ د خپل نفس خواهشات پرېخودل او د الله رضا ته ئې رجوع اُوکړه.

## اوابين مونځ چا ته وئيل پکار دي ؟

صَلاةُ الْاَوَّابِيْنَ : پدے روايت کښې ئې د اوابين مونځ صلاة الضحیٰ ته اُووئيلو او دا دلالت په حصر باندے نهٔ کوي چه ددے مونځ نه علاوه بل مانځه ته اوابين وئيل صحيح نهٔ دي بلکه قيام الليل د ابن نصر کښې راځي چه عبد الله بن عباسؓ د ماښام مانځه نه روستو مونځ ته هم صلاة الاوابين وئيلے دے. او دا په يو ضعيف مرفوع روايت کښې هم راغلے دے (کما في ضعيف الجامع الصغير رقم (٥٦٧٦) واحياء العلوم (١٦٣/١، ٣٥٥)

او د سحر دوه رکعاتو سنتو ته هم اوابين وئيلے شويدے. (مصنف عبد الرزاق رقم (٥٨/٣) رقم (٤٧٨٣ عروه بن رُوَيم ورته وئيلے دے) او کور ته دا خليدو او راوتو وخت کښې دوه رکعاته کولو ته هم وئيلے شوے دے) (صلاة الاوابين وصلاة الابرار رکعتان اذا دخلت بيتك ورکعتان اذا خرجت (سعيد بن منصور عن عثمان بن ابی سودة مرسلا) (جامع الاحاديث حرف الصاد : ٤٨٢/١٣) للسيوطیؒ وعثمان هذا تابعی ثقة وله شاهد کما قال فی اللآلئ المصنوعة (٣٨/٢) تنزيه الشرعية المرفوعة (١٢٩/٢) وضعفه الالبانی فی السلسلة الضعيفة (٢٩٠/٨) (٣٧٨٨)

خو په مرفوع صحيح روايت کښې صلاة الضحیٰ ته آوابين وئيلے شي.

او علی او ابو هريره رضی الله عنهما هم دے ته صلاة الاوابين وئيلے دے. (ابن ابی شيبة ٤٠٧/٢) لهذا د چاشت مونځ ته صلاة الاوابين بهتر دی د نورو مونځونو په نسبت اګر که

دغه ټولو مونځونو ته صلاة الاوابين وئيل جائز دي. او ددې روايت نه معلومه شوه چه صلاة الاشراق جُدا دې او صلاة الضحیٰ جُدا دې. وراجع فتاوی الدين الخالص (٣٣٦/٥)

## الفصل الثاني

٥- عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ، وَاَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «عَنِ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اَنَّهُ قَالَ: يَا ابْنَ آدَمَ! اِرْكَعْ لِيْ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ مِنْ اَوَّلِ النَّهَارِ، اَكْفِكَ آخِرَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. ٦- وَرَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ عَنْ نُعَيْمِ بْنِ هَمَّارِ الْغَطَفَانِيِّ وَاَحْمَدُ عَنْهُمْ.

---

ترجمه: ابو درداء او ابوذر رضی الله عنهما فرمائي: رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ د طرف نه (حدیث قدسی) نقل کوی چه الله فرمائی: «اې ابن آدم! خالص زما دپاره د ورځې په ابتداء کښې څلور رکعاته اُوکړه، زۀ به ستا دپاره کافی شم تر آخر د ورځ پورې». (ترمذیؒ) او ابوداودؒ او دارمیؒ د نعیم بن همار غطفانیؒ نه او امام احمدؒ د ټولو نه نقل کړيدې.

تشريح: شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله وئيلى دي چه په احاديثو کښې د اِشراق مونځ نشته او پدې حديث کښې چه کوم مونځ راغلې دې نو ددې نه مراد د سحر مونځ دې چه دوه سنت او دوه فرض دي. (مجموع الفتاوی ٢٨٣/٢٢)

ليکن دا خبره ئې ضعيفه ده، د ډيرو وجونه: ١- اوله وجه دا چه د اشراق وخت کښې مونځ شته، په احاديثو کښې راغلې دې. مخکښې (باب الذکر بعد الصلاة) کښې حديث تير شويدې چه د حج او عمرې (تامة تامة) ثواب ئې کيږي.

٢- دويم دا چه اګرکه نهار د لغت په لحاظ د طلوع الفجر نه شروع کيږي مګر په عرف کښې نهار بياض د ورځې ته وائي او دارنګه د طلوع الشمس نه روستو ته هم اول د ورځې وئيلو کښې څه مانع نشته. ځکه من اول النهار کښې به من تبعيضيه مراد شي يعنی بعض حصه د اول د ورځې نه چه هغه د طلوع الشمس نه پس وی هغه مراد ده.

٣- بله دا چه محدثينو دا حديث په باب د صلاة الضحیٰ کښې راوړيدې لکه امام ترمذیؒ او ابوداودؒ دا حديث په صلاة الضحیٰ حمل کړيدې. او دلته مصنف هم په باب د نوافلو کښې راوړيدې. او همدا ظاهر ددې حديث دې او دارنګه تعامل د خلقو په دې باندې شويدې. لهذا ددې څلور رکعاتو نه مراد صلاة الضحیٰ دې. او مخکښې تحقيق په اعتبار سره دا مونځ صلاة الاشراق ته هم شامليدې شي او صلاة الضحیٰ (څاښتې مونځ) ته هم.

اَكْفِكَ آخِرَهُ: يعنی زه به ستا د ټولو کارونو نه تر آخر د ورځې پورې کافی شم او ټول

حوائج به دې پوره کړم. او مصیبتونه به درنه پورته کړم.
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه الترمذی (٤٧٥) وصححه الالبانی فی ارواء الغليل رقم (٤٦٥) واسناد احمد (٢٨٦/٥) والدارمی (٣٣٨/١) وابی داود (١٢٨٩) صحيح) وفی سنده اسماعيل بن عياش لكن روايته عن الشاميين صحيح وهذا الحديث شامی الاسناد) ________________

٧- وَعَنْ بُرَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «فِي الْإِنْسَانِ ثَلَاثُمِائَةٍ وَسِتُّوْنَ مِفْصَلًا، فَعَلَيْهِ اَنْ يَّتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مِفْصَلٍ مِنْهُ بِصَدَقَةٍ»، قَالُوْا: وَمَنْ يُّطِيْقُ ذٰلِكَ يَا نَبِيَّ اللهِ! قَالَ: «النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفِنُهَا، وَالشَّيْءُ تُنَحِّيْهِ عَنِ الطَّرِيْقِ فَإِنْ لَّمْ تَجِدْ، فَرَكْعَتَا الضُّحٰى تُجْزِئُكَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ. ................

ترجمه : او بریده ﷺ فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلي دي چه فرمایل ئې :«د انسان (په بدن کښې) درې سوه شپیته بندونه (جوړونه) دي. نو په هر انسان باندې لازم دي چه د هر جوړ په بدله کښې صدقه اُوکړي»، خلقو اُووئیل : اې د الله نبي ! ددې طاقت به څوك اُولري؟ (چه د خپل جسم د هر جوړ په بدله کښې صدقه اُوکړي) نبي ﷺ اُوفرمایل : « په مسجد کښې لارې چه تهٔ ئې خښې کړې، (صدقه ده) او د لارې نه یو (ضرري) شے (مثلاً نجاست، کانړے، اَزغے) جدا کول (هم صدقه ده) او کهٔ تاسو (د درې سوه شپیته جوړونود طرف نه صدقه ورکونکے څیز) اُونهٔ مومئ، نو د ضحیٰ (یعني د اشراق) دوه رکعاته کول ستا دپاره کافي دي». (ابوداودؒ)

تشريح : اَنْ يَّتَصَدَّقَ : یعني دا د الله څومره لوئي احسان دے چه ستا جوړونه ئې خپل ځائے ته راغونډ کړل او روغ ئې درله اُوساتل نو شکرئې پکار دے. او د شکر طریقه دا ده چه د الله دپاره نیکیانې اُوکړې شي او عبادتونه او صدقات او مونځونه اُوکړې شي.

او نبي ﷺ هر مخاطب ته خطاب کوي دپاره د اهتمام چه هر هغهٔ څوك چه صلاحیت د خطاب پکښې موجود نو هغهٔ له ددې کارونو اهتمام پکار دے.

النُّخَاعَةُ : هغهٔ خراچکې ته وائي چه د حلق نه لاندې د سینې راوځي لکه د حاء د مخرج په شان او نخامة هغه خراچکې ته وائي چه د خاء د مخرج نه د دماغو نه راکوزیږي.

فَإِنْ لَّمْ تَجِدْ: مطلب دا چه د هیڅ قسم صدقې موقعه درته ملاؤ نهٔ شي نو بیا دوه رکعاته د اشراق یا څابنتي مونځ هم ستا دپاره ددې په بدله کښې کافي کیږي. او که ددې سره دې نورې نیکیانې اُوکړې نو هغهٔ به د لازمې صدقې نه علاوه زیاتي شکریه حساب شي.

تُجۡزِئُكَ : ضمیر د واحد ئې رکعتان تثنیه ته راجع کړو په اعتبار د صلاة الضحیٰ سره.

درجة الحدیث : اسناده صحیح علی شرط مسلم : اخرجه ابوداود (٥٢٤٢) واحمد (٣٥٨/٥) وفی سنده علی بن الحسین بن واقد وفیه مقال ولکنه من رجال مقدمة صحیح مسلم ولیس من رجال صحیحه قال ابوحاتم ضعیف الحدیث وقال النسائی لا بأس به وقال فی التقریب (انه صدوق یهم) وقال الذهبی صدوق : فالظاهر ان حدیثه حسن وقال المناوی فی شرح الجامع الصغیر اسناده حسن) وقال الالبانی : صحیح علی شرط مسلم)

---

٨- وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ صَلَّى الضُّحٰى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً، بَنَى اللهُ لَهُ قَصْرًا مِنْ ذَهَبٍ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَانَعْرِفُهُ اِلَّا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ.

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« چا چه دولس رکعاته مونځ د چا په وخت اُوکړو نو الله به دهٔ له په جنت کښې د سرو زرو بنګله جوړه کړي»۔ (ترمذی، ابن ماجة) او امام ترمذی فرمائي: دا حدیث غریب دے مونږ دا صرف په همدے سند سره پیژنو۔

تشریح : دولس رکعاته د صلاة الضحیٰ آخري درجه ده، نو بعضو خلقو دیته راجح وئیلی دی ځکه چه دا فضیلت ئې راغلو لیکن دا روایت ضعیف دے۔ اګرکه د ورځے دولس رکعاتو نفلوکولو باره کښې دا فضیلت صحیح حدیث کښې شته چه الله به ورله جنت کښې کور جوړکړي لکه مخکښې (باب السنن وفضائلها) کښې تیر شویدے۔ (بسند صحیح) دارنګه نوافل مطلقه ؤ کښې شریعت اجازت ورکړیدے او زیادت ئې نهٔ دے مکروه کړے۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف ومعناه صحیح : اخرجه الترمذی (٤٧٣) وابن ماجه (١٣٨٠) وفیه موسی بن فلان بن انس وهو مجهول۔ولکن اذا ضم الیه حدیث ابی ذر عند البزار (٣٣٤/١ کشف) وفیه حسین بن عطاء وثقه ابن حبان وضعفه ابوحاتم وحدیث ابی الدرداء عند الطبرانی قَوِيَ وَصَلُحَ للاحتجاج کما فی المرعاة (٣٥٥/٤) والفتح (٥٤/٣) وروضة المحدثین (٣/٢) والتلخیص الحبیر (٢٠/٢)

---

٩- وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ اَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ قَعَدَ فِي مُصَلَّاهُ حِيْنَ يَنْصَرِفُ مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ، حَتّٰى يُسَبِّحَ رَكْعَتَيِ الضُّحٰى لَايَقُوْلُ اِلَّا خَيْرًا، غُفِرَ لَهُ خَطَايَاهُ

وَاِنْ كَانَتْ اَكْثَرَ مِنْ زَبَدِ الْبَحْرِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: او معاذ بن انس جُهَنی ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «څوك چه د سحر مانځه نه سلام واړوي او په خپله مَسَله باندې ناست وي تردې چه دوه ركعاته (د نمر ختلو او پورته كيدو نه روستو) دچاشت (اشراق) اُوكړي، او (ددې دواړو يعنی سحر مونځ او د چاشت ترمينځ) د نيكو خبرو نه علاوه نورې خبرې اُونهٔ كړي، نو دهٔ ته به ټول ګناهونه اُوبخلې شي اګركه د درياب د زګ نه زيات وي». (ابوداوُد)

تشريح: لَايَقُوْلُ اِلَّا خَيْرًا: دې نه معلوميږي چه هر نيك كار كوي، كتاب ګوري، يا تلاوت كوي يا تدريس كوي يا بل يو نيك كار كوي چه د ګناه كار نهٔ وي نو دغه اَجر ورته ملاويږي. علي القاريؒ وائي: دلته ئې په قول سره د فعل نه اكتفاء كړيده. او مراد ترې نه هر هغهٔ د اجر او ثواب كار دې. آه. او قول ئې ذكر كړو چه غلطې خبرې به نهٔ كوي، كنځلې او فاحشې خبرې به نهٔ كوي، ډير خلق داسې وي چه د سحر مانځه نه روستو تر اشراق پورې ځان ويښ پريږدي ليكن بيا فاحشې او د دنيا خبرې كوي، غيبتونه ئې شروع كړي وي ځكه چه د اشراق په انتظار ناست دې. !!

خَطَايَاهُ: ددې نه بعض علماء صغائر مراد كوي ليكن ظاهر دا ده چه هر قسمه ګناهونه معاف كيږي ځكه دا كار غالباً پاك مخلص مؤمن كوي.

دا حديث دليل دې چه اشراق ته هم په احاديثو كښې صلاة الضحیٰ وئيلې شويدې ځكه چه دلته د ضحیٰ نه مراد د اشراق مونځ دې، او دا اول وخت د ضحیٰ دې. او يا د ضحیٰ نه مراد معنیٰ لغوي ده چه هغهٔ وخت د رڼا كيدو د نمر دې. او بعينه همدا وخت د صلاة الاشراق دې. فتدبر.

او دا روايت اګركه سنداً ضعيف دې ليكن د اشراق په باره كښې ډير فضائل راغلي دي چه د حج او عمرې ثواب ئې هم كيږي او ګناهونه ئې هم معاف كيږي او حاجتونه ئې هم پوره كيږي. لهذا داسې قسم حديث په فضائل الاعمال كښې كارور كوي ځكه چه پدې سره څهٔ نوې حكم شرعي نهٔ ثابتيږي، صرف زياتي فضيلت بيان شويدې.

درجة الحديث: اسناده ضعيف: اخرجه ابوداود (١٢٨٧) واحمد (٤٣٨/٣) وفي اسناده زبان بن فائد عن سهل بن معاذ وقال المنذري سهل بن معاذ ضعيف والراوي عنه زبان ايضاً ضعيف وضعفه العراقي. وقال ابن عبد البر: وهذا الاسناد عندهم لين ضعيف الا ان الفضائل يروونها عن كل من رواها ولا يردونها) (التمهيد ١٤٢/٨)

الفصل الثالث

١٠ – عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ حَافَظَ عَلٰى شُفْعَةِ الضُّحٰى، غُفِرَتْ لَهٗ ذُنُوْبُهٗ وَاِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « چا چه د ضُحىٰ په دوه رکعاتو مُدَاوَمَت (هميش والے) اُوکړو، نو دهٔ ته به ګناهونه اُوبخلے شي اګرکه هغهٔ د درياب د ږګ په شان وي»۔ (احمدؒ، ترمذيؒ، ابن ماجهؒ)

تشريح : دے نه معلوميږي چه د چاشت په مانځه باندے مداومت کول هم مستحب عمل دے او دليل دے چه دا بغير د سبب نه هم کول جائز دي۔ دا ګران عمل دے په نفس باندے ځکه ئے دومره اجر بيان شويدے۔

شُفْعَةِ : په فتحه او ضمه دواړو سره جائز دے لکه غَرفه او غُرفه۔(نهايه للجزريؒ) عراقيؒ وائي : په روايت کښې مشهور ضمه د شين ده۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه الترمذی (٤٧٦) وفيه نَهّاس بن قهم وهو ضعيف ترکه يحيى القطان وضعفه ابن معين وقال ابواحمد الحاکم : لين (الميزان ٢٧٤/٤) المجروحين (٥٦/٣) لابن حبان ۔

---

١١ – وَعَنْ عَائِشَةَ، اَنَّهَا كَانَتْ تُصَلِّيْ الضُّحٰى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ تَقُوْلُ: لَوْ نُشِرَ لِيْ اَبَوَايَ مَا تَرَكْتُهَا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها نه روايت دے چه دے به د چاشت مونځ اته رکعاته کول بيا به ئے فرمايل :کهٔ ما دپاره مور او پلار راژوندی شي (نو دهغوی د ملاقات د شوق دپاره به) زهٔ دا مونځ پريے نهٔ ايږدم۔ (مالك)۔

تشريح : دا حديث هم دليل دے چه عائشے رضی الله عنها به د ضحیٰ مونځ کولو او هميش والے به ئے پريے کولو نو کومه نفي چه د هغے نه نقل ده نو هغه مقيده ده په مسجد پورے يا مخکښې ئے نبي ﷺ نهٔ وو ليدلے روستو ئے پريے ليدلے وو نو ځکه پريے عمل کوي۔ او اته رکعاته ددے خپل مقرر کړده عمل دے او دا مطلب نهٔ دے چه زيادت ناروا دے۔ ځکه چه په صلاة الضحیٰ کښې منقول معين عدد نشته۔

لَوْ نُشِرَ لِيْ : يعني که ما ته مور او پلار راژوندی شي او راته اُووئيل شي چه ددے خوند په مقابله کښې د چاشت د مانځه خوند پريدهٔ نو زه ئے نهٔ پريدم۔

نو دے نه دا فائده معلومه شوه چه مداومت په نيك عمل پکار دے۔ ٢– د صحابه

کرامو په نوافلو باندې ځومره مؤکد عزم وو پاتې لا فرائض، دغه شان عزم پکار دې۔
۳– د مداومت او التزام ترمینځ فرق دې، التزام بدعت دې او دوام نیکي ده۔
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (۱۵۳/۱) رقم (۳۰) والتاريخ الصغير للبخاري (۲۰۱/۱) وابن ابي شيبة، ومسند احمد)

---

۱۲– وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّي الضُّحٰى حَتّٰى نَقُوْلَ: لَا يَدَعُهَا، وَيَدَعُهَا حَتّٰى نَقُوْلَ: لَا يُصَلِّيْهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او ابوسعید ﷛ فرمائي: رسول الله ﷺ به د چاشت مونځ کولو تردې چه مونږ به وئیل : نۀ ئې پریدی، او د چاشت مونځ به ئې پریخودلو تردې چه مونږ به وئیل : چه نۀ ئې کوی۔ (ترمذیؒ)
تشریح : ددې روایت نه بعضو استدلال کړیدې چه صلاة الضُحیٰ باندې به همیش والې نشي کولې لیکن دا روایت ضعیف دې او د مخکښې روایاتو نه دوام معلوم شو۔ لهٰذا دا نفل مونځ دې همیش والې پرې جائز بلکه مستحب دې۔
درجة الحديث : اسناده ضعيف: اخرجه الترمذي (٤٧٧) وقال حسن غريب وفي اسناده عطية العوفي وهو كثير الخطأ، مدلس وخاصة في روايته عن ابي سعيد۔

---

۱۳– وَعَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ: تُصَلِّي الضُّحٰى؟ قَالَ: لَا. قُلْتُ: فَعُمَرُ؟ قَالَ: لَا. قُلْتُ: فَاَبُوْبَكْرٍ؟ قَالَ: لَا. قُلْتُ: فَالنَّبِيُّ ﷺ؟ قَالَ: لَا اِخَالُهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او مورق عجليؒ فرمائي: ما عبد الله بن عمر ته اُووئیل: آیا ته د چاشت مونځ کوې؟ ابن عمرؓ اُوفرمایل: نۀ (زۀ ئې نۀ کوم) ما عرض اُوکړو : آیا عمرؓ (به کول) وې فرمایل : نۀ۔ ما عرض اُوکړو: آیا ابوبکرؓ (به کول)۔ وې فرمایل : هغۀ به هم نۀ کول، ما عرض اُوکړو : آیا نبي ﷺ به کول ؟ هغۀ اُوفرمایل : زما په هغۀ ګمان نۀ دې (چه هغوی کړی وی) (بخاريؒ)۔
تعارف د مورق العجلي : مورق بن المُشَمْرَج ابوالمعتمر البصري ثقه عابد، په طبقه وسطیٰ کښې د کبار التابعین نه دې په سنه (۱۰۳ هـ) یا (۱۰۵) یا (۱۰۸) کښې وفات دې، عجلي منسوب دې عجل قبیلې ته۔

تشریح : لَا: یعنی دا دلیل دے چه نفل مونځ کښې دا لازم نهٔ ده چه انسان به ئې همیشه کوی، یا دا چه دهٔ ته په کښې حدیث نهٔ دے معلوم ځکه نفی کوی۔

لَا اِخَالُهٗ : افصح قرائت پکښې دا دے چه د همزے کسره او د لام ضمه ده او فتحه هم جائز ده۔ په معنیٰ د خیال او ګمان سره دے۔ بیا ئې دا خبره ګمانی ذکر کړه۔ لیکن دا ګمان صحیح نهٔ دے ځکه هغه ته دا حدیث نهٔ دے رسیدلے۔ او مونږ ته احادیث رارسیدلی دی نو دا دلیل شو چه ډیر کرت یو غټ عالم، صحابی ته به یو حدیث نهٔ وی رسیدلے او روستو اُمت ته به رسیدلے وی، نو دا ضروری نهٔ ده چه هر متقدم عالم به د دین په هره مسئله کما حقها پو هیږی او روستنی به جاهلان وی۔ نو رد شو په تقلید باندے۔

حافظ ابن حجرؒ فتح الباری (۱/۵٤۲ و ۱۲۰) کښې لیکی : (فی القصة دلیل علی ان السنة قد تخفی علی بعض اکابر الصحابة ویطلع علیها آحادهم ولهذا لا یلتفت الی الآراء ولو قویت مع وجود سنة تخالفها ولا یقال : کیف خفی ذا علی فلان والله الموفق)۔

(دا حدیث دلیل دے چه سنت ډیر کرت په مشران صحابه کرامو باندے پټ پاتے کیدے شی او د هغوی آحاد به پرے خبر وی پدے وجه (د خلقو) آراء ته به التفات نشی کیدے اګرکه قوی وی کله چه سنت ددے مخالفت موجود شی او داسے به نشی وئیلے کیدے چه دا سنت په فلانی باندے څنګه پټ پاتے شو؟ ځکه توفیق ورکونکے دے) (چا ته یوه مسئله زدهٔ کړی او په بل ئې پټه پاتے کړی)

په واقعه د ابن عمر کښې چه نبی ﷺ د مؤمن سړی مثال د یو ے ونے سره ورکړو صحابه کرامو نه ئې امتحان اخستو دا کومه ونه ده۔ نو ابن عمرؓ وائی : زما زړه کښې راغله چه دا کجوره ده۔ حافظ فرمائی : (وفیه ان العالم الکبیر قد یخفی علیه بعض ما یدرکه من هو دونه لان العلم مواهب والله یؤتی فضله من یشاء) (کتاب العلم – باب طرح الامام المسئلة) : (یعنی ډیر کرت په یو لوئی عالم باندے بعض خبرے پټے پاتے کیدے شی چه هغهٔ کشرانو ته معلومے وی ځکه علم د الله هبه ده چا له ډیر او چا له کمه ورکړی)

☆– ابن عمر د مسح علی الخفین نه منکر وو۔ نو حافظ ابن حجرؒ فرمائی : (وفیه ان الصحابی القدیم الصحبة قد یخفی علیه من الامور الجلیة فی الشرع ما یطلع علیه غیره) (باب المسح علی الخفین) (یو قدیم صحبت والا صحابی باندے د شریعت بعض هغهٔ ښکاره مسائل پټ پاتے کیدے شی چه بل ته هغهٔ واضح وی، لکه ابن عمر چه به سعد باندے د مسح علی الخفین انکار کولو هغهٔ ورته اووئیل : پلار نه دِے تپوس اُوکړه الخ) (۱/۳۰۶) وبالله التوفیق۔

❊❊❊❊❊❊

# باب التطوع

## د نفل مانځه بيان

دلته هغه نوافل ذکر کوی چه وخت ئې نۀ دے معلوم او مخکښې هغۀ نوافل وو چه د وخت په تيريدو سره هغه نفل ختميږی۔ مقيد بالوقت وو۔

نو دا اعتراض نۀ راځی چه نوافل خو مخکښې هم تير شو ځکه چه هغه نوافل مقيد بالوقت وو او دا غير مقيد بالوقت دی۔

دلته به تحية الوضوء ۲- صلاة الاستخارة ۳-صلاة الحاجة ٤- صلاة التوبة او بعض د هغې نه صلاة التسبيح ده۔او نوافل مطلقه بيانيږی۔

تطوع: د طَوع او طاعَة نه ماخوذ دے تابعدارئ او اِنقياد ته وائي او تطوع بيا هر هغه نفلی عبادت ته وائی چه په بنده باندے فرض او واجب نۀ وی او مُتَطَوِّع هر د خير عمل کونکی ته وائی چه د فرائض او واجباتو نه علاوه وی او اکثر اطلاق د تَطَوّع په هغه مونځ باندے کيږی چه د سنن رواتب نه علاوه وی۔ او د تطوع معنیٰ ده په خوشحالئ سره په خپله طبع باندے عمل کول چه واجب او لازم پرے نۀ وی۔

### الفصل الاول

۱ - عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِبَلَالٍ عِنْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ: يَا بَلَالُ! حَدِّثْنِيْ بِاَرْجٰى عَمَلٍ عَمِلْتَهٗ فِي الْاِسْلَامِ، فَاِنِّيْ سَمِعْتُ دُفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ، قَالَ: مَا عَمِلْتُ عَمَلًا اَرْجٰى عِنْدِيْ اَنِّيْ لَمْ اَتَطَهَّرْ طُهُوْرًا فِيْ سَاعَةٍ مِنْ لَيْلٍ وَلَانَهَارٍ، اِلَّا صَلَّيْتُ بِذٰلِكَ الطُّهُوْرِ مَا كُتِبَ لِيْ اَنْ اُصَلِّيَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : ابو هريره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ د سحر مانځه په وخت بلال ته اُوفرمايل : « اے بلال! ما ته اُووايه چه تا په اسلام کښې کوم عمل کړيدے چه په هغې سره ستا د ثواب زيات اُميد دے ځکه ما په جنت کښې خپلے مخے ته ستا د خپو آواز اوريدلے دے؟»۔ هغۀ اُووئيل: ما خه داسے عمل نۀ دے کړے چه هغۀ زما په نيز ډير د اُميد والا وی سِوا دد ے نه چه ما د ورځے او شپے په هيڅ ساعت کښې اُودس نۀ دے کړے مګر په هغۀ اُودس ے

مونځ کړے دے ځومره چه ما دپاره ليکلے شوے وي چه زۀ يې اُوکړم»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : جنت ته انسان قبل الموت نشي داخليدے ليکن الله تعالىٰ نبي ﷺ ته د بلال يو تصوير اُوخودلو، او پد ے کښ د بلالؓ فضيلت ته اِشاره شوه او زيرے دے هغه ته په جنت باندے او اشاره ده چه دا دوه رکعاته چه د اُودس نه روستو اُوکړے شي نو ډيره اُوچته مرتبه لري چه انسان جنت ته داخلوي۔ او مونځ به انسان سپك نۀ ګڼړي۔

حسن بصريؒ نه نقل دي چه اے انسانه کله چه تا باندے مونځ عزتمند نۀ دے نو کوم شے به تا باندے عزتمند وي۔

دُفّ : په فتحه د دال : کشاري او حرکت د خپو ته وائي۔

بيا نبي ﷺ د بلال نه د اَرْجي عمل (د ډير اميد والا عمل) تپوس اُوکړو نو ددے نه مراد نوافل عبادات دي، نۀ فرائض ځکه چه د ډير اُميد اعمال خو فرائض دي۔ ليکن دلته نوافل مراد دي۔

فوائد الحديث : ١– حديث نه معلومه شوه چه د هر اُودس نه روستو دوه رکعاته يا زيات کول سنت عمل دے او ددے دپاره وخت نۀ دے معلوم، بعض علماء وائي چه مکروه اوقاتو کښ هم ددے کول جواز لري ځکه چه دا حديث عام دے هر وخت ته او دا د احاديث د اوقات الکراهية نه مستثنىٰ دي۔

ليکن راجح دا ده چه مکروه وقت کښ دا مونځ نۀ دے پکار ځکه چه صلاة التحية کښ تاخير جائز دے او بله دا چه (ما کتب لي ان اصلي) نه معلوميږي چه سمدست ضروري نۀ دي، ځکه چه مونځ يې د الله کتابت او تقدير ته اُوسپارلو۔

٢– استاذ د شاګرد نه د هغه د عمل په باره کښ تپوس کولے شي که ښه عمل وي چه هغه ته تيزي په هغه عمل ورکړي او که بد وي نو منع به يې کړي۔

٣– نبي ﷺ بلال لره ليدلے دے يا په معراج شپه کښ يا ورته کشف شويدے، د نبي معجزه ده۔ ٤– د يو سړي مخامخ صفت کول ناروا دي کله چه فتنه ولاړيږي، او کله چه پکښ فائده وي، د يو عمل اَهميت راښکاره کول مقصود وي نو بيا جائز ده لکه دلته د بلال په زړۀ کښ فتنه نۀ راتله او غرض پکښ ددے عمل اهميت بيانول وو۔

---

٢– وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُعَلِّمُنَا الْإِسْتِخَارَةَ فِي الْأُمُوْرِ، كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ، يَقُوْلُ: إِذَا هَمَّ اَحَدُكُمْ بِالْاَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيْضَةِ، ثُمَّ لِيَقُلْ: اَللّٰهُمَّ

اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ، وَاَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ، وَاَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ، فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ، وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ، وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ، اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ، وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ– اَوْ قَالَ: فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَآجِلِهٖ– فَاقْدُرْهُ لِيْ، وَيَسِّرْهُ لِيْ، ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ، وَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ، وَمَعَاشِيْ، وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ– اَوْقَالَ: فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَآجِلِهٖ – فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ، وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ أَرْضِنِيْ بِهٖ». قَالَ: وَيُسَمِّيْ حَاجَتَهٗ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او جابر ﷜ فرمائي : رسول الله ﷺ به مونږ ته په ټولو کارونو کښې استخاره داسې راخودله لکه څنګه چه به ئې يو سورت د قرآن راخودلو، فرمايل به ئې : « کله چه يو تن ستاسو د يو کار اراده اُوکړي نو هغهٔ دې دوه رکعاته اُوکړي علاوه د فرضو نه، بيا دې (مانځه نه روستو) داسې اُووائي : اللهم انى استخيرك الخ) (اے الله ! زهٔ ستا د علم په وسيله سره تا نه خير غواړم، او ستا په قدرت سره ستا قدرت غواړم، او زهٔ ستا نه ستا فضل غواړم څکه تهٔ (په هر څيز) قادر ئې، زهٔ (ستا د رضا نه بغير په هيڅ شي باندې) قادر نهٔ يم، تهٔ په هر شي پوهه ئې او زهٔ په هيڅ نهٔ پوهيږم، او تهٔ په پټو څيزونو پوهيږې اے الله ! کهٔ تاته معلومه وي چه دا کار زما دپاره زما په دين، زما په ژوند، زما په انجام د کار کښې يا ئې اُوفرمايل : پدې دنيا کښې او په هغهٔ جهان (آخرت) کښې بهتر وي، نو تهٔ ئې زما دپاره مقرر کړې او ما دپاره ئې آسان کړې او بيا راله پکښې برکت واچوې، او کهٔ تا ته معلومه وي چه دا کار زما دپاره زما په دين، زما په ژوند، زما په آخرت کښې يا ئې اُوفرمايل : زما دنيا او آخرت کښې بد وي. نو هغهٔ ما نه او ما د هغې نه واړوهٔ او ما دپاره خير مقرر کړه هرځائې کښې چه وي بيا پرې ما راضي کړه ». راوي فرمائي: چه (د هٰذا الامر) په ځائې به د خپل حاجت نوم واخلي. (بخاريؒ)

تشريح : پدې حديث کښې صلاة الاستخارة ذکر دې. مطلب دا دې چه کله انسان يو کارکول يا پريخودل يا بيع شراء کول غواړي نو د الله نه په کښې طلب د خير اُوکړي او دا د الله سره يو قسم مشوره ده او په اسلام کښې ددې ډير آهميت دې، لکه نبي ﷺ به صحابه کرامؓ ته په هر کار کښې دا خودله. په جاهليت زمانه کښې به مشرکانو بد فالي نيوله او استقسام بالازلام به ئې کولو نو رسول الله ﷺ خپل اُمت ته د استخارې مونځ اُوخودلو چه د الله نه خير طلب کړي. او مقصود د استخارې نه تفويض دې الله ته او په هغهٔ باندې

توکل دے۔او د هغهٔ په علم او قدرت او د بنده دپاره په ښائسته اختیار باندے اعتماد دے چه دا د لوازمو د رضا د الله نه دے په رب کیدو د هغهٔ باندے چه ددے نه بغیر حلاوت د ایمان نهٔ حاصلیږی۔ او دغه شان د استخارے نه روستو چه کوم شے درله مقرر وی او په هغے باندے ایمان راوړے نو دا علامه د سعادت د بنده ده۔ (زاد المعاد ٤٤٣/٢)

## صلاة الاستخارة کښې د عوامو وهمُونه

١- بعض خلق وائی چه صلاة الاستخاره د شپے کول پکار دی لیکن دا خبره صحیح نهٔ ده ځکه نبی ﷺ فرمائی: (اِذَا هَمَّ) هر کله چه انسان قصد د یو کار کوی۔ نو کولے ئے شی، نو که ستا قصد د ورځے وی نو آیا ته به د شپے انتظار کوے۔

٢- خوب لیدل هم شرط نهٔ دے، دا په هیڅ حدیث کښې ندے خودلے شوے بلکه که یو انسان ماسخوتن کښې اُوکړه او خوب کښې ورله څه راغلل نو هغه بیله خبره ده، خو خوب لیدل ورله شرط نهٔ دے۔ وجه دا ده چه کله به یو شے ستا نه فوت کیږی لکه یو کتاب اخلے او ته شپے ته انتظار کوے نو هغه به درنه فوت شی بل څا به اخستے وی۔ نو استخاره اُوکړه او سمدست په کار باندے ورشه الله به پکښې خیر اَچوی۔

٣- بعض خلق وائی : استخاره صرف په شکی اُمورو کښې کیږی چه ستا شك وی چه دا کار اُوکړم او که نهٔ او په یقینی اُمورو کښې نهٔ وی۔ لیکن دا خبره هم خطاء ده، وجه دا ده چه پدے حدیث کښې (فی الامور کلها) راغلی دے نو د شك خبره پکښې نشته او د سلفؒ عمل هم پدے طریقه وو چه هغوی به دا په یقینی اُمورو کښې هم کوله لکه د حج یا عمرے اراده به ئے وه نو استخاره به ئے کوله او دینی اَمر یقینی وی۔ لیکن (فی الامور کلها) نه مراد هغه دینی اَمر دے چه شریعت ورله وقت نهٔ وی مقرر کړے لکه رمضان روژو دپاره یا فرض مونځ دپاره انسان استخاره کوی چه دا اُوکړم او که نهٔ نو دا استخاره صحیح نهٔ ده ځکه چه دا خو به ضرور کوے، دے دپاره وخت مقرر دے۔او هرچه حج، نکاح، بیع شراء وغیره کارونه دی نو هغے دپاره اَوقات نهٔ دی مقرر۔ حج اُوس هم کیږی او کال له هم، نو ددے دپاره استخاره پکار ده۔

## مسائل الاستخارة :

١- استخاره یو مشروع او سنت عمل دے او الله پکښې ډیر خیر اَچولے دے بلکه بعض علماؤ ورته واجب هم وئیلے ده لیکن جمهور علماء وائی : سنت ده۔ حافظ ابن حجرؒ

فرمائي: (فليركع ركعتين) كښې امر ګويا علماؤ د مشورې دپاره فهم كړيدې نو پدې سره ئې عدول كړې د وجوب نه سنيت ته او هركله چه دا مشتمل وو په ذكر او تفويض الى الله باندې نو مندوب اُوګرزيدو۔ آه۔امام نوويؒ، شيخ ابن باز هم ورته سنت وئيلې ده۔ او په عدم وجوب باندې ئې دليل حديث د اعرابي دې (هل علي غيرهن ، قال لا : الا ان تطوع) نو دا مؤكد سنت دى لهذا مسلمان له استخاره پريخودل نۀ دي پكار۔

٢- استخاره په ټولو كارونو كښې پكار ده وړوكې وى او كه غټ وى، امام نوويؒ وائي: استخاره په ټولو كارونو كښې مستحبه ده آه۔ ځكه ډير كرت په يو وړوكي كار باندې ډير عظيم كار مرتب شي۔

٣- د استخارې دپاره مستقل دوه ركعاته نفل مونځ كول پكار دى، سوئ د فرضو نه لهذا په فرضو كښې دا نۀ مُجْرِئ كيږي۔ امام نوويؒ فرمائي : ظاهر دا ده چه استخاره حاصليږي په دوه ركعاتو د سنن رواتبو هم او په تحية المسجد او نورو نوافلو سره هم۔ علامه عراقيؒ فرمائي : كله چه د سنت راتبه د شروع كولو نه مخكښې د انسان د يو كار قصد وى بيا مونځ اُوكړي بغير د نيت د استخارې نه او بيا د مانځه نه روستو ورته ښكاره شي چه د استخارې دعاء كوم نو اُوډې ئې كړي، ظاهر دا ده چه پدې سره هم استخاره صحيح كيږي۔ (بغية المتطوع)

٤- په صلاة الاستخاره كښې د فاتحې نه بعد څه خاص آيتونه او سورتونه لوستل ضروري نۀ دي بلكه هر سورت چه وائي جائز ده۔

٥- بيا چه استخاره اُوكړې نو څه به كوې ؟ نو پدې كښې (١) يو قول دا دې چه په يو كار به شروع اُوكړې هريو چه وى لا على التعيين ـ (٢) - ليكن راجح دا ده چه كوم كارئې په زړۀ كښې معين كړې وى نو هغې باندې به شروع اُوكړي ځكه په استخاره كښې يو كار معين كول وى خو صرف د الله نه پكښې خير طلب كوي۔ او دا د خواهش تابعداري نۀ ده لكه څنګه چه بعض وائي بلكه مقصد دا دې چه اې الله ! زه صبا دا كار كوم خو ستا نه پكښې خير غواړم دغه د استخارې مطلب دې۔

٦- مسئله : د استخارې دپاره مكروه وخت نشته ځكه يو شې به تۀ په مكروه وخت كښې آخلې يا خرڅوې نو كه ته دا مونځ روستو كړې او بيا اخستل خرڅول كوې نو هغه شې يا ګاهك درنه فوت كيږي۔ ٢- دويم دا چه حديث كښې (اذا هم) عام دې هر وخت ته لهذا دا سببي مونځ دې په اوقات الكراهة كښې هم كيدې شي۔

٧- استخاره كښې تكرار سنت نۀ دې، يو كرت سره سنت اداء كيږي او كوم حديث كښې

اووه کرته کولو باندې ئې انس بن مالك رض ته أمر کړې وو نو هغه ضعيف دې (اخرجه ابن السني رقم (٥٩٨) وذكره النووي في الاذكار ص (٣٥٨) باسناد ضعيف فيه ابراهيم بن البراء وهو يحدث عن الثقات البواطيلَ كما قال ابن عدي وابن حبان وفيه عبيد الله بن الموصل الحميري قال الحافظ لم اقف له على ترجمة) مگر کهٔ زړهٔ کښې ئې د هيڅ خبرې عزم نهٔ راځي نو بار بار دې ئې أوکړي.

٨- دا دعاء به کوم ځائې کښې وائي؟ نو شيخ الاسلام ابن تيميةؒ فرمائي : چه دا به په داخل د مانځه کښې وائي په قعده کښې د سلام نه مخکښې. (مجموع الفتاوى) ليکن ظاهره دا ده چه دا دعاء به پس د سلام نه وائي ځکه حديث کښې داسې الفاظ دي : (فير كع ركعتين من غير الفريضة ثم ليقل) نو (ثم ليقل) کښې (ثم) د تراخي دپاره دې نو ظاهر دا ده چه دا پس د مانځه نه دې. او پدې باندې فتوىٰ ورکړيده اعضاء اللجنة الدائمة للبحوث العلمية وغيره. او علامه شوکانيؒ وئيلي دي : پدې باره کښې هيڅ اختلاف نشته چه دا دعاء به د مانځه نه روستو وائي.

٩- آيا پدې دعاء کښې رفع اليدين شته ؟ نو په حديث کښې ئې څه تذکره نهٔ ده شوې لهذا بغير د رفع اليدين نه به دا دعاء کولې شي ليکن که د أدعيه مطلقه ؤ نه حساب کړې شي نو بيا لاس پورته کول پکښې جائز دي. ليکن سنت مستمره به ترې نهٔ جوړوي.

١٠- د هذا الامر په ځائې به د خپل حاجت نوم واخلي مثلاً که يوه جينئ په نکاح اخلي چه د هغې نوم فاطمه وي نو داسې به وائي : (اللهم ان كنت تعلم ان زواجي من فاطمة خير لي في ديني......) او په دويم ځائې کښې به داسې وائي : (ان كنت تعلم ان زواجي من فاطمة شر لي في ديني ......)

١١- ددې دعاء نه مخکښې درود وئيل او اروستو ترې د الله حمدونه وئيلو ته امام نوويؒ په کتاب الاذکار (١/١١١) کښې مستحب وئيلي دي ليکن ظاهر دا ده چه پدې مقام کښې به صرف دعاء وائي او دا څيزونه زياتول په سنت کښې نهٔ دي ثابت.

١٢- د استخارې دپاره خلق نورې دعاګانې بيانوي، لکه بعض خلق وائي : ( يا عليم علمني ويا رشيد أرشدني) بعض وائي : (اللهم خر لي واختر لي) به وائي، ليکن هغهٔ ټولې ضعيفې دي صرف دا دعاء صحيح حديث کښې راغلې ده، نو بس مؤمن له پدې باندې اکتفاء پکار ده. بلکه دا چه رشيد نوم د الله په اسماء حسنىٰ کښې نشته.

١٣- کوم شخص چه په مانځه نهٔ وي قادر لکه حائضه زنانه ته يو حاجت راپيښ شي چه استخاره پکښې کوي نو آيا دا بغير د مانځه نه صرف دعاء الاستخارة باندې اکتفاء

کولې شي ؟ الجواب : د فاتقوا الله ما استطعتم د عموم نه استدلال کيدے شي چه دا به صرف په دعاء باندے اکتفاء اُوکړي او دا مذهب د احناف، شوافع او مالکيه ؤ دے چه په استخاره کښې په دعاء باندے هم اکتفاء کول جائز دي۔ کله چه مونځ نشي کولې۔ امام نوويؒ فرمائي : (ولو تعذرت عليه الصلاة استخار بالدعاء) (کشف الستارة عن صلاة الاستخارة ص (١٤))

١٤ – په دعاء د استخاره باندے د مانځه د مخکښې کولو څۀ حکمت دے ؟۔

**الجواب** : الله حکيم او عليم ذات دے او زمونږ دين اسلام د حکمت او تدبر دين دے، کله انسان اراده کوي چه د نصوص شرعيه ؤ حکمتونو ته ځان اُورسوي نو پدے سره د هغۀ ايمان او يقين کښې زيادت راشي او کله چه حکمت ته اُونۀ رسي نو بيا سمعاً او طاعةً وئيل پکار دي نو د استخارے نه مونځ پدے وجه مخکښې راغلے دے چه مقصد د استخارے نه دا دے چه انسان د دنيا او آخرت دواړو خيرونه راجمع کړي او په کوم شي باندے چه اقدام کوي چه د هغے د شر نه ئے الله وړاندے کړي نو دا طلب يو قسم دعاء ده چه يوے مقدمے ته محتاج ده چه په هغے کښې ذلت او خشوع او عاجزي او مناجات او اعتراف وي چه پدے سره د مَلِك ذات دروازه اُټُکوي، مخکښې د شروع نه په طلب کښې او ددے کار کاميابي بغير د مانځه نه په بل څيز باندے نۀ کيږي او نۀ د مانځه نه غوره څۀ شته ځکه چه په مانځه کښې د الله تعظيم او ثناء ده او هغۀ ته افتقار دے حالًا او مآلًا (د انجام په لحاظ) نو پدے وجه ترے مونځ مخکښې کړے شو۔

١٥ – آيا دوه رکعاته کافي دي او که زيادت جائز دے ؟ نو ظاهر دا ده چه دوه رکعاته ادنیٰ درجه ده او پدے باندے کفايت راځي او که چا زيادت اُوکړو نو هم جائز ده۔ دليل دا دے چه په صحيح ابن حبان او مستدرك د حاکم (١/٣١٤) کښې په صلاة الزواج کښې داسے راغلي دي : (ثم صل ما کتب الله لك) نو ددے عموم دليل دے چه هرڅومره مونځ نه روستو دعاء الاستخارة وئيلے شي۔

او دا په فتاوى الدين الخالص (٥/٣٦٢) کښې په صلاة الزواج کښې راوړے شوے دے۔

١٦ – چا ته چه د استخارے دعاء حفظاً نۀ وي ياده، يا ئے نشي يادولے نو آيا د کاغذ، يا کتاب نه ئے وئيلے شي ؟ نو کۀ څوك ئے ياده کړي، ډير خير او فائده ده او کۀ څوك ددے طاقت نشي لرلے نو (لا يکلف الله نفساً الا وسعها) لهذا د کاغذ يا کتاب نه ئے اُوائي او پدے باب کښې آساني ده ليکن کله چه استخارے مونځ په خپلو کارونو کښې بار بار کوي نو هغۀ ته به ان شاء الله دغه دعاء هم زر ياده شي۔ او ددے په جواز باندے فتاوى اللجنة

الدائمة هم فتویٰ ورکړیده۔
(انظر تفصیل المسائل فی المرعاة ٣٦٤/٣) وفتاوی الدین الخالص (٣٦٠/٥) وبغیة المتطوع ص (٤٤) وکشف الستارة عن صلاة الاستخارة) وفقه السنة (٢١١/١ – صلاة الاستخارة)
اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ : دلته شك په نسبت سره بنده ته دے نۀ په نسبت سره الله ته ځکه الله ته خو د هر شي خیر او شر د مخکښې نه معلوم دے۔ خو بنده ته نۀ دے معلوم۔ نو دلته ان په معنې د يقين سره دے يعني يقينا تاته معلومه ده خو زۀ شكي يم۔
فِي عَاجِلِ اَمْرِيْ : پدے دواړو کښې به يو لفظ وائي، يا به (وعاقبة امری وعاجله) وائي يا به (عاجل امری وآجله) وائي۔ دواړه به نۀ جمع کوي۔ او د (هذا الامر) په ځائے به د حاجت نوم واخلي په عربئ يا عجمئ ژبه کښې۔
ثُمَّ اَرْضِنِيْ بِهٖ : په بل روايت کښې (ثم رضنی به) د باب تفعيل نه دے۔

## الفصل الثاني

٣– عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنِيْ اَبُوْبَكْرٍ – وَصَدَقَ اَبُوْبَكْرٍ – قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: «مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا، ثُمَّ يَقُوْمُ فَيَتَطَهَّرُ، ثُمَّ يُصَلِّيْ، ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ، اِلَّا غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ، ثُمَّ قَرَأَ ﴿ وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ، وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ﴾ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، اِلَّا اَنَّ ابْنَ مَاجَه لَمْ يَذْكُرِ الْآيَةَ.

ترجمه : امير المؤمنين علی ﷺ فرمائي : چه امير المومنين ابوبكر صديق ﷺ ماته فرمايلي دي او ابوبكر بالكل رشتيا وئيلي دي : چه ما د رسول الله ﷺ نه اُوريدلي دي چه فرمايل ئے : « نشته يو سړے چه يوه گناه اُوکړي بيا پاڅيږي اُودس اُوکړي بيا د (هغے نه بعد) مونځ اُوکړي اَو بيا د الله نه بخنه اُوغواړي مگر الله به ورته ضرور بخنه کوي، بيا ئے دا آيت تلاوت کړو (والذين الخ) (مومنان هغۀ کسان دي چه کله يو بے حيائي اُوکړي يا په خپل ځانونو ظلم اُوکړي نو الله راياد کړي او د خپلو گناهونو بخنه (د هغۀ نه) اُوغواړي، او (دا عقيده لري چه) نۀ بخښي گناهونه مگر صرف الله ئے بخښي، او کله چه دوي پو هيږي نو په گناهونو هميش والے نۀ کوي)» (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) او امام ابن ماجهؒ آيت نۀ دے ذکر کړے۔
تشريح : علی ﷺ په باب د روايت د احاديثو کښې ډير احتياط کونکے وو پدے وجه هغۀ ته به چه چا حديث نقل کولو نو هغه به ورله قسم ورکولو چه تا دا حديث د نبي ﷺ نه اُوريدلے دے، دے دپاره چه خلق په نقل د احاديثو کښې بے احتياطي اُونکړي، او دا وجه نۀ ده

چه خبر واحد حجت نهٔ دے ځکه د صحابه کرامؓ په زمانه کښې دا خبره بالکل نهٔ وه چه دا خبر واحد دے، مفید د ظن دے، او ابوبکر صدیق له ئے قسم ځکه ورنکړو چه په هغه باندے ئے پوره اِعتماد وو۔ لکه ددے روایت په ابتداء کښې په مسند احمد (١/١٧٩) او مسند الحمیدی (٤/١) او مصنف ابن ابی شیبة (٢/١٥٩) کښې داسے نقل دی: علی فرمائی: ما چه به کله د رسول الله ﷺ نه یوه خبره (پخپله) واوریده نو ما ته به الله تعالیٰ د هغې نه ډیره فائده راکوله څومره فائده چه به الله غوخته، او کله چه به ما ته د رسول الله ﷺ نه بل چا حدیث بیان کړو نو ما به ورله قسم ورکولو او کله چه به ئے ما ته قسم اُوکړو (چه آو ما دا حدیث د نبی نه اوریدلے دے) نو ما به ئے تصدیق کولو۔ او ابوابکر ما ته حدیث بیان کړیدے او هغهٔ رشتیا وئیلی دی ......الی آخره)

مِنْ رَجُلٍ: ددے نه مراد شخص انسانی دے سړے وی او که ښځه۔

بیا پدے حدیث کښې صلاة التوبة ذکر دے، صلاة التوبه هغهٔ مونځ دے چه انسان ئے د ګناه نه روستو کوی، مثلاً یو سړی نه زنا، بے حیائی، بد اخلاقی اُوشوه او هغه غواړی چه توبه اُوباسی نو هغه له مستحب دی چه صحیح طریقے سره اُودس اُوکړی او بیا دوه رکعاته مونځ اُوکړی او د مانځه نه پس د الله نه د خپلو کړو ګناهونو بخنه اُوغواړی نو الله به ورته دغه ګناهونه معاف کړی۔ توبه خو د ټولو ګناهونو نه ویستل فرض دی۔

الله فرمائی: ﴿ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا ﴾ هر انسان له د ګناه نه سمدست توبه ویستل فرض دی، هر وخت چه وی لیکن مونځ کول او د هغې نه روسته د ګناهونو بخنه غوختل مستحب دی۔ اګرکه دا د فرض مانځه نه روستو وی نو هغه هم کافی کیږی۔

لکه پدے باره کښې یو حدیث په ابن ماجه رقم (١٣٩٦) کښې شته (باسناد حسن) چه عاصم بن سفیان الثقفیؒ نه روایت دے چه دوی نه د ذات السلاسل غزا فوت شوه نو (بیا دوی (د الله په لار کښې) مرابطه (څوکیداری) اُوکړه، بیا معاویه ته راواپس شو او د هغهٔ په مجلس کښې ابوایوب انصاریؓ او عقبه بن عامر هم وو۔ نو عاصمؒ ابو ایوب انصاری ؓ ته اُوفرمایل: مونږ نه سږ کال غزا فوت شوه او مونږ ته دا خبر راکړے شوے دے چه څوک په مساجد اَربعه ؤ کښې مونځ اُوکړی هغه ته ګناهونه معاف کیږی؟۔ نو ابوایوبؓ ورته اُوفرمایل: اے وُراره! زهٔ به درته ددے نه آسان کار اُو ښایم، (هغهٔ دا چه) ما د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی دی: «څوک چه اُودس اُوکړی څنګه چه ورته حکم شوے وو او مونځ اُوکړی څنګه چه ورته حکم شوے وو (یعنی فرض) نو مخکنی ګناهونه به ئے معاف شی»۔ او بیا

ئې اُوفـرمـايـل : اې عـقـبـه ! آيا (خبره) داسې ده ؟ هغهٔ اُوفرمايل : آؤ ـ (صـحـحـه الالباني في صحيح سنن النسائي (١٤٤) وقال شعيب الارناوط في تعليق مسند احمد (٤٢٣/٥) حديث ابي ايواب الانصاري: صحيح لغيره)

لهذا ثابتـه شوه چـه صـلاة التـوبه مونځ صحيح دې اګركه ددې التزام به نشي كولې. بـلـكـه تـوبـه هـر وخت ويستـل پـكـار دي او كـهٔ مـونـځ ورله اُونهٔ شو نو هم خير دې.توبه ويستـل فـرض او مـونـځ ورله مستحب دې. او دا مونځ په اتفاق د مذاهب اربعو مستحب دې (الموسوعة الفقهية الكويتية)

درجة الحديث : اسناده : حسن او صحيح، اخرجه احمد (٢/١) وقال شعيب الارناوط : اسنـاده صـحـيـح) والتـرمـذي (٣٠٠٦) وابـن ماجه (١٣٩٥) وحسنه الالباني وصححه في صحيح الترغيب والترهيب (٦٨٠) (١٦٥/١)

٤ - وَعَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلَّى. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او حذيفه ﷺ فرمائي : نبي ﷺ ته به چه كله يو مشكل كار راپيښ شو نو (نفل) مونځ به ئې كولو. (ابوداودً)

تشريح : حَزَبَهُ : (اي نَزَلَ به اَمْرٌ مُهِمٌّ او اَصَابَهُ غَمٌّ- نهاية) يـعنى كله چه به پرې يو مهم كار راغلو يا به ورته يو غم اُورسيدو او سخت به شو په هغه باندې مصيبت نو مونځ به ئې كولو.

ديته صلاة الحاجة، صلاة المصيبة او صلاة الآيات او صلاة الآفات وائي يعني كله چه د انسـان يـو ضـرورت وي يا څه مصيبت يا آفت راپيښ شي نو هغهٔ له مونځ پكار دې ځكه نبي ﷺ بـه مـونـځ كـولو ځكه مونځ د حاجتونو د پوره كيدو او د مصيبتونو د دفع كيدو دپاره بهترينه نسخه ده.

## مصيبتونو كښې څهٔ كول پكار دي ؟

بيـا مـصـائـب، زلـزلې تيزې هواګانې او تندرونه وغيره چه راشي نو څه كارونه كول پكار دي؟ـ نـوابـوداود (١٧٦١) كښې حديث راځي چه د انس بن مالكؓ په دور كښې د ورځې تياره راغـلـه نـو عبيـد الله بـن الـنـضـرؒ وائي ما انسؓ ته اُووئيل تاسو به د نبي ﷺ په زمانه كښې پداسې مـوقـعـه كـښې څه كول ؟ نو هغه اُوفرمايل : كه هواء به سخته راوالوته نو مونږ به مسجد ته په جلتئ ورمنده كړه، دا يَره به وه چه هسې نه قيامت رانشي».

نو مونځ د هر مصيبت علاج دې.

☆- ابن عباس ته أووئيلے شو چه د رسول الله ﷺ يوه بي بي وفات شوه نو هغه په سجده پريوتو، نو چا ورته أووئيل : آيا ته په دے وخت كښ سجده كوے؟ وے فرمايل : نبي ﷺ فرمايلي دي : «كله چه تاسو يو آفت او ناشنا كارنامه أووينئ نو سجدے كوئ» او د نبي ﷺ د بي بيانو د وفات نه بل كوم لوئي مصيبت دے؟-(ابو داود (١٧٦/١)

٢- (انا لله و انا اليه راجعون اَللّٰهُمَّ أْجُرْنِيْ فِيْ مُصِيْبَتِيْ وَاَخْلِفْ لِيْ خَيْرًا مِنْهَا) دُعا وئيل-

٣- نبي ﷺ به په داسے موقعو كښ په صدقه، مريانو آزادولو، ذكر، استغفار، مونځ، دعاء او تكبير وئيلو باندے حكم كولو- (بخاري ١/١٤٢) ابو داود (١/١٧٥-١٧٦)

## آيا صلاة الحاجة ثابت دے ؟

بيا اختلاف دے چه آيا صلاة الحاجة ثابت دے او كه نه ؟ نو بعض علماؤ خو بالكل انكار كړيدے لكه محمد بن صالح العثيمينؒ فرمائي : چه پدے باره كښ هيڅ حديث صحيح نشته- ليكن اصح دا ده چه :

١- صلاة الحاجة يو د خاص دعاء سره دے نو هغه په ضعيف حديث كښ راغلے دے لكه ترمذي (١/١٠٨) وابن ماجه رقم (١٠٨) وتلخيص المستدرك (١/٣٢٠) كښ دے : عبد الله بن ابي اوفيٰؓ فرمائي : رسول الله ﷺ مونږ ته راووتو وے فرمايل : د چا چه څه حاجت الله ته يا د هغه يو مخلوق ته وي نو هغه دِے أودس اوكړي او دوه ركعاته مونځ دِے اوكړي او بيا دِے داسے أووائي : (لا اله الا الله الحليم الكريم سبحان الله رب العرش العظيم الحمد لله رب العالمين اللهم انى اسألك موجبات رحمتك وعزائم مغفرتك والغنيمة من كل بر والسلامة من كل اثم، اسألك ان لا تدع لي ذنباً الا غفرته ولا هماً الا فَرَّجْتَهٗ ولا حاجةً هي لك اِلَّا قَضَيْتَهَا لِيْ) بيا دِے د الله نه د دنيا او د آخرت څيزونه غواړي څه چه ئے خوښه وي ځكه هغهٔ پرے قادر دے-(روستو متصل حديث كښ راځي)

نو ددے حديث په سند كښ فائد بن عبد الرحمن متروك الحديث دے لكه ذهبيؒ په تلخيص المستدرك كښ وئيلي دي-

٢- او هرچه صلاة الحاجة بغير د دغه مذكوره دعاء نه دے نو هغه په ډيرو احاديثو كښ ثابت دے- ١- لكه په حديث د ضرير البصر كښ ثابت دے عثمان بن حنيف فرمائي : يو ړوند سړے نبي ﷺ ته راغلو وے فرمايل : د الله نه دعاء أوغواړه چه ما روغ كړي- نبي ﷺ أوفرمايل : «كه ته غواړے زهٔ به دعاء تا له روستو كړم او دا به ستا دپاره غوره وي او كه غواړے أوس به دعا أوكړم» نو هغه أووئيل : د الله نه ئے أوغواړه نو نبي ﷺ هغه ته حكم

اُوکړو چه ښائسته اَودس اُوکړي او دوه رکعاته اُوکړي او دا دعاء اُووائي : (اللهم انی اسئلك واتوجه اليك بنبی الرحمة يا محمد انی قد توجهت بك الی ربی فی حاجتی هذه لتقضی اللهم فشفعه فیّ) (ابن ماجه ١٣١/١) رقم (١٣٨٥) مجمع الزوائد (٢٧٩/٢) وسنده صحيح) نو پدے حديث کښې صلاة حاجت ثابت دے او پدے کښې توسل بدعی نشته بلکه پدے کښې وسيله ده په دعاء د ژوندی انسان چه نبی ﷺ دعاء غواړي ددهٔ دپاره او دا وائي چه يا الله ما له د خپل نبی الرحمة دعاء قبوله کړه۔

٢- دارنګه پدے حديث الباب کښې هم صلاة الحاجة ثابت شو۔

٣- علامه شوکانیؒ په الفوائد المجموعة ص (١٦) کښې د مسند احمد نه د ابوالدرداء حديث نقل کړيدے (سمعت رسول الله ﷺ يقول : من توضأ فاسبغ الوضوء ثم صلی رکعتين يتمهما اعطاه الله عزوجل ما سأل معجلاً او مؤخراً) (څوك چه کامل اَودس اُوکړي بيا دوه رکعاته اُوکړي پوره طريقے سره نو الله به ورکړي دهٔ ته څه چه غواړي په جلتئ يا په تاخير سره) او بيا ئے رئيلی دی چه ددے سند صحيح دے۔آه (ليکن ددے په سند کښې ميمون ابی محمد المرائی راوی دے ذهبیؒ وائي : مجهول دے)۔ بيا فرمائي : (ولصلاة الحاجة الفاظ وصفات کلها ضعيفة الا حديث ابی الدرداء وحديث ابن ابی اَوفی المذکورين) ص (١٧) (سيوطیؒ په اللآلی المصنوعة ٤٠/٢) کښې وئيلی دی چه د ابوالدرداء حديث په روايت د مسند احمد حسن دے۔) او تذکرة الموضوعات للشيخ محمد طاهر الفتنی (٣٤١/١) کښې ورته حسن وئيلے دے۔ (وانظر ايضاً فتاوی الدين الخالص (٣٥٧/٥)

٤- دارنګه صلاة الحاجة د قرآن نه ثابت دے : ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾ عبد الله بن عباسؓ به دا مونځ کولو او بيا به ئے فرمايل : مونږ هغهٔ کار کوو چه الله مونږ ته پدے قول سره حکم کړيدے : ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾

لهذا د صلاة الحاجة دپاره اصل شته۔ نو مناسب دی چه چا باندے څهٔ مصيبت يا حاجت نازل شي چه هغهٔ صلاة الحاجة اُوکړي۔

ملا علی القاریؒ ددے حديث لاندے ليکي : (وهذه الصلاة ينبغی ان تسمی بصلاة الحاجات لانها غير مقيدة بکيفية من الکيفيات، ولا مختصة بوقت من الأوقات)۔ (او مناسب ده چه دے مونځ ته صلاة الحاجات نوم ورکړے شي ځکه چه دا څه خاص کيفيت پورے مقيد نهٔ دے او نه د يو معلوم وقت پورے خاص دے)

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٣٨٨/٥) وابوداود (١٣١٩) وفی اسناده محمد بن عبد الله الدؤلی عن عبد العزيز اخی حذيفة وهما مجهولان وضعفه شعيب

الارناووط فی تعلیق مسند احمد ، ولکن حسنه الالبانی فی صحیح ابی داود رقم (١١٧١) وقال المبارکفوری فی المرعاة (٣٦٧/٣) واسناده صحیح او حسن انتهیٰ۔ وانظر رقم الحدیث فی الجامع الصغیر (٤٧٠٣)

٥– وَعَنْ بُرَيْدَةَ، قَالَ: اَصْبَحَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ، فَدَعَا بِلَالًا فَقَالَ: «بِمَ سَبَقْتَنِيْ اِلَى الْجَنَّةِ ؟ مَا دَخَلْتُ الْجَنَّةَ قَطُّ اِلَّا سَمِعْتُ خَشْخَشَتَكَ اَمَامِيْ». قَالَ: يَارَسُوْلَ اللهِ! مَا اَذَّنْتُ قَطُّ اِلَّا صَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ، وَمَا اَصَابَنِيْ حَدَثٌ قَطُّ اِلَّا تَوَضَّأْتُ عِنْدَهٗ وَرَأَيْتُ اَنَّ لِلّٰهِ عَلَيَّ رَكْعَتَيْنِ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «بِهِمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او بریده ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ صبا کړو (د مانځه نه روستو ئې) بلال راوغوختو ورته ئې اُوفرمايل: «ته ما نه جنت ته په کوم عمل مخکښ شوې ئې (ځکه) زهٔ هيڅکله جنت ته نهٔ يم داخل شوې مګر ما خپلې مخې ته ستا د خپو آواز اوريدلے دے؟ »۔ هغهٔ عرض اُوکړو: يارسول الله! ما هيڅکله آذان نهٔ دے کړے مګر (د هغې نه روستو مې) دوه رکعاته کړي دي، او ما ته کله هم بے آودسي نهٔ ده رارسيدلې مګر ما د هغې سره (سمدست) آودس کړيدے او د الله دپاره مے په خپل ځان باندے دوه رکعاته ګنړلی دي۔ رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « ددے دوه کارونو په وجه» (ته دے عظيمے درجے ته رسيدلے ئې) (ترمذیؒ)

تشريح : بِمَ سَبَقْتَنِيْ : بلال خو د خپل ځان نه ندے خبر خو نبی ﷺ ته د هغه تصوير مثالي په جنت کښ خودلې شويدے۔ نو ځکه ترے تپوس کوي۔

علامه توريشتیؒ ددے داسے تفصيل بيان کړيدے چه ددے تپوس مطلب دا دے چه بلال د پيغمبر د امر او حکم راتلو نه مخکښ او د فضيلت بيانولو نه مخکښ هغهٔ عمل ته مسارعه او جلتي کړيده چه دا فضيلت انسان لره ثابتوي۔ او ددے مثال داسے دے لکه يو سړے خپل غلام ته وائي : ته ما نه کار ته مخکښ کيږے، يعنی زما د امر کولو نه مخکښ تهٔ هغهٔ کار کوے۔ او ددے ظاهري معنیٰ اخستل محال دي ځکه چه ددے مطلب خو بيا دا راوزي چه د الله نبي نه دے يو تن جنت ته مخکښ داخل شي، يو نبي هم د هغهٔ نه مخکښ نشي داخليدے پاتے لا بلالؓ چه دا د پيغمبر اُمتي دے۔

او دا واقعه د خوب ده۔ او بلال به په ويښه د نبي ﷺ نه مخکښ د هغهٔ د خدمت دپاره روان وو نو ځکه ورته الله په خوب کښ هم دغه شان حالت راوستو، او ددے نه دا نهٔ لازميږي چه بلال د نبي ﷺ نه جنت ته مخکښ داخل شويدے ځکه بلال خو په مقام د

تابع او خادم کښ دے، او ګویا کښې نبی ﷺ دے ته اشاره اُوکړه چه بلال به په دے حالت باقی پاتے وی کوم باندے چه دنیا کښ وی او دا به همیشه وی په نزدی والی د مرتبے سره. (المرعاة ٤/٣٦٨)

خَشْخَشَتَكَ : خشخشه د اَسلحے حرکت (شرنګاری) ته وائی یعنی هغه حرکت چه د هغے سره آواز وی.

مَا اَذَّنْتُ : یعنی د اَذان او اِقامت ترمینځ مے مونځ کړیدے.نو دا هم بهترین مونځ دے کول ئے پکار دی.

رَكْعَتَيْنِ : قانون دا دے چه د اَوداسه نه روستو که مکروه وقت وو نو بیا به صرف دوه رکعاته کوی ځکه د بعض علماؤ په نیز دا صلاة سببی دے او زیادت به نهٔ کوی او که مکروه وخت نهٔ وو نو بیا ډیر مونځ هم کولے شی او دا تطبیق دے په دواړو روایتونو د بلال کښ چه مخکښ وائی، (ما کتب لی) او دلته وائی (رکعتین).

اَوداسه کښ ګرځیدل د نبی ﷺ اود صحابه کرامؓ طریقه وه چه اَودس به ئے مات کړو نو سمدست به ئے اَودس یا تیمم وهلو، هسے نه چه بے اَودسئ کښ مرګ رانشی، دا اَودس فرض او واجب نهٔ دے لیکن ډیر نیک عمل دے.

درجة الحديث : اسناده صحيح على شرط مسلم : اخرجه احمد (٣٦٠/٥) والترمذی (٣٦٨٩) والحاكم (٢٨٥/٣) وقال صحيح الاسناد ووافقه الذهبی.

---

٦- وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ كَانَتْ لَهٗ حَاجَةٌ اِلَى اللهِ اَوْ اِلٰى اَحَدٍ مِنْ بَنِيْ آدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ فَلْيُحْسِنِ الْوُضُوْءَ ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللهِ تَعَالٰى، وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ، ثُمَّ لِيَقُلْ: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ، سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، اَسْأَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ، وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ، وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ، وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ، لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ، وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ، وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًى اِلَّا قَضَيْتَهَا يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

ترجمه : عبد الله بن ابی اَوفی ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :«د چا چه الله ته یا بنی آدمانو کښ یو تن ته حاجت وی (دینی حاجت وی او که دنیوی) نو هغهٔ دے اَودس

اُوکړي او ښائسته طريقې سره دې اُوکړي، بيا دې دوه رکعاته اُوکړي بيا دې د الله تعالیٰ صفتونه بيان کړي او په نبي ﷺ دې درود اُووائي او بيا دې دا دعا اُووائي: لا اله الا الله الحليم الخ " (نشته حقدار د بندګۍ سوئ د الله نه چه صبرناك عزتمند دې، پاك دې الله چه د لوئي عرش مالك دې، او ټول صفتونه خاص الله لره دي چه رب د مخلوقاتو دې، اې الله ! زۀ تا نه هغۀ څيزونه غواړم چه د هغې په وجه رحمت کيږي، او کوم چه ستا د بخنې سبب وي او غواړم حصه د هرې نيکئ نه او سلامتيا غواړم د هرې ګناه نه، اې الله ! ما دپاره هيڅ ګناه مۀ پريده مګر هغه راته معاف کړه او هيڅ غم مګر هغۀ لرې کړه، او هيڅ حاجت چه تا ته خوښ وي مګر هغۀ پوره کړه، اې ډير رحم کونکې د رحم کونکو نه»۔ (ترمذیؒ، ابن ماجۀ) امام ترمذیؒ وئيلي دي : دا حديث غريب دې۔

تشريح : حَاجَةٌ : يعني دنياوي او که ديني حاجت وي۔ فليتوضأ : ددې يو مطلب دا دې چه که اُودس ئې وي نو هم اَودس دې تازه کړي ۲– يا دا چه کۀ اودس ئې نۀ وي نو اَودس دې اُوکړي۔

وَلْيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ : ددې نه مراد الفاظ د تشهد دي۔

اَلْحَلِيْمُ : هغۀ ذات دې چه په جلتئ سره عقوبت او عذاب نۀ ورکوي۔ الکريم : هغۀ ذات دې چه بغير د استحقاق او ضباطولو نه ورکړه کوي۔

مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ : يعني هغه اسباب (کلمات او خويونه او کارونه) چه ثابتوی ستا رحمت لره۔

وَعَزَائِمَ : جمع د عزيمة ده، قصد او ارادې ته وائي، دلته ترې ثابتونکې شې مراد دې۔ يعني ستا د مغفرت ثابتونکې شې (اسباب) راکړې۔

هِيَ لَكَ رِضًى : اى مرضية لك : يعني ستا پسنديده وي۔ او تا ته خوښ وي۔

دې مونځ ته صلاة الحاجة وائي دا په صحيح احاديثو کښې ثابت دې اګر که دا روايت پکښې ضعيف دې۔ وقد تقدم۔ او که دا حديث ثابت هم نشي نو بيا هم يوه ښه دعاء پکښې راغلې ده يادول ئې پکار دي او په عام دعاګانو کښې ئې شاملول پکار دي۔ او خپل حاجتونه ترې غوختل پکار دي۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف جداً : اخرجه الترمذی (٤٧٩) وابن ماجه (١٣٨٤) والحاکم فی المستدرك (٣٢٠/١) وفی اسناده فائد بن عبد الرحمن يضعف فی الحديث قال عنه احمد : متروك۔ وقال الحاکم : روی عن ابن ابی اوفی احاديث موضوعة)

❀❀❀❀❀❀

# باب صلاة التسبيح

## د تسبيحاتو والا مونځ بيان

ديته صلاة التسبيح ځکه وائی چه پدے کښ تسبيحات زيات وئيلے کيږی۔

### آيا صلاة التسبيح ثابت دے ؟

د صلاة التسبيح په ثبوت کښ اختلاف دے : ١- امام أحمدؒ فرمائی : دا مونځ نۀ دے ثابت او دا حديث ورته منکر ښکاره شويدے۔ ليکن دا خبره صحيح ثابته ده چه امام احمدؒ ددے قول نه رجوع کړيده (کما قال الحافظ فی اجوبته عن احاديث المشکاة)

٢- شيخ الاسلام ابن تيميةؒ فرمائی : صلاة التسبيح نۀ دے ثابت۔ (مجموع الفتاوی ١١/ ٥٧٩ -بحث المعازف وکلام العلماء)

٣- په فتاوی هيئة کبار العلماء (١٩٧/١) کښ ئے ديته بدعت وئيلے دے او حديث ته ئے منکر وئيلے دے۔او دغه فتویٰ د سعودی عام علماء ورکوی۔

٤- په السنن والمبتدعات کښ عبد السلامؒ وئيلی دی چه دا أحاديث ټولو طرقو سره ضعيف دی او يو طريق د ابن عباسؓ په کښ قريب دے حسن ته ليکن شاذ دے۔

٥- حافظ په (التلخيص الحبير) کښ د ابن عربیؒ نه نقل کړيدی چه پدے باره کښ هيڅ حديث نۀ دے ثابت، نۀ صحيح او نۀ حسن۔ اوحافظ وائی : پدے کښ يو حديث حسن درجے ته رسی ليکن هغه هم شاذ دے ځکه زيات تفرد پکښ شويدے او متابع او شاهد ئے ندے موجود۔ ٦- ابن الجوزیؒ په الموضوعات کښ ذکر کړيدے۔ او ديارلس اسانيد ئے ورله بيان کړيدی او بيا ئے وئيلی دی چه حديث موضوع دے۔

بل طرفته نور علماء ددے مَدِ مُقابل کښ وائی چه دا حديث صحيح يا حسن دے لکه

١- امام حاکمؒ (٢٠٨/١) او ذهبیؒ ددے حديث د ابن عباسؓ تقويت ته اشاره کړيده۔

٢- شيخ البانیؒ فرمائی : ددے حديث ډير طرق او شواهد دی چه د هغے په وجه دا حديث درجے د قوت ته رسی۔ (تعليق المشکاة ٤١٩/١) رقم (١٣٢٨)

٣- علامه ابوالحسنات عبد الحی اللکهنویؒ په (الآثار المرفوعة فی الاخبار الموضوعة

(٣٥٣-٣٧٥) كښې ددې حديث تصحيح ډير تفصيلًا ذكر كړيده.

٤- امام بغويّ هم ددې حديث تقويت ته اِشاره كوي، د حديث د ابن عباسؓ نه روستو ددې تقويه كوي په روايت د ابورافع باندې. فتدبر.

٥- ابوبكر بن ابى داودؒ د خپل پلار ابوداودؒ نه نقل كوي : (ليس فى صلاة التسبيح حديث صحيح غيره) (يعنى دا حديث صحيح دې).

٦- امام خليل په (الارشاد) كښې په خپل سند سره د اِمام مسلم نه نقل كوي فرمائى : (ولا يروى فى هذا الحديث اسناد احسن من هذا) (دا ډير احسن حديث دې).

٧- امام دارقطنيّ ددې حديث طرق په يو جزء (كتاب) كښې راجمع كړيدى.

٨- علامه خطيب بغداديّ پدې باندې كتاب ليكلې دې.

٩- حافظ ابوموسى المدينيّ پرې كتاب (تصحيح صلاة التسبيح) ليكلې دې چه دا د لسو صحابه كرامؓ نه په متصل اَسانيدو نقل دې.او د څو تابعينو نه په مرسل طريقو نقل دې.امام ترمذيّ په خپل جامع كښې حديث د انسؓ په مطلق تسبيح فى الصلاة كښې ذكر كړيدې او بيائې وئيلى دى :(وفى الباب عن ابن عباس، وعبد الله بن عمرو والفضل بن عباس وابى رافع)

١٠- ابوالفضل العراقى الحافظؒ وائى : دا د عبد الله بن عمر بن الخطابؓ نه هم نقل دې. او دغه شان دا د عباس بن عبد المطلب، على بن ابى طالب، جعفر بن ابى طالب (ﷺ)، او د هغه ځوى عباس بن جعفرؓ او د ام المؤمنين ام سلمهؓ او د يو انصارى صحابيؓ نه نقل دې چه بعض وائى هغه جابرؓ دې. (كما قال الحافظ المزى). دا لس صحابه كرامؓ دى.

او مرسلًا د محمد بن كعب القرظيّ، ابوالجوزاء، مجاهد، اسماعيل بن رافع او عروة بن رويم (رحمهم الله) نه نقل دې لكه چه په دوى كښې د بعضو نه موصولًا هم نقل دې. انظر اجوبة الحافظ عن احاديث المصابيح (٢/٤)

او هر چه د حافظ ابن حجرؒ مخكښئ خبره ده نو د هغې جواب د هغه د خپل كلام نه واضح كيږي چه هغه په (الخصال المكفرة) كښې كړيدې هغه فرمائى : (رجال اسناد حديث ابن عباس لا بأس بهم ، عكرمة احتج به البخارى والحكم بن ابان صدوق، وموسى بن عبد العزيز قال ابن معين لا ارئ فيه بأسا. وقال النسائى نحو ذلك وقال ابن المدينى : فهذا الاسناد من شرط الحسن فان له شواهد تقويه وقد أساء ابن الجوزى بذكره فى الموضوعات)

او حافظ چه دا خبره كړيده چه ددې شاهد او متابع نهٔ دې موجود نو دا خبره ئې حقه نهٔ ده ځكه حديث د ابورافع عند الترمذى وابن ماجه او حديث د عباس بن عبد المطلب عند

الدارقطني ددے شواهد دی۔ او ابوداود حدیث د عبد الله بن عمرو باسناد لا بأس به نقل کړیدے او حاکم د ابن عمروؓ په روایت دیر طریق ذکر کړیدی۔ نو دا ټول متابعات او شواهد شو۔ او حافظ په (امالی الاذکار) کښې وئیلی دی چه د حدیث د ابن عباسؓ اسناد حسن دے او بیا په حدیث د انصاری کښې چه کوم ابوداود راوړیدے– وئیلی دی چه سند ددے حدیث د حسن درجې نه نۀ خکته کیږی او بیا چه کله ورسره روایة د ابی الجوزاء عن عبد الله بن عمروؓ کوم چه ابوداود ذکر کړیدے او منذری ورته حسن وئیلی دے – ملګرے شی نو ضرور دا به حسن درجه کښې وی۔ او دے حدیث ته ابن مندهؒ صحیح وئیلی دے او پدے کښې ئے یو کتاب لیکلی دے او ابوسعد السمعانی، علامه ابوبکر آجُرِیؒ، حافظ ابو الحسن المقدسیؒ، ابوداودؒ صاحب السنن، مسلمؒ صاحب الصحیح، بیهقیؒ، دارقطنیؒ، ابو منصور الدیلمیؒ، حاکم، حافظ صلاح الدین العلائیؒ، سراج الدین البلقینیؒ ابوموسی المدینیؒ، ابوالحسن بن مفضلؒ، منذریؒ، ابن صلاحؒ، زرکشیؒ او امام نوویؒ په (تهذیب الاسماء واللغات) کښې ورته حسن وئیلی دے او سُبُکیؒ په یوه مستقله رساله کښې ددے تصحیح کړیده او نورو علماؤ هم ورته صحیح وئیلی دے۔

علامه ابومنصور الدیلمیؒ په مسند الفردوس کښې فرمائی : (صلاة التسبیح اشهر الصلوات واصحها اسناداً) اللآلی المصنوعة (٣٦/٢) للسیوطی والمرعاة (٣٧٤/٣) والمرقاة (٢١٣/٣) او علامه ابوالحسن السندیؒ په حاشیه د ابن ماجه (٤٣٠/١) کښې دیته ثابت وئیلی دے چه پدے باندے عمل خلقو له پکار دے انتهی۔ او علامه زُبیدیؒ په حاشیه د احیاء العلوم (٤٧٣/٣) کښې حدیث د ابن عباسؓ ته صحیح وئیلی دے۔

علامه شعیب الارناووط په تعلیق د شرح السنة (١٥٧/٤) او عبد القادر الارناووط په تعلیق د الاذکار (١٥٧) او جامع الاصول (٢٥٤/٦) کښې صحیح کړیدے۔

او کومو علماؤ چه ددے نه انکار کړیدے نو د هغوی دوه دلائله دی :

١– یو دا چه ددے شکل او ترتیب او کیفیت د نورو مونځونو نه مخالف دے۔ لهذا دا به ضعیف وی۔ لکه دا خبره حافظ ابن تیمیةؒ کړیده۔

٢– دویم دا چه ددے په رُواتو ئے کلام کړیدے۔

لیکن ددے جواب دا دے چه د صلاة الخوف شکل هم جدا دے نو په تبدیل د شکل سره خو حکم شرعی نۀ رد کیږی او نۀ دا سبب د ضُعف الحدیث او شذوذ ګرځی بلکه دا مستقل حکم شرعی دے۔ (تحفة الاحوذی (٣٥١/١) والمرعاة (٣٧٥/٤)

٢– دویم دا چه علامه سُبُکیؒ فرمائی : پدے مونځ کښې د نورو مونځونو نه مخالفت

نشته مګر صرف جلسه د استراحت پکښې اوګډه ده او جلسه د اِستراحت په اصل کښې مشروع ده او پدې حدیث کښې ئې صرف اوګډوالې دے لیکن هغه هم په ذکر اوګډه شویده (الفتوحات الربانیة ٣٠٨/٤)

٣- حافظ عراقیؒ په شرح د ترمذی کښې دا جواب کړیدے چه نوافلو کښې قیام او قعود جائز دے تردے چه په یو رکعت کښې هم جائز دے۔ (الفتوحات الربانیة ٣٠٨/٤)

او هر چه راویان دی نو په هغوی کښې داسې څوك نشته چه هغه کذاب او وَضاع وی بلکه حدیث د ابن عباسؓ بالکل بیشکه حسن درجه کښې دے یا صحیح لغیره دے د وجه د کثرت شواهدو او متابعاتو نه۔ بله دا چه پدے باندے د اُمت د صالحینو عمل راروان دے۔ او دا مذهب د شوافعو دے چه دیته ئې مستحب وئیلے دے لکه امام نوویؒ په بعض کتابونو کښې دیته مستحب وئیلی دی۔

امام غزالیؒ په احیاء العلوم (٢٠٠/١) کښې ددے ډیر استحباب بیان کړیدے چه دا خو په هره هفته کښې یو کرت یا په میاشت کښې ضرور پکار دے۔انتهیٰ

٢- بعض حنابله وائی که چا دا اوکړو نو هیڅ باك پرے نشته بلکه جائز عمل دے څکه نوافل دی۔ کما قال ابن قدامة. (الموسوعة الفقهیة الکویتیة٩٦٤٥/٢)

٣- احناف وائی: کما فی الدر المختار (٤٨٢/١) وشرح الاحیاء للزبیدی (٤٨١/٣) چه صلاة التسبیح مستحب عمل دے هره ورځ او شپه کښې یا هره هفته کښې یا هره میاشت یا ټول عمر کښې۔ او حدیث ئې حسن دے د وجه د کثرت طرق نه۔ انتهیٰ

٤- مالکیه ؤ نه دے باره کښې د جواز او د منع هیڅ قول ندے نقل مګر خطابؒ د قاضی عیاضؒ نه نقل کړیدی چه هغه دا په فضائلو کښې ذکر کړیدے کما فی الفتوحات الربانیة (٣٢١/٤)۔

او امام ابن المبارك رحمه الله دیته مستحب وئیلی دی چه دا صلاة التسبیح مُرَغب فیها دے، هر مسلمان له پدے باندے عمل کول پکار دی۔او د هغې کیفیت ئې هم بیان کړیدے۔ او شیخ البانیؒ د صلاة التسبیح په باره کښې درے وارو روایاتو ته صحیح وئیلی دی لکه په صحیح ابی داود (٢٤٠/١) وصحیح ابن ماجه (٢٣٢/١) کښې اوګوره۔

او دارنګه سید سابقؒ صاحب په فقه السنة (١٧١/١) کښې ورته صحیح وئیلی دی۔ او علامه مبارکفوریؒ په (تحفة الاحوذی) کښې ورته حسن درجه کښې وائی۔ او همدغه رایه د ابوالحسن المبارکفوری په (مرعاة٣٢٧٤/٤) کښې ده۔

او کومو علماؤ چه ورته ضعیف وئیلے دے نو هغوی پدے باره کښې پوره تحقیق نهٔ دے

کړے بلکه چا تقلیدي أنداز کښې خبره کړیده او چا معمولي تحقیق کړیدے۔ او په فتاوی الدین الخالص (۴۷۸/۵) کښې د صلاة التسبیح باره کښې څوارلس احادیث ذکر شویدي سَره د تفصیل د طُرُقو نه او په هغې باندے کلام هم شویدے او د اعتراضاتو تفصیلي جوابونه ذکر شویدي هغې ته رجوع اُوکړئ۔ وکذا تحفة الاحوذی (۳۵۱/۱)

فائده : علامه ابن حجر هیثميؒ په فتاوی کبری (۱۹/۱) کښې وئیلي دي چه حقه دا ده چه حدیث د صلاة التسبیح حسن لغیره دے نو چا چه ورته مطلقاً صحیح وئیلي دے لکه ابن خزیمهؒ او حاکمؒ نو دا به محمول وي په دے چه کله د حسن حدیث شواهد زیات وي نو هغه صحیح شمارلے شي او چا چه ورته مطلقاً ضعیف وئیلي دے لکه نوويؒ او د هغه نه روستو علماؤ نو د هغه مراد دا دے چه په اعتبار د مفرداتو د طرقو سره ضعیف دے او چا چه ورته حسن وئیلي دے نو په اعتبار د کثرة الطرق سره۔ لهذا د فقهاء او محدثینو په مختلفو عباراتو کښې تناقض نه راځي تردے چه د یو شخص کلام هم په خپلو کتابونو کښې متعارض نهٔ واقع کیږي لکه نوويؒ او شیخ الاسلام العسقلانيؒ شو۔

بیا کوم خلق چه صلاة التسبیح ثابت ګڼړي نو هغوي ددے دپاره دوه کیفیتونه بیانوي یو په حدیث د ابن عباسؓ کښې راغلے دے او دا د ټولو نه قوي طریقه ده ځکه حدیث ئے ډیر قوي دے۔ او دا په اول حدیث ددے باب کښې ذکر ده او دویمه طریقه د عبد الله بن مبارك په حدیث کښې ذکر ده چه هغې کښې د قرائت نه مخکښې تسبیحات پنځلس کرته دي۔ او په حدیث د ابن عباسؓ کښې د قراءت نه روستو دي۔

۱ – عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ: يَا عَبَّاسُ ! يَا عَمَّاهُ! اَلَا أُعْطِيْكَ ؟ اَلَا أَمْنَحُكَ؟ اَلَا أُخْبِرُكَ؟ اَلَا أَفْعَلُ بِكَ؟ عَشْرَ خِصَالٍ اِذَا اَنْتَ فَعَلْتَ ذٰلِكَ، غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ ذَنْبَكَ اَوَّلَهُ وَآخِرَهُ، قَدِيْمَهُ وَحَدِيْثَهُ، خَطَاَهُ وَعَمْدَهُ، صَغِيْرَهُ، وَكَبِيْرَهُ، سِرَّهُ وَعَلَانِيَتَهُ: أَنْ تُصَلِّيَ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، تَقْرَأُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً، فَاِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِيْ اَوَّلِ رَكْعَةٍ وَاَنْتَ قَائِمٌ. قُلْتَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ اَكْبَرُ، خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً، ثُمَّ تَرْكَعُ فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا، ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ الرُّكُوْعِ، فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَهْوِيْ سَاجِدًا، فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ السُّجُوْدِ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا، فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُوْنَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ، تَفْعَلُ ذٰلِكَ فِيْ اَرْبَعِ رَكَعَاتٍ، اِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تُصَلِّيَهَا فِيْ

كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ، فَفِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِي عُمُرِكَ مَرَّةً». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيْرِ. ٢- وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْ أَبِي رَافِعٍ نَحْوَهُ.

---

ترجمه : او د ابن عباس ﷺ نه روایت دے چه نبی ﷺ عباس بن عبد المطلب ته اُوفرمایل : اے عباس اے ترۀ! آیا زۀ تا ته عطیه درنکرم، آیا زۀ تا ته تُحفه درنکرم ؟ آیا زۀ تا ته اُونۀ ښایم ؟ آیا زۀ په تا باندے لس خصلتونه (کارونه) اُونکرم ؟ چه کۀ تۀ هغۀ اختیار کړے نو الله تعالیٰ به ستا ګناهونه مخکنی، روستنی، پخوانی او نوی، سهواً او قصداً، واړه او غټ، پټ او ښکاره (ټول ګناهونه) اُوبخی، (هغۀ دا دی) چه تۀ څلور رکعاته مونځ (پداسے طریقه) اُوکړے چه په هر رکعت کښې سورة فاتحه او یو سورت اُولولے، کله چه په اول رکعت کښې د قراءت نه فارغ شے او تۀ ولاړ یې نو پنځلس کرته به دا (تسبیح) اُووائے : "سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر" بیا به رکوع اُوکړے په هغے کښې به یې لس کرته اُووائے بیا به د رکوع نه سر پورته کړے (سمع الله لمن حمده نه پس په قومه کښې به یې) لس کرته اُووائے، بیا به سجدے ته پریوځے او په سجده کښې به یې (د سبحان ربی الاعلیٰ نه بعد) لس کرته اُووائے، بیا به د سجدے نه سر پورته کړے (په قومه کښې به یې) لس کرت اُووائے، بیا به سجده اُوکړے، او په سجده کښې به یې لس کرته اُووائے بیا به سر پورته کړے (په جلسه د استراحت کښې به یې) لس کرته اُووائے، نو دا په هر رکعت کښې پنځه آویا (۷۵) کرت شو دغه شان کار به کوے په څلور رکعاتو نو کښې۔ کۀ ستا طاقت وی چه دا مونځ هره ورځ یو کرت اُوکړے نو وے کړه او کۀ (هره ورځ یې) نشے کولے نو په هره جُمعه کښې یې یو کرت کوه او که (هره هفته کښې یې) نشے کولے نو په هره میاشت کښې یې یو کرت کوه او کۀ (هره میاشت کښې یې) نشے کولے نو په هر کال کښې یې یو کرت کوه او کۀ (هر کال یې) نشے کولے نو په ټول عمر کښې یې یو کرت (خو ضرور) اُوکړه»۔ (ابوداوُدؒ، ابن ماجهؒ، بیهقیؒ فی الدعوات الکبیر) امام ترمذیؒ ددے په شان روایت د ابورافعؓ نه نقل کړیدے۔

تشریح : عشر خصال : ددے نه مراد لس قسمه ګناهونه دی چه دا دریاندے نۀ لرے کوم۔ ۲- ظاهر دا ده چه دلته لس تسبیحات دی چه عام لس کرت وئیلے شی او په بعض مقاماتو کښې پنځلس کرت دی۔

فوائد الحدیث : ۱- پدے حدیث کښې خطاب عباس ﷺ ته متوجه دے لیکن ددے حکم

تولو مسلمانانو دپاره عام دے ځکه اصل په خطاباتو د رسول الله ﷺ کښې عموم دے۔
٢- خطأه وعمده : عمده په سکون د میم دے۔ سوال : خطاء خو دے اُمت ته معاف ده (لا تؤاخذنا ان نسینا او اخطأنا) نو دا څنګه په ګناهونو کښې شماری ؟
الجواب : خطاء کښې اګرکه ګناه نهٔ وی لیکن قُصور او نقصان پکښې ضرور وی۔ نو ددے مونږ دا أثر دے چه دا قصُور او نقصان هم زائل کیږی۔
٣- وکبیره : دا حدیث دلیل دے چه په بعض اعمالو باندے بغیر توبے نه هم کبیره ګناهونه معاف کیږی لکه د ګناهونو د معاف کیدو لسو اسبابو کښې مونږ یو سبب دا هم ذکر کړے وو۔ انظر (١/٦٦٢ کتاب الطهارة – طبع ثانی)
٤- بنده له دا مناسب نهٔ دی چه دا مونځ اُوکړی او بیا خپلے واګے کولاوے کړی هر قسم ګناهونه کوی او دا مِسکین دا ګمان کوی چه ما خو داسے عمل کړیدے چه زما د ګناهونو د بخښے ضمانت اخستے شویدے۔دا ډیر کمعقل توب او جهالت دے۔ نهٔ، بلکه دا په دوکه کښې پروت دے ځکه چه دیته فکر پکار دے چه الله دا عمل قبول کړیدے او که نهٔ ؟ بیا ستا ګناهونه معاف شویدی او که نه ؟ دا د شیطان د مداخلو نه یو مدخل دے چه انسان پدے طریقه باندے دوکه کوی۔
٥- پدے ګناهونو کښې د بندګانو متعلق حقوق نهٔ دی داخل، هغه نهٔ معاف کیږی، ترڅو چه حقوق ئے خپل اهل ته نهٔ وی رسولی۔ او بیا ئے توبه نهٔ وی ویستلی۔
٦- د صلاة التسبیح په باره کښې د وقت متعین کولو او د سورتونو مقررولو باره کښې څهٔ مقبول احادیث نهٔ دی راغلی۔ که هر سورت وائی جائز ده، بعض علماؤ پکښې لادا وئیلی دی چه کله به زلزله، عادیات، اذا جاء نصر الله او اخلاص وائی او کله به الهاکم التکاثر، عصر، کافرون او الاخلاص وائی، او چا وئیلی دی چه څلور مُسبحات به وائی لکه الحدید، الحشر، الصف او التغابن ځکه ددے سورتونو د صلاة التسبیح سره مناسبت دے لیکن پدے باره کښې هیڅ قسم حدیث او آثر نهٔ دے موجود۔
او د وقت باره کښې یو روایت د عبد الله بن عمرو بن العاصؓ مرفوعاً په ابوداود کښې راغلے دے باسناد حسن صحیح : (اذا زال النهار فقم فصل اربع رکعات – الحدیث) (صحیح ابی داود رقم١١٥٢)
علامه ابو الحسن مبارکفوریؒ وائی : ددے نه معلومیږی چه اولیٰ دا ده چه صلاة التسبیح پس د زوال الشمس نه او مخکښې د صلاة الظهر نه اُوکړے شی۔
٧- اربع رکعات : ظاهر د حدیث دا دے چه دا څلور واړه رکعاته به په یو سلام کوی، که

شپه وي او که ورځ، ځکه حدیث مطلق راغلی دے او څه قید پکښې د یو سلام او دوه سلامونو نۀ دے راغلے۔ بعض تقسیم کوي چه د ورځے په یو سلام او د شپے په دوه سلامونو۔ او بعض وائي : کله به ئے په یو سلام کوي او کله به ئے په دوه سلامونو۔ لیکن اوله خبره راجحه ده (کما قال القاري في المرقاة ١٩٢/٢) والمبارکفوري في تحفة الاحوذي (٣٤٩/١) وابوالحسن في المرعاة (٣٧٢/٣)

٨- بعض علماء وائي دا تسبیحات به د محل د معین ذکر نه پس وائي نو په رکوع کښې به د خپلو تسبیحاتو نه روستو دا زائد تسبیحات وائي دارنګه سمع الله لمن حمده الخ نه پس او دغه شان سجده کښې هم۔ ځکه چه په دغه تسبیحاتو د رکوع او سجده باندے امر راغلے دے نو هغه به ددے زائد تسبیحاتو دپاره نشي پریخودلے۔ نو دا د عموماتو نه ثابتوي۔ (بغیة المتطوع)

٢- مګر ظاهر د حدیث دا دے چه دا مقام د بیان دے نبي ﷺ له پکار وو چه ددے بیان ئے کړے وے لیکن هرکله چه هغه دا بیان اُونکړو نو بس دا تسبیحات د هغه مقام د تسبیحاتو په ځائے قائمقام شو صرف (سمع الله لمن حمده) او تکبیرونه به وائي۔

٩- کله چه انسان پدے مانځه کښې سَهوَ شي نو په سجده سهوه کښې به دا تسبیحات زائده نه وائي۔ ترمذي (٣٥٠/٢) د عبد العزیز بن ابي رزمة نه نقل کوي چه ما عبد الله بن المبارك ته اُووئیل : کله چه پدے مونځ کښې سهوه شي نو په سجده سهو کښې به دا تسبیحات وائي؟ هغه اُووئیل : نه ! دا تسبیحات صرف (٣٠٠) سوه دي۔ (انظر بغیة المتطوع في صلاة التطوع ص : ٤١) لغالب هذه الفوائد) والمرعاة (٣٧٢/٣) والتنقیح في صلاة التسبیح لجاسم الدوسري)

١٠- خمس عشرة مَرّةً : دا د اکثرو ائمه ؤ قول دے چه تسبیحات د قراء ت نه پس دي او هر چه د عبد الله بن المبارکؒ عمل دے چه د قراء ت نه مخکښې پنځلس کرت او د قرائت نه پس لس کرت او په اعتدال کښې نۀ وئیل نو هغه ددے حدیث مخالف دے۔

امام منذريؒ وائي : جمهور پدے صفت باندے عمل کوي او عمل پدے باندے اولیٰ دے ځکه ددے نه سِویٰ په صحیح مرفوع حدیث کښې نۀ دے راغلے۔ او همدا خبره علامه مبارکفوريؒ هم کړیده۔ (تحفة الاحوذي)

١١- پدے کښې جلسه د استراحت احنافو هم منلے ده دا اُوګده جلسه د استراحت ده چه تسبیحات پکښې دي او ددے نه جلسه د تشهد نۀ ده مراد ځکه دا خو اول رکعت دے۔

١٢- صلاة التسبیح به جَمعے سره یا منفرداً په کور کښې یا په مسجد کښې یا په هر

مکان کښې کول جواز لري ځکه حديث پکښې مطلق راغلې دے۔ ( (الجامع لاحکام الصلاة ۱۱۶/۳) لمحمود عبد اللطيف عويضة)

درجة الحديث : اسناده صحيح بكثرة طرقه : اخرجه ابوداود (۱۲۹۷) وابن ماجه (۱۳۸۶) وابن خزيمة (۱۲۱۶) والحاكم (۳۱۸/۱) وقد اختلف الائمة فى تصحيح وتضعيف الحديث وقد حقق العلامة ابوالحسنات اللكهنوى القول فيه من (الآثار المرفوعة فى الاخبار الموضوعة) والحافظ فى اجوبته عن احاديث المشكاة رقم (۳) واسناد حديث ابى رافع ضعيف فيه موسى بن عبيدة وهو ضعيف وسعيد بن ابى سعيد مجهول۔

---

۳– وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: اِنَّ اَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهٖ صَلَاتُهٗ، فَاِنْ صَلَحَتْ فَقَدْ اَفْلَحَ وَاَنْجَحَ، وَاِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ، فَاِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيْضَتِهٖ شَيْءٌ، قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى: اُنْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِيْ مِنْ تَطَوُّعٍ؟ فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيْضَةِ، ثُمَّ يَكُوْنُ سَائِرُ عَمَلِهٖ عَلٰى ذٰلِكَ». وَفِيْ رِوَايَةٍ :«ثُمَّ الزَّكَاةُ مِثْلَ ذٰلِكَ، ثُمَّ تُؤْخَذُ الْاَعْمَالُ عَلٰى حَسْبِ ذٰلِكَ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ. ٤– وَرَوَاهُ اَحْمَدُ عَنْ رَجُلٍ......

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه ارشاد وئيلو سره آوريدلى دى : « د بنده د اعمالونه د ټول نه رومبني عمل په باره کښې چه محاسبه کولے شي، هغه به د بنده مونځ وي، لهذا که د هغه مونځ درست وي (يعنى هغه مونځ صحيح ادا کړے وي يا د هغه مونځ قبول شوے وي) نو هغه کامياب شو او مراد ته اورسيدو، او که چرته مونځ ئے فاسد وي (يعنى مونځ ئے نه وي کړے يا نه وي قبول شوے) نو هغه به (د ثواب نه) نا اميده وي، او (په عذاب کښې د مبتلا کيدو په وجه به) په خساره کښې وي، پس که چرته د هغه د فرض (مونځ) نه څه نقصان شوے وي، (يعنى مکمل طريقے سره نه وي ادا شوے، خشوع پاتے شوي وي، واجبات او سنن او ارکان ترے پاتے وي) نو الله تبارك وتعالىٰ به (خپلو ملائکو ته) فرمائي : چه تاسو اوګورئ ! آيا زما دے بنده دپاره نفل مونځ شته يا نه (نو که د هغه نفل عبادت وي) نو په هغے سره به دده د فرضو کمے پوره کړے شي، بيا به دغه شان د بنده باقي اعمال په دغه طريقه وي »۔ او په يو روايت کښې دى : « بيا به دغه شان د زکوٰة حساب وي، بيا به باقي اعمال ددے موافق حساب اخستے شي »۔ (ابوداوُدؒ) او امام احمدؒ دا د يو (بل) سړي نه نقل کړيدے۔

تشریح : فَيُكَمَّلُ بِهَا : دا د الله فضل او احسان دے چه د فرائضو د نقصان جبیره ئے په نوافلو کړیده ځکه که الله انسان ته اُوفرمائي چه دا فرائض دے ولے نقصاني کړیدي نو بیا به د انسان څه جواب وي ؟ نو ددے وجه نه په نوافلو باندے ددے تکمیل کیږي.

نو حدیث کښې مونږ ته دا سَبَق دے چه تاسو ځانله د نوافلو ډیره ذخیره جمع کړئ که فرائض مو نقصاني شو نو دا نوافل بـه د فرائضو تکمیل اُوکړي نو سنن او نوافل مکملات د فرائضو دي په آخرت کښې. او د هر انسان په فرائضو کښې ضرور نقصان وي نو سنن او نوافل جَمع کول پکار دي.

بیا دا سنن مُکملات د فرائضو دي خو په آخرت کښې، نۀ په دنیا کښې نو د شامي مولا استدلال صحیح نۀ دے چه أذکار او دعاء بعد السنة پکار دي ځکه چه سنن مکملات د فرائضو دي. مونږ وایو چه دا تکمیل په آخرت کښې دے، نۀ په دنیا کښې، بلکه اذکار به ضرور د فرض مانځه پسے متصل وائی او د سنتو نه روستو کول ئے بدعت دے. (کما مر فی باب الذکر بعد الصلاة)

اشکال : دے حدیث نه معلومه شوه چه اول حساب به د مانځه باره کښې وي او په بل صحیح حدیث کښې دي : (اول ما يقضى بين الناس يوم القيامة فى الدماء) (اوله فیصله به د خلقو ترمینځ د قیامت په ورځ باره د وینو کښې وي) نو ظاهر کښې تعارض ښکاري، ددے څۀ حل کیدے شي؟. الجواب : علامه عراقي په شرح د ترمذی کښې وائي : د دواړو هیڅ تعارض نشته ځکه چه دا حدیث الباب محمول دے په حق الله باندے او هغۀ صحیح حدیث په حقوق د انسانانو باندے په خپل مابین کښې. ښۀ نو په هغے کښې به الله د کوم حساب مقدم کوي ؟ نو ددے جواب دا کیدے شي چه دا توقیفي امر دے، بنده ته د هغے اطلاع نۀ ده ورکړے شوے، مګر ظاهر د احادیثو دا دے چه اول به حق د الله وي بیا به د بندګانو حقوق وي. انتهى.

۲- جواب : دا حدیث الباب په باره د ترك د عباداتو کښې دے او هغۀ حدیث په باره د فعل السیئات (ګناهونو کولو) کښې دے. ۳- یا دا چه محاسبه غیر ده د قضاء نه نو محاسبه اول په مانځه باندے وي او قضاء (فیصله) به اول په وینو کښې وي.

درجة الحديث : اسناده صحيح بشواهده : اخرجه ابوداود (٨٦٤) والترمذی (٤١٣) والنسائی (٢٣٢/١) وابن ماجه (١٤٢٥) والحاكم فی المستدرك (٢٦٢/١) واسناد احمد (٧٢/٥) (٣٧٧) صحيح واخرجه الحاكم (٢٦٣/١)

٥- وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَا اَذِنَ اللهُ لِعَبْدٍ فِيْ شَيْءٍ أَفْضَلَ مِنْ

الرَّكْعَتَيْنِ يُصَلِّيهِمَا، وَإِنَّ الْبِرَّ لَيُذَرُّ عَلٰى رَأْسِ الْعَبْدِ مَا دَامَ فِيْ صَلَاتِهِ، وَمَا تَقَرَّبَ الْعِبَادُ إِلَى اللّٰهِ بِمِثْلِ مَا خَرَجَ مِنْهُ»، يَعْنِي الْقُرْآنَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او ابوامامه ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « الله تعالىٰ غوږ نهٔ دے ايخے (نهٔ دے متوجه شوے) د بنده يو شي ته چه هغهٔ د دوه رکعاتو نه بهتر وي چه بنده ئے کوي، او يقيناً د بنده په سر باندے نيکيانے راتويږي ترڅو پورے چه دا په مانځه کښ مصروف وي، او بندګان الله تعالىٰ ته په بل شي باندے نهٔ نزدے کيږي چه هغهٔ مشابه وي د هغهٔ قرآن سره چه د الله د طرف نه نازل شوے دے۔ (يعنې د الله قرب چه څومره په قرآن کريم سره کيږي دومره په بل هيڅ څيز سره نهٔ حاصليږي) (احمدؒ، ترمذيؒ)

تشريح : اَذِنَ : ددے په صله کښ لام او الى استعماليږي په معنىٰ د غوږ کيخودلو سره دے او دلته ترے مراد د الله تعالىٰ اقبال او توجه ده په شفقت او رحمت کولو سره په بنده باندے۔ ځکه بنده چه کله د مشاغلو نه فارغ شي او په زړه او بدن اوږے سره خپل مولىٰ ته متوجه شي نو الله سبحانه هم هغهٔ ته په خپل لطف او احسان سره متوجه شي چه داسے توجه په نورو عباداتو کښ نهٔ وي۔ او غالباً په مانځه کښ قراءت د قرآن کيږي او تسبيحات او تکبيرات وئيلے کيږي پدے وجه ئے غوږ کيخودل ذکر کړل۔ او الله ته خپل کتاب ډير محبوب دے، پدے وجه کله ئے چه بنده وائي نو الله ورته ډيره توجه کوي۔

لَيُذَرُّ : صيغه د مجهول ده خورولو ته وائي، د (ذررت الحب والملح) نه دے (اى فرقته) يعنې دانے او مالګه مے خوارهٔ کړل۔ دلته ترے راتريدل او خوره ول مراد دي۔

مَا دَامَ فِيْ صَلَاتِهِ : ددے وجه دا ده چه مونځ سراسر خير دے او ګناه پکښ نشته نو ځکه په انسان باندے دغه شان د الله نيکيانے راتويږي۔

مَا خَرَجَ مِنْهُ: دا دليل دے چه قرآن کريم باندے الله تعالىٰ تلفظ کړيدے او د هغه نه راوتے دے۔ او داسے نهٔ ده چه مبتدعين وائي، د الله دپاره کلام لفظي نشته۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه احمد في المسند (٢٦٨/٥) والترمذى (٢٩١١) وفيه بكر بن خنيس قد تكلم فيه ابن المبارك وتركه في آخر عمره وفيه ليث بن ابى سليم ضعيف.

❁❁❁❁❁❁

# باب صلاة السفر

## د سفر د مانځه بیان

د سفر نور اَحکام هم شته لیکن دلته د مانځه متعلق اَحکام زیات دی نو ځکه هغه ذکر کوی، زمونږ د شریعت د کمالاتو او سَماحت نه دا ده چه د اَحکام مقررولو نه پس ئے په هغے کښې رخصتونه هم رالیږلی دی. که ټول اُمت باندے ئے په هر حالت کښې همدغه اَحکام وے نو بیا به اُمت ته ګرانه شوے وے.

نو په سفر کښې بعض رخصتونه د روژو هم شته لیکن دلته د مانځه ذکر کیږی. د مانځه باره کښې یو څو قسمه رخصتونه دی. ۱- یو دا چه څلور رکعاتی مونځ په دوه رکعاتی بدلیږی. ۲- اُوګد قراءت په لنډ قراءت بدلیږی، سحر مونځ په آخری دوه سورتونو هم کولے شی. ۳- سنن رواتب پریخودل هم جائز دی.

٤- جمع بین الصلاتین په سفر کښې کول نبیﷺ دا رخصت ورکړیدے اګرکه بعض مذهبونو کښې دا نشته لیکن په دین کښې شته، هغوی ترے ځان په زوره محروم کړیدے.

٥- په سفر کښې په سورلئ باندے په ناسته نفل مونځ جائز دے. ٦- د اقامت اعمال په سفر کښې مکمل لیکلے کیږی، ٧- دعاء قبلیږی. ٨- جماعت پریخودل.

۹- د جُمعے مونځ پرے لازم نهٔ وی، صرف د ماسپښین مسافرانه مونځ به کوی.

### حکم القصر - فی السفر

قصر کښې د علماؤ اِختلاف دے چه دا په کومه درجه کښې دے، واجب دے که سنت دے ؟

۱- علامه خطابیؒ په معالم السنن کښې فرمائی : مذاهب د اکثر علماء السلف او فقهاء الامصار دا دے چه قصر په سفر کښې واجب دے او دا قول د علیؓ، عمرؓ، ابن عمرؓ او ابن عباسؓ دے او دا د عمر بن عبد العزیزؒ او قتادۃ او حسن بصریؒ دے.

۲- او حماد بن ابی سلیمان وائی : خوك چه په سفر کښې څلور رکعاته اُوکړی نو هغهٔ به اعاده کوی. ۳- امام مالك وائی : که چا اتمام اُوکړو او وقت باقی وو نو مونځ به دوباره کوی. انتهیٰ. او دا قول د احنافو هم دے چه قصر واجب دے چه که چا قصر اُو نکړو

نو گنا هګار دے او که د قعدے نه پاڅیدو نو مونځ ئے فاسد دے، ځکه فرض ئے د نفلو سره خلط کړل۔ (نیل الاوطار ۲۴۵/۳) تحفة الاحوذی (۸۲/۲) (الاستذکار (۲۲۲/۲– باب قصر الصلاة فی السفر) والفتح الربانی (۹۷/۵)

**دلائل : ۱ - دلیل :** مسلم (۲۴۱/۱) کښې حدیث د یعلی بن امیه دے چه په هغے کښې دا دی (لکه روستو راځی) : (صدقة تصدق اللّٰه بها علیکم فاقبلوا صدقته) (د الله صدقه قبوله کړئ) نو دلته امر راغلے دے په قبلولو د صدقه باندے او ظاهر د امر وجوب دے۔

**۲ - دلیل :** حدیث د عائشه دے۔ (فرضت الصلاة رکعتین، ثم هاجر النبی ﷺ ففرضت اربعاً وترکت صلاة السفر علی الاولیٰ) (بخاری ۵۶۰/۱) رقم (۳۹۳۵) وفی روایة مسلم (۲۴۱/۱) : انها قالت : فرض اللّٰه الصلاة حین فرضها رکعتین، ثم اتمها فی الحضر، فاقرت صلاة السفر علی الفریضة الاولیٰ) ۔ نو دا حدیث دلیل د وجوب دے ځکه چه هرکله د سفر مونځ دوه رکعاته فرض شوے دے نو پدے باندے زیادت کول جائز نهٔ دی لکه څنګه چه په حضر کښې د څلورو کمے جائز نهٔ دے۔ لکه دا د ابن عباسؓ نه په مسند احمد کښې په روایت د ضحاك بن مزاحم کښې نقل دی (فمن صلی فی السفر اربعاً کم صلی فی الحضر رکعتین) لیکن هغهٔ روایت شعیب الارناووط ضعیف کړیدے د حمید بن علی العقیلی په وجه چه دارقطنی وئیلی دی (لایحتج به) او ابن حبان په طبقه رابعه د ثقاتو کښې ذکر کړیدے او ابوزرعهٔ وئیلی دی چه (کوفی لا بأس به) دے۔ (الفتح الربانی)۔

(ولکن قال الاعظمی : ویشهد له ما رواه عبد الرزاق عن ابن عباس : انه لا ینبغی للمسافر ان یصلی صلاة المقیم ۔ کنز العمال (۲۴۲/۴) (روضة المحدثین ۴۹۶/۱۱) (الشاملة)

لیکن ددے **جواب** نور علماء داسے ورکوی چه پدے حدیث کښې عائشهؓ د دوه حکمونو خبر ورکوی ۱– یو دا چه په مکه کښې مونځ فرض شویدے او هغهٔ د مسافر او مقیم دواړو دپاره دوه دوه رکعاته وو۔ ۲– دویم دا چه کله نبی ﷺ مدینے ته هجرت اُوکړو نو د حضر په مانځه کښې زیادت اُوشو۔ او د سفر مونځ په خپل زوړ حالت باندے پاتے شو نو اُوس مسافرانه مونځ دوه رکعاته کول هم رخصت دے او عزیمت نهٔ دے ځکه دا مطلب نهٔ دے چه زیادت ناجائز دے بلکه دا د الله احسان دے چه په سفر کښې ئے په زوړ حالت باندے پریخودو او زیادت ئے پکښې لازم نهٔ کړو۔

**۳ - دلیل :** حدیث د ابن عباس دے (فرض اللّٰه الصلاة علی لسان نبیکم ﷺ فی الحضر اربعاً، وفی السفر رکعتین وفی الخوف رکعة) (مسلم ۲۴۱/۱) دے حدیث نه معلومه شوه چه سفر کښې دوه رکعاته فرض دی، لهذا زیادت به نهٔ کوی۔

لیکن ددے نه نور علماء جواب ورکوی چه ددے روایت مطلب دا دے چه سفر کښ به د دوه رکعاتو نه کمے نهٔ کوی لکه په صلاة الخوف کښ به د یو رکعت نه کمے نهٔ کوی۔ ځکه په اتفاق د علماؤ سره په صلاة الخوف کښ د یو رکعت نه زیادت جائز دے۔

او هرچه حضر دے نو په هغے کښ کمے او زیاتے په ځلور باندے جائز نهٔ دے د وجه د نورو دلائلو نه۔ فتدبر۔

٤- دلیل : په نسائی کښ د ابن عمرؓ حدیث دے چه هغهٔ فرمائی : ( ان الله عزو جل امرنا ان نصلی رکعتین فی السفر) (صححه الالبانی فی صحیح سنن النسائی (٤٥٧) (مونږ ته الله حکم کړیدے چه په سفر کښ دوه رکعاته اُوکړو) لیکن ددے جواب دا دے چه دلته د امر نه مراد دا نهٔ دے چه زیادت نهٔ دے جائز بلکه مراد دا دے چه په سفر کښ دوه رکعاته کول حکم شرعی دے او شرعی طریقه ده۔)

٥- دلیل : اثر د عمر فاروق دے : (صلاة السفر رکعتان، وصلاة الجمعة رکعتان والفطر والاضحی رکعتان، تمام غیر قصر علی لسان محمد ﷺ) (ابن ماجه (١٠٦٣) والنسائی (٢١١/١) (١٣٦٤) وابن حبان ٢٢/٧) (٢٧٨٣) وصححه الالبانی)

دا حدیث د مرفوع په درجه کښ دے۔ او صریح دے چه قصر عزیمت دے او اتمام جائز نهٔ دے ځکه دلته ئے د سفر دوه رکعاته د جُمعے سره مشابه کړی دی او د جُمعے مونځ پوره کول خو ناجائز دی نو دغه شان مسافرانه مونځ پوره کول به هم نا جائز وی۔

ددے جواب امام نوویؒ داسے ورکړیدے چه معنیٰ دا ده چه صلاة السفر دوه رکعاته دی د هغهٔ چا دپاره چه پدے باندے اراده د اقتصار لری، او دا قول چه (تمام غیر قصر) دے نو معنیٰ ئے دا ده چه ( تمام اجرهما مثل الاربع) (اجرئے د ځلور رکعاتو په شان دے) هغهٔ دا تاویل ځکه متعین دے چه جَمع دلائلو راشی۔

٢- قول ثانی : قصر رخصت دے او پوره مونځ کول افضل دی۔ او دا قول د شافعیؒ، مالكؒ او احمدؒ دے۔ امام نوویؒ وائی : دا قول د جُمهورو علماؤ دے۔ او دا د عائشےؓ، عثمانؓ او ابن عباسؓ نه نقل شویدے۔

٣- مګر امام مالكؒ وائی : قصر سنت دے خو که چا اتمام اُوکړو نو مونځ مکروه دے۔ او دا قول شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ اختیار کړیدے۔ ځکه نبی ﷺ په هیڅ سفر کښ اتمام نهٔ دے کړے او هغه فرمایلی دی : (صلوا کما رأیتمونی اُصلی)

او امام اَحمدؒ وائی : قصر اَفضل دے او اِتمام بدون الکراهة جواز لری لکه دا قول د اَحمدؒ امام ابن قدامة په المغنی کښ ذکر کړیدے۔

٣- امام نوویؒ فرمائی : د شوافعو صحیح مشهور قول دا دے چه قصر افضل دے او اتمام جائز دے۔ (شرح مسلم)۔ او صاحب د عون المعبود وائی دا قول د مالك بن انسؒ او شافعیؒ او اکثرو علماؤ دے۔ (١٤٨/٣)

**دلائل** : د احنافو او د هغوی د موافقینو دلائل خو تیر شو۔

د شوافع او مالکیانو دلائل دا دی : ١ - **دلیل** : یو دا چه عثمانؓ او عائشہؓ به اتمام کولو۔ او امام نوویؒ فرمائی : چه صحابه کرامؓ به د نبی ﷺ سره سفرونه کول نو بعضو به قصر کولو او بعضو به اتمام او بعضو به روژه نیوله او بعضے به کوژه وو۔ او همدا خبره بعینه د ابونجیح المکی او سعید بن المسیب او عطاء نه نقل ده (واللفظ لابی نجیح) (اصطحب اصحاب النبی ﷺ فی السیر فکان بعضهم یتم وبعضهم یقصر وبعضهم یصوم وبعضهم یفطر فلا یعیب هؤلاء علی هؤلاء ولا هؤلاء علی هؤلاء) (ابن ابی شیبة (٤٥٢/٢)

(ددے نه بعض دا جواب کوی چه هرکله چه د نبی ﷺ نه قصر نهٔ دے نقل نو د صحابه کرامو اعمال معارض نشی کیدے د اقوال او افعالو د رسول الله ﷺ سره) (الفتح الربانی)

٢- دویم د (لیس علیکم جناح ان تقصروا من الصلاة) نه معلومیږی چه قصر رخصت دے او عزیمت نهٔ دے۔ کما قال النووی فی شرح مسلم)

لیکن ددے نه جواب دا دے چه دا په باره د صلاة الخوف کښې نازل دے۔ او پدے کښې قصر د عدد نهٔ دے۔بلکه قصر الارکان بالتخفیف مراد دے۔

٣- او د صدقة لفظ نه استدلال کوی چه قصر رخصت دے نهٔ عزیمت۔ لیکن روستو (فاقبلوا) امر راغلے دے د هغے نه معلومیږی چه ددے قبلول لازم شو۔ مګر ددے نه دا جواب کیدے شی چه قبلولو معنیٰ دا ده چه مهٔ ئے رد کویٔ نو څوك چه د قصر د جواز عقیده لری یا د استحباب نو هغهٔ دا صدقه قبوله کړه۔ دارنګه دا هم وائی : چه (صدقة) لفظ نه ددے رخصت والے معلومیږی نو کهٔ د (فاقبلوا) نه وجوب واخلو نو بیا به یو حدیث مشتمل شی په دوه حکمین متضادینو باندے په اول کښې رخصت او روستو عزیمت او لزوم۔

٤- **دلیل** : عائشے د نبی ﷺ سره عُمره اُوکړه نو هغه روژه ماته کړه او مونځ کښې ئے قصر اُوکړو او عائشہؓ روژه اُونیوله او مونځ ئے پوره اُوکړو بیا ئے نبی ﷺ ته ددے خبر ورکړو نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : (اَحسنتِ یا عائشة) (تا ښه کار اُوکړو) (دارقطنی، نسائی ٢١٣/١) السنن الکبری للبیهقی (١٤١/٣) (وسنده حسن او صحیح وحسنه البیهقی فی السنن وفی معرفة السنن والآثار ٤٢٥/٢)(وانظر تنقیح التحقیق (٣٢/٢) په سند کښې ئے علاء بن زهیر دے یحیی ابن معین ورته ثقه وئیلے دے۔ اګرکه ابن حبان په کښې کلام

کړيدے ليکن د هغهٔ کلام هم متناقض دے ځکه په ثقاتو کښې ئے هم راوړيدے او په ضعفاؤ کښې ئے هم راوړيدے او حافظ عسقلانی او ذهبی د هغهٔ ترديد کړيدے۔ او پدے روايت کښې د رمضان قيد وهم د راوی دے اگرکه باقی روايت صحيح دے۔ شيخ البانی په الارواء (۸/۳) کښې ددے تقويت ته اشاره کړيده لهذا دا سنت تقريری شو۔

علامه شوکانیؒ ددے قول دپاره څلور دلائل ذکر کړيدی او په تولو ئے کلام کړيدے۔ هغے ته رجوع اُوکړه۔ (نيل الاوطار ۲٤۷/۳) ليکن بعض دلائل پکښې قوی دی کما عرفت۔

٥- دليل : انس بن مالك الكعبی القشيریؓ (دا مشهور انسؓ نهٔ دے) فرمائی: نبی ﷺ فرمايلی: (ان الله وضع عن المسافر الصوم وشطر الصلاة وعن الحامل والمرضع الصوم) (اخرجه الاربعة، حسنه الترمذی، نصب الراية (۲/۱۹۰) وقال الالبانی فی صحيح سنن النسائی (۲۲۷٥) (۲۲۷٦) وابن ماجه (۱٦٦۷) حسن صحيح)۔

(الله د مسافر نه روژه او نيمائی مونځ ايخودے (يعنی معاف کړے) دے۔ او حاملے او مُرضعے ته ئے روژه معاف کړيده) دا حديث دليل دے چه اتمام د مانځه جائز دے ځکه روژه نيول په سفر کښې جائز دی، او دلته ئے صوم او صلاة دواړه ئے د يو لفظ (وضع) نه لاندے کړيدی۔ دارنګه (وضع) لفظ د تخفيف تقاضا کوی نهٔ د حتم او لزوم۔

٦- دليل : عائشه فرمائی : (ان النبی ﷺ كان يقصر فی السفر ويتم ويفطر ويصوم) (دارقطنی ۱۸۹/۲) وقال هذا اسناد صحيح) ورواه البيهقی (۱٤۱/۳) وابن الجوزی فی التحقيق وصححه الشنقيطی فی اضواء البيان (۲٦۷/۱)

(يعنی نبی ﷺ به په سفر کښې قصر او اتمام کولو او روژه او افطار به ئے کولو) پدے باندے اعتراض : ۱- يو دا چه ددے حديث په متن کښې تصحيف شويدے او اصل کښې داسے دے چه نبی ﷺ به قصر کولو او عائشے به اتمام کولو لکه مخکښې حديث تير شو) لکه شيخ الاسلام ابن تيميه او ابن قيمؒ فرمائی : دا حديث په رسول الله ﷺ باندے دروغ دی۔ (زاد المعاد ۱۸۱/۱) او دغه شان خبره حافظ کړيده چه دا لفظ (تتم) دے او ضمير ئے عائشے ته راجع کړيدے۔

جواب : دا دے چه دا حديث بالکل صحيح دے دارقطنی او بيهقی ورته صحيح وئيلے دے او شيخ البانیؒ په ارواء الغليل کښې په ابن حجرؒ باندے رد کړيدے چه دا روايت په سنن الدارقطنی کښې په (يقصر ويتم) سره دے چه لاندے ياء ده او دا تاء نهٔ ده۔ او همدغه روايت په تحقيق د ابن الجوزی او نصب الراية کښې هم په ياء سره دے۔

لهذا د حديث لفظ به په غير د دليل نه نشی بدلولے، اگرکه اکثر عادت د نبی ﷺ دا و

چه په سفر کښې به ئې قصر کولو ليکن د بياناً للجواز دپاره ئې کله نا کله اتمام هم کړيدے۔ والله اعلم وانظر فتاوى الدين الخالص (١٠٢/٦)

خلاصه : لهذا د وجوب دلائل ډير قوي دي ليکن د صحابه کرامؓ اعمال او فتوے قرينه ده چه قصر واجب نهٔ دے او سنت تقريري د نبي ﷺ هم پکښې موجود دے، لهذا قصر سنت مؤکد دے او اتمام مکروه دے او هغه :

١- د عائشےؓ عمل دے چه که اتمام واجب وے نو عائشےؓ د نبي عليه السلام سره په يو سفر کښې ولے اتمام کولو۔ ٢- عثمان بن عفان چه به کله مِنیٰ ته راغلو نو اتمام به ئې کولو او ټول صحابه کرام او تابعينو به پسے اقتداء کوله او هيچا پرے اعتراض اُونکړو۔

او کومو صحابه کرامؓ چه پرے اعتراض کړے وو نو هغهٔ پدے وجه چه د سنت اتباع ډيره لائقه وه چه عثمان قصر کړے وے، ليکن بعض وائي د عثمان داسے رايه وه چه قصر او اتمام دواړه جائز دي او اتمام افضل دے، ځکه هغه خليفة المسلمين دے نو هر طرف هغه ته داسے دے لکه خپل کلے او خپل کور لهذا ځکه ئې اتمام افضل ګڼړو او دا د هغه تاويل وو۔(المنتقى شرح الموطأ ٣٤٧/١) قصر صلاة السفر)

٣- ابن عباسؓ نه نقل شويدي : چه « قصر سنت د ابو القاسم ﷺ دے» يعني واجب نهٔ دے (الفتح الرباني ١٠٢/٥ بلوغ الاماني) المغني (١٠٨/٢)

٤- د علماؤ اجماع ده چه مسافر کله د مقيم پسے اقتداء اُوکړي نو اتمام پرے لازم دے نو که قصر واجب وے نو بيا به د امام نه روستو څلور رکعاته نهٔ وے جائز۔ (فتح الباري ٥٠/٤) (اګرکه پدے مسئله کښې ابن حزمؒ مخالفت کړيدے)۔

٥- عبد الله بن مسعودؓ به چه کله يواځے مونځ کولو نو قصر به ئې کولو او چه کله به د عثمانؓ پسے اُودريدو نو اتمام به ئې کولو او دا به ئې وئيل چه په خلاف کښې شر دے۔

(فتح الباري ٥٠/٤) الصلاة بمنى)

نو دے نه معلوميږي چه ابن مسعودؓ قصر واجب نهٔ ګڼړي او اتمام ته هم جائز وائي۔

نو بس قصر سنت دے مګر که ضرورت راپيښ شي چه يو انسان يو ځائے کښې چا مانځه ته مخکښې کړو نو که هغه اتمام اوکړو نو ان شاء الله چه دا به جائز وي يا ترے په هيره اتمام اُوشي نو جواز لري۔ والله اعلم و بالله التوفيق وانظر تائيد ما قلنا في الشرح المختصر على بلوغ المرام٢٦٥/٣) ومجموع الفتاوى (٨/٢٤) والتفصيل في فتاوى الدين الخالص (١٠١/٦)

## المسئلة الثانية د قصر حد مكانى :

د سفر دپاره حد مكانى او زمانى شته او كه نه ؟ نو په حد مكانى كښ اختلاف دے تقريباً شل اقوال دى۔ بعض د هغے نه دا دى :

١ - ابن حزمؒ وائى : ما پدے باب كښ سوچ اُوكړو نو ماته د ټولو اقوالو او دلائلو نه دا ښكاره شوه چه قصر يو ميل كښ جواز لرى او كم د ميل نه قصر نۀ دے جائز۔ كه يو ميل لاړو نو مسافر دے (المحلى ٥/٢١) او صاحب د السنن والمبتدعات دا رايه راجحه كړيده۔ او دا قول ابن ابى شيبه په اسناد صحيح سره د ابن عمرؓ نه نقل كړيدے۔

٢ - اهل ظواهر وائى : اقل مسافت او مقدار د سفر درے ميله دى۔ مسلم كښ حديث دے : (ان رسول الله ﷺ كان يقصر اذا سافر ثلاثة اميال او ثلاثة فراسخ) (الصحيحة ١/٢٦١)۔ نو وائى چه درے ميله كښ نبى ﷺ د قصر مونځ كړيدے) نو بس څوك چه درے ميله لاړو نو دا به مسافر وى۔ ليكن يو خو پدے حديث كښ شك د راوى دے نو اندازه نۀ ده متعين چه درے ميله دى او كه درے فرسخه او درے فرسخه نهه ميله دى۔

★- بله دا چه د رسول الله ﷺ په درے ميله كښ قصر كول نفى ددے نۀ كوى چه ددے نه په زيات يا كم كښ قصر نۀ دے جائز۔ ځكه چه د نبى ﷺ نه په زيات كښ هم قصر نقل دے لكه چه روستو به دا خبره تفصيلاً راشى۔ او صحابه كرامو هم ددے نه حصر نۀ دے فهم كړے ځكه چه د هغوى نه په كم ددے مسافت كښ هم قصر نقل دے لكه د ابن عمر، انس، او عمر بن الخطاب نه به اقوال راشى۔ ان شاء الله تعالىٰ۔

مګر شيخ صفى الرحمن المباركفوريؒ په حاشيه د بلوغ المرام كښ ليكى : چه دے حديث باره كښ وئيلے شويدى چه دے ته فقهاؤ ذهاب نۀ دے كړے ليكن كه دے ته ئے ذهاب كړے وے نو ډير قوى دليل به ئے وے، او ديته زمونږ په زمانه كښ ډير علماؤ د اهل الحديث ذهاب كړيدے۔ او يو فرسخ درے ميله وى او درے فرسخه تقريباً څلېريشت كلوميټر او نيم كلوميټر سره برابريږى۔ دا هله چه مونږ يو ميل شپږ زره ګزونه حساب كړو او كه چرته ميل څلور زره ګزونه حساب شى لكه په ميل كښ همدا دوه قولونه مشهور دى نو بيا درے فرسخه شپاړس كلوميټر او ثلث كلوميټر جوړيږى۔ لهذا څوك چه څه دپاسه شپاړس كلوميټره د كلى نه بهر شو نو دۀ له مسافرانه مونځ جائز دے۔ بلوغ المرام ص (١٢٣)

٣ - قول ثالث : امام شافعى، مالك، او د هغوى اصحاب، ليث ، اوزاعىؒ، احمدؒ بن

حنبل، اسحاقؒ او اصحاب الحدیث وغیره وائی : (٤٨) میله چه څوک لاړ شی نو دا مسافر دے۔ بخاری کښې دی چه ابن عباسؓ او ابن عمرؓ به په څلور بَریدو کښې قصر کولو چه دا اته څلویښت میله یعنی شپاړس فرسخه جوړیږی۔ (فتح الباری ٥٣/٤)

او مرفوع حدیث په دے باره کښې ضعیف دے۔

او د ابن عباسؓ نه تپوس اُوشو د عرفات پورے تلو کښې قصر کول جائز دی ؟ هغه اُووئیل نهٔ ! لیکن عُسفان یا جده یا طائف پورے تللو کښې قصر جائز دے او د مکے او ددے علاقو ترمینځ (٤٨) میله فاصله ده، لیکن دا د ابن عباسؓ او ابن عمرؓ خپله اجتهادی خبره ده۔ مرفوع حدیث ورسره نشته۔ او بل ددے سره د نورو صحابه کرامو اقوال او افعال متعارض راغلی دی، دارنګه دغه مخکښې مرفوع حدیث هم ورسره متعارض دے (مسیرة ثلاثة امیال) والا۔

٤- قول رابع : او د ابن عمرؓ نه یو بل قول د یوے مکملے ورځے مسافت نقل دے او دا قول د زهریؒ او یو قول د اوزاعیؒ هم دے۔ او دا قول امام بخاریؒ په خپل صحیح کښې راجح کړیدے ځکه هغه وئیلی دی چه نبی ﷺ یو ورځ او یوے شپے ته د سفر نوم ایښے دے۔ لکه حدیث کښې دی : (لا یحل لامرأة تؤمن بالله والیوم الآخر ان تسافر مسیرة یوم ولیلة الا ومعها ذو محرم) (رواه الجماعة الا النسائی)

لیکن دا نص نهٔ دے په باره د سفر کښې ځکه دا په باره د حجاب کښې دے نهٔ په باره د سفر کښې۔ او د سفر او حجاب احکام جدا جدا دی۔ که دا چرته موده د سفر وے نو نبی ﷺ به د هغے بیان کړے وے چه د سفر موده دومره شوه۔ لیکن فی الجمله استدلال ترے ګوزاره کوی۔

٥- ابوحنیفهؒ او احناف وائی : اقله موده د سفر درے ورځے مزل دے په مزل د اُوښانو او قدمونو۔ --- دوی دلیل دا وائی چه په حدیث د ابن عمرؓ کښې دی : (لا تسافر المرأة ثلاثة ایام الا مع ذی محرم) (بخاری) لیکن دا هم دلیل نهٔ ګرځی ځکه چه پدے کښې دا بیان نشته چه درے ورځے موده د سفر شوه۔

دارنګه که اُومنو نو بیا پدے کښې صرف دا خبره ده چه په درے ورځو باندے هم د سفر اطلاق کیږی او دا منافی ددے نهٔ دے چه د درے ورځو نه په کم کښې به قصر نهٔ کیږی۔ لهذا ددے علماؤ استدلالات کمزوری دی۔

٦- تحقیقی قول د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ، حافظ ابن القیمؒ او د شیخ البانیؒ دے او دا صاحب د توضیح الاحکام علامه عبد الله البسام او علامه شنقیطیؒ په اضواء البیان (٢٧٣/١) کښې غوره کړیدے او علامه صدیق حسن خانؒ په الروضة الندیة (٢٢٨/١)

کښې ذکر کړيدې او هغه دا دې چه په سفر کښې شريعت حد زماني او حد مکاني (اقله موده او اکثره موده) نۀ دې مقرر کړې.

او شيخ الاسلام دا قاعده وئيلې ده چه کله يو لفظ قرآن او سنت کښې راشي نو د هغې بيان به يا الله او رسول کړې وي او يا به ئې نۀ وي کړې، که نۀ وي کړې نو بيا به رجوع کولې شي لغت ته ځکه کتاب او سنت په لغت عربي کښې راغلي دي، او که لغت نه هم بيان نۀ معلوميدو لکه د سفر لفظ په لغت کښې ښکاره والي او راوتو ته وائي نو کوم راوتل او ښکاره کيدل مراد دي د هغې بيان لغت کښې نشته. نو بيا به دريمه درجه کښې رجوع کولې شي عُرف او رواج د خلقو ته نو سفر چه عرف کښې څه ته وئيلو شو نو هغه به شريعت کښې هم سفر وي او شريعت د سفر بيان په قول سره نۀ دې کړې چه دومره موده شوه، نۀ کمه او نۀ زياته، بلکه نبي ﷺ په لږ او زيات مقدار کښې قصر کړيدې نو دا بيان د مقدار نۀ ګرځي او بل طرفته قرآن کريم کښې دي (وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ) ضرب في الارض (يعني سفر) مطلق راغلې دې او هر خروج ته خو سفر نۀ وائي ځکه چه نبي ﷺ به مسجد قُباء او اُحُد ته ورتلو او قصر د مانځه به ئې نۀ کولو. نو بس عرف کښې چه ته کوم ځائې ته لاړې او خلقو تا ته مسافر وئيلو او تا هم سامان د سفر ځان له تيار کړو او ځان ته دې مسافر وئيلو نو بس دا سفر دې لګ وي او که زيات او که يو انسان د چکر په نيت يو ځائې ته لاړ شي چه هغه ډير ميلونه مزل وي ليکن ماښام له بيرته کور ته راواپس کيږي ځان ته هم مسافر نۀ وائي او خلق هم ورته مسافر نۀ وائي. نو دا به شرعاً هم مسافر نۀ حسابيږي. لکه مثلاً څوك په جهاز يا موټر کښې سُور شو او ډير فرسخونه يا يوه ورځ يا دوه ورځې د پيدل مزل په مقدار چکر له لاړو او په لږه موده کښې خپل کور او کلي ته راواپس کيږي نو دا په عرف کښې مسافر نۀ حسابيږي بلکه خلق دۀ ته چکر وهونکې وائي.

المغني لابن قدامه (٩٥/٢) کښې دي چه د اقوالو د علماؤ دپاره هيڅ حجت نشته ځکه اقوال د صحابه کرامؓ متعارض او مختلف دي او د صحابه کرامو اقوال چه کله مختلف وي نو هغې کښې حجت نۀ وي. او اندازه مقررول د توقيف د شرع سره تعلق لري لهذا په رأى سره هغې ته رجوع نشي کيدې او حجت د هغه چا سره دې چه د هر مسافر دپاره ئې قصر مباح کړيدې. انتهىٰ. راجع زاد المعاد (١٨٩/١) ومجموع الفتاوى (٣٨/٢٤-٦٠) تمام المنة (٣١٩) الصحيحة (٢٦١/١) و نيل الاوطار (٢٥٣/٣) و تيسير العلام شرح عمدة الاحكام (٣١٤/١) الروضة الندية (٢٢٨/١) اضواء البيان (٢٧٣/١) تفسير المنار (١٥١/١) وفتاوى الدين الخالص (١٠٠/٦)

## المسئلة الثالثة - د قصر حد زمانی :

آیا حد زمانی شته ؟ یعنی د څومره مودے په نیت چه اُوځی نو مسافر به وی؟ نو پدے کښې علامه ابن حزمؒ دیرش اقوال ذکر کړیدی چه راجح په هغې کښې دوه بیا په هغې کښې یو اَرجح او اَصح دے او هغه دا دی :

**القول الاول :** اول قول دا دے چه د سفر دپاره هیڅ حد شریعت نهٔ دے مقرر کړے، بلکه دا ئے عرف ته سپارلے دے نو مسلمانانو چه په عرف کښې څه ته سفر وئیلو نو هغه به سفر وی او که څه ته ئے سفر نهٔ وئیلو نو هغه به سفر نهٔ وی او دا قول شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ، شیخ صالح العثیمینؒ، الشیخ عبد الله البسامؒ، الشیخ الشنقیطیؒ او شیخ البانیؒ او د سعودی عام علماؤ غوره کړیدے۔

**دلائل هذا القول :** --- ۱ - **دلیل :** کتاب او سنت کښې د سفر حد نهٔ دے مقرر شوے او هر چه د صحابه کرامؓ اقوال دی نو هغهٔ مختلف دی او په اجتهاد باندے بناء دی او لغت هم ددے بیان نشی کولے، نو بس دا به عرف ته سپارلے شی، نو عرف چه څه ته سفر اووئیلو هغه به سفر وی برابره ده که موده اُوګده وی او که لنډه۔

۲- **دلیل :** که د سفر دپاره حد معلوم وے نو نبی ﷺ به په قول یا فعل سره بیان کړے وے، هر کله ئے چه بیان نکړو معلومه شوه چه ددے شرعاً حد نهٔ دے مقرر۔

۳- **دلیل :** او هر چه اقوال د صحابه کرامؓ دی نو هغه مختلف دی : ۱- عبد الرحمن بن المسورؒ وائی : مونږ د سعد بن ابی وقاصؓ سره په عُمان کښې دوه میاشتے اُوسیدو نو هغه به دوه رکعاته کول او مونږ به څلور رکعاته کول نو مونږ هغه ته دا خبره ذکر کړه۔ هغه اُوفرمایل : (نحن اَعْلَمُ) (مونږ ښه پوهیږو) (الاثرم فی سننه وعبد الرزاق ۵۳۵/۲) ورجاله ثقات ولکن حبیب مدلس وقد عنعنه)

۲- حفص بن عبد الله وائی : انس بن مالكؓ په شام کښې دوه کاله اُوسیدو او مانځه کښې به ئے قصر کولو۔ (الاثرم فی سننه) (مجموع الفتاوی لشیخ الاسلام (۱٤۱/۲٤-۱٤۳)

۳- ابن عباسؓ فرمائی : رسول الله ﷺ په خیبر کښې څلویښت شپې پاتے وو او په مانځه کښې به ئے قصر کولو (عبد الرزاق ۵۳۳/۲) واسناده ضعیف، الحکم لم یسمع عن مِقْسَمٍ هذا الحدیث، مع انه کان اذ ذاك فی المعرکة انظر نصب الرایة (۳۹۱/۱)

٤- : حسنؒ فرمائی : انس بن مالكؓ په نَیْسَابُوْر کښې یو کال یا دوه کاله پاتے وو، دوه رکعاته به ئے کول او سلام به ئے اَړولو او دوه رکعاته به ئے کول۔

و سنده صحيح۔ (ابن ابی شيبة ٤٥٤/٢)

٥- ابـو مِـجْـلزْ وائی مـا ابـن عمرؓ ته اُووئیل : زهٔ مدینے ته د طلب د حاجت دپاره راځم او هلتـه اُووه یا اتـه میاشتے پاتے کیږم څنګه مونځ اُوکړم؟ هغه اُوفرمایل : دوه دوه رکعاته کوه۔ (عبد الرزاق)

٤- دلـیـل : ﴿وَاِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِى الۡاَرۡضِ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ اَنۡ تَقۡصُرُوۡا مِنَ الصَّلٰوةِ﴾ دلته ضرب فی الارض (سفر) مطلق ذکر دے حد ئے نهٔ دے معلوم۔

٥- دلـیـل : جابر او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : نبی ﷺ او صحابه کرامؓ په څلورم د ذی الحجه باندے (مکے ته) راغلل چه د حج احرام ئے تړلے وو الحدیث۔ او نبی ﷺ په خپل حج کښې دوه دوه رکعاتـه کول تردے چه مدینے ته واپس شو۔ لکه انس بن مالك فرمائی : مونږ د نبی ﷺ سره د مدینے نـه مکے ته اُووتو(د حج دپاره) نو هغه به مونځ دوه دوه رکعاته کولو تردے چه مونږ مدینے ته راواپس شو۔ (متفق علیه)

طـریقه د استدلال : نبی ﷺ په غرض د حج په مکه کښې پاتے شو او هغه مُعَیّنه مُقَیّده زمانه وه او د مخکښې نه ئے نیت هم کړے وو او بیا هم پدغه حال کښې ئے دوه دوه رکعاته کول تردے چه مدینے ته واپس شو نو دا دلیل دے چه اِقامت د یو مُعین غرض دپاره کله چه ختم شی نو د انسان وطن تـه د واپس کیدو پورے حکم د سفر نهٔ منقطع کوی اګرکه هغه موده مُعینه مَحْدُوده وی۔

٦- دلـیـل : حُجاج په اول د ذی الحجه کښې مکے ته راځی یا لږ مخکښې یا حج ته نزدے او د حج میاشتے د شوال نه شروع کیږی او نبی ﷺ اُمت ته دا نهٔ دی وئیلی چه څوك حج ته راځی د څلورم د ذی حجے نـه مخکښې نو هغه به د مانځه اتمام کوی لهذا که دا د الله حکم وے نو نبی ﷺ به ضرور اُمت ته بیان کړے وے۔ او بیان ته ضرورت هم وو، نو هر کله چه نبی ﷺ بیان اُونکړو دلیل دے چه د سفر حد نهٔ دے معلوم۔

٧- دلـیـل : د عبد الله بن عباسؓ نه روایت دے چه نبی ﷺ په مکه کښې نورلس (١٩) ورځے اُوسیدو چه دوه رکعاته به ئے کول۔ (صحیح بخاری)

په دغه روایت کښې دا هم دی چه رسول الله ﷺ روژه وو، تردے چه کدید – هغه اُوبه چه د قدید او عسفان مینځ کښې دی– ته راورسیدو نو روژه ئے ماته کړه نو همداسے کوژه وو تردے چه میاشت اُووته۔

نو دا دواړه حدیثونه واضح ثبوت دے چه د څلورو ورځو نه زیات اقامت کښې نبی ﷺ قصر او فطر کړیدے نو پدے کښې رد دے په قول د جمهورو چه په زیات د څلورو باندے

حکم د اقامت ثابتوی. وسیأتی جوابه.

٨- دلیل : جابر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ په تبوك کښې شل ورځې پاتې شو چه په مانځه کښې به ئې قصر کولو. (ابو داودؒ، بیهقیؒ باسناد صحیح)

نو نبی ﷺ شل ورځې پاتې شو او بیا هم مسافرانه مونځ کوی. نو معلومه شوه چه د سفر دپاره مقرره زمانه نۀ ده معلومه.

٩- دلیل : موسیٰ بن سلمه الهذلیؒ فرمائی : ما د ابن عباسؓ نه تپوس اُوکړو کله چه زۀ په مکه کښې یم او د إمام سره مونځ نۀ کوم (یعنی یواځې یم) نو څنګه مونځ به کوم ؟ هغه اُوفرمایل : دوه رکعاته. دا سنت د ابو القاسم ﷺ دے. (صحیح مسلم ٢٤١/١)

١٠- ابن ابی شیبه بسند صحیح د ابو جَمْره نصر بن عمران نه نقل کوی چه ما ابن عباسؓ ته اُووئیل : مونږ په خُراسان کښې ډیر حصاریږو نو ستا څه رایه ده ؟ (څنګه مونځ به کوو؟) هغه اُوفرمایل : دوه رکعاته کوه اګرکه ته لس کالو پورے اُوسیږے.

١١- ثمامه بن شراحیلؒ فرمائی : ما ابن عمرؓ ته اُووئیل : (ما صلاة السفر؟) مسافرانه مونځ څنګه وی؟ هغه اُوفرمایل : دوه دوه رکعاته. مګر ماښام مونځ درے رکعاته دے، بیا ما اُووئیل : خبر راکړه که مونږ په ذی المجاز کښې یو، وے فرمایل : ذو المجاز څه شے دے ؟ ما اُووئیل : دا هغه ځائے دے چه مونږ په کښې راجمع کیږو او شلو شپو یا پنځلسو شپو پورے وخت تیروو. وے فرمایل : اے سړیه ! زۀ په آذربیجان کښې اُوم – راویؒ وائی ما ته پته نشته چه څلور میاشتې یا دوه میاشتې ئې یادے کړے- چه ما به صحابه کرامؓ لیدل چه دوه دوه رکعاته به ئې کول او ما د الله نبی د خپلو سترګو مخامخ اُولیدو چه دوه رکعاته به ئې کول، بیائې دا آیت اُولوستو : ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ (د الله د رسول تابعداری بهتره ده).

١٢- انس بن مالكؓ فرمائی : د رسول الله ﷺ أصحاب کرام په رَامُهُرمُزْ کښې نهه میاشتې اُوسیدل چه په مانځه کښې به ئې قصر کولو. (بیهقی قال النوویؒ اسناده صحیح وقال ابن حجر صحیح) نو دا آثار دلالت کوی چه قصر جائز دے که ډیر حصاریږی او که لږ څه موده متعین نۀ ده.

١٣- دلیل : علة د قصر او فطر دپاره دفع د حرج او مشقت دے ځکه سفر مَظِنّه د حَرَج او مشقت ده لهذا حرج لکه څنګه چه په اُوګد سفر کښې وی نو دغه شان په لنډ سفر کښې هم وی نو بس چه کله دا علت موجود وو نو حکم به هم موجود وی نو اندازے ته ضرورت نشته.

دا وو مرکزی دلائل ددے قول.

**القول الثاني** : د سفر دپاره حد زماني او موده معينه شته چه کله د هغې نه اِنسان تجاوز اُوکړي نو مونځ به پوره کوي او په هغه باندې به احکام د مُقيم جاري کيږي۔ او دا قول د اکثرو اَهل علمو، مُحدثينو او فقهاء او د هغوی د اتباعو دے۔

دوی بيا مختلف دی په ډيرو اقوالو ليکن مشهور پکښې څلور اقوال دی :

١ - **امام ابوحنيفة** او ثوريؒ وائي : پنځلس ورځې که يو ځائے کښې اُوسيږي نو دا مُقيم دے او که د پنځلس ورځو نه کم وی نو بيا مسافر دے استدلال کوي په يو د رواياتو د ابن عباسؓ باندې چه هغې کښې دی : (اذا قَدِمۡتَ بَلَداً وَفِيۡ نَفۡسِكَ اَنۡ تُقِيۡمَ خَمۡسَةَ عَشَرَ يَوۡمًا فَاَكۡمِلِ الصَّلاة ......الخ) (نيل الاوطار ٢٥٦/٣) سبل السلام (٣٧٩/٢)

ليکن نور روايات د ابن عباسؓ ددې روايت خلاف دی۔ لکه روستو به راشي۔ لهٰذا دا به حجت نه ګرځي۔

٢ - **امام شافعيؒ** او مالك وائي چه د څلورو ورځو د اقامت نيت ئې وی نو بس مُقيم دے او که کم وی نو مسافر دے۔ (المغنی ١٤٧/٣) بيا د مالك او شافعيؒ په نيز باندې مُده د قصر درې ورځې دی، سِوئ ددوه ورځو د دخول او خروج نه۔ ٣- او احمدؒ او داود ظاهريؒ وائي چه څلور ورځې موده د قصر ده او ددې نه زيادت کښې اقامت دے۔

٤- **امام اسحاق بن راهويةؒ** وائي : که د نورلس ورځو نه د زياتو نيت اُوکړي نو اتمام به کوي۔

٣- عبد الله بن عباسؓ فرمائي : که د لسو ورځو د اُوسيدلو نيت اُوکړي نو اتمام به کوي۔ او دا قول د علي ﷺ هم دے۔ (نيل الاوطار)

پدې کښې راجح قول قول د امام احمدؒ دے : **دلائل هذا القول** :

١ - **دليل** : اصل دا ده چه کله مسافر د ارادې يو مقام ته اُورسيږي نو ددهٔ حکم دے د مقيم په شان وی ليکن بل طرفته نبي ﷺ په حجة الوداع کښې څلور ورځو کښې قصر کړيدې۔ ځکه نبي ﷺ چه کله په څلورم د ذي الحجه مکې ته داخل شو او په اتم د ذي الحجه مِنىٰ ته لاړو او پدې ورځو کښې به ئې قصر کولو نو که دا سنت نهٔ وے نو مونږ به وئيلې چه څوك مکې ته اُورسيدو نو بس هغه به مُقيم وی۔ (المنحلة النونية ص (٦٠)

٢- **دليل** : دا آيت : ﴿ وَإِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي الۡأَرۡضِ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ اَنۡ تَقۡصُرُوا مِنَ الصَّلاةِ ﴾

**طريقه د استدلال** : الله تعالى ضرب في الارض ذکر کړيدې او معنى د ضرب في الارض جلتسئ سره منزل کول دی لکه آيت دے ﴿ وَآخَرُوۡنَ يَضۡرِبُوۡنَ فِي الۡأَرۡضِ ﴾ نو هر ضارب في الارض ته ئې مسافر اُووئيلو۔ او قصر ئې هغه چا دپاره ثابت کړو چه په سفر کښې شروع شي نهٔ د هغه چا دپاره چه هغه په يو مکان کښې پاتو شي او په اطمينان شي۔ ځکه

﴿ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلاَةَ ﴾ کښې ئې د اِطمینان په صورت کښې اتمام د مانځه خودلې دے۔ او اطمینان د زړهٔ او د بدن سکون او آرام ته وائی۔

لهٰذا د لغت په لحاظ دا آیت دلالت کوی چه څوك ضرب فی الارض پریدی نو هغه به قصر نهٔ کوی او که ضرب فی الارض ئې کولو نو دا به مسافر حسابیږی۔

بیا سوال راځی چه بعض روایاتو کښې راغلی دی چه نبی ﷺ په مکه کښې څلور (٤) ورځې تیرے کړے او بل کښې راځی چه لس ورځې (١٠) او په تبوك کښې ئې شل (٢٠) ورځې او په فتح د مکه کښې ئې نورلس (١٩) ورځې تیرے کړے نو تاسو څنګه څلور ورځې حد د سفر اُوګرځولو۔

الجواب : الحمد لله د روایاتو ترمینځ هیڅ تعارض نشته ځکه کوم روایت د انسؓ کښې چه لس ورځې په مکه کښې خودلی دی نو هغه ورسره د مِنیٰ، مُزدلفې او عرفات ورځې هم شمارلی دی۔ او هر چه څلور ورځې دی نو هغه په داخل د مکه کښې دی۔

او په تبوك کښې شل ورځې یا په فتح د مکه کښې نورلس ورځې او په حجة الوداع کښې څلور (٤) ورځې تیرولو کښې فرق دے او هغه دا چه په کال د فتح د مکه کښې او په غزا د تبوك کښې د نبی ﷺ پاتے کیدل عارضی وو او د مخکښې نه دغه موده مقصود نهٔ وه، بلکه مصالح د جهاد او تقاضا د فتح دغه وه چه دومره موده پاتے شی نو دا داسے اِقامت دے چه ابتداء ئې نهٔ ده معلومه او انتهائی نهٔ ده محدوده، بلکه دا اِقامت غیر مقصوده دے، ځکه چه دا سَفر د جهاد او د دشمنانو د مقابلے دپاره وو، نهٔ د اقامت او پاتے کیدو دپاره، او څوك چه جهاد دپاره راوځی نو هغه نهٔ پوهیږی چه زما به څهٔ حال وی او مخے ته به څهٔ حالات راپیښیږی لهٰذا دا صحیح نهٔ ده چه اُووئیلے شی چه نبی ﷺ مخکښې نه اراده د اِقامت کړے وه یا هغه د سفر ورځے متعین کړے وے ځکه ددے نقل نشته۔ یعنی مثلاً نبی ﷺ ددے دپاره سفر نهٔ وو کړے چه په تبوك کښې به شل ورځے تیروی او په مکه کښې به نورلس ورځے تیرَوی او بیرته به مدینے ته واپس کیږی نو پدے باندے دا استدلال کول هم صحیح نهٔ دی چه څوك دومره موده یا ددے نه کمه موده په یوه علاقه کښې پاتے کیږی نو هغه به قصر کوی ځکه چه د نبی ﷺ پاتے کیدل ددے مودے په نیت نهٔ وو۔

او هرچه په کال د حجة الوداع کښې قصر کول دی نو دا دلیل دے چه د څلور یا د څلورو نه دکمو ورځو په اراده باندے یو ځائے کښې پاتے کیدو کښې قصر دے۔ ځکه نبی ﷺ ددے مُودے د اقامت اراده د مخکښې نه کړے وه ځکه دا حالت د آمن وو د جنګ څه اِراده نهٔ وه لهٰذا دا اِقامت مقصوده دے۔

٣- دليل : عمر بن عبد العزيز- رحمه الله- د سائب بن يزيدؒ نه تپوس کوی چه تا په مکه کښې د پاتې کيدو باره کښې څه آوريدلی دی؟ نو هغه اُوفرمايل : ماته ابن الحضرمیؓ خبر راکړيدے چه هغه د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمايل ئې : (للمهاجرين ثلاث بعد الصدر) (بخاری ١/٥٦٠) (ابو داود ١/٢٨٤) باب الاقامة بمكة)

(د مهاجرينو دپاره پس د واپس کيدو نه خپل کلی ته درے ورځې دی) يعنی درے ورځو نه به زيات نۀ حصاريږی نو دا دليل دے چه درے ورځې يو ځائے کښې پاتې کيدو سره انسان نۀ مقيم کيږی۔ او په زياتو مُقيم کيږی۔ او هر چه د نبی ﷺ په فتح د مکه کښې نورلس ورځې پاتې کيدل دی نو هغه د مسائلو د جهاد او کارونو د جنګ سره متعلق وو، قصداً دومره ورځې نۀ پاتې کيدو، لهذا هغهٔ اِضطراری پاتې کيدل دی۔

٤- دليل : نبی ﷺ فرمائی : مهاجر به د حج اداء کولو نه پس درے ورځو پورے حصاريږی۔ او عمر فاروقؓ چه کله اهل الذمه شړل نو د هغوی د راتلونکی تاجر دپاره ئې درے ورځې پاتې کيدو پورے موقعه ورکړه نو دا دليل دے چه درے ورځې په حکم د سفر کښې دی۔ او چه زيات شی نو بيا حکم د اِقامت دے او دا د عثمان ؓ نه هم روايت شويدی۔ انتهیٰ المغنی ٣/١٤٧)

٥- دليل : ابن مُحريز فرمائی : ابوايوب انصاری او ابو صرمه الانصاری او عقبه بن عامر ؓ د روم زمکے ته په ژمی کښې داخل شو نو د رمضان روژے ئے اُونيولے او قيام الليل ئے اُوکړو او مونځ ئے پوره کولو۔ (الاثرم فی سننه - مجموع الفتاوی لشيخ الاسلام ٢٤/١٤٣)۔

نو دے درے صحابه کرامؓ د ژمی په درے مياشتو (اُوګد سفر) کښې د مانځه اتمام کړيدے۔ نو د دوی په نيز هم د سفر دپاره يو حد شته چه د هغې نه آخوا اِنسان مُقيم حسابيږی۔

٦- دليل : اِجماع مرکبه پدے مُنقعد ده چه د سفر دپاره حد شته او څوک چه يو ځائے نه وطن جوړ کړی يا په هغې کښې د يوے مُعينې مودے پورے پاتې کيږی نو هغه به مسافر نۀ وی۔ او کوم بعض آثار چه په قول اول کښې ذکر شو نو هغه په خاص واقعو باندے محمول دی لکه روستو به راشی۔

او په سلفو کښې هيڅ دا نۀ دی وئيلی چه د سفر دپاره حد نشته او يو انسان به مسافر وی اګرکه پنځوس کاله يا شپيته کاله په يو ځائے کښې تيروی، لکه نن صبا همدا حال دے چه د يو انسان په لاهور يا پينډئ کښې دکان وی او کور ئے بشاور کښې وی او هفته په هفته کور ته راځی نو دۀ ته بعض خلق اِجازت ورکوی چه ته مسافر ئے اګرکه پنځوس کاله

تیروی۔نو دا د اُصولو د شریعت نه ډیره بعیده خبره ده۔ بلکه دا د ضعیف قول یا د خواهش تابعداری ده۔

۸- دلیل : ابن عباسؓ فرمائي : (فنحن نصلي فيما بيننا وبين مكة تسعة عشر ركعتين ركعتين، فاذا اقمنا اكثر من ذلك صلينا اربعاً) (صحيح بخاری)

(مونږ چه کله نورلس ورځے د مکے او مدینے ترمینځ پاتے کیږو نو قصر به کوو او کله چه ددے نه زیات وی نو اتمام به کوو) لهذا ابن عباس ﷺ چه حَبْرُ الامة او ترجمان القرآن دے، د هغه هم دا فتویٰ ده چه د سَفر دپاره حد معلوم دے۔ چه هغه نورلس ورځے دی۔

استدلال کوی په اقامت د نبی ﷺ په مکه کښې په کال د فتح باندے اگرکه دا اقامت عارضی وو او غیر مقصود وو۔ کما مرّ۔ لیکن طریقه د استدلال دا ده چه مسافر به فوراً مقصد ته رسیدو سره سمدست مقیم گرزیدلے خوکه دا د نورلس (۱۹) ورځو استثناء نۀ وے۔ لیکن بیا د ابن عباسؓ دا فکر شوے نۀ دے چه دا خو جهادی سفر دے۔

۹- دلیل: د عبد الله بن عمرؓ نه څوارلس روایات مختلف نقل دی چه ددے تولو تطبیق دا دے چه د ابن عمرؓ مذهب د جمهورو علماؤ په شان دے چه څوك د اِقامت عزم اُوکړی نو بس دا به اتمام کوی او که چا عزم نۀ وی کړے اگرکه موده ئے اُوګده شی نو قصر به کوی۔ او هر چه د هغه قصر دے په آذربیجان کښې نو د هغے وجه دا وه چه د هغه په اقامت باندے عزم نۀ وو بلکه مجبوراً پاتے وو ځکه چه واوره (ثلج) د هغه او د لارے په مابین کښې واقع شوے وه۔لکه دا د ابن قدامۃ رأیه هم ده او هغه د ابن عمرؓ په روایت استدلال کړیدے۔ دارنګه د ابن عمرؓ رایه دا هم وه چه څوك په یو ښار تیریږی نو هغه له اتمام د مانځه جائز دے ځکه دا په مصر کښې دے او قصر هم ورله جائز دے ځکه چه مسافر دے قصد د اقامت ئے ندے کړے۔ انظر رسالة قصر المغتربين ص (٥٩-٦٢)

۱۰ - دلیل : الله د مسافر دپاره درے ورځو پورے مسح علی الخفين جائز کړیده نو دا دلیل دے چه درے ورځو نه زیات حکم د اقامت دے۔

د قول اول د دلائلو تحقیق : ۱- د اول دلیل نه جواب دا دے چه د لغت نه د سفر حد معلومیږی او هغه دا چه ضرب فی الارض او اطمینان دواړه دلالت کوی چه سفر به ختمیږی په ختمیدو د ضرب فی الارض سره او کله چه په یو ځائے کښې اِطمینان او اُوسیدل اُوکړی نو دا به مسافر نۀ حسابیږی۔ لکه چه مخکښې هم تیر شو۔ او کله چه مونږ سنت ته رجوع اُوکړه نو د نبی علیه السلام فعل په حجة الوداع کښې مونږ اُوموندلو چه هغۀ دلالت کوی پدے حد معین باندے۔ او عرف د خلقو مختلف وی نو کوم عرف ته

به ئې سپارو نو په عرف باندې فيصله کول مشکل دي.

۲- د دويم دليل نه - چه د سفر بيان نبي ﷺ نهٔ دې کړې - جواب دا دې چه الله تعالىٰ حد فاصل د مُقيم او مسافر ترمينځ په قرآن کريم کښې ذکر کړيدې : ﴿ يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ﴾ نو څوك چه په کومه ورځ سفر کوي نو دا مسافر دې او څوك چه إقامت اختياروي بس دا مُقيم دې. او ددې بيان د نبي ﷺ په فعل سره شويدې چه هغه د څلورو ورځو نه په زيات وخت تيرولو کښې اقامت کړيدې او څلورو ورځو پورې ئې قصر کړيدې.

۳- او د صحابه کرامؓ د آثارو نه جواب دا دې چه يو خو دا آثار صريح نهٔ دي په مُدعىٰ ثابتولو کښې ځکه دې صحابه کرامؓ قصد د اقامت نهٔ وو کړې بلکه دوی مُضطر (مَجبُوره) وو.لکه روستو به راشي.

بله دا چه دا آثار د بعض صحابه کرامؓ دي چه ددې سره د نورو صحابه کرامؓ اقوال متعارض شويدي. لکه علي ﷺ فرمائي : څوك چه لس ورځې إقامت کوي نو هغه به اتمام کوي او دا يو روايت د ابن عباسؓ دې.

*- او د ابن عباسؓ نه نقل دي : که مونږ نورلس ورځې پاتې کيدو نو اتمام به کوو.

*- د ابن عمرؓ نه نقل دي چه هغه به کله د دولسو ورځو د إقامت اراده وه نو اتمام به ئې کولو.

*- عائشه رضي الله عنها فرمائي : تر هغه وخت پورې به قصر کوي ترڅو چه توخه او توخه دان کيدی.

*- عمر فاروقؓ نه نقل دي چه هغه به د پنځلسو ورځو په نيت باندې إقامت کښې اتمام کولو او که ددې نه به کم وو نو بيا به ئې قصر کولو.

او دا مُسَلمه قاعده ده چه کله د صحابه کرامؓ خپلو کښې مختلف اقوال راشي نو پدې باندې بيا احتجاج نشي کيدې.ځکه د بعض صحابه کرامؓ قول په بعض نورو باندې حجت نهٔ دې.دارنګه د يو صحابي په ډيرو اقوالو کښې به صرف په يو قول د هغه باندې احتجاج نشي کولې.

د اتم دليل د حديث جابرؓ نه چه نبي ﷺ په تبوك کښې شل ورځې اقامت اُوکړو او بيا ئې هم قصر کولو- جواب دا دې چه دا استدلال په محل د نظر کښې دې ځکه چه په تبوك کښې يا په فتح د مکه کښې د نبي ﷺ شل يا نورلس ورځو کښې قصر کول پدې وجه وو چه هغه ددغه خاص متعينې مقررې مودې د اقامت نيت نهٔ وو کړې نو دا اقامت غير مقصوده وو ځکه د جهاد په موقعه کښې د انسان د خاص ورځو نيت نهٔ جوړيږي ځکه پته نهٔ لګي چه مخې ته به څه راځي، څومره وخت کښې به فتح کيږي نو ديته إضطراري او مجبوري

اِقامت وائی نهٔ قصدی. لهذا که د چا دغه شان حال وی نو هغه له قصر پکار دی، که هر څو مره موده وی. او هر چه په حجة الوداع کښې دی نو د هغې موده د اقامت معلومه وه، ابتداء او انتهاء ئې مقرر ده. نو چه نبی ﷺ څلور ورځې په مکه کښې پاتې شو او قصر ئې کولو نو دا دلیل دی چه بس دا حد فاصل دی. چه څلورو ورځو نه زیاتو کښې به اتمام کوی او څلورو نه چه کم وی نو قصر به کوی.

د دیارلسم دلیل چه علت د سفر دفع د مشقت او حرج ده، جواب دا دی چه منو دا خبره، لیکن څوك چه څلور ورځو نه زیات إقامت کوی نو د هغه نه شرعاً حَرَج مَرفوع شو. او هغه د مُقیم په شان شو حَرَج ئې ختم دی.

خلاصه : لهذا دا قول ثانی راجح ښکاری په دغه دوه اقوالو کښې لیکن ددې نه بعض صورتونه مستثنیٰ دی د هغې لحاظ چه اُوکړې شی نو جمع د ټولو دلائلو او عمل په ټولو راځی.

## ۱ - الاحوال المستثنیات :

۱ - یو انسان سفر اُوکړی او د اقامت اراده ئې نهٔ وی لیکن د کوم کار دپاره ئې چه سفر کړے وی نو د هغې په حاصلولو کښې د انسان نه وخت ډیر اُولګی نو غیر معینې زمانې پورې پاتې شی او د پاتې کیدو اراده ئې د مخکښې نه نهٔ وی لکه مجاهدین یوې معرکې ته لاړ شی چه هلته د جنګی مشقونو او تربیت او صفونو تیارولو کښې ډیر وخت اُولګی یا ئې د یوې قلعه نه ګیره اَچولی وی، یا د جنګ کولو نه پس څو ورځې پاتې شی چه اسلام خلقو ته خور کړی او د کافرانو په زړونو کښې رُعب واقع شی. نو پدې وخت کښې انسان به قصر کوی او دا مسافر حسابیږی اګرکه موده هر څو مره تیره شی. دلیل پرې حصاریدل د نبی ﷺ دی په تبوك او فتح د مکه کښې.

۲ - دویم حالت : یو انسان یو ځائے ته سفر اُوکړی، لیکن بیا په مینځ د سفر کښې هغه په اقامت باندې مجبور شی لکه لاره بنده شی، دشمن ورته مخې ته راووځی یا واوره، سیلابونه یا مرض یا نفقه ختمیدل یا جیل ته اَچول وغیره داسې احوال ورته عارض شی نو دا به هم مسافر حسابیږی اګرکه ډیره موده هلته کښې پاتې شی ځکه چه دهٔ نیت د اِقامت نهٔ دے کړے، بلکه مجبوراً پاتې دے. لکه عبد الله بن عمرؓ په آذربیجان کښې شپږ میاشتو پورې پاتې وو او قصر به ئې کولو. ځکه واورو لاره بنده کړې وه.

۳ - دریم حالت : یو انسان په سفر او اقامت دواړو باندې په یو ځائے مجبوره شی لکه یو تن ته ګورنری اُوسپارل شی چه هغه پرې رضا نهٔ وی یا په یو داسې عمل مُکلف شی

چه دے د هغې په نافذولو کښې سفر او اقامت ته محتاج وی لکه امام مسروق رحمه الله سره دا کار شوے وو۔ نو که د چا داسے حال وی نو هغه په حکم د مسافر کښې دے ځکه سفر به کوی او دارنګه دهٔ قصد نهٔ دے کړے د اقامت په خپله خوښه لیکن د هغه د ګورنرئ د کارونو د مجبوریا د وجه نه په هغه مقام کښې پاتے کیږی۔ نو د حالت د إکراه او د حالت د رضا فرق به کولے شی۔

٤- یو مسافر د یو معین غرض دپاره د اقامت نیت اُوکړی چه هغه معین نهٔ وی په زمانه پورے بلکه کله چه د هغه غرض پوره شی نو خپل وطن ته به ځی، زمانه پکښې نهٔ متعین کوی چه څو ورځے دی۔ لکه هغه تاجران چه سفر اُوکړی د سامان خرڅولو یا اَخستلو دپاره یا د رسمی کارونو د پوره کولو دپاره چه کله د هغوی غرض پوره شی نو بس خپل وطن ته به واپس ځی نو د دوی موده د سفر هم نهٔ ده معلومه دا به هم قصر کوی۔

٥- کوم تاجران وغیره چه دا خیال اُوکړی چه زما غرض به د ځلورو ورځو نه زیات وخت واخلی او د ځلورو ورځو نه زیات نیت اُوکړی نو آیا دوی به مسافر وی که مقیم؟ پدے کښې اختلاف دے۔راجح قول دا دے چه دوی مُقیم دی او مسافر نهٔ دی ځکه چه ځلورو له شریعت اعتبار ورکړے دے په سفر کښې لکه مخکښې قول ثانی کښې تفصیلًا ذکر شو۔

٦- د معین غرض د حاصلولو دپاره نیت اُوکړی چه هغه په معینه زمانه کښې حاصلیږی نو آیا دا به مسافر وی؟ پدے کښې هم دوه قوله دی راجح قول د جمهورو دے چه که ځلورو ورځو نه زیات وو نو دا مُقیم دے او که کم وو نو بیا مسافر دے۔

٧- یو انسان د مطلق اقامت نیت اُوکړی په ځائے د سفر کښې لکه هغه عُمّال چه د یو کار دپاره اُوسیږی یا هغه تاجران چه د تجارت په غرض اُوسیږی یا سفیران وغیره چه هغوی د اقامت عزم کړے وی څهٔ موده پورے، نو دا په حکم د مُقیمینو کښې دی۔ او په دوی کښې هغه کاروباریان هم داخل دی چه کورئے یوه علاقه کښې وی او کاروبارئے په بله علاقه کښې وی او هفته په هفته کور ته ځی راځی۔

تنبیه : دا مسئله اجتهادی ده پدے وجه مسلمانانو له پکار دی چه چا ته کومه راجحه ښکاره کیږی نو د نورو سره دِے پدے کښې اختلافات او بے محبتی نهٔ پیدا کوی او خپله خبره دِے په بل باندے خامخا نهٔ نافذ کوی ۔او مونږ ته قول ثانی راجح ښکاری ځکه چه اول قول – چه عرف ته سپارل دی– د عمل په لحاظ مشکل دے او په بعض مواضعو کښې د هغې معلومول مشکل کیږی، انسان ته پته نهٔ لګی چه زهٔ پدے حال کښې مسافریم او که مُقیم؟۔ وبالله التوفیق والله تعالی اعلم واعز واکرم۔

## الفصل الاول

١ - عَنْ اَنَسٍ: اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ صَلَّى الظُّهْرَ بِالْمَدِيْنَةِ اَرْبَعًا، وَصَلَّى الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : انس ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ په مدينه كښې د ماسپښين مونځ څلور ركعاته اُوكړو او په ذى الحليفه كښې ئے د مازيگر دوه ركعاته اُوكړل۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : ذى الحليفه د مدينے نه درے ميله فاصله كښې ده او د مدينے والو د احرام دپاره ميقات دے۔ پدے باندے اهل ظواهر استدلال كوى چه درے ميله كښې به قصر كولے شى، او دا د سفر دپاره حد مكانى شو، بس څوك چه درے ميله فاصله باندے د خپل كلى نه اُووتو نو هغه دپاره قصر جائز دے۔ ليكن دا استدلال صحيح نۀ دے۔ وجه دا ده چه دلته خو نبى ﷺ د سفر په اراده باندے مكے ته روان دے نو ځكه په ذى الحليفه كښې قصر كوى او داسے نۀ ده چه ذى الحليفه پورے سفر كوى، دا غايه د سفر نۀ ده۔ او دا مسئله ده چه كله د انسان لرے اراده وى نو د ښار د كورونو نه چه بهر شى نو قصر كول ورله جائز دى۔

### مسئله مهمة -- د قصر مونځ به د كوم ځائے نه شروع كوى ؟

نو دے حديث كښې د هغے اندازه راغله چه كله د خپل كلى نه رابهر شى او د سفر اراده ئے وى نو دغه وخت نه قصر شروع شو۔ لكه ابن قدامهؒ په المغنى (٩٧/٢) كښې وائى : دهغه چا دپاره چه د سفر نيت اُوكړى قصر نۀ دے جائز، تردے چه د خپل ښار يا دكلى د كورونو نه بهر شى او هغه خپل شاته پريدى۔ او دا قول د مالكؒ، اوزاعىؒ، احمدؒ، شافعىؒ، اسحاقؒ او ابوثورؒ دے (او دا قول د ابوحنيفةؒ هم دے)۔

او ٢- د امام مالكؒ نه يو قول دا نقل دے چه درے ميله فاصله لاړو نو قصر به شروع كوى۔

٣- امام مُجاهدؒ وائى چه د ورځے سفر كښې تر ماښام پورے به قصر نۀ كوى او كه د شپے سفر وو نو تر صبا پورے به قصر نۀ كوى۔ (دا قول خو بالكل بے دليله او بے تحقيقه دے)۔

٤- بعض تابعينؒ وائى چه د كور نه قصر شروع كولے شى۔ لكه عطاء وائى : څوك چه د سفر اراده لرى د هغه دپاره په كلى كښې قصر مباح دے۔

☆- حارث بن ابى ربيعةؒ به چه كله د سفر اراده وه نو په كور كښې به ئے د جمعے سره دوه ركعاته مونځ اُوكړو او په هغوى كښې به اسود بن يزيدؒ او نور شاگردان د عبد الله بن مسعودؓ وو۔ ☆- عطاؒ نه دا هم نقل دى چه د خپل كور نه اُووځى او د ښار د كورونو نه نۀ وى جدا شوے او د مانځه وخت پرے راشى نو قصر ورله مباح دے۔

پدے تپولو کښې راجح قول د جمهورو دے چه د خپل کلی نه اُووځی نو قصر به شروع کیږی۔ لکه دا حدیث د انس بن مالكؓ پرے دلیل دے چه رسول الله ﷺ په مدینه کښې څلور رکعاته اُوکړل او په ذی الحلیفه کښې دوه رکعاته۔

او کوم علماء چه په کور کښې د قصر په جواز قائل دی نو هغوی د صحابه کرامؓ اعمال پیش کوی چه هغوی روژه په کور کښې ماته کړیده کله ئې چه د سفر اراده کړیده لکه :

★-محمد بن کعبؒ وائی : زه انس بن مالكؓ ته په رمضان کښې راغلم او د هغه اراده د سفر وه او سورلئ ئې تیاره شوے وه، او د سفر جامے ئې اَغوستے وے نو طعام ئې راطلب کړو او وے خوړو، ما ورته اُووئیل : آیا دا کار سنت دے؟ هغه اُوفرمایل : (آؤ) سنت دے۔ بیا سُور شو۔ (ترمذی ١٦٤/١) رقم (٨٠٣) وصححه الشوکانی وابن العربی والقرطبی وابن عبد البر والالبانی رحمهم الله)

★- او دغه شان عمل د ابوبصره غفاری ﷺ دے، عبید بن جبیرؒ وائی : زهٔ د ابوبصرهؓ سره په رمضان کښې د مِصر نه په کشتئ کښې سور شوم نو روان شو بیا ئې خوراك رانزدے کړو بیا ئې اُووئیل : راوړاندے شه، ما ورته اُووئیل : آیا ته د کورونو مینځ کښې نه ئې ؟ ابوبصرهؓ اُوفرمایل : (اَرَغِبْتَ عن سُنَّةِ رسول الله ﷺ) آیا ته د رسول الله ﷺ د سنت نه اعراض کوے؟ (ابوداود ٣٣٥/١) رقم (٢٤١٢) وصححه الالبانی واحمد ورجاله ثقات کما فی النیل ٣١١/٤)

نو ګوره دے صحابه کرامؓ کورونو مینځ کښې روژه ماته کړیده، نو دغه شان قصر هم ورله کور کښې جائز دے۔ لیکن ظاهر دا ده چه په مرفوع احادیثو کښې دا دی چه د نبی ﷺ عام عادت دا وو چه د کلی نه به بهر شو نو هله به ئې قصر کولو۔ او پدے آثارو کښې د روژے ماتولو خبره راغلے ده، او یو قصر دے د هغے تذکره پکښې نشته لهذا قیاس د احد هما په آخر باندے جائز نهٔ دے، د قصر په کور کښې نقل نشته نو قصر به په کور کښې جائز نهٔ وی او که چا روژه په کور کښې ماته کړه کله ئې چه اراده د سفر وی نو ان شاء الله چه جائز به وی۔

---

٢- وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ، قَالَ: صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَنَحْنُ اَكْثَرُ مَا كُنَّا قَطُّ، وَآمَنُهُ بِمِنًا، رَكْعَتَيْنِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او حارثه بن وهب خزاعی ﷺ فرمائی : رسول الله مونږ ته په مِنیٰ کښې دوه رکعاته مونځ اُوکړو پداسے حال کښې چه مونږ په ډیر تعداد کښې وو چه هیڅ کله دومره نهٔ

وو۔ او د امن په حالت کښې وو۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

**تعارف د حارثه بن وهب :** دا صحابي دے او په کوفه کښې اُوسيدو او د عبيد الله بن عمر بن الخطاب د مور د طرفنه ورور دے، ددۀ مور اُم کلثوم بنت جرول بن المسيب الخزاعية عمر بن الخطاب په نکاح اخستے وه۔

**تشريح :** دا حديث دليل دے چه په حالت د اَمن کښې هم قصر د مانځه جائز دے او دا د شريعت سَماحت او آسانتيا ده ځکه چه سفر کښې امکان د مشقت وي، اگرکه في الحال مشقت نۀ وي۔ نو رد دے په هغه چا چه په اَمن حالت کښې د مانځه قصر جائز نۀ گنړي۔

**مسئله :** په مِنیٰ وغيره کښې به مُسَافر او مُقيم دواړه دوه رکعاته کوي او دا د سُننو د حج نه ده، برابره ده چه امام مسافر وي او که مُقيم وي خو دوه رکعاته به کوي او مقتديان به هم دوه رکعاته کوي۔ دا وجه ده چه اُوسني عرب هم پدے طريقه عمل کوي اگرکه مُقيم وي۔ ځکه نبي ﷺ پدے ورځو د حج کښې دلته دوه رکعاته کړيدي او روستو خلفاء راشدينؓ هم دوه رکعاته کړيدي۔ او دلته هم د نبي ﷺ سره مکے والا صحابه کرام شته او هغوي هم ورسره قصر کړيدے نبي ﷺ هغوي ته حکم په اتمام نۀ دے کړے۔

**احناف وائي :** مکه کښې چه څوك د پنځلس ورځو نه زيات قيام کوي نو هغوي به مِنیٰ کښې مسافرانه مونځ نه کوي ځکه د مکے او د مِنیٰ ترمينځ مَسَافه د سفر نشته۔ دوي په خپلو قواعدو عمل کوي چه څوك په مکه کښې پنځلس ورځے تيرے کړي نو په مِنیٰ او عرفات او مزدلفه کښې به قصر نۀ کوي، پوره مونځ به کوي۔ ليکن دا د سُنت خلاف ده۔ که څوك اُووائي چه نبي ﷺ مسافر وو ځکه ئے قصر کړيدے نو ابوداود وغيره کښې د هغے جواب موجود دے چه مکے والو هم د نبي ﷺ سره قصر کړيدے۔

(ابوداود : باب القصر لاهل مكة) رقم (١٩٦٧)

امام ابوداودؒ فرمائي : حارثه بن وهبؓ د خزاعه قبيلے نه دے او ددۀ کور په مکه کښې دے او د نبي ﷺ سره ئے په مِنیٰ کښې قصر کړيدے۔

**او کوم** حديث د ترمذي چه په روايت د عمران بن حصينؓ راغلے دے چه نبي ﷺ به په مکه کښې دوه رکعاته کول او بيا به ئے فرمايل : اے مکے والو تاسو ځانله مونځ پوره کړئ مونږ مسافر يو۔) نو حافظ ابن حجرؒ فرمائي : چه يو خو دا روايت ضعيف دے د علي بن زيد بن جدعان په وجه۔

★ دويم دا چه : که صحيح شي نو دا قصه په فتح د مکه کښې وه او قصه د مِنیٰ په حجة الوداع کښې وه۔ او ددے بيان ضروري وو ځکه چه زمانه ډيره تيره شوے وه۔ انتهیٰ۔ لهذا

صحیح جواب دا شو چه هغهٔ مِنیٰ نهٔ وه بلکه په داخل د مکه کښې وو۔
وَنَحْنُ اَكْثَرُ مَا كُنَّا : ۱- ما مصدریه ده او (کنا) په معنیٰ د جمع (یعنی اکوان) سره دے معنیٰ دا ده : (والحال انا فی ذلك الوقت اکثر اکواننا فی سائر الاوقات عدداً و اکثر اکواننا فی سائر الاوقات آمناً) یعنی مونږ په دغه موقعه کښې د شمار او د امن په لحاظ ډیر زیات وو)۔ او (قط) لفظ کله په مقام د اثبات کښې هم استعمالیږی لکه دا حدیث او ددے نظائر شو۔ نو ددے لفظی معنیٰ دا ده : (یعنی مونږ ته رسول الله ﷺ په مِنیٰ کښې دوه رکعاته اُوکړل پداسے حال کښې چه مونږ زیات وو د هغهٔ حال نه چه مونږ پکښې چرے وو، او مونږ ډیر امن حال والا وو)۔
۲- یا ما نافیه ده او اکثرَ منصوب دے د لفظ (ما) په وجه څکه (ما) په معنیٰ د (لیس) ده نو په معمول متقدم کښې هم عمل کولے شی۔ او (کنا) ورله خبر دے۔ (ای ونحن مَا كُنَّا اَكْثَرَ قَطُّ اَكْثَرَ مِنَّا فی هذا الوقت ولا آمَنَ مِنَّا فِیْهِ) (یعنی مونږ هیچرے دومره زیات نهٔ وو څومره چه مونږ په دغه موقعه کښې زیات وو او امن والا وو پدغه وخت کښې)

---

۳- وَعَنْ يَعْلَى بْنِ اُمَيَّةَ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: اِنَّمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى : ﴿ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾، فَقَدْ اَمِنَ النَّاسُ. قَالَ عُمَرُ: عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ، فَسَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ. فَقَالَ: «صَدَقَةٌ، تَصَدَّقَ اللّٰهُ بِهَا عَلَيْكُمْ، فَاقْبَلُوْا صَدَقَتَهٗ». رَوَاهُ مُسْلِم

ترجمه : او یعلی بن اُمیه ﷺ فرمائی: ما عمر بن خطاب ﷺ ته اُووئیل: الله تعالیٰ فرمائی : (په تاسو گناه نشته) چه تاسو کم مونځ اُوکړئ (یعنی قصر اُوکړئ) که تاسو ته دا خوف وی چه کافران به تاسو ته عذاب درکړی۔ نو (اُوس) خو خلق په آمن کښې دی (خوف ختم شویدے نو اُوس به قصر ته ضرورت وی؟) نو عمر فاروق اُوفرمایل : ما (هم) د هغهٔ څهٔ نه تعجب کړے وو کوم نه چه تا تعجب اُوکړو، بیا ما د رسول الله ﷺ نه (دے په باره کښې) تپوس اُوکړو نو هغهٔ اُوفرمایل : « (قصر مونځ) د الله تعالیٰ د طرفه صدقه ده چه الله په تاسو باندے کړیده لهٰذا د هغهٔ صدقه قبوله کړئ » ۔ (مسلم)
تشریح : حاصل د سوال دا دے چه قرآن کریم کښې خو (ان خفتم) وئیلے شویدے یعنی چه یَره وی نو هله به قصر کوئ او حال دا چه اُوس خو یَره ختمه شویده او حال دا چه نبی ﷺ خو په حالت د امن کښې هم په سفر کښې د قصر مونځ کړیدے۔ عمرؓ ورته اُووئیل چه

ما هم دغه شان تعجب کړے وو او دا د تعجب خبره څکه ده چه نبی ﷺ قصر کړیدے او قرآن کریم وائی چه خوف وو نو هله به قصر کوئ.

نو ظاهره کښ د نبی ﷺ عمل د قرآن کریم خلاف معلومیږی. نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل : چه دا قصر د الله صدقه ده او قبوله ئے کړئ، د نبی ﷺ د جواب حاصل دا شو چه زهٔ بـه پوهیږم نـو داسے عمل کوئ اګرکه خوف نهٔ وی څکه دا قصر د الله صدقه ده د خوف سره تعلق نهٔ لری. نو بس د صحابه کرامؓ پدے خبره تصدیق اُوشو، څکه صحابه کرامؓ به قرآن د حدیث په مقابله کښ نهٔ پیش کولو چه ته خو دا خبره کوے او قرآن کریم کښ داسے دی بلکه صحابه کرامؓ ته به چه نبی ﷺ یوه خبره اُوکړه چه داسے عمل کوئ بس هغوی به (آمنا و سلمنا) وئیله، زمونږ د متأخرینو په شان نهٔ وو چه قرآن کریم د حدیث مقابله کښ پیش کړی او بیا حدیث پریدی او د قرآن نه په خپله طبع د خپل مذهب او د خپلے رائے ثابتولو کوشش شروع کړی.

او ددے سوال د عمر فاروق او یعلی بن امیه نه نور جوابونه هم موجود دی.

٢- او هغه دا چه قرآن کریم کښ چه (ان خفتم) قید راغلے دے نو دا قید اتفاقی دے او نبی ﷺ تـه الله پټه وحی کړے وه چه بغیر د خوف نه هم مُسافرانه مونځ کول جواز لری او قرآن کریم کښ چه د خوف قید لګیدلے دے نو د هغے حکمت دا دے چه دا آیت اصل کښ په صلاة الخوف کښ نازل وو نو څکه د خوف قید لګیدلے دے نو پدے کښ نفی د غیر حالت الخوف نشته. او د نبی ﷺ غالب سفرونو کښ خوف د دشمن موجود وو نو دا قید د موقع په وجه لګیدلے دے.

٣- جواب : علامه حافظ ابن القیمؒ په زاد المعاد (١/ ٤٤٤) کښ ددے قید د فائدے ذکر کولو متعلق داسے وئیلی دی چه دلته دوه قصره دی ١- قصر العدد چه څلورو نه دوه جوړ شی. ٢- دویم قصر الارکان بالتخفیف : چه ارکانو کښ اختصار اُوکړے شی لکه قراءت رکوع او سجده مختصر اُوکړے شی او هریو سره دوه قیدونه لګیدلی دی ١- الضرب فی الارض. ٢- الخوف. نو کله چه دواړه موجود شی یعنی سفر هم وی او خوف هم وی نو دواړه قسمه قصر به کولے شی او کله چه دواړه نهٔ وی نو بیا به دواړه قسمه قصر منتفی وی او کله چه سفر وی او خوف نهٔ وی نو بیا به قصر العدد کیږی او قصر الارکان به نهٔ کیږی او کـه سفر نهٔ وی (مُقیم وی) او خوف وی نو بیا به قصر الارکان کیږی او عدد د مانځه به پوره ادا کولے شی. انتهیٰ.

فائده : نبی ﷺ به غالباً د یو شی حکمت نهٔ بیانولو بلکه صحابه کرام او اُمت ئے په

اتباع باندے اموخته کول چه بس زۀ درته وایم داسے اُوکړه نو هغه به کوے که هر څه نکته پکښ وی خو په اُمت باندے د هغے کول ضروری دی۔ او نبی ﷺ به څکه نکتے د هر شی نۀ بیانولے چه بیا به خلق د نکتو او فائدو د وجه نه ایمان راوړی، که نکته او حکمت ورته ښکاره کیدو نو ایمان به راوړی او که هغه ورته نۀ ښکاری نو ایمان به نۀ راوړی نو دا د تجرید المتابعة (د نبی ﷺ د خالص اتباع) خلاف کار دے۔

۲- احادیث بیان د کتاب الله دے نو تخصیص د کتاب الله او تعمیم په کتاب الله کښ راوستے شی۔لکه دلته ئے چه تخصیص پورته کړیدے لهذا زیادت د خبر واحد په کتاب الله بالکل جائز دے۔

۳- احناف زیادت د خبر واحد په کتاب الله نۀ منی او حال دا چه پدے حدیث کښ زیادت راغلے دے په کتاب الله باندے څکه کتاب الله کښ قید د خوف ذکر دے او حدیث کښ تعمیم دے۔

فَاقْبَلُوْا صَدَقَتَهٗ : د احنافو په نیز دا اَمر د وجوب دپاره دے که چا دا صدقه قبوله نۀ کړه نو هغه سخت گناهګار دے۔ ۲- امام شافعیؒ وائی : دا اَمر د اباحت دپاره دے او اتمام افضل دے۔ او قصر رخصت دے۔ ۲- مالکؒ او احمدؒ وائی امر د استحباب دپاره دے۔

اُوس که څوک دا صدقه قبوله نۀ کړی او انکار اُوکړی نو سخت گناهګار به وی او که څوک ئے قبوله کړی یعنی وے منی چه قصر جائز دے لیکن اتمام ته افضل وائی نو دا هم قبلول دی نو انسان به دے وخت کښ نۀ وی گناهګار۔ نو فرق دے په مابین د نۀ قبلولو کښ په طریقه د انکار کولو او په مابین د نۀ عملی کولو کښ۔

نو احناف وائی چه (فاقبلوا) کښ امر راغلے دے او امر د وجوب دپاره دے لهذا دا قبلول واجب دی نو قصر کول لازم او اِتمام گناه ده۔ او نور علماء وائی چه قبول په معنیٰ د عدم رد سره دے او مونږ هم دا نۀ رد کوو بلکه قصر ته جائز او مباح وایو۔ نو دا هم قبلول شو۔

مګر د احنافو د طرفنه وئیلے شی چه د الله د طرفنه صدقه په هغه شی کښ چه هغه احتمال د تملیك نۀ لری عبارت وی د اسقاط نه نو دا احتمال د اختیار او عدم اختیار د قبول نۀ لری۔ (یعنی د (فاقبلوا) معنیٰ به دا وی چه ما درنه اتمام ساقط کړو او قصر در باندے لازم شو، اُوس ستاسو اختیار په قبلولو او نۀ قبلولو کښ نشته شرعاً)۔ لیکن د مخکنو دلائلو نه معلومیږی چه قصر سنت دے او واجب نۀ دے۔که پوره مونځ ئے اُوکړو نو نا روا نۀ ده۔ او د (فاقبلوا صدقته) مطلب دا دے چه رخصت اُومنئ۔

٤ - وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مِنَ الْمَدِيْنَةِ اِلٰى مَكَّةَ، فَكَانَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، حَتّٰى رَجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ قِيْلَ لَهُ: أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا ؟ قَالَ: أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره د مدينې نه مکې ته روان شو، نو هغۀ به (په ټول سفر کښې) دوه دوه رکعاته مونځ کولو تردې چه مونږ بيرته مدينې ته راواپس شو. نو انسؓ ته اُووئيل شو : آيا تاسو په مکه کښې څۀ وخت حصار شوی وئ؟ هغۀ اُوفرمايل : مونږ مکه کښې لس ورځې اُوسيدلي وو. (بخاريؒ ومسلمؒ)

: پدې حديث کښې رد په مذاهب ثلاثه ؤ باندې چه هغوی درې او څلور ورځې موده د سفر ګنړي، او حال دا چه پدې حديث کښې خو لس ورځې راغلې په احنافو باندې رد روستو حديث کښې راځي. ليکن جواب دا دې چه دلته لس ورځې په مکه او ماحول کښې مراد دی.

عَشْرًا: بيا سوال دا دې چه روستو فصل ثاني کښې راځي چه دوی اتلس ورځې په مکه کښې حصار وو او دلته وائي لس ورځې؟.

الجواب : دا لس ورځې په حجة الوداع کښې وې، او اتلس يا نورلس ورځې په فتح د مکه کښې وې. لهذا واقعې جدا جدا دی. او دلته ئې په مکه لس ورځې تيرول راغلي دي ليکن ددې نه مراد مکه او د هغې ماحول (منٰی، مزدلفه او عرفات) دی. او که صرف په مکه کښې وخت تيرول واخستې شي نو په مکه کښې ئې څلور ورځې تيرې کړيدی او په دغه موده کښې ئې قصر کړې دې نو بناء پدې بيا دا دليل د امام احمدؒ دې چه څلور ورځې موده د قصر ده. وهو الراجح دليلًا كما تقدم.

٥ - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَافَرَ النَّبِيُّ ﷺ سَفَرًا، فَأَقَامَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَنَحْنُ نُصَلِّيْ فِيْمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَكَّةَ، تِسْعَةَ عَشَرَ، رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، فَإِذَا أَقَمْنَا أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ صَلَّيْنَا اَرْبَعًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائي : نبي ﷺ يو سفر اُوکړو نو (په هغې کښې ئې نورلس ورځې قيام اُوکړو چه دوه دوه رکعاته به ئې کول. ابن عباسؓ اُوفرمايل : نو مونږ چه د مکې او زمونږ (يعنې مدينې) ترمينځ (کوم ځائې) نورلس ورځې (قيام کوو نو) دوه دوه رکعاته به کوو، او کله چه مونږ ددې (مدينې نه) زيات وخت تيرو نو بيا به څلور رکعاته کوو. (بخاريؒ)

تشریح : فَأَقَامَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا : دا سفر د فتح د مکې دے۔ نو ځکه نورلس ورځې یادوی۔ پدے کښې رد دے په احنافو باندے چه هغوی د سفر موده پنځلس ورځې ذکر کوی او حال دا چه دلته نبی ﷺ په نورلسو ورځو کښې هم قصر کړیدے۔ نو دا دلیل د امام اسحاق بن راهویهٔ دے۔

لیکن احنافو سره خو د تاویل بوجئ ډکے دی نو هغوی پدے کښې داسے تاویل کوی چه پنځلس ورځې موده د قصر ده او هر چه دا باقی ورځې دی نو دا (لشغل علی عمل الخروج) وو (یعنی نبی ﷺ په وتلو مشغول وو نن صبائے کولو) نو ځکه اتفاقی طور سره دوه درے ورځې حصار شو او کله چه انسان دغه شان حالت کښې وی نو هغه دپاره هم قصر جائز دے۔

دا تاویل د خپل مذهب مطابق شویدے او څه دلیل پرے نشته۔ ځکه دا د نبی ﷺ د زړهٔ نه خبر ورکول دی چه هغه نن صبا کولو او عزم ئے په خروج باندے کړے وو۔ او بل روایت کښې ددے څه ثبوت هم نشته چه هغه فرمایلی وی : (انی کنت عازما علی الخروج) (زما د خروج عزم وو لیکن نن صبا کولو کښې پاتے شوم۔) او بله څه قرینه هم نشته۔

او جمهور علماء وائی چه دا هر څومره موده وی پدے کښې قصر دے ځکه چه دا هغه صورت کښې داخل دے چه یو انسان جهاد یا یو بل کار پسے وتلے وی او موده د پوره کیدوئے نهٔ وی معلومه او کله چه هغه کار حاصل شی نو بیا به سفر ختموی نو دلته نبی ﷺ د اقامت نیت په خاص موده کښې نهٔ وو کړے بلکه په هر څومره موده کښې چه مقصد حاصل شی راواپس کیږی به۔ لهذا دا د مودے د قصر د څلورو نه خلاف نهٔ دے ځکه چه هغه په هغه صورت کښې دے چه مخکښې نه اراده ئے د څلورو ورځو نه زیاته وی۔ کما مر التفصیل منا۔

بیا په مکه کښې د حصاریدو موده کښې مختلف روایات راغلی دی، بعضو کښې دا دی چه نورلس (۱۹) ورځې حصار وو، بعضو کښې دی چه شل (۲۰) ورځې وو (کما رواه عبد بن حمید فی مسنده)۔ او بعضو کښې اوولس (۱۷) ورځې دی لکه احمدؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ، ابن حبانؒ او بیهقیؒ وغیره کښې دی۔ او بعضو کښې پنځلس (۱۵) ورځې ذکر دی۔

لکه ابوداود او نسائی کښې دی۔ او دا ټول روایات د ابن عباسؓ نه نقل دی۔

او په بعضو کښې اتلس (۱۸) ورځې دی لکه روستو فصل ثانی کښې د عمران بن حصینؓ په روایت کښې دی۔

نو ددے په تطبیق کښې امام بیهقیؒ وئیلی دی چه زما په نیز باندے راجح قول د نورلس (۱۹) ورځو دے ځکه چه دا ډیر صحیح روایت دے او امام بخاریؒ په خپل صحیح کښې

راوړيدے۔ او داسے تطبيق ئے هم کړيدے چه چا نورلس ورځے ذکر کړيدی نو هغه په کښې د دخول او خروج ورځے هم حساب کړيدی او چا چه اتلس ذکر کړيدی نو هغه په کښې يوه ورځ نۀ ده حساب کړے او چا چه اُولس (۱۷) ذکر کړيدی نو هغه دواړه ورځے نۀ دی شمارلی۔

حافظ ابن حجرؒ په تلخيص الحبير (۱۲۹) کښې ددے تطبيق تائيد کوی: (وهو جمع متين وتبقى رواية خمسة عشر شاذة لمخالفتها ورواية عشرين وهى صحيحة الاسناد الا أَنَّهَا شَاذَّةٌ اَيْضًا) (دا ډيره قوی جمع او تطبيق دے، او هرچه د پنځلسو ورځو يا شلو ورځو روايت دے نو هغه شاذ دی) ليکن «فتح البارى» کښې وائى چه روايت د پنځلسو هم صحيح دے۔ نوویؒ ورته په خلاصه کښې ضعيف وئيلے دے۔ ليکن صحيح دا ده چه دا هم صحيح دے نو بيا دا محمول دے په دے چه راوی دا ګمان کړيدے چه اصل روايت د اُولسو دے نو دوه ورځے د دخول او خروج ئے ترے حذف کړيدی نو پنځلس ئے ذکر کړيدی۔

نو دا دليل دے چه د نورلسو روايت ډير راجح دے او دا په اکثرو روايات صحيحه ؤ کښې راغلے دے۔ دا ئے وجه د ترجيح شوه۔ انتهىٰ بتغير)

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: اُوس عبد الله بن عباسؓ ددے حديث نه استنباط کوی چه بس زمونږ دپاره هم دغه (۱۹) ورځے موده د قصر شوه۔ ليکن دا استدلال د ابن عباسؓ به هله تمام وی چه کله نبی ﷺ قولاً وئيلی وے چه مونږ دا موده تيره کړه نو بس دا موده د قصر شوه او زيادت کښې قصر نۀ دے جائز او حال دا چه دا بيان خو نشته۔ لهذا دا دليل د قول د ابن تيميةؒ دے چه د سفر دپاره حد نۀ دے معين، که نبی ﷺ د شلو نه زيات وخت تير کړے وے او په هغے کښې ئے قصر نۀ وے کړے نو مونږ به په دغه موده استدلال کولے چه بس نورلس ورځے اندازه د قصر ده او زيادت کښې نبی ﷺ قصر نۀ دے کړے۔ بلکه دلته دا هم وئيلے شی چه که نبی ﷺ د پنځه ويشتو ورځو په سفروتلے وے نو کيدے شی چه هغه بيا هم قصر کولے ځکه منع خو نۀ ده موجوده، چه ددے مودے نه اخوا قصر نۀ دے جائز۔ بلکه دا اتفاقاً نبی ﷺ نورلس تيرے کړيدی۔ لهذا دا نص نۀ دے په دے مسئله کښې۔ فتدبرا۔

---

٦- وَعَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، قَالَ: صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي طَرِيْقِ مَكَّةَ، فَصَلّٰى لَنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَاءَ رَحْلَهُ، وَجَلَسَ، فَرَأٰى نَاسًا قِيَامًا، فَقَالَ: مَا يَصْنَعُ هٰؤُلَاءِ؟ قُلْتُ: يُسَبِّحُوْنَ. قَالَ: لَوْكُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِيْ. صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ، فَكَانَ لَايَزِيْدُ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ، وَأَبَابَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَذٰلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او حفص بن عاصمؒ فرمائی : زهٔ (یوه ورځ) د ابن عمرؓ سره د مکے په لاره کښې ملګرے شوم، نو هغهٔ مونږ ته د ماسپښین دوه رکعاته مونځ اُوکړو، بیا خپل پالان ته راغلو او کیناستو نو څهٔ کسان ئے ولاړ اُولیدل، وے فرمایل : دا کسان څهٔ کوی ؟ ما عرض اُوکړو : دوی سنت کوی، وے فرمایل : کهٔ ما سنت کولے نو ما به (فرض) مونځ پوره کړے وے، (ځکه فرض مونځ د نفلو نه زیات اَولیٰ دے) زهٔ د رسول الله ﷺ سره (په سفرونو کښې) ملګرے شوے یم، (د هغهٔ عادت مبارك دا وو) چه هغهٔ به په سفر کښې د دوه رکعاتو نه زیادت نهٔ کولو او دغه شان ابوبکر، عمر او عثمان (رضی الله عنهم) سره (ملګرے شوے یم هغوی به هم دغه شان کار کولو) (بخاریؒ ومسلمؒ)

تعارف د حفص بن عاصم : حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب د تابعینو د طبقه وسطی نه ثقه تابعی دے۔ او عبد الله بن عمرؓ ئے تره دے۔ د هغه سره پدے سفر کښې ملګرے شویدے۔

تشریح : اشکال : ددے روایت د ابن عمرؓ نه معلومه شوه چه هغه منع کوی چه سفر کښې نفلونه مهٔ کوئ او روستو فصل ثانی کښې راځی ابن عمرؓ فرمائی : ما د نبی ﷺ سره د ماسپښین مونځ نه روستو دوه رکعاته اُوکړل۔ دارنګه د باب آخری حدیث کښې دی چه عبد الله بن عمرؓ به خپل ځوی عبید الله په نوافلو لیدلو او هغه به ئے نهٔ منع کولو؟ نو ددے اشکال جواب دا دے چه د ابن عمر ﷛ رأیه دا وه چه فرق دے په مابین د نوافلو او سنت رواتبو کښې نو سفر کښې نوافل کول جائز دی او سنت نهٔ دی پکار۔

۲- دویم فرق چا دا بیان کړیدے چه د هغه رایه دا وه چه په سورلئ باندے سنت کولے شی او کوزیدل ورته نشته۔ (قاله ابن بطال ونقله الحافظ)

۳- بعضو وئیلی دی چه حدیث الباب محمول دے پدے چه غالب احوالو کښې به هغه سنن رواتب نهٔ کول او کوم روایت کښې چه ثابت دی نو هغه په بعض اوقاتو باندے بیاناً للجواز محمول دی، او اشاره ده چه په سفر کښې د سنتو کړل دومره متأکد او قوی نهٔ دی لکه څنګه چه په حضر کښې مؤکد دی۔(قاله العراقی) نور جوابونه هم شته لیکن ضعیف دی۔ اول جواب غوره دے۔

## مسئله : په سفر کښې د سنت رواتبو څه حکم دے؟

۱- راجح دا ده چه سنت دوه قسمه دی یو هغه دی چه هغه په هیڅ حال کښې نشی پریخودلے او هغه وتر او د سحر سنت دی۔ نبی ﷺ به په سفر کښې وتر په سورلئ هم کول

او په زمکه کښې هم، لکه په عام احاديثو د صحاح او سننو کښې نقل دے او د سحر سنت ئے هم په سفر کښې کړيدي لکه په قصه د ليلة التعريس کښې راځي : (ثم دعا بماء فتوضأ ثم صلى سجدتين (اى ركعتين) ثم اقيمت الصلاة فصلى صلاة الغداة) (فتح البارى ٤٦٢/٢ - صحيح مسلم، دارقطني، وابن خزيمة)

او هر چه باقي سنن دي نو د هغې نۀ کول سنت دي، او همدا راجح قول دے ځکه اتباع د نبي ﷺ دا ده چه دا سنت پريدي او دا حديث الباب د ابن عمرؓ پرے هم دليل دے. چه د نبي ﷺ، ابوبکر، عمر او عثمان دا عمل وو چه هغوي به دا سنت نۀ کول.(متفق عليه)

او هرچه نوافل او تهجد او صلاة الضحى، صلاة الاشراق او رکعتي الزوال وغيره دي نو ددے کول ښکار دي. او دا د ابن عمرؓ مذهب هم دے چه هغه نوافل مطلقه جائز ګڼړي او په سنت راتبه کولو باندے رد کوي.

او هرچه د علماؤ اقوال دي نو هغه پکښې شپږ دي ١- يو مطلقاً منع دي.

٢- دويم : جواز مطلقاً. ٣- فرق په مابين د سنن رواتب او نوافل مطلقه ؤ کښې. او دا مذهب د ابن عمرؓ دے لکه ابن ابي شيبه په اسناد صحيح ذکر کړيدے.

٤- بعض فرق کوي د ليل او نهار په نوافل مطلقه ؤ کښې.

٥- بعض فرق کوي په روستنو سنت وغيره کښې نو نفي په روستنو سنتو محمولوي او مخکنې سنت او نوافل مطلقه جائز ګڼړي.

٦- ابن القيمؒ دا اختيار کړيده چه نبي ﷺ په سفر کښې نۀ مخکنې سنت کړيدي او نۀ روستنې مګر صرف وتر او سنة الفجر به ئے کول او دا به ئے سفراً او حضراً نۀ پريخودل. زاد المعاد (٤٥٦/١)

او ٧- امام بخاريؒ په خپل صحيح کښې دا ثابتوي چه مخکنې سنت شته او روستنې ترے ندي نقل ځکه هغه په خپل رواياتو عمل کوي او مونږ ته خو نور روايات هم صحيح ښکاري لکه د ترمذي وغيره چه هغې کښې بعدي هم نقل دي. ليکن هغۀ نوافل دي.

او پدے ټولو کښې راجح قول د ابن القيمؒ دے. او همدا د سننو تابعداري ده او کوم رواياتو کښې چه دا راغلي دي چه نبي ﷺ د ظهر نه روستو دوه رکعاته اُوکړل نو هغه نفل دي، نۀ سنت، ولے که سنت وے نو بيا ئے مخکنې ولے نۀ کول. دارنګه باقي مونځونو سره ئے ولے نۀ کول نو دا دليل دے چه دا تطوع او نوافل مطلقه دي او سنتِ راتبه نۀ دي.

بلـه دا چه قصر د مانځه د سهولت او تيسير دپاره شويدے نو که دا سنت راتبه په سفر کښې ضروري شي نو بيا خو به مشقت راشي او حال دا چه شريعت مشقت دفع کړيدے او

فرض ئې هم نیم کریدی. فتدبر.

او علامه مبارکفوریؒ په المرعاة (۳/۳۹۵) کښې وائی : زما په نیز راجح دا ده چه وتر او سنت د سحر به نهٔ پریدی او هر چه نور رواتب قبلی او بعدی دی نو هغه د بنده په اختیار کښې دی، که کوی ئې نو ثواب به ورته ملاویږی او که نهٔ ئې کوی نو هیڅ حرج پرې نشته. یعنی دا مؤکد سنت نهٔ دی. د نوافلو په درجه کښې دی. انتهیٰ.

لیکن راجح دا ده چه نبی ﷺ نه سنت نهٔ دی ثابت. کما تقدم. او که دغه دوه رکعاتو ته خوك سنت وائی نو بیا به داسې اُووایو چه سنت کله کله ثابت دی بیاناً للجواز او عام حالاتو کښې نبی ﷺ پریخودلی دی.

او کوم روایت د احمد کښې صلاة الرکعتین قبل الظهر راغلی دی نو د هغې نه مراد د زوال نه پس دوه رکعاته دی لکه په بل روایت د ترمذی او ابوداود کښې راغلی دی : ابن عمرؓ فرمائی : (صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ ثمانیة عشر سفراً فما رأیته ترك الرکعتین اذا زاغت الشمس قبل الظهر) لهذا دا د زوال مونځ دې. ځکه که دا سنت شی نو بیا د ماښام او ماسخوتن سره ولې سنت نهٔ کوی.

په مغنی (۲/۱٤۱) کښې دی : حسن بصریؒ فرمائی : (کان اصحاب رسول الله ﷺ یسافرون فیتطوعون قبل المکتوبة وبعدها) یعنی صحابه کرامؓ به د فرائضو نه مخکښې او روستو تطوع کول) بیا ئې د ابن عمرؓ د حدیث او د حسنؒ د حدیث داسې تطبیق کړیدې چه حدیث د حسنؒ دلیل دې چه په کولو ئې څه باك نشته او حدیث د ابن عمرؓ دلیل دې چه په پریخودلو ئې هم څه باك نشته. وکما فی فقه السنة (۱/۲۰۲).

لیکن دا تطبیق صحیح نهٔ دې ځکه چه دده حدیث الباب نه معلومه شوه چه عبد الله بن عمرؓ رد کوی په هغه چا چه په سفر کښې سنت کوی، نو څنګه د هغه حدیث د هغه د مراد په خلاف باندې حمل کړې شی بلکه ظاهر دا ده چه د صحابه کرامؓ دغه فعل محمول دې په نوافلو باندې ځکه د تطوع لفظ پرې دلیل دې. نو په سفر کښې نوافل زیات کول پکار دی او سنت نهٔ دی پکار. او په حضر حالت باندې د سفر حالت قیاس کول هم صحیح نهٔ دی ځکه چه په باب د عباداتو کښې قیاس بند دې. او عموماتو نه استدلال کول په یو خاص عبادت کښې صحیح نهٔ دی.

او بعض جاهلان وائی : الله خو ورته فرض نیم کړل لیکن پیغمبر ورته خپل حق نهٔ معاف کوی نو هغه به پوره کوې. او څوك چه سنت نهٔ کوی نو هغوی ته ډیر بد ګوری. دا خبره ډیره دې اَدبئ نه ډکه ده، پیغمبر ئې د الله مقابله کښې اُودرولے دې (والعیاذ بالله) ددې

خبرے نقل کول خپله دلیل د رد دے۔ نو په داسے وخت کښې د سنتو پریخودل پکار دی۔

فَكَانَ لَايَزِيْدُ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ : پدے کښې اشکال دا دے چه دلته څنګه مطلقاً نفی کوی حال دا چه نبی ﷺ خو به په سفر کښې نوافل کول لکه فصل ثانی کښې راځی چه نبی ﷺ به د ماسپښین او ماښام نه روستو نوافل کول او صلاة الضحیٰ ئے په سفر کښې کول او تهجد ئے په سورلئ کړیدی؟ نو جواب دا دے چه د (لایزید فی السفر علی رکعتین) مطلب دا دے چه سنت به ئے نهٔ کول او فرائض به ئے کم کول او دا مطلب نهٔ دے چه نوافل ئے نهٔ دی کړی۔

وَعُثْمَانَ : دے سره به دا قید اُولګوے چه په اوله زمانه د خلافت د عثمان کښې څکه چه په آخره زمانه د عثمان کښې به هغه اتمام کولو۔ علامه زرکشیؒ وائی : هیڅ اشکال نشته څکه چه د ابن عمرؓ مقصد دا دے چه عثمان به په خپل دور خلافت کښې په سفرونو کښې قصر کولو، سوئ د مِنیٰ نه څکه د عثمان اتمام صرف په مِنیٰ کښې وو نهٔ په عام سفرونو کښې۔ لکه دا تفسیر عمران بن حصینؓ په خپل روایت کښې کړیدے۔ (مرعاة المفاتیح ٤/٣٩٣)

---

٧- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ اِذَا كَانَ عَلٰى ظَهْرِ سَيْرٍ، وَيَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. ____________

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله په سفر باندے وو نو د ماسپښین او مازیګر ترمینځ به ئے جمع کوله (یعنی په یو وخت کښې به ئے جمع کول)، او د ماښام او ماسخوتن ترمینځ به ئے جمع والے کولو۔ (بخاریؒ)

تشریح : -- د جمع بین الصلاتین ثبوت او مسائل :

پدے حدیث کښې مسئله د جمع بین الصلاتین ده او دا د شریعت یو سماحت او آسانی ده اُمت ته چه کله انسان په سفر کښې وی یا مرض وی یا باران وی نو هغه دوه مونځونه په یو وخت کښې جمع کړی، د ماسپښین او مازیګر او د ماښام او ماسخوتن او هر چه سحر دے نو هغه به جُدا کوی۔ او څوک چه دے سنت طریقه باندے عمل کړی نو هغه نه جُمعه او مونځ نهٔ فوت کیږی او څوک چه پدے باندے عمل نهٔ کوی نو د هغوی نه اکثر د مونځونو وختونه په سفر کښې ضائع شی کما جُرب بذلك۔ او بله دا چه د سفر د کوزیدو او ختلو نه او د زیات وخت لګیدو نه انسان محفوظ کیږی۔ او د سفر مشقت په انسان آسانیږی۔ نو څکه شریعت داسے اجازت ورکړے دے۔

بیا جمع بین الصلاتین دوه قسمه ده یو هغه ده چه سنت وی لکه جمع په عرفات او مزدلفه کښې نو دا ضروری ده او د حج د افعالو نه ده۔ ۲ – او هر چه په سفر، باران او مرض کښې جمع بین الصلاتین ده نو دا رخصت دے او پدے باندے هم عمل کول سنت باندے عمل کول دی لکه د عبد الله بن عباسؓ نه نقل دی (هی سنة) (البیهقی ۱٦٥/۳)

یعنی دا جمع بین الصلاتین هم سنت ده او په رخصت باندے عمل کولو ته هم شریعت ترغیب ورکړے دے لکه نبی ﷺ فرمائی : (ان الله یحب ان تُؤْتٰی رُخَصُهٗ کَمَا یَکْرَهُ اَنْ تُؤْتٰی مَعْصِیَتُهٗ) (احمد ۱۳٥/۸) مجمع الزوائد (۱٦۲/۳) (الله دا خوښوی چه د هغه ورکړی رخصتونو باندے عمل اُوکړے شی لکه څنګه چه دا بَده ګنړی چه د هغه معصیت اُوکړے شی) نو جمع بین الصلاتین ته بد کتل او یا ددے نه انکار کول ګناه ده لکه حدیث ابن عمر کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی : (من لم یقبل رخصة الله کان علیه من الاثم مثل جبال عرفة) وسنده صحیح (احمد ۷۱/۲) مجمع (۱٦۳/۳) (څوک چه د الله رخصت نه قبلوی نو هغه باندے به د عرفات د غرونو برابر ګناه وی)

## الاختلاف فی الجمع بین الصلاتین :

د جمع بین الصلاتین په ثبوت کښې د مذاهبو د امامانو اختلاف :

۱ - د ابن حزمؒ رایه دا ده چه جمع تاخیر جائز ده، نهٔ جمع تقدیم۔ یعنی داسے جائز ده چه د ماسپښین مونځ مازیګر ته روستو کړے شی او دواړه د مازیګر په وخت کښې اُوکړے شی او داسے نهٔ ده جائز چه مازیګر مونځ رامخکښې کړے شی او د ماسپښین په وخت کښې اُوکړے شی او دغه شان ماښام او ماسخوتن کښې واخله۔ او دا یو روایت د امام مالكؒ او احمدؒ هم دے۔

د ابن حزمؒ دلیل دا دے چه د جمع تقدیم باره کښې اَحادیث نشته۔ لیکن روستو به مونږ ثابته کړو چه ډیر احادیث پکښې راغلی دی۔

۲-د امام مالكؒ نه په «المدونة» کښې نقل دی او دا قول د لیثؒ دے چه جمع بین الصلاتین د هغه چا پورے خاص ده چه (اِذَا کان المُسافر مُجِدًّا فی السیر) (چه د سفر تادی (جلتی) ئے وی) دلیل ئے دا حدیث الباب او ددے په شان احادیث دی چه په هغے کښې (جَدَّ به السَّیرُ، او اذا کان علی ظَهرِ سَیرٍ) الفاظ راغلی وی) لیکن صحیح دا ده چه د ﷺ نه په صحیح احادیثو کښې ثابت دی چه هغه ښه په آرام وخت کښې هم جمع بین الصلاتین کړیده لکه روستو به راشی، او د جلتئ په وخت په طریق اَولیٰ جائز ده۔

۳- احناف وائی : جمع صُوری (جمع المقارنة) جائز ده، نهٔ جمع حقیقی (جمع

المواصلة) او جمع صوري ديته وائي چه مثلًا د ماسپښين مونځ آخر وخت ته روستو کړي او د ماز يگر مونځ اول وخت ته رامخکښ کړي او هر يو په خپل خپل وخت کښ اُوکړے شي. او جمع حقيقي نۀ منی، سوئ د عرفات او مزدلفه نه. او هغه هم د مناسکو د حج نه شماري، لهذا د دوی په نيز باندے جمع بين الصلاتين په سفر کښ نشته او صرف جمع صُوري جائز گنړي چه دا هسے ظاهري جمع ده او معنوي او حقيقي جمع نۀ ده، صرف دوه مونځونه نزدے نزدے اُوشو او خپل خپل وخت کښ اُوشو.

او د جمع حقيقي په باره کښ چه کوم روايات راغلي دي نو هغه ټولو کښ تاويل کوی او جمع صوري ته ئے راړوی ليکن محققين احنافو وغيره وئيلي دي چه هغه داسے صريح روايات دي چه دا تاويل پکښ کار نۀ ورکوی لکه روستو به راشي.

د دوی دلائل : ۱ – کتاب الحيض (باب المستحاضة) کښ تير شويدي چه نبی ﷺ حمنه بنت جحشؓ ته اُوفرمايل : (وان قويتِ على ان تُؤَخِّرِيْنَ الظُّهْرَ وتُعَجِّلِيْنَ العصر فتغتسلينَ وتَجْمَعِيْنَ بين الصلاتين الحديث (احمد، ترمذي، ابو داود)-حديث حسن) نو پدے کښ جمع صوري ده، لهذا جمع صوري صرف جائز ده.

۲- دليل : امام ترمذي د کتاب العلل په آخر کښ ليکي : چه زما په دے کتاب (سنن ترمذي) کښ ټول احاديث معمول بها دي سوئ د دوه رواياتو نه چه يو د هغے نه دا روايت د جمع بين الصلاتين دے. لهذا اُمت پدے باندے عمل پريخے دے. او بل قتل شارب الخمر. (فتح الباری ۱۹۱/۱۹ مايكره من لعن شارب الخمر)

۳- دليل : دا جمع بين الصلاتين د آيت خلاف، مونځ دے ځکه آيت کښ دي : ﴿ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتَابًا مَوْقُوْتًا﴾ (ځکه مونځ الله په خپل وخت فرض کړيدے نو ددے د خپل وخت نه مخکښ کول يا روستو کول د آيت خلاف شو)

۴- دليل : حديث کښ دي چا چه دوه مونځونه په يو وخت کښ جمع کړل (فقد اَتٰى بَابًا مِنْ اَبْوَابِ الْكَبَائِرِ) نو دۀ راتګ اُوکړو په يوه غټه دروازه د کبيره ګناهونو باندے (ترمذي بشرح تحفة الاحوذي ۲۱۶/۱)

او دا روايت زکريا صاحبؒ په «فضائل أعمال» کښ هم راوړيدے.

الجواب : ليکن دا دلائل ضعيف دي. وجه دا ده چه حديث حمنه بنت جحشؓ کښ يوه طريقه د جمع بين الصلاتين ذکر ده او د هغے نه خو څوك انکار نۀ کوی خو ټول اَحاديث دے ته راګرزول ظلم دے.

او هر چه د امام ترمذيؒ قول دے نو په هغے باندے احنافو هم عمل نۀ دے کړے ځکه چه

په هغه حدیث کښې خو دا دی چه نبی علیه السلام په حضر کښې جمع بین الصلاتین اوکړه (من غیر سفر ولا مطر ولا مرض) او جمع حقیقي وه، نۀ جمع صوري۔ او احناف خو حضر کښې جمع بین الصلاتین د سره نۀ مني۔

او هرچه آیت دے نو دا آیت په چا نازل دے ؟ دا په نبی ﷺ نازل شویدے او هغه ددے په معنیٰ ښه پوهیدو او د هغه نه دا جمع بین الصلاتین په صحیح اَحادیثو کښې نقل ده، نو ګویا کښې نبی ﷺ داسے اُوفرمایل : چه په عام اَوقاتو کښې په (کتاباً موقوتاً) عمل کوئ او په سفر کښې په جمع بین الصلاتین عمل کوئ لهذا پدے کښې هیڅ اشکال نشته۔

۲- دویم دا چه د اوقاتو بیان هم نبی ﷺ کړیدے او جمع بین الصلاتین هم نبی ﷺ کړیده نو که تاسو سره حدیث وی په تعیین د اوقاتو کښې نو مونږ سره احادیث شته په جمع بین الصلاتین کښې او دواړه د یو مشکاة النبوة نه صادر شویدی۔

۳- دریم دا چه اَحنافو ته وئیلے شی چه دوی په عرفات او مزدلفه کښې ولے جمع بین الصلاتین (جمع حقیقي) جائز ګڼړی؟ که دوی وائی : ځکه چه نبی ﷺ دا جمع بین الصلاتین کړیده۔ نو مونږ وایو : په سفر کښې هم نبی ﷺ جمع بین الصلاتین کړیده اګرکه یو دے د مناسکو د حج نه وی او بل دے د سفر د توابعو نه وی۔ دا په حکم کښې هیڅ تغییر نه راولی۔

او هرچه حدیث د ابن عباسؓ دے نو هغه ضعیف دے قابل د استدلال نه دے په هغے کښې حنش بن قیس ابوعلی الرحبی راوی ضعیف دے امام بیهقي په سنن کبری (۱۶۹/۳) کښې فرمائی : وهو ضعیف عند اهل النقل لا یحتج بخبره) وقال الدارقطنی : هو متروك وقال احمد : کذاب ووثقه الحاکم فی المستدرك وتعقبه الذهبی فی التلخیص فقال : بل ضعفوه واورده ابن الجوزی فی الموضوعات) (موطأ محمد ۱/ ۳۰۷) سنن الترمذی (۳۵۶/۱) سنن الدارقطنی (۳۹۵/۱) جمع الجوامع (۲۲۶۰۲/۱) وغیرها)

۲- او که بالفرض صحیح هم شی نو په هغے کښې خو دا دی چه بغیر د عذر نه څوك جمع بین الصلاتین کوی نو هغه ګناه ده او سفر خو عذر دے لهذا پدے کښې د جمع بین الصلاتین نه په سفر کښې منع نشته۔ فتدبر!۔

٤- امام شافعی، احمد، اسحاق، ابوثورؒ، ابن المنذرؒ او اشهبؒ او یو روایت د امام مالك او جمهور محدثین او اکثر صحابه کرامؓ او تابعین فرمائی : جمع بین الصلاتین مطلقاً په سفر کښې جائز ده که جمع تقدیم وی او که جمع تاخیر، علی ظهر سَیر وی او که نازل وی او دا رخصت دے او عزیمت نۀ دے۔ او دا قول شاه ولی الله الدهلوی په حجة الله

(١٨/٢) کښې غوره کړيدي۔

**دلائل هذا القول:** اُوس د جمـع حقیقي دپاره دلائل څه دي؟ نو دلائل ډير دي، تقريباً (٣٧) نه زيات دي۔

**د جمع تقديم د اثبات** دپاره درې روايات دي۔

او ددې حديث د ابن عباسؓ سياق دليل دې چه دلته جمع حقيقي مراد ده ځکه جَمع صُوري خو اتفاقي ده، هرڅوك ئې مني او دلته نۀ ده مراد ځکه بيا دوه نقصانه راځي۔

☆- يو دا چه ابن عباس ﷺ پخپله وئيلي دي - کله چه د هغه نه تپوس اُوشو چه نبي ﷺ په غزوه تبوك کښې ولې جمع بين الصلاتين اُوکړه - نو هغه اُوفرمايل: (لِئَلَّا يُحَرِّجَ اُمَّتَهُ) (مسلم ٢٤٦/١) (په بل روايت د مسلم او احمد وغيره کښې دي چه په مدينه کښې ئې په حضر کښې بغير د خوف او مطر نه ولې جمع بين الصلاتين اُوکړه نو هغۀ اوفرمايل): پدې وجه چه اُمت په حرج کښې واقع نشي او اُمت ته آساني ملاؤ شي۔ او په جمع صُوري کښې خو حَرَج راځي چه مثلاً د ماسپښين او مازيگر اول او آخري وختونه به معلومېږي، نقشه به ځان سره گرځوي او هرچا ته د هغې اندازه هم نۀ لګي۔ ☆- دويم دا چه غرض د شرع د جمع بين الصلاتين نه آساني ورکول دي او هغه په جمع حقيقي کښې ده۔

**١- دليل: حديث معاذ بن جبل:** (ان النبي ﷺ كـان في غزوة تبوك اذا ارتحل قبل زيغ الشمس اَخَّرَ الظُّهْرَ الى ان يجمعها الى العصر فيصليهما جميعاً واذا ارتحل بعد زيغ الشمس عَجَّلَ العصر الى الظهر فصلى الظهر والعصر جميعاً، ثم سَارَ وكان اذا ارتحل قبل المغرب اَخَّرَ المغرب حتى يصليها مع العشاء واذا ارتحل بعد المغرب عَجَّلَ العشاء فَصَلَّاهَا مَعَ الْمَغْرِبِ) (ترمذی ١٢٤/١) رقم (٥٥٩) وتَفَرُّدُ قتيبة به لا يَضُرُّ فانه ثقة امام وزيادة الثقة مقبولة رواه الدارقطني (٣٩٢/١)

(معاذ ﷺ فرمائي: نبي ﷺ په غزوه تبوك کښې وو کله چه به ئې د نمر زائله کيدو نه مخکښې سفر شروع کولو نو ماسپښين به ئې روستو کړو تردې چه دا به ئې جمع کړو د مازيگر سره نو دواړه به ئې په يو ځائې اُوکړل او کله چه به ئې سفر شروع کولو پس د زوال د نمر نه نو عصر به ئې رامخکښې کړو ظهر ته نو ظهر او عصر دواړه به ئې په يو ځائې اُوکړل بيا به روان شو۔ او دغه شان مغرب او عشاء واخله الخ)

دا حديث واضح ثبوت دې د جمع تاخير او جمع تقديم دپاره ځکه دلته په يو وخت کښې دواړه مونځونه شويدي۔

**٢- دليل: حديث علي رضي الله عنه:** علي ﷺ فرمائي: (كـان النبي ﷺ اذا

ارتحل حين تزول الشمس جمع الظهر والعصر، واذا مُدّ له السير اَخّرَ الظهر وعَجّلَ العصر ثم جَمَعَ بينهما) (دارقطنی ۳۹۱/۱) وفی سنده المنذر القابوسی مجهول ولکن رواه عبد الله بن الامام احمد فی زیادات المسند باسناد آخر کما فی التعلیق المغنی علی سنن الدارقطنی (۳۹۱/۱) وتحفة الاحوذی (۳۸۷/۱) والنیل (۲٦۳/۳) فاسناده حسن)

(یعنی نبی ﷺ به چه کله د زوال په وخت سفر شروع کړلو نو ظهر او عصر دواړه به ئے جمع کړل او کله چه به ورته مزل اُوګد وو نو بیا به ئے ظهر روستو کړو او عصر به ئے رامخکښ کړو بیا به ئے دواړه جمع کړل)۔ دا حدیث هم دلیل دے د جمع تقدیم او جمع تاخیر دپاره۔

۲- حدیث عبد الله بن عباس ﷺ: عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی: (کان فی السفر اذا زاغت الشمس فی منزله جَمَعَ بین الظهر والعصر قبل ان یرکب فاذا لم تزغ له فی منزله سار حتی حانت العصر فجمع بین الظهر والعصر، واذا حانت له المغرب فی منزله جَمَعَ بینها وبین العشاء، واذا لم تحن فی منزله رکب حتی اذا کانت العشاء نزل فجمع بینهما، وفی روایة للشافعی (( واذا سار قبل ان تزول الشمس اَخّرَ الظهر حتی یَجْمَعَ بینهما وبین العصر فی وقت العصر) (واسناده صحیح: احمد (۳٦۷/۱) والشافعی (۱۸٦/۱) وفی المنتقی بشرح النیل (۲٦۱/۳)

(نبی ﷺ به چه کله په سفر حالت کښې په کور کښې وو او په کور کښې به د نمر زوال اُوشو نو ظهر او عصر به ئے د سفر شروع کولو نه مخکښې جمع کړل او کله چه به نمر نۀ وو زائل شوے، نو روان به شو تردے چه کله به د عصر وخت راغلو نو بیا به ئے ظهر او عصر جمع کړل او که په کور کښې به پرے د مغرب وخت راغلو نو د مغرب او عشاء ترمینځ به ئے جمع والے اُوکړو او کله چه به د مغرب وخت په کور کښې نۀ وو راغلے نو سور به شو تردے چه کله به د عشاء وخت شو نو کوز به شو او دواړه مونځونه به ئے جمع کړل، او په یو روایت د شافعیؒ کښې دی: او کله چه به د زوال الشمس نه وړاندے روان شو نو بیا به ئے ظهر روستو کړو او د عصر سره به ئے جمع کړو په وخت د عصر کښې)

دا صریح دلیل دے د جمع تقدیم او جمع تاخیر دپاره چه هیڅ تاویل نۀ قبلوی ځکه چه دلته د ظهر په وخت کښې د عصر مونځ شوے دے په صورت د جمع تقدیم کښې او د عصر په وخت کښې د ظهر مونځ شویدے په صورت د جمع تاخیر کښې چه تاویل پکښې کار نۀ ورکوی۔

او دا حدیث رد دے په هغه چا چه وائی کله چه په سفر کښې جلتی وی نو بیا به جَمع بین الصلاتین کوی نۀ! بلکه دلته په کور کښې ئے جمع بین الصلاتین کړیده۔ او رد دے په قول د ابو داودؒ باندے چه وائی: (لیس فی جمع التقدیم حدیث قائم) (کما فی النیل ۲٦۳/۳)

وعبد الرزاق (٥٤٨/٢) (په جمع تقديم كښې صحيح حديث نشته) نۀ، بلكه دا حديث بالكل صحيح دے او جمع تقديم پكښې راغلے ده۔

٤- حديث انسؓ بن مالك : انس مالك ﷺ فرمائي : (ان النبي ﷺ كان اذا كان في سفر فزاغت الشمس قبل ان يرتحل، صلى الظهر والعصر جميعاً وان ارتحل قبل ان تزيغ الشمس جمع بينهما في اول العصر، وكان يفعل ذلك في المغرب والعشاء) (طبراني في الاوسط وصححه المنذري، كما في التلخيص الحبير (٤٩/٢) وهو اسناد حسن في الشواهد كما في الارواء (٣٣/٣)

(نبي ﷺ به چه كله په سفر كښې وو او د روانيدو نه مخكښې به نمر به زائل شو نو ظهر او عصر دواړه مونځونه به ئے په يو ځائے اُوكړل (دا جمع تقديم ده) او كه د نمر د زوال نه مخكښې به ئے رحلت كولو نو (بيا به ئے) دواړه مونځونه په اول د عصر كښې جمع كول (دا جمع تاخير ده)۔ او دا كار به ئے په مغرب او عشاء كښې هم كولو)۔

٥- دليل : حديث ابن عمرؓ : (عن نافع ان ابن عمر كان اذا جَدَّ به السير جمع بين المغرب والعشاء بعد ان يغيب الشفق، ويقول ان رسول الله ﷺ كان اذا جَدَّ به السير جمع بين المغرب والعشاء (مسلم) وفي رواية البخاري : عن اسلم مولى عمر، قال كنت مع ابن عمر في طريق مكة فبلغه عن صفية بنت ابي عبيد شِدَّةُ وَجَعٍ، فَاَسْرَعَ السَّيْرَ، حتى اذا كان بعد غروب الشفق ثم نزل فصلى المغرب والعتمة ثم جمع بينهما، وقال : انى رأيت رسول الله ﷺ كان اذا جَدَّ به السير اَخَّرَ المغرب وجَمَعَ بينهما (ونحوه في الترمذي ١٢٤/١) واحمد (٤/٢) باسناد صحيح)

(نافع فرمائي : د عبد الله بن عمرؓ به چه كله په سفر كښې جلتي وه نو د مغرب او عشاء مونځونه به ئے جمع كول پس د غائبيدو د شفق نه، او دا به ئے فرمايل : چه د رسول الله ﷺ به كله جلتي وه نود مغرب او عشاء ترمينځ به ئے جمع والے كولو۔ (مسلم) او په روايت د بخاريؒ كښې دي : اسلم د عمر فاروق آزاد كړه غلام وائي: زۀ د ابن عمرؓ سره د مكے په لاره كښې روان وم چه هغه ته د صفيه بنت ابي عبيد (چه د هغه بي بي وه) د طرفنه د سخت درد خبر اُورسيدو (چه ښځے ډیر سخته بيماره ده) نو هغه په مزل كښې تيزي شروع كړه تردے چه كله شفق پريوتو نو كوز شو او د مغرب او عشاء مونځ ئے اُوكړو په يو ځائے۔ او وے فرمايل : ما رسول الله ﷺ ليدلے دے چه كله به د هغه جلتي وه نو د مغرب مونځ به ئے روستو كړو او د عشاء سره به ئے يو ځائے كړو۔)

نو دا حديث دليل د جمع تاخير دے۔ او جمع حقيقي ده نۀ صوري ځكه چه شفق چه غائب شي نو د ماسخوتن وخت داخل شي نو د مغرب مونځ ئے د عشاء په وخت كښې كړيدے۔

٦- بل دليل د جمع تقديم او جمع تاخير دا دے چه رسول الله ﷺ په عرفات کښې د ظهر او عصر مينځ کښې جمع تقديم کړيده او په مزدلفه کښې ئې د مغرب او عشاء ترمينځ جمع تاخير کړيده لکه دا په عام کتابونو د احاديثو کښې ذکر دی او تقريباً د عام اُمت ددے په کولو اتفاق دے۔ دا اګرکه د بعض علماؤ په نيز د نسك الحج نه ده ليکن نفس جمع تقديم او جمع تاخير پکښې راغلے ده، لهذا په حالت د سفر کښې هم ددے کول د دغه احاديثو په بناء جائز دی او دا زمونږ د دين فراخيانے او سهولتونه دی۔ او دا په جمع صوری باندے حمل کول هم بعيد دی لکه دا اقرار محققين احنافو هم کړيدے لکه:

علامه عبد الحی اللکهنوی په التعليق الممجد (١٣١) ليکی:

(قوله والجمع بين الصلاتين الخ: هذا هو الجمع الصوری الذی حمل عليه اَصحابنا الاحاديث الواردة فی الجَمُع وقد بَسَطَ الطحاوی الکلام فيه فی شرح معانی الآثار، لکن لا اَدری ما ذا يفعل بالروايات التی وردت صريحاً بان الجمع کان بعد ذهاب الوقت وهی مروية فی صحيح البخاری وسنن ابی داود وصحيح مسلم وغيرها من الکتب المعتمدة علی ما لا يخفی علی من نَظَر فيها۔ فان حمل علی ان الرواة لم يحصل التميز لهم فظنوا قرب خروج الوقت خروج الوقت فهذا امر بعيد عن الصحابة والتابعين علی ذلك وان اختير ترك تلك الروايات بابداء الخلل فی الاسناد فهو ابعد وابعد– مع اخراج الائمة لها وشهادتهم بصحيحها، وان عورض بالاحاديث التی صرحت بان الجمع کان بالتاخير الی آخر الوقت والتقديم فی اول الوقت فهو اعجب، فان الجمع بينهما علی اختلاف الاحوال ممکن بل هو الظاهر، وبالجملة فالامر مشکل، لعل الله يحدث بعد ذلك امراً انتهیٰ)

(يعنی دا جمع صوری ده کوم باندے چه زمونږ اَصحابو هغه احاديث حمل کړيدی چه د جمع بين الصلاتين باره کښې راغلی دی او امام طحاوی په شرح معانی الآثار کښې پدے کښې ډير تفصيلی کلام کړيدے، ليکن زۀ نه پوهيږم چه په هغه رواياتو به څه کولے شی چه هغه صريح راغلی دی پدے کښې چه جمع بين الصلاتين پس د خروج د وقت نه وه۔ او هغه روايات په بخاری مسلم، ابوداود وغيره معتمد کتابونو کښې نقل دی نو که دا محمول کړے شی پدے چه راويانو پوره تمييز نۀ دے کړے او وخت وتلو ته نزدے کيدو نه ئے تعبير کړيدے په وتلو د وخت باندے نو دا د صحابه کرام او تابعينو نه ډيره بعيده خبره ده (چه هغوی ډِے دومره بے احتياطی اُوکړی) او که په رواياتو کښې د خلل راويستو په وجه د دغه رواياتو ترك اختيار کړے شی نو دا خو ډيره ډيره بعيده ده ځکه دا روايات ددے فن اماماانو راوړيدی او ددے په تصحيح ئے ګواهی کړيده او که ددے معارضه اُوکړے شی په هغه اَحاديثو چه په هغے کښې جمع صوری راغلے ده نو بيا خو خبره ډيره د تعجب والا ده

ځکه (معارضې ته ضرورت نشته) ځکه چه جمع ددې روایاتو په مابین کښې ممکن بلکه ظاهره ده چه دا ډېر په مختلفو احوالو حمل شي. لنډه دا چه خبره ډېره مشکله ده، خو الله به کیدې شي چه ددې نه پس څۀ خبره راپیدا کړي). انتهیٰ.

دا په احنافو کلك ګوزار دې چه د خپل ځان غم اُوکړئ خبرې مو ګډوډې دي، سوچ ورته اُوکړئ)

بیا ئې په عمدة الرعاية (۱۵۱/۱) کښې وئیلی دي چه جمع بین الصلاتین جمع حقیقی بالکل حقه ده او روایات پکښې صحیح راغلی دي. انتهیٰ.

او اشرف علی تهانوی په امداد الفتاوی (۸۲/۵) کښې دا اقرار کړیدې چه بعض احادیث دلالت کوي په جمع حقیقی او وقتی باندې لیکن بیا ئې وئیلی دي چه دا احادیث مضطرب دي، بیا ئې وئیلی دي چه جمع بین الصلاتین د شدید ضرورت په صورت کښې جائز ده تقلیداً للشافعی. لیکن د هغه په کلام کښې هم تناقضات دي.

(ځکه دا قانون دې چه کله د انسان اراده اتباع د سنت نۀ وي نو د هغۀ مخې ته تیاره وي، آسانې خبرې ورته ګرانې ښکاري، د هغه نظر په بل چا لګی)

لهذا د جمع بین الصلاتین نه انکار کول یا دا په بهانو سره د خپل ځان نه اړول د مسلمان شیوۀ نۀ ده.

باقی اَحادیثو دپاره فتاوی الدین الخالص (۱۰۰/۳) تحفة الاحوذی (۳۸۷/۱) نیل الاوطار (۲۶۱/۲) او فتح الباری (۴۶۳/۲) ته رجوع اُوکړئ.

## جمع بین الصلاتین فی الحضر فی المرض والمطر:

عبد الله بن عباسؓ فرمائی: (جَمَعَ رسول الله ﷺ بین الظهر والعصر والمغرب والعشاء بالمدینة من غیر خوف ولا مطر قال وکیع: قلت لابن عباس: لم فعل ذلك؟ قال: کیلا یحرج امته) (مسلم ۲۴۵/۱، ۲۴۶)(احمد والبیهقی وصحیح ابن حبان وغیرهم)

(رسول الله ﷺ په مدینه کښې بغیر د خوف او باران نه د ظهر او عصر او د مغرب او عشاء مونځونو کښې جمع بین الصلاتین اُوکړه. وکیع راوی وائی: ما ابن عباسؓ ته اُوفرمایل: دا کار نبی ﷺ ولې کړیدې؟ هغه اُوفرمایل: دې دپاره چه اُمت په تکلیف کښې وانۀ چوي) یعنی د اُمت د آسانتیا دپاره. (مسلمؒ وغیره)

علامه ابوالبرکات ابن تیمیۀ فرمائی: دا حدیث په خپل فحویٰ سره دلالت کوي په جمع بین الصلاتین باندې د باران، خوف او مرض په وخت کښې الخ نیل الاوطار (۲۶۸/۳)

٢- حمنه بنت جحش رضی الله عنها ته ئے د مرض الاستحاضة په صورت کښ جمع بين الصلاتين خودلے وه۔ مشکوٰة (٥٧/١)

٣- رجاء بن حَيْوَة د نافعؒ نه تپوس کوی چه آيا ابن عمرؓ به جمع بين الصلاتين د خلقو سره کوله کله چه به هغوی په باراني شپه کښ دا جمع کوله ؟ هغه اُوفرمايل : آؤ۔) (عبد الرزاق ٥٥٦/٢)

٤- نافعؒ فرمائی : (ان ابن عمر كان اذا جَمَعَ الامراءُ بين المغرب والعشاء فی المطر جَمَعَ معهم) (الموطأ ١٢٥/١) وعبد الرزاق (٥٥٦/٢) (عبد الله بن عمرؓ به په باران کښ د اميرانو سره جمع بين الصلاتين په مغرب او عشاء کښ کوله)

## مسائل الجمع بين الصلاتين :

١- جمع بين الصلاتين اگرکه رخصت دے ليکن ددے کول افضل دی۔ او عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : (هِيَ سُنَّةٌ) (السنن الكبرىٰ للبيهقی ١٦٥/٣)

(دا سنت عمل دے) او ددے کول ځکه پکار دی چه يو خو دا مسئله د خلقو نه ورکه شويده نو عمل پرے پکار دے چه خلقو ته مسئله واضحه شی۔

٢- دويم دا چه خلق دا بَدْ گنڑی او نفرت ترے کوی نو عام کول ئے پکار دی۔ او الله په دے خوشحاليږی چه د هغه په رخصتونو باندے عمل اُوشی، دا د نفساني خواهش تابعداری نۀ ده بلکه د شريعت د طرفنه آسانی ده۔

٢- جمع بين الصلاتين دپاره يو اذان او دوه اقامته دی۔ لکه دا کار نبی ﷺ په مزدلفه کښ کړيدے (مسلم ٣٩٨/١)

٣- جمع بين الصلاتين جائز عمل دے، برابره ده که سفر کښ په لاره روان وی او که کوم ځائے ئے ډيره اچولے وی او عذر وی او که نۀ وی۔ او کوم علماء چه دا خاص کوی د هغه وخت پورے چه سفر کښ جلتی وی او روان وی۔ لکه حافظ ابن القيمؒ دا تخصيص کړيدے نو دا قول مناسب نۀ دے (زاد المعاد ٤٧٧) وتحقيق المسئلة فی فقه السنة (٢٨٩/١) و کتاب الام للشافعی (٢٠٥/٧) والرسائل والمسائل لابن تيمية (٢٦/٢)

٤- په حضر کښ هم کله نا کله بغير د خوف، مرض او باران نه جمع بين الصلاتين جائز ده لکه دا په حديث د ابن عباسؓ کښ راغلی دی۔ لکه مخکښ حديث تير شو ليکن ددے نه به عمل مستمره او عادت نۀ جوړوی۔

٥- جمع بين الصلاتين په ختهو او د سختو هواگانو په وخت کښ هم جائز ده لکه

مخکښې حديث د ابن عباسؓ پرے دليل دے۔

٦- په عرفات کښې به جمع تقديم کوی او په مزدلفه کښې به جمع تاخير کوی او په باقی سفرونو کښې دواړو کښې چه هره طريقه ورته آسانه وی په هغې دے عمل کوی په تولو کښې حديثونه راغلی دی۔ کما مرت۔ انظر مجموع الفتاوی (٥٦/٢٤)

٧- هر قسمه جمع بين الصلاتين کښې ترتيب لازم دے چه اول به مثلًا د ظهر بيا به د عصر مونځ کوی او دارنګه اول د مغرب او بيا به د عشاء کوی۔ ځکه د نبی ﷺ نه ددے خلاف نقل نۀ دے او هغه وئيلی دی: (صلوا كما رأيتمونی اصلی) (بخاری)

٨- د صحيح قول په بناء په جمع بين الصلاتين کښې موالات (پرله پسے والے) ضروری نۀ دے، علی بن ابی طالب ﷺ به په سفر کښې اول د مغرب مونځ اُوکړو بيا به ئې روټئ اُوخوړله بيا به ئې ورپسے د ماسخوتن مونځ اُوکړو۔ او بيا به ئې اُوفرمايل: ما دغه شان کار باندے رسول الله ﷺ ليدلے دے۔ ابوداود رقم (١٠٩٠) ابن ابی شيبة (٣٤٥/٢) وعبد الرزاق (٥٥٣/٢) واسناده صحيح) صححه الالبانی وقال العينی فی عمدة القاری١٤٨/٧ : اسناد لا بأس به) ۔ نو کوم خلق چه د دواړو مونځونو ترمينځ مسنون اذکارو ته وخت نۀ ورکوی او زر بل اقامت شروع کوی نو دا صحيح کار نۀ دے۔ د جمع لفظ نه استدلال کوی۔

ليکن دا استدلال په محل د نظر کښې دے ځکه چه جمع خو ديته نۀ وائی چه د يو بل پورے به متصل اِنختی وی او مينځ کښې به ئې فصل نۀ وی بلکه د جمع معنیٰ دا ده چه په يو وخت کښې دواړه جمع کول اګر که مينځ کښې په ذکر اذکارو يا خبرو اترو سره فاصله راشی۔ * بلکه دا چه مقصود د شريعت په جمع بين الصلاتين کښې امت ته رخصت او آسانی ورکول دی او که موالات لازم شی نو دا خو بيا سختی شوه۔

انظر مجموعة الفتاوی (٥٤/٢٤)

٩- په جمع بين الصلاتين کښې به سنن رواتب پريخودلے شی خاصکر په عرفات او مزدلفه کښې او په سفرونو کښې۔ ځکه نبی ﷺ به په سفر کښې سنت نۀ کول، بلکه ظاهر د احاديثو دا دے چه په مطلق جمع بين الصلاتين کښې نبی ﷺ نه سنت نۀ دی ثابت۔

١٠- په جمع بين الصلاتين کښې که د عشاء مونځ د ماښام په وخت کښې کوی نو وتر به په خپل وخت کښې کوی ځکه نبی ﷺ هغه په سورلئ هم کړيدی لهذا هغه به د ماښام په وخت کښې نشی کولے۔

٨- وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ فِي السَّفَرِ فِيْ رَاحِلَتِهٖ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ

بِهٖ، يُومِئُ إِيْمَاءً صَلَاةَ اللَّيْلِ إِلَّا الْفَرَائِضَ، وَيُوْتِرُ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به په سفر كښې د شپے مونځ سِوَى د فرضونه په خپله سورلئ باندے كولو هر طرف ته به چه د سورلئ مخ شو، اشاره به ئے كوله، او په سورلئ به ئے وتر (هم) كول. (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشريح : ١- ددے نه معلومه شوه چه سفر كښې نوافل شته. ٢- دويم دا چه په سورلئ باندے كول هم جواز لرى. پدے كښې په اوله كښې كه استقبال الى القبلة اُوشو لا اَفضل ده او كه اُونشو نو ساقط دے، خو دا په حالت د سورلئ كښې دے. هر چه حالت د نزول دے نو بيا به ضرور استقبال الى القبله د اول نه تر آخره پورے كوى. ځكه چه نفل كښې توسع ده كه شريعت دا قيد اُولګوى چه قبلے ته به مخ ضرور اَړوے نو بيا به ډير مسافر د نفلو نه محرومه شي نو ځكه ورته شريعت په استقبال الى القبله كښې آسانى اُوكړه، چه د مسافر هيڅ حالت د عبادت نه خالى نشى.

او دليل د افضليت د استقبال الى القبله په ابتداء كښې حديث د ابوداود، احمد، دارقطنى دے چه روستو راروان دے. انسؓ فرمائي : (ان النبى ﷺ كان اذا اراد ان يتطوع فى السفر استقبل بناقته القبلة ثم صلى حيث وجهت ركابه) (صححه ابن السكن وحسنه الالبانى والحافظ فى التلخيص الحبير (٤٢١/١) و بلوغ المرام (٤٣/١) روضة المحدثين (٨٦/٩)

(نبى ﷺ به چه كله په سفر كښې اراده د نفلو اُوكړه نو خپله اُوښه به ئے قبلے ته متوجه كړه بيا به ئے مونځ كولو هر طرفته به چه د هغه اُوښه متوجه شوه)

٣- بله دا معلومه شوه چه وتر په سفر كښې كول ضرورى دى.

٤- وتر په سورلئ هم كيږى.

احناف وائى وتر په سفر كښې شته خو په سورلئ نۀ كيږى. هغوى وائى : دا حديث منسوخ شويدے. ليكن هيڅ دليل ورسره نشته. بعض د هغوى دپاره داسے دليل وائى چه عبد الله بن عمرؓ په سفر كښې وترو ته كوز شويدے او نبى ﷺ هم په زمكه باندے كړيدى.

ليكن علامه عبد الحى اللكهنوى په التعليق الممجد (١٣١) كښې فرمائي : پدے دواړو عملونو كښې هيڅ تعارض نشته ځكه چه جائز ده چه نبى ﷺ دواړه عملونه كړى وى نو كله به ئے وتر په سورلئ كول او كله به ئے په زمكه او عبد الله بن عمرؓ پدے كښې د هغه اقتداء كړيده، او ددے تائيد دا دے چه طحاوى په شرح معانى الآثار كښې د نافع روايت راوړيدے چه هغه فرمائي : (كان ابن عمر يوتر على الراحلة وربما نزل فأوتر على الارض) (ابن عمرؓ به وتر په سورلئ كول او كله به ئے په زمكه كول) او طحاوى چه نسخ ته اشاره

کریده نو هغه صحیح نهٔ ده ځکه نسخ په احتمالاتو نهٔ ثابتیږی ترڅو چه دے باره کښ نص نهٔ وی راغلے۔ انتهیٰ باختصار)

او دغه شان رد په احنافو باندے امام محمد بن نصر المروزیؒ په کتاب الوتر کښ کړیدے (انظر مرعاة المفاتیح ٣٩٩/٤)

٥- فرائض قوی دی نو هغے ته کوزیدل ضروری دی، او نوافلو کښ آسانی ده نو په سورلئ هم کیږی۔

## الفصل الثانی

٩- وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كُلُّ ذٰلِكَ قَدْ فَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: قَصَرَ الصَّلَاةَ وَأَتَمَّ. رَوَاهُ فِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ».

ترجمه: او عائشه رضی الله عنها فرمائی: دا ټول رسول الله ﷺ کړیدی (په سفر کښ ئے) قصر د مونځ (هم) کړیدے او اتمام ئے (هم) کړیدے۔ (شرح السنة)

تشریح: دا حدیث دلیل دے د هغه علماؤ دپاره چه په سفر کښ اتمام ته هم جائز وائی او قصر واجب نهٔ گنړی، لیکن دا حدیث سنداً ضعیف دے او بل روایت دارقطنی راوړیدے چه هغے ته ئے صحیح وئیلے دے او بیهقیؒ د عائشے نه حدیث نقل کړیدے او صحیح ئے ورته وئیلے دے چه هغے د نبی ﷺ سره په سفر کښ اتمام کړیدے۔ (وقال: اَحْسَنْتِ یا عائشة) نو که ثابت شی نو بیا به د بیاناً للجواز په طور اتمام هم جائز وی او قصر به سنت مؤکد وی۔ کما هو الراجح۔

شیخ الاسلام حافظ ابن تیمیه رحمه الله فرمائی: دا حدیث په رسول الله ﷺ باندے کذب دے۔ زاد المعاد (١٢١/١) او حافظ په التلخیص الحبیر ص (١٢٨) کښ لیکی:

دا حدیث امام احمدؒ منکر گنړلے دے او ددے صحت بعید دے ځکه عائشےؓ به خپله اتمام کولو او عروةؒ ذکر کړیدی چه هغے به د عثمانؓ په شان تاویل کولو۔ او هغه صحیح حدیث دے نو که د عائشےؓ سره د نبی ﷺ نه روایت وے نو عروةؒ به دا خبره نهٔ کولے چه (تاؤلت کما تأول عثمان) عائشےؓ تاویل کړیدے لکه د عثمان په شان۔ بلکه حدیث به ئے پیش کړے وے۔ او حال دا چه په صحیحینو کښ ددے خلاف ثابت دے۔ انتهیٰ۔

نو ددے علماؤ دا خبره ددے روایت په باره کښ صحیح ده لیکن نور روایات مخکښ مونږ ذکر کړیدی چه هغے نه جواز د اتمام فی السفر معلومیږی هغے ته رجوع اُوکړه۔ او دلیل دے چه قصر فرض او واجب نهٔ دے۔ بلکه سنتِ مؤکد دے۔ که چا اتمام اُوکړو نو ان

شاء الله چه ګناهګار به نهٔ وی۔ وانظر المغنی لابن قدامة (١٠٨/٢)

درجة الحديث: اسناده ضعيف جداً: اخرجه الشافعي في المسند (١٨٢/١ رقم ٥١٨) والدارقطني (١٨٩/٢ رقم ٤٤) واسناده ضعيف، فيه طلحة بن عمرو متروك، قال الدارقطني ضعيف۔ مرعاة المفاتيح (٤٠٢/٤)

١٠ – وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ وَشَهِدْتُ مَعَهُ الْفَتْحَ، فَأَقَامَ بِمَكَّةَ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً لَا يُصَلِّي إِلَّا رَكْعَتَيْنِ، يَقُولُ: «يَا أَهْلَ الْبَلَدِ! صَلُّوا أَرْبَعًا، فَإِنَّا سَفْرٌ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه: او عمران بن حصين ﷺ فرمائی: ما د نبی ﷺ سره (په ملګرتیا کښې) غزوات کړيدی، او د هغهٔ سره د (مکې) فتح ته (هم) حاضر شوے یم، (په هغه موقعه کښې) نبی ﷺ په مکه کښې آتلس شپې مقیم وو، چه صرف دوه رکعاته به ئے کول، او خلقو ته به ئے فرمایل: «اے ښار والو! تاسو څلور رکعاته مونځ اُوکړئ ځکه مونږ مسافر یو۔ (ابوداوّد)

تشریح: دا حدیث هم د احنافو او د جمهورو د مذهب خلاف دے ځکه احناف د سفر موده پنځلس ورځے او جمهور څلور ورځے یادوی او دلته ئے اتلس ورځے تیری کړیدی او بیا هم ځان ته مسافر وائی۔

سَفْرٌ: په فتحه د سین جمع د سَافِر ده په معنیٰ د مسافر سره۔ لکه رکب او راکب او صحب او صاحب۔

حدیث کښې دا مسئله ده چه ١ – مقیم لره د مسافر پسے اقتداء کول جائز دی۔ او دا تقریباً اجماعی مسئله ده

او ٢ – برعکس صورت چه مسافر د مقیم پسے اقتداء اُوکړی نو دا د طاووسؒ، داودّ او امام شعبیؒ وغیره په نیز جائز نهٔ ده ځکه پدے کښې مخالفت دے د امام نه په عدد او نیت کښې او نبی ﷺ فرمائی: (لاتختلفوا علی امامکم) (امام نه مهٔ مختلف کیږئ)۔

لیکن صحیح دا ده چه بالکل جائز ده۔ او دلیل د جواز حدیث د ابن عباسؓ دے کما فی مسند احمد۔ د ابن عباسؓ نه تپوس اُوشو چه څه وجه ده چه مسافر کله یوائے مونځ کوی نو دوه رکعاته کوی او کله چه د مُقیم پسے اقتداء اُوکړی نو څلور کوی؟ هغه اُوفرمایل: همدا سنت طریقه ده۔ بل روایت کښې دی: (تلك سنة ابی القاسم ﷺ)۔ (همدا نبوی طریقه ده)۔ او د (لا تختلفوا علی امامکم) مطلب دا دے چه امام نه مخکښې او ډیر روستو مهٔ ځئ بلکه په مانځه کښې د هغهٔ اقتداء کوئ)۔

## مسافر د مقيم يا د مقيم د مسافر پسے څومره مونځ دے ؟

**المسئلة الثانية** : كله چه يو مسافر د مُقيم سره دوه ركعاته مونده كړي نو آيا د امام سره به سلام اَړوي او كه نه دوه ركعاته به څانله پوره كوي چه څلور شي ؟ نو پدے كښې اختلاف دے۔ ۱ – علامه ابن حزم الظاهريؒ وئيلي دي چه كه امام په مينځ د مانځه كښې لاندے كړي نو د هغه سره به سلام اَړوي او كه د اول نه ورسره شريك شو نو په دوه ركعاتو كښې به ترے سلام اَړوي ځكه چه د مُسافر دپاره د دوه ركعاتو نه زيادت جائز نهٔ دے او هغه ته دے باره كښې احاديث صحيح نهٔ دي ښكاره شوي۔

ليكن دے باره كښې صحيح احاديث شته۔

۲ - **عام علماء** فرمائي : مسافر چه كله د امام پسے اُودريدو نو دا په حكم د مُقيم كښې شو نو د اقتداء د وجه نه به څلور ركعاته كوي۔ بيا امام مالكؒ وئيلي دي چه كله ورسره پوره ركعت اُونهٔ مومي نو بيا به دوه ركعاته كوي او كه يو ركعت سره د دوه سجدو نه اُومومي نو بيا به څلور ركعاته كوي (التمهيد لابن عبد البر ١٨٦/١١)

او شافعيؒ، احمدؒ، ابو حنيفهؒ او ثوريؒ وغيره علماء فرمائي چه كه تشهد كښې ئے اُوموندو نو هم به څلور ركعاته كوي او همدا خبره حقه ده۔

**دليل** : ۱ – مخكښې حديث د ابن عباسؓ پرے دليل دے چه مُسافر به د مُقيم پسے څلور ركعاته كوي او دا سنت د ابو القاسم ﷺ دے۔

۲ - **دويم دليل** : حديث د مسلم دے (وانما جعل الامام ليؤتم به –فلا تختلفوا عليه) نو د امام نه مينځ كښې سلام گرځول د شرائطو د اقتداء خلاف دي۔ نو ترڅو چه متابعت د امام ممكن وي نو اختلاف به ناروا وي۔انظر المغني (١٢٩/٢)

۳– په مِنیٰ كښې به د عثمان ﷺ پسے صحابه كرامؓ څلور ركعاته مونځ كولو۔

٤ – ابو مِجلز (لاحق بن حميدؒ) وائي : ما ابن عمرؓ ته اُووئيل : مُسافر چه د مُقيم خلقو سره دوه ركعاته مونده كړي نو آيا دا دوه ركعاته ددهٔ دپاره كافي دي او كه نهٔ، د هغوي په شان مونځ به كوي؟ نو ابن عمرؓ اُوخندل او وے فرمايل : (يصلي بصلاتهم) (د هغوي په شان مونځ به كوي) (بيهقي ١٥٧/٣) اسناد صحيح كما في الارواء (٢٢/٣)

عموم ددے احاديثو شامل دے هر حالت ته يعني كه يو مُسافر مُقيم امام لره په هر حالت كښې لاندے كړي نو اتمام به كوي) والله اعلم۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود الطيالسي (٨٥٨) واحمد في المسند

(٤٣٠/٤) وابوداود (١٢٢٩) والترمذی (٥٤٥) وفی اسناده علی بن زید بن جدعان ضعیف وحسنه الترمذی لشواهده لان علی بن زید صدوق عند الترمذی کما فی المیزان وغیره فلاجل ذلك حسنه وکم من حدیث ضعیف قد حسنه الترمذی لشواهده (تحفة الاحوذی)

---

١١ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ الظُّهْرَ فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ اَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا، وَالْمَغْرِبَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءً ثَلَاثَ رَكْعَاتٍ، وَلَايَنْقُصُ فِيْ حَضَرٍ وَلَاسَفَرٍ، وَهِيَ وِتْرُ النَّهَارِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او ابن عمر ﷺ فرمائی : ما د نبی ﷺ سره په سفر کښې د ماسپښین مونځ دوه رکعاته کړیدی او د هغې نه روستو (مې) دوه رکعاته (کړیدی) او په یو روایت کښې دی : ابن عمرؓ فرمائی : ما د نبی ﷺ سره په حضر او سفر (دواړو) کښې مونځ کړیدے، او په حضر (ښار) کښې مې د هغهٔ سره د ماسپښین څلور رکعاته کړیدی او د هغې نه روستو دوه رکعاته (نفل)، او په سفر کښې مې د هغهٔ سره د ماسپښین دوه رکعاته (فرض) کړې دی، او د هغې نه روستو دوه رکعاته (نفل کړیدی) او مازیګر مې ورسره دوه رکعاته کړیدی او د مازیګر نه روستو ئې هیڅ (نفل) مونځ اُونهٔ کړو، او په ماښام کښې ئې په حضر او سفر کښې برابر درې رکعاته کړې دی، او په حضر او سفر (دواړو) کښې به ئې هیڅ کمے نهٔ کولو، او د ماښام مونځ د ورځې وتر دی، او د ماښام نه روستو به ئې دوه رکعاته کول۔ (ترمذیؒ)۔

تشریح : د حدیث نه معلومه شوه چه د سفر په حالت کښې قصر صرف په هغهٔ مونځونو کښې جائز دے چه څلور رکعاتی وی، او کوم مونځ چه څلور رکعاتی نهٔ وی لکه مغرب او فجر نو په هغې کښې قصر جائز نهٔ دے، دا مونځ لکه څنګه چه په حضر کښې کیږی دغه شان به په سفر کښې هم کولے شی۔

ددے حدیث نه بعض علماء استدلال کوی چه سنت په سفر کښې پکار دی لیکن دلته دا سنت نهٔ دی بلکه دا نوافلو درجه کښې دی ځکه چه ظهر کښې ئې صرف روستنی دوه رکعاته کړیدی نو که دا سنت راتبه وے نو مخکنی به ئې هم کړی وے، او که سنت شی نو بیا بیاناً للجواز ددے کول هم احیاناً جائز دی۔ لیکن اوله خبره ډیره راجحه ده۔

وتر النهار مطلب دا دے چه لکه څنګه چه د شپے وتروی نو دغه شان د ماښام مونځ د ورځے وتر دی، او وتر بهتر مونځ دے، نو دا تشبیه په نفس وتریت کښې ده، ددے نه دا استدلال کول – چه وتر درے رکعاته دی د ماښام په شان – بعید دی، ځکه چه د ماښام په شان وتر کولو نه په صحیح حدیث کښې نهی راغلے ده، لکه مخکښې تیر شویدی، بله دا چه تشبیه من کل الوجوه نهٔ ده بلکه په نفس تاك والی کښې ده او درے رکعاته خو ثابت دی خو ډیره غوره او صحیح طریقه پکښې دا ده چه درے رکعاته په دوه سلامونو سره اُوکړے شی لکه دا د بخاریؒ او مسلمؒ په روایتونو کښې راغلی دی او یا په یو سلام او یوه قعده سره اُوکړے شی۔ لهذا دا استدلال د اشارے نه دے او بل طرفته نصوص موجود دی۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف والحديث صحيح لغيره لشواهده : اخرجه الترمذى (٥٥٢) والبغوى فى شرح السنة (١٠٣٥) وقال الترمذى حديث حسن وسمعت محمداً يعني البخاری- يقول : ما روى ابن ابى ليلى حديثاً اعجب الى من هذا ولا اروى عنه شيئاً آه۔ مع انه سيء الحفظ وشيخه فيه عطية العوفي ضعيف ومدلس لكن فى الباب احاديث اخرىٰ تدل على هذا المعنى۔ انظر المرعاة (٤٠٤/٤)

---

١٢ – وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ فِي غَزْوَةِ تَبُوْكَ : إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَّرْتَحِلَ، جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَإِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعَصْرِ وَفِي الْمَغْرِبِ مِثْلَ ذٰلِكَ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَّرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، وَإِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَغِيْبَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعِشَاءِ، ثُمَّ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او معاذ بن جبل ﷺ فرمائی : نبی ﷺ په غزوه د تبوك کښې وو، (داسے عمل به ئے کولو چه) کله به نمر زائل شو د سفر شروع کولو نه مخکښې به ئے د ماسپښین او مازیګر مونځونه (په یو وخت کښې) جمع کړل او کله چه به ئے د نمر زائل کیدو نه مخکښې مخکښې سفر شروع کولو نو ماسپښین به ئے روستو کړو تردے چه مازیګر مانځهٔ ته به راکوز شو (او د مازیګر په وخت کښې به ئے ماسپښین اُوکړو بیا به د مازیګر اُوکړو) او په ماښام کښې به ئے (هم) دغه شان کار کولو کله چه به نمر ډوب شوے وو د سفر شروع کولو نه به ئے مخکښې د ماښام او ماسخوتن مونځ جمع کړو او کهٔ د نمر غائبیدو نه مخکښې به ئے سفر شروع کولو نو د ماښام مونځ به ئے روستو کړو تردے چه د ماسخوتن دپاره به راکوز شو بیا به ئے دواړه

(مونځونه په یو وخت کښې) جمع کړل۔ (ابوداوَدؔ، ترمذیؔ)

تشریح : دا حدیث صریح دلیل دے چه په سفر کښې جمع بین الصلاتین جمع حقیقی شویده او جمع تقدیم ده او په یو وخت کښې دواړه مونځونه شویدی۔ ځکه چه د سفر شروع کولو نه مخکښې بعد الزوال چه دواړه مونځونه جمع کوی نو ضرور به دا د ظهر وخت وی او دواړه په کښې جمع شویدی۔

وَاِنِ ارْتَحَلَ : دے کښې جمع تاخیر ذکر ده۔ او جمع صوری پکښې نشته۔

او باقی تاویلاتو ته پکښې ضرورت نشته۔ د الله د نبی صفا احادیث دی لیکن مقلدینو مونږ ته ګران کړیدی، هر حدیث کښې ئے ځایه خبرے او تاویلات کړیدی نو ځکه د هغے نشاندهی کیږی۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه احمد في المسند (٢٤١/٥-٢٤٢) والدارمي (٣٥٦/١) وابوداود (١٢٢٠) والترمذي (٥٥٣) وقال حديث حسن غريب وتفرد به قتيبة آه ولكن قتيبة ثقة وكذلك سائر الرواة ثم ليس هو متفرداً بل في الباب احاديث عن انس وابن عمر وابن عباس كما مرت في تفصيل المسئلة) ـــــــــــــــــــــــ

١٣- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا سَافَرَ وَاَرَادَ اَنْ يَّتَطَوَّعَ، اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ بِنَاقَتِهٖ، فَكَبَّرَ ثُمَّ صَلّٰى حَيْثُ وَجْهَهٗ رِكَابُهٗ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او انس ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله سفر کولو او (په لاره به ئے) اراده وه چه نفل اُوکړی نو خپله اُوښه به ئے قبلے ته متوجه کړه او الله اکبر به ئے اُووئیلو، بیا به ئے مونځ کولو هر طرف ته به چه اُوښے متوجه کړو۔ (ابوداوَدؔ)

تشریح: دا دلیل دے چه په سفر کښې نوافل شته او کول ئے پکار دی، د نبی ؑ تابعداری ده۔

بیا قانون دا دے چه یو فرائض دی او بل نوافل، فرائض په هغه سورلئ نهٔ کیږی په کوم کښې چه رکوع او سجده نهٔ کیږی لکه بس، موټر وغیره لیکن که دے کښې رکوع او سجده لګیدله نو بیا جائز ده اګرکه په ناسته وی یعنی که په ولاړه مونځ پکښې کیدے شو نو بالکل جائز او که په ناسته کیدے شو خو رکوع او سجده پکښې لګیدله لکه په مینځ د بس کښې کینی نو بیا جائز ده او دغه شان حکم د جهاز او ریل ګاړی دے۔

دلیل پدے باندے احادیث د سفینه دی۔ ابن عمر ؓ فرمائی : نبی کریم ﷺ نه تپوس اُوشو په باره د مانځه کښې په کشتئ کښې، چه زه په کشتئ کښې څنګه مونځ اُوکړم ؟ نبی

ﷺ أوفرمایل : (صل فیها قائمًا الا ان تخاف الغرق) (په ولاړه ئې اوکړه مګر د غرق کیدو نه یرېږې (نو بیا په ناسته اُوکړه) (اخرجه الحاکم ٢٧٥/١) وقال صحیح الاسناد، قال الذهبی علی شرط مسلم) وصححه الالبانی فی صفة الصلاة ص (٧٩)

٢- عبد الله بن ابی عتبهٌ فرمائی : زهٔ د جابر بن عبد الله او ابوسعید الخدری او ابو هریره (رضی الله عنهم) سره په کشتئ کښې ملګرے شوم نو هغوی په ولاړه جَمعې سره مونځ اُوکړو بعضو ورته امامتی کوله او دوی قادر وو په غاړه د دریاب باندے (چه کوز شوی وے او په زمکه ئې مونځ کړے وے لیکن بیا ئې هم په کشتئ کښې اُوکړو دا دلیل د جواز دے) (سنن سعید بن منصور) والمصنف لعبد الرزاق (٥٨٢/٢)

٣- انس بن مالك ﷺ خپلو ملګروته په کشتئ کښې مونځ اُوکړو چه په بستره باندے ناست وو- (عبد الرزاق ٥٨٢/٢) وابن ابی شیبة (٤١٦/١) -

بیا فوائض چه په سورلئ کوی نو پدے کښې استقبال الی القبله فرض دے، او په اول د تکبیر تحریمه کښې به خو ضرور استقبال کوی که روستو د ضرورت په بناء اُونه شو نو خیر دے، ساقط دے- او په اول کښې ضرورت نشته- او بل طرفته استقبال الی القبله قرآنی حکم دے نو دا به د سخت ضرورت په صورت کښې ساقطیږی-

او کله چه سخت ضرورت راپیښ شی لکه زمکه باندے باران شوے وی او اُوګده لاره وی، ختے او اُوبه وی، د کوزیدو امکان نهٔ وی نو بیا په اشارے سره هم په سورلئ مونځ کیږی لکه پدے باره کښې انس بن سیرینؒ وائی زهٔ د انس بن مالك ﷺ سره په یو بارانی ورځ کښې روان وم او مونږ په سورلو وو او زمکه ډیره کولاوه وه (د کوزیدو امکان نهٔ وو) نو انسؓ مونږ ته د مازیګر مونځ په خر باندے اُوکړو چه په سر به ئې اشاره کوله او سجده به ئې د رکوع نه زیاته خکته کوله- (عبد الرزاق رقم ٤٥١١) والطبرانی فی الکبیر ورجاله ثقات کما فی مجمع الزوائد (١٦٢/٢)

ابوعیسی الترمذیؒ فرمائی : د انس بن مالكؓ نه مروی دی چه هغه په اُوبه او ختو کښې په دَابه (سورلئ) باندے مونځ کړیدے او پدے باندے د اهل علمو په نیز عمل دے او دا قول د احمدؒ او اسحاقؒ دے- انتهیٰ-

او پدے باره کښې یو مرفوع حدیث د یعلیٰ بن مره هم نقل دے چه نبی ﷺ په باران کښې په سورلئ باندے صحابه کرامو ته امامتی کړیده لیکن د هغے په سند کښې عمر بن الرماح البلخی متفرد دے اګرکه ثقه دے لیکن نور راویان په کښې متکلم فیهم دی- امام بیهقیؒ (٧/٢) او شیخ البانیؒ ضعیف کړیدے-

صاحب د تحفة الاحوذي (۳۱۷/۱) د ابو الطيب المدنيؒ نه نقل كړيدي : چه دا حديث دليل دے په جواز د فرائضو په دابه باندے په حالت د عذر كښ انتهى۔

علامه شوكانيؒ فرمائي : ظاهر دا ده چه فرض په سفر كښ په سورلۍ باندے جائز دي د هغه چا دپاره چه دغه شان عذر د باران او د زمكے د لوندوالي پرے راشي اگركه دا په كجاوه كښ نۀ وي او دا قول د احمدؒ او اسحاقؒ دے او علامه عراقيؒ په شرح د ترمذي كښ د امام شافعيؒ نه نقل كړيدے۔ (نيل الاوطار ١٤٨/٢)

او ابن عساكرؒ د انس بن مالكؓ نه بل روايت راوړيدے چه نبي ﷺ فرض مونځ په خټو كښ په خر باندے كړيدے۔ (كنز العمال رقم : ٥٦٦٥) و كشف النقاب (٤١٧/٥)

او علامه مُقبليؒ په المنار (١٤٩/١) كښ فرمائي : په كوم روايت كښ چه دا دي چه فرض مونځ به ئے په سورلۍ نۀ كولو د هغے نه مراد هغه حالت دے چه عذر نۀ وي او ركوع او سجده هم نۀ لګيږي او كله چه عذر وي نو په دغه روايت كښ د هغے نه منع نۀ ده راغلے لهذا دا معارض نۀ ګرځي د هغه رواياتو چه په هغے كښ د عذر په وجه فرض مونځ په سورلۍ راغلے دے۔ انتهىٰ۔

علامه ابن حزمؒ فرمائي : په آيت : ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالاً اَوْ رُكْبَاناً﴾ كښ پياده او په سورلۍ باندے مونځ راغلے دے په حالت د خوف كښ او دا خوف عام دے شارع پكښ تخصيص نۀ دے كړے هر قسم خوف ته شامل دے كه دا خوف د دشمن وي او كه د خټو وغيره وي نو ددے تخصيص نۀ دے جائز۔

(المحلي ١١٦/٢) و كذا قاله القرطبيؒ في تفسيره (٢٢٣/٣)

**دويم نوافل دي** : نو دا په هر حالت كښ په سورلۍ جائز دي، برابره ده چه په زمكه دكوزيدو امكان وي او كه نه، او د ركوع او سجدے امكان وي، او كه اشاره وي خو په اوله كښ استقبال الى القبله مستحب دے روستو كه هر طرفته سورلۍ متوجه شي خير دے۔ وجه دا ده چه پدے كښ تابعداري ده د عمل د نبي ﷺ چه هغه په ابتداء كښ داسے عمل كړيدے او كه عذر وي نو بيا استقبال ضروري نۀ دے ځكه چه دے باره كښ احاديث مطلقه هم راغلي دي چه په هغے كښ د استقبال الى القبله هيڅ تذكره نشته۔ كما في رواية عامر بن ربيعة وعبد الله بن عمر وجابر بن عبد الله۔(زاد المعاد ٤٥٨/١)

لهذا معلوميږي چه استقبال الى القبله كله كله شويدے او په دوام باندے دلالت نۀ كوي۔ او په نوافلو كښ توسع وي۔ او د امام شافعيؒ په نيز دا توجه الى القبله واجب ده۔

انظر لتفصيل المسئلة عون المعبود ٤٧٣/٢) والمجموع شرح المهذب (٢٣٢/٣) وشرح السنة

(۵۴۴/۲) والمغنی (۴۳۶/۱) والمرعاة (۴۰۰/۴) وفتاوی الدین الخالص (۳۶/۴) و(۲۰۲/۵)
درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (۱۲۲۵) والدارقطنی (۳۹۶/۱رقم ۳۲۲۱) والبیهقی فی الکبری (۵/۲) وصححه ابن السکن وحسنه الحافظ فی بلوغ المرام (۴۳/۱) والالبانی فی صحیح ابی داود ۲۲۶/۱) روضة المحدثین (۸۶/۹)

---

۱۴ – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: بَعَثَنِي رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ حَاجَةٍ، فَجِئْتُ وَهُوَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ نَحْوَ الْمَشْرِقِ، وَيَجْعَلُ السُّجُوْدَ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوْعِ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي : زهٔ (يوه ورځ) رسول الله ﷺ د يو حاجت (كار) پسے اُوليږلم، نو (كله چه) زهٔ راغلم، هغهٔ په اُوښهٔ باندے مشرق طرف مونځ كولو، او سجده به ئے د ركوع نه (په اشاره كښې) خكته كوله۔ (ابوداودٌ)
تشريح : د بعض علماؤ رايه دا ده چه په كلي كښې په حضر كښې په سورلئ باندے مونځ نهٔ كيږي، ليكن تحقيقي قول دا دے چه په حضر كښې هم په سورلئ مونځ جائز دے مثلاً ته د پشاور نه كارخانو ته ځې نو په لاره په گاړي كښې د اشراق مونځ اُوكړه هلته به دوكاندارئ ته فارغ ئے۔ او كهٔ تهٔ په لاره كوزيږے نو بيا به گرانه شي۔او دلته نبي ﷺ دا كار په مدينه كښې كړيدے۔
درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد فی المسند (۳۳۲/۳) والدارمی (۳۵۶/۱) وابوداود (۱۲۲۷) واسناده صحیح علی شرط مسلم لولا عنعنة ابی الزبیر فانه مدلس لکن قد صرح بالتحدیث فی روایة البیهقی فی الکبریٰ (۵/۲) واخرجه الترمذی (۳۵۱)

## الفصل الثالث

۱۵ – عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ، وَأَبُوْبَكْرٍ بَعْدَهٗ، وَعُمَرُ بَعْدَ أَبِيْ بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ صَدْرًا مِنْ خِلَافَتِهٖ. ثُمَّ إِنَّ عُثْمَانَ صَلّٰى بَعْدُ أَرْبَعًا. فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا صَلّٰى مَعَ الْإِمَامِ صَلّٰى أَرْبَعًا، وَإِذَا صَلَّاهَا وَحْدَهٗ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : ابن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ په مِنىٰ كښې دوه ركعاته كړي دي، او د هغهٔ نه روستو ابوبكر او د ابوبكر نه روستو عمر، او عثمان په ابتداء د خلافت كښې (دوه ركعاته كړيدي) بيا ددے نه روستو به عثمان ﷺ (په مِنىٰ كښې) څلور ركعاته كول، نو عبد

الله بن عمرؓ به چه کله د امام سره مونځ کولو نو څلور رکعاته به ئې کول او چه کله به ئې یوائې مونځ کولو نو دوه رکعاته به ئې کول۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)
تشریح :

## عثمان ولې مسافرانه مونځ مکمل کولو؟

دلته دا مسئله بیان کړه چه عثمان ﷛ ولې د نبی ﷺ په ظاهر کښې مخالفت کولو چه دهٔ به په مِنیٰ کښې اتمام کولو او نبی ﷺ او مخکښنو خلفاؤ به قصر کولو؟ نو ددې نهه (۹) عذرونه دی چه اکثرو باندې اعتراض واردیږی صرف یو عذر صحیح دې۔
لکه بعض دا دی : ۱- بعض وائی : عثمان خلیفه وو او د خلیفه دپاره هرځائې دار الاقامه وی۔ دا عذر صحیح نهٔ دې ځکه چه نبی ﷺ خود عثمان نه غټ خلیفه وو نو هغه ولې اتمام نه کولو۔
۲- بعض روایاتو کښې راغلی دی (کما فی مسند احمد) چه عثمان نه چا تپوس اوکړو چه ته ولې اتمام (څلور رکعاته) کوې؟ نو هغه اوفرمایل : (یا ایها الناس انی قد تأهلت بمکة وانی سمعت رسول الله ﷺ یقول : من تأهل فی بلد فلیصل صلاة المقیم) اې خلقو ما وادهٔ کړې په مکه کښې او نبی ﷺ نه مې آوریدلی دی چه چا په یو کلی کښې وادهٔ اُوکړو نو هلته به د مقیم مونځ کوی) دا عذر هم صحیح نهٔ دې ځکه دا روایت ضعیف دې په سند کښې ئې عکرمه بن ابراهیم الباهلی مجهول الحال راوی دې۔ بله دا چه په مکه کښې خو نور صحابه کرامؓ هم مقیم وو لکه مخکښې حارثه بن وهب الخزاعی حدیث کښې ذکر شو۔ او هغوی په مِنیٰ کښې د نبی ﷺ سره قصر کړیدې۔
۳- دریم دا په تاریخ کښې نشته چه عثمان په مکه کښې وادهٔ کړې وو۔
۴- عذر : بعض وائی : د اَعرابو د تعلیم دپاره ئې څلور کړیدی چه چرته دوی گمان اُونکړی چه مونځ دوه رکعاته شو۔ دا عذر هم خطاء دې ځکه چه دا خطره خو د نبی ﷺ په زمانه کښې وه چه نوی اَحکام به راتلل نو نبی ﷺ او ابوبکر له دا کار پکار وو لهذا اُوس دا وَهُم نهٔ دې پاتې۔ او د نبی علیه ﷺ د دور نه تر د عثمان دور پورې (۲۵) کالو کښې به قصر کیدو۔ نو دا وَهُم ولې نه کیدو؟۔
٤- عذر : په مِنیٰ کښې ئې زمکه اَخستې وه۔
٥- عثمان به مکې ته د تولو خلقو نه مخکښې راتلو نو هلته به مُقیم شو۔ لیکن پدې عذرونو هیڅ دلیل نشته۔ او دا اعذار د روستو حدیث د عائشېؓ مخالف دی چه هغې کښې

دی چه عائشہؓ د عثمان په شان تاویل کړے وو نو د عائشہؓ په حق کښې خو دغه أعذار نۀ صحیح کیږی لهٰذا دغه حقیقی او اصلی عذرونه نۀ دی بلکه :

٦- صحیح عُذر دا دے چه دا د عثمانؓ اجتهاد وو چه پدے مقام کښې قصر او اتمام دواړه جائز دی نو په یو جائز کارئے عمل کړیدے او اتمام ورته أفضل ښکاره شویدے پدے وجه چه پدے کښې مشقت زیات دے. لکه څنګه چه دا مذهب د امام شافعیؒ دے په سفر کښې. او د عائشے هم دا نظریه وه چه نبی ﷺ کوم قصر کړیدے نو هغه ئے د اُمت دپاره په آسانئ باندے عمل کړے دے او مونږ په سخت کار عمل کوو چه هغه اتمام دے. (قاله ابن بطال ورجحه القرطبی) لکه د عائشےؓ نه عروهؒ تپوس اُوکړو چه تاسو په سفر کښې ولے اتمام کوئ نو هغې اُوفرمایل : (یا ابن اختی انه لا یَشُقُّ عَلَیَّ) (السنن الکبری ١٤٣/٣) (د مونځ په پوره والی کښې ما ته څه مشقت نشته)

٧- حافظ ابن حجرؒ وائی : دا هم نقل شویدی چه رأی د عثمان دا وه چه قصر مختص دے د هغه چا پورے چه روان وی، مزل کونکے وی، او څوك چه په سفر کښې په یو مکان کښې قیام اُوکړی نو د هغه دپاره حکم د مقیم دے، نو اتمام به کوی. او دلیل ئے روایت د عبد الله بن زبیرؓ دے چه باسناد حسن امام احمدؒ نقل کړیدے.

عبد الله بن الزبیرؓ فرمائی : کله چه مونږ ته معاویهؓ حج کونکے راغلو نو په مکه کښې ئے مونږ ته دوه رکعاته د ظهر اُوکړل بیا دار الندوه ته لاړو نو مروان او عمرو بن عثمان ورته ورداخل شو دواړو اُووئیل : تا خو د خپل تره ځوی په کار باندے عیب اُولګولو چه هغه به اتمام کولو (او تا قصر اُوکړو) دے فرمائی : عثمان به چه کله مکے ته راغلو نو د ظهر، عصر او عشاء مونځونه به ئے اتمام سره (څلور څلور) کول بیا چه مِنیٰ، عرفات ته به لاړو نو قصر به ئے کولو او کله چه به د حج نه فارغ شو او مِنیٰ کښې به مقیم شو نو اتمام به ئے کولو. حافظ ابن حجرؒ وائی دا عذر ډیر اولیٰ دے ځکه پدے کښې راوی خپله په سبب باندے تصریح کړیده. (فتح الباری)

فَکَانَ ابْنُ عُمَرَ : یعنی ابن عمرؓ به پدے مسئله کښې د خلیفة المسلمین سره جګړه او مخالفت نۀ کولو بلکه د هغۀ په تابعدارئ کښې به ئے مکمل مونځ کولو، اګرکه دا به مسافر وو. ددے نه مونږ ته دا سبق ملاویږی چه پداسے مسئلو کښې به مسلمانان خپل کښې داسے اختلاف نۀ کوی چه د یو بل بے احترامی اُوکړی ځکه چه دا د کفر او د اسلام مسئله نۀ ده چه انسان پکښې سخت اِختلاف اُوکړی بلکه مستحب کښې اختلاف دے. پدے سره به مسلمانان خپل مینځ کښې محبت نۀ ختموی.

لهذا دا هم دليل دے چه قصر بهتر دے او اتمام هم كله كله جائز دے لكه په تابعدارى د يو امام كښې ئے انسان اُوكړى نو جائز به وى۔ او كه د مقيم امام پسے اُودريدے نو بيا خو به ضرور څلور ركعاته كوے اقتداء د امام ضرورى ده۔

ابن حزمؒ پدے كښې اختلاف كوى او هغه دا حديث ليدلے دے۔ ليكن دا ورته د صحابى خپل اجتهادى عمل ښكاره شويدے او مرفوع حديث ئے نهٔ دے ګڼړلے لهذا د هغه په نيز دا حجت نهٔ دے۔

---

۱۶ – وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ هَاجَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ، فَفُرِضَتْ اَرْبَعًا، وَتُرِكَتْ صَلَاةُ السَّفَرِ عَلَى الْفَرِيْضَةِ الْاُوْلٰى. قَالَ الزُّهْرِيُّ: قُلْتُ لِعُرْوَةَ: مَا بَالُ عَائِشَةَ تُتِمُّ ؟ قَالَ: تَاَوَّلَتْ كَمَا تَاَوَّلَ عُثْمَانُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه: او عائشه رضى الله عنها فرمائى: (په ابتداء كښې په سفر او حضر كښې) مونځ دوه ركعاته فرض شوے وو، بيا رسول الله ﷺ هجرت اُوكړو نو (د مقيم دپاره) څلور ركعاته فرض شو او د سفر مونځ په اولنى (دوه ركعاته) فرضو باندے پاتے شو۔ امام زهرىؒ فرمائى: ما عروه بن زبيرؓ ته اُووئيل: چه عائشےؓ له څهٔ وجه وه چه هغے به (په سفر كښې) پوره (څلور ركعاته) مونځ كولو؟ ـ هغوى اُوفرمايل: هغے هم داسے تاويل كولو لكه څنګه چه عثمان تاويل كړيدے۔ (بخارىؒ ومسلمؒ)

تشريح: يعنى ابتداء كښې مونځ دوه دوه ركعاته فرض وو سوئے د ماښام نه بيا د هجرت نه روستو د ظهر او عصر او عشاء مونځونو سره دوه دوه ركعاته زيات فرض شو نو څلور ركعاته شو بيا د سفر په حالت كښې رجوع بيرته اول حالت ته اُوشوه نو څلور ركعاتى مونځ به دوه ركعاته كولے شى او ماښام كښې چونكه اول نه تبديلى نهٔ وه نو هغه به په سفر كښې هم په زوړ حالت باندے باقى پاتے وى۔

لهذا ددے نه دا معلوميږى چه سفر كښې قصر عزيمت (لازم) دے او رخصت نهٔ دے، ځكه دا ابتدائى فريضه باندے عمل دے او په حضر كښې زيادت شويدے۔ او په أصلى فرضو باندے عمل كول لازم وى۔ لهذا قصر عزيمت شو۔ ليكن ددے جواب مخكښې ذكر شويدے چه قصر سنت دے نهٔ واجب۔ د وجه د نورو دلائلو نه۔

مَا بَالُ عَائِشَةَ: يعنى زهرىؒ عروهؓ ته اُووئيل چه ددے روايت نه خو معلوميږى چه نبى ﷺ به په سفر كښې قصر كولو نو بيا عائشهٔ څنګه ددے خلاف كوى او هغه په سفر كښې

اتمام کوی؟ نو عروةؒ ورته اُوفرمایل : عائشہؓ داسے تاویل کړے وو لکه څنګه چه عثمانؓ کړے وو او هغه تاویل کښې ډیر صورتونه مخکښې ذکر شویدی۔

راجح پکښې دا دے چه د عائشہؓ او د عثمانؓ دا مذهب وو چه په سفر کښې قصر او اتمام دواړه جائز دی او په اتمام کښې چونکه مشقت زیات وی لهٰذا دا بهتر دے۔

تعارض : بیا دا حدیث رد دے په یوه قاعده د احنافو باندے چه وائی : (الراوی اذا عَمِلَ بخلاف مَرْوِیِّهٖ فالعبرة لِرَأْیِ الراوی لا لِروایته) (راوی چه کله د خپل روایت خلاف عمل اُوکړی نو اعتبار به رأی د راوی له وی نهٔ روایت له) څکه چه دا به دلیل وی چه ددهٔ په نیز دا حدیث یا منسوخ دے یا ددے نه بل روایت راجح دے۔ لکه دا خبره ئے په مسئله د سُور الکلب کښې کړے وه چه ابو هریرةؓ لوښے اُووه کرتے نهٔ دے وینځلے او روایت ئے د اُووه کرتو نقل کړیدے نو هلته ئے رأی د ابو هریرةؓ اخستے ده (سره ددے نه چه ابو هریرةؓ ددوی په نیز فقیه هم نهٔ دے) او روایت ئے ورله ترک کړیدے۔

نو دلته د عائشہؓ په سفر کښې عمل اتمام د مانځه وو او روایت ئے د قصر نقل کړیدے او حال دا چه احنافو دلته روایت اخستے دے او عمل ئے ترک کړیدے۔ نو قاعده پرے اُولټه شویده۔ او په خبره کښې ئے تعارض پیدا شو۔ دا دلیل دے چه دا اُصول د امام ابوحنیفةؒ نه ندی نقل بلکه دا روستو مُولیانو مقرر کړیدی او د امام ابوحنیفةؒ مسائلو دپاره ئے ذهنی قواعد مستنبط کړیدی۔ امام حافظ ابن القیمؒ فرمائی : په دین به هله پو هیږے چه کله عندی قواعد وران کړے او د هغے نه پَره نهٔ محسوس کوے، او کهٔ ددے فرضی قواعدو نه انسان یَریږی نو بیا په دین باندے نشی پو هیدلے۔ (اعلام الموقعین والصواعق المرسلة ۳٤۱/۱) والقصیدة النونیة ص (۲۲۰)

بلکه صحیح خبره د جمهورو ده چه روایت د راوی له اعتبار دے، نهٔ عمل د راوی له څکه چه روایت حجت دے او عمل د راوی حجت نهٔ دے۔ د عمل دپاره ډیر احتمالات کیدے شی چه ممکن ده چه هغه اجتهاد کړے وی، یا ترے خپل حدیث هیر شوے وی لکه ددے ډیر مثالونه مخکښې تیر شوی دی۔ او په روایت کښې احتمالات نهٔ وی۔

---

۱۷ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: فَرَضَ اللهُ الصَّلَاةَ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ ﷺ فِي الْحَضَرِ اَرْبَعًا، وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائی : الله تعالیٰ ستاسو د نبی ﷺ په ژبه مونځ په حضر

کښې څلور رکعاته او په سفر کښې دوه رکعاته او په خوف کښې يو رکعت فرض کړيدے۔ (مسلمؒ)

تشريح : په خوف کښې يو رکعت څنګه فرض دے ؟ نو پدے کښې جُمهور وائی : دا يو رکعت مستقلًا نۀ دے بلکه مع الامام (د امام سره) يو رکعت مراد دے لکه څنګه چه په صلاة الخوف کښې به راشي چه هره طائفه به د امام سره يو يو رکعت اُوکړی او يو رکعت به څانله کوی۔ ليکن بعض سلفو (حسن بصريؒ، ضحاکؒ، اسحاق بن راهويهؒ، عطاءؒ، طاووسؒ، مجاهدؒ، حکم بن عتيبهؒ، قتادهؒ، ثوريؒ، او ابن عباسؓ، ابو هريرهؓ، اوابو موسى الاشعری رضی الله عنهم) دا په ظاهر باندے حمل کړيدے چه په صلاة الخوف کښې يو رکعت هم مستقلًا راغلے دے لکه څنګه چه دوه ثابت دی او د مع الامام قيد لګول تاويل دے په حديث کښې او ديته ضرورت نشته۔ او دا هغه حقه مسئله ده چه په حديث کښې ثابته ده او ائمه اربعه ؤ پرے قول نۀ دے کړے۔

۱۸– وَعَنْهُ، وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَا: سَنَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلَاةَ السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَهُمَا تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ، وَالْوِتْرُ فِي السَّفَرِ سُنَّةٌ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او د ابن عباس او ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دی فرمائی: رسول الله ﷺ د سفر مونځ دوه رکعاته مقرر کړيدے، او دا دواړه پوره مونځ دے، ناقص نۀ دے، او په سفر کښې وتر سنت دی۔ (ابن ماجهؒ)۔

تشريح : وَهُمَا تَمَامٌ :ددے مقصد دا دے چه د سفر مونځ ابتداءً دوه رکعاته مشروع شوے دے، داسے نۀ ده چه اول څلور رکعاته مشروع وو بيا دوه رکعاته کم کړے شو۔ لهذا دا حديث دليل دے چه صلاة السفر دوه رکعاته دے او دا په اَجر کښې پوره دے، داسے به نۀ وائے چه اصل مونځ څلور دے خو مونږ دوه رکعاته کم کوو، اجر به کم وی نۀ بلکه ددے پوره اجر ملاويږی د څلورو په شان۔

سُنَّةٌ: ددے نه مراد اصطلاحی سنت نۀ دی بلکه معنىٰ دا ده چه وتر په سفر کښې ثابت دی په سنت، يا معنىٰ دا ده چه وتر په سفر کښې په دين کښې مشروعه طريقه ده۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف: اخرجه ابن ماجه (۱۱۹٤) وكذا فى مسند احمد (۲٤۱/۱) واسناده ضعيف جداً فيه جابر وهو ابن يزيد الجعفى وهو متهم كما فى الزوائد)

۱۹ - وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ يَقْصُرُ فِي الصَّلَاةِ فِي مِثْلِ مَا يَكُوْنُ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ، وَفِيْ مِثْلِ مَا يَكُوْنُ بَيْنَ مَكَّةَ وَعُسْفَانَ، وَفِيْ مِثْلِ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَجُدَّةَ. قَالَ مَالِكٌ: وَذٰلِكَ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأ. ..............................................

ترجمه : او مالك رحمه الله ته رسيدلى دى چه ابن عباس ﷺ به د هغهٔ مسافت په دوران کښې - چه د مکې او طائف ترمينځ او د مکې او عُسفان ترمينځ او د مکې او جُدې ترمينځ وو، - په مانځه کښې قصر کولو. امام مالك فرمائى : او دا مسافت څلور بريد دے. (موطأ)

تشريح : دا بل روايت دے د ابن عباسؓ نه چه هغه وائى څوك څلور بريدو ((٤٨) ميلو) نه زيات لاړو نو بس مقيم به وى. او ددے مسئلې تفصيل په ابتداء د باب کښې تير شويدے.

بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ: علامه ياقوت حمویؒ په معجم البلدان کښې ليکى : د مکې او د طائف ترمينځ فاصله کله چه د مکې نه راخيژى طائف ته نو د يوے ورځے فاصله ده او چه مکې ته کوزيږى نو نيمه ورځ ده. او دا ئے هم وئيلى دى : چه طائف ته وادى وج وائى، او دا د ثقيف ښارونه دى او ددے او د مکې ترمينځ دولس فرسخه فاصله ده. انتهىٰ.

بعض وائى : د عرفات په لاره ددے او د مکې ترمينځ نهه نوى (۹۹) کلوميټره فاصله ده يعنى تقريباً دوه شپيته (٦٢) ميله.

وَعُسْفَانَ: علامه زرقانیؒ وائى : ددے او د مکې ترمينځ درے مراحل فاصله ده.

علامه ياقوتؒ وائى : بعض وائى : عسفان يو جامع کلے دے چه په هغے کښې کجورے او فصلونه وغيره دى او د مکې نه د شپږ ديرش ميلو په فاصله باندے پروت دے. او دا د تهامے حدود دى.

بَيْنَ مَكَّةَ وَجُدَّةَ : جده (په ضمه د جيم او تشديد د دال) يو ښار دے چه د بحر اليمن په غاړه باندے واقع دے، ددے او د مکې ترمينځ درے شپے مزل دے او بعض وائى : يوه ورځ او يوه شپه فاصله ده او بعض وائى : ددے او د مکې ترمينځ درے اَووِيا (۷۳) کلوميټر فاصله ده يعنى تقريباً شپږ څلويښت (٤٦) ميله فاصله ده.

قَالَ مَالِكٌ : وَذٰلِكَ : دا اشاره ده (اقل ما ذکر من المواضع) ته يعنى پدے کښې کمه فاصله تقريباً څلور بريدو ته رسيږى.

أَرْبَعَةُ بُرُدٍ : يو بريد څلور فرسخه وى او يو فرسخ درے ميله وى چه دا ټول اته څلويښت (٤٨) ميله جوړيږى چه د کلوميټرو په اعتبار سره تقريباً دوه اَووِيا (۷۲) جوړيږى. (شرح

بلوغ المرام لعطية سالم)
درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك في الموطأ (١٤٨/١رقم ١٥) بلاغاً بلا اسناد) لكنه موصول في ابن ابي شيبة (١٠٨/٢) ومسند الشافعي وسنن البيهقي (١٣٧/٣) انظر التلخيص (١٢٩) وارواء الغليل (١٨/٣) فصل في صلاة المسافر)

---

٢٠ – وَعَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَفَرًا، فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ رَكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

---

ترجمه : او براء بن عازب ﷺ فرمائی : زهٔ د رسول الله ﷺ سره په اتلس سفرونو کښې ملګرے شوے یم، نو ما هغهٔ نهٔ دے لیدلے چه د نمر زائلو کیدو نه پس د ماسپښین نه مخکښې ئے دوه رکعاته پریخی وی۔ (ابوداوُدؒ، ترمذیؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث غریب دے۔

تشریح : دا مونځ د زوال نه پس او د ماسپښین نه مخکښې اداء کولے شی او دا نفل مونځ دے، دیته صلاة الزوال وائی۔ او ددے نه د ماسپښین سنت نهٔ دی مراد۔ ځکه عشاء کښې ئے ندی کړی۔ لهذا دا دلیل د سنتو کولو نهٔ کیږی۔ یا بیاناً للجواز ئے سنت کړیدی۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (١٢٢٢) والترمذي (٥٥٠) وقال حديث غريب وسألت محمداً فلم يعرفه الا من حدث الليث بن سعد ولم يعرف اسم ابى بسرة الغفارى قال الذهبي لا يعرف) ورآه البخاري حسناً (فتح البارى٢/٥٧٩)

---

٢١ – وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ يَرٰى ابْنَهُ عُبَيْدَ اللهِ يَتَنَفَّلُ فِي السَّفَرِ فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

ترجمه : او نافع رحمه الله فرمائی: چه عبد الله بن عمر ﷺ به خپل ځوی عبيد الله لیدلو چه په سفر کښې به ئے نفل کول نو په هغهٔ باندے به ئے هیڅ انکار نهٔ کولو۔ (مالکؒ)

تشریح : ددے روایت نه معلومه شوه چه عبد الله بن عمرؓ به د نفلو نه منع نهٔ کوله بلکه د سنتو نه به ئے منع کوله لکه دا خبره په ابتداء ددے باب کښې ذکر شوه۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف : اخرجه مالك في الموطأ (١٥٠/١/٢٤) وقال بلغني عن نافع...... فهو منقطع.

# باب الجمعة

## د جُمعې بيان

جُمُعه مشهور قراءت پکښې ضمه د جيم او ميم دے او دا ضمه د ميم تابع ده د ضمې د جيم لکه په عُسُرُ کښې عُسُر وئيلے شي دا اسم مصدر د اجتماع دے، کله ورته د يوم اضافت کيږي او کله د صلاة يعني يوم الجمعه او صلاة الجمعه (ورځ د اجتماع او مونځ د اجتماع) بيا ترے د کثرت استعمال د وجه نه دا حذف کيږي.

۲- دويم قراءت پکښې سکون د ميم هم جائز دے او دا لغت د بنوتميم دے يعني هغه ورځ چه پدے کښې جمع کيدل کيدے شي.

۳-فتحه د ميم هم جائز ده مَعنىٰ به ئے د فاعل وي يعني هغه ورځ چه راجمع کونکے ده خلقو لره او پدے ورځ کښې خلق ډيروي لکه دا وزن دلالت کوي په کثرت باندے لکه د هُمَزَة لُمَزَة (ډير عيب لګونکے) کښې چه معنىٰ د کثرت همز او کثرت لمز ده.

جُمعه ئے اسلامي نوم دے، په جاهليت کښې به دے ورځے ته يوم العَرُوبَة وئيلے شوه. او ددے په وجه د تسميه کښې علماؤ ډير اقوال ذکر کړيدي چه دے ورځے ته جُمعه ولے وائي :

۱- بعض وائي پدے ورځ باندے د آدمؑ تخليق جمع او پوره شوے وو.

۲- بعض وائي : وجه دا ده چه کله چه آدم عليه السلام د جنت نه راکوز شو نو پدے ورځ د حواء رضي الله عنها سره يو ځائے شو.

۳- بعض وائي : پدے ورځ خلق د الله عبادت او طاعت دپاره راجمع کيږي. او أسعد بن زراره ﷺ به خلق پدے ورځ راجمع کول، وعظ او نصيحت به ئے ورته کولو او مونځ به ئے کولو نو بيا به ئے دے ورځے ته يوم الجُمعه وئيله. ۴- او يوم الاجتماع لرب العالمين هم ده. بعض نورے وجے هم بيان کړيدي ليکن ضعيفے دي.

په شريعت کښې ددے ډير فضائل او أهميت راغلے دے چه په راتلونکي احاديثو کښې به واضح شي.

الله رب العالمين ته د بندګانو عبادت ډير خوښ دے پدے وجه ئے د دوي دپاره مختلف ماحولونه او موقعے مقرر کړيدي چه په هغے کښې بندګان الله ته قريب شي او د کوم مقصد

دپاره چه پیدا شویدی چه د هغې نه غافل نهٔ شی، پدے وجه ئے په هفته کښې یوه ورځ ددے دپاره مقرر کړه چه خلق به پدے کښې د الله عبادت ته راجمع کیږی او هفته کښې به ضرور وعظ او نصیحت او د دین خبرے اَوری، ځکه چه انسان کله د دین خبرے نهٔ اَوری نو زړه ئے سختیږی چه دا بیا مَجْمَع د خبائث او فساداتو جوړیږی او دا ورځ چونکه ډیر فضیلت والا وه، الله ته خوښه وه نو ځکه ئے دے اُمت ته دا ورځ ورکړه چه دوی ته په کښې ډیر خیر ملاؤ شی۔

پخوانو اُمتونو ته الله ددے ورځې د عبادت کولو حکم کړے وو چه تاسو ځان له یوه ورځ د عبادت مقرر کړئ چه په هغې کښې به راجمع کیږئ او خالص زما بندګی به کوئ او دا ئے ورته اُوفرمایل چه د جُمعې ورځ درله غوره ده لیکن خوښه ئے ورکړے وه چه تاسو هره ورځ غوره کوئ نو هغوی راولګیدل او خپله خوښه ئے استعمال کړه، نویهودو د خالی (هفتې) ورځ ځان له مقرر کړه چه په دے ورځ کښې الله تعالیٰ د ټول مخلوقاتو د پیدائش نه فارغ شوے وو، نو مناسب ده چه مونږ هم پدے ورځ د الله عبادت ته ځان فارغ کړو۔ او عیسایانو ځان له د اتوار (یکشنبې) ورځ اِختیار کړه ځکه چه دا هغه ورځ ده چه الله پکښې د مخلوقاتو پیدائش شروع کړے دے نو دا سبب د شکر او عبادت ده او مسلمانانو ته الله تعالیٰ د خپلې خوښې د استعمال موقعه ورنکړه بلکه دوی له ئے بغیر د اختیار نه د جُمعې ورځ د عبادت دپاره مقرر کړه۔ ځکه چه دا غوره اُمت دے نو غوره ورځ ورله الله ورکړه۔

او پدے ورځ باندے د آدم ﷺ د پیدائش تکمیل شویدے او انسان الله د خپلې بندګئ دپاره پیدا کړیدے نو پدے ورځ عبادت کولو دپاره ځان فارغ کول ډیر مناسب دی۔

نو دا دواړه فرقې پدے ورځو کښې د عبادت اِهتمام کوی او خپلو ګیرجو او چرچونو او عبادت خانو ته روان وی۔ پدے وجه عیسایانو د اِتوار په ورځ د تمام کارونو، دفاتر او تعلیمی ادارو وغیره چهټې وی، اُوس هم د بعضې اسلامی حکومتونو د عیسائیت پسندی او مرعوبیت په وجه هغوی د عیسائی خالص مذهبی طرز زندګی اختیار کړیده او په خپل ملکونو کښې ئے د جُمعې مُبارکې ورځې په ځائے د اِتوار په ورځ سرکاری چهټیانے کوی، دے دپاره چه خپل بالداران ترے خوشحاله وی۔ د جُمعې تعظیم ئے خراب کړو، د الله شعائر ئے بدل کړل۔

## د جمُعې ابتداء :

د جُمعې ابتداء د هجرت نه مخکښې په مدینه طیبه کښې شویده چه اَسعد بن زراره رضی الله عنه او مصعب بن عمیر ﷺ به د اَسعد په کور کښې پدے ورځ خلقو ته د دین بیان او وعظ کولو او بیا به ئے مونځ کولو نو الله ته دا عمل ډیر خوښ شو، نبی ﷺ لا په مکه

کښې وو چه وحی ورته اُوشوه چه جُمعې مونځ او د هغې خطبه په تاسو فرض شوه. او نبی علیه السلام چه کله مدینې ته هجرت اُوکړو او قباء کښې د یوم الاثنین نه تریوم الخمیس پورې اُوسیدو بیا د جُمعې په ورځ مدینې طرفته راروان شو نو په لاره کښې په وادی د بنی سالم بن عوف کښې ئې د هغوی په مسجد کښې د جُمعې مونځ اُوکړو او اُوله خطبه ئې پکښې اُوفرمایله. (القرطبی (الجامع لاحکام القرآن ۹۷/۱۸)

بیا په دې اول باب کښې فضائل راوړی بیا به ئې احکام راوړی.

## الفصل الاول

۱- عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «نَحْنُ الْآخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، بَيْدَ اَنَّهُمْ اُوْتُوْا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا، وَاُوْتِيْنَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ، ثُمَّ هٰذَا يَوْمُهُمُ الَّذِيْ فُرِضَ عَلَيْهِمْ- يَعْنِيْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ - فَاخْتَلَفُوْا فِيْهِ، فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ، وَالنَّاسُ لَنَا فِيْهِ تَبَعٌ، اَلْيَهُوْدُ غَدًا، وَالنَّصَارٰى بَعْدَ غَدٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: «نَحْنُ الْآخِرُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَنَحْنُ اَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ، بَيْدَ اَنَّهُمْ» وَذَكَرَ نَحْوَهُ اِلٰى آخِرِهِ.

۲- وَفِيْ اُخْرٰى لَهُ عَنْهُ، وَعَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ آخِرِ الْحَدِيْثِ: «نَحْنُ الْآخِرُوْنَ مِنْ اَهْلِ الدُّنْيَا، وَالْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمَقْضِيُّ لَهُمْ قَبْلَ الْخَلَائِقِ».

---

ترجمه : ابوهریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «مونږ (په دنیا کښې) روستو راغلی یو او د قیامت په ورځ (به په مرتبه او شرف کښې) د ټولو نه مخکښې یو، علاوه دا چه اهل کتاب (یهود او نصاریٰ) ته (د الله د طرفنه) زمونږ نه مخکښې کتاب ورکړې شوې دې، او مونږ د هغوی نه روستو کتاب راکړې شوې دې، بیا دا ورځ یعنی د جُمعې ورځ په هغوی باندې فرض کړې شوې وه، لیکن هغوی پدې کښې اِختلاف اُوکړو، نو الله تعالیٰ مونږ ته ددې هدایت اُوکړو (مونږ ته ئې د عبادت دپاره راکړه) او خلق (یعنی یهود او نصاریٰ نهٔ صرف د شرف او فضیلت په اعتبار بلکه د ورځې په اعتبار سره هم) زمونږ تابع دی، یهود دو صبا (یعنی د خالی ورځ) اِختیار کړه او نصاراؤ بل صبا (یعنی د اِتوار ورځ) اِختیار کړهٔ. (بخاریؒ ومسلمؒ) او د مسلمؒ په روایت کښې دی : نبی ﷺ اُوفرمایل : مونږ (په دنیا کښې) روستو راغلی یو او د قیامت په ورځ به (د ټولو خلقو نه) مخکښې یو، او مونږ به اُول جنت ته داخلیدونکی یو، علاوه دا چه" او د مخکښې په شان روایت ئې ذکر

کړو، او یو بل روایت د مُسلم کښې د ابو هریره او حذیفه رضی الله عنهما دواړه فرمائی : رسول الله ﷺ د حدیث په آخر کښې اُوفرمایل : (دنیا ته د راتلو په اعتبار سره) مونږ د ټولو نه روستو یو او د قیامت په ورځ به د ټولو نه مخکښې یو چه د ټولو مخلوقاتو نه ړومبے به زمونږ دپاره (د حساب او د جنت ته داخلیدو) حکم کولے شی»۔

تشریح : یعنی مونږ په دنیا کښې د زمانے په لحاظ روستنی یو، لیکن السابقون د اهل کتابو نه به د قیامت په ورځ په مرتبه او کرامت او حشر او حساب کتاب او فیصله کښې مقدم یو۔ او جنت ته داخلیدو کښې به هم مخکښې یو۔ یعنی دا اُمت اگرکه روستو راغلے دے لیکن الله به دوی له داسے شرافت ورکوی چه په قیامت کښې به ئے د ټولو خلقو نه په مرتبه او شرافت کښې مقدم کړی او مخکښې به ئے جنت ته داخل کړی۔ دوی به اول راپورته کولے شی، اول به ورسره حساب کولے شی، اول به پرے فیصله کولے شی، او اول به جنت ته داخلولے شی۔

بعض وائی : معنیٰ دا ده چه مونږ روستو راغلی یو لیکن په فضیلت کښې مخکښې کیدونکی یو چه هغه د جمعے ورځ ده یعنی الله مونږ له غوره ورځ راکړه او مخکنی ئے ترے محرومه کړل۔ لیکن اول قول غوره دے۔

فَاخْتَلَفُوا فِيهِ: یعنی بنی اسرائیلو ته الله تعالیٰ د موسیٰ ؑ په ذریعه اُوفرمایل چه د جُمعے ورځ کښې به تاسو زما تعظیم کوئ لیکن هغوی اُوئیل : چه د جُمعے ورځ صحیح نۀ ده بلکه د خالی ورځ بنه ده ځکه چه په دے ورځ الله د پیدائش د مخلوقاتو نه فارغ شوے دے۔ نو دوی خپله رأیه او خپل ذوق او خپل دلیل د موسیٰ ؑ په اَمر مقدم کړو نو ځکه الله ددے عظیم سعادت او لوئی خیر نه محروم کړل۔ او دغه شان عیسایانو۔

نو دا حدیث دلیل دے چه قیاس په مقابله د نص کښې ساقط دے ځکه دلته دواړو فرقو ته نص وئیل شوے وو لیکن هغوی خپل عقل مقدم کړو په نص باندے نو څوك چه د نص په مقابله کښې خپله رأیه، خپل عقل او قیاس او خپل مذهب پیش پیش کوی نو دغه شان د خیر نه به محرومیږی۔

فَهَدَانَا اللهُ لَهُ: ددے نه استدلال کیدے شی په دے خبره چه د جُمعے مونځ به هر ځائے کښې کیږی ځکه (هدانا) کښې ضمیر د جَمع دے ټولو ته شامل دے، ځکه که په کلو والو باندے د جُمعے مونځ رانشی نو بیا خو هغوی ته ددے ورځے هدایت اُونشو۔

وَالنَّاسُ لَنَا فِيهِ تَبَعٌ : یعنی مونږ د پخوانو اُمتونو نه روستو راغلی یو لیکن مخکښې ورځ راته ملاؤ شوه چه هغه د جُمعے ورځ ده ځکه د یهودیانو خالی (هفتے) ورځ صبا له

راځي او د عیسایانو اتوار ورځ بله ورځ راځي نو زمونږ ورځ مخکښې شوه د دوی د ورځو نه نو دغه شان مونږ به د قیامت په ورځ د یهود او نصاراؤ نه په هر څه کښې مقدم یو او دوی به زمونږ په هر کار کښې تابع وی۔

غَدًا: دا منصوب دے په ظرفیت باندے یعني (اَلْیَهُوْدُ یُعَظِّمُوْنَ غَدًا) (یهودیان د صبائي ورځې تعظیم کوی او عیسایان د بل صبائي ورځې)

او حدیث دلیل دے چه جُمعه فرض ده ځکه لفظ د (فرض الله علیهم) راغلے دے لکه په بل روایت کښې (کتب علینا) لفظ دے۔

۳- وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيْهِ اُدْخِلَ الْجَنَّةَ، وَفِيْهِ اُخْرِجَ مِنْهَا، وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلَّا فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :«غوره هغۀ ورځ چه په هغې کښې نمر راخیژی، د جُمعې ورځ ده، (ځکه) پدے کښې آدم (عليه السلام) پیدا کړے شوے دے (یعني د هغۀ تخلیق مکمل شوے دے) او پدے کښې جنت ته داخل شوے دے، او پدے کښې د جنت نه راویستلے شوے دے، او قیامت به هم په دے ورځ قائمیږی»۔ (مسلمؒ)

تشریح : دلته دوه مسئلې دی ۱- یو دا چه کومه ورځ افضله ده؟ درے اقوال دی :

۱- اول قول : یوم الجُمعه غوره ده ځکه چه دلته په اَیامو کښې یوم الجمعه ته افضل اُووئیل شو نو بس دا به د عرفې نه هم زیاته اَفضله وی لکه دا قول د ابوبکر ابن العربیؒ دے۔

۲- قول ثاني دا دے چه د عرفې او د یوم النحر ورځ افضل ده ځکه حدیث د جابرؓ کښې مرفوعاً دی : (ما من یوم افضل عند الله من یوم عرفة) (صحیح ابن حبان٦/٦١) رقم (٣٨٤٣) او په حدیث د عبد الله بن قرط الشحاليؓ کښې دی رسول الله ﷺ فرمایلی دی : (افضل الایام عند الله یوم النحر ثم یوم القر) وهو الغد من یوم النحر) (احمد ٤/٣٥٠) والحاکم (٤/٢٢١) باسناد صحیح) دا دواړه حدیثونه دلیل دے چه د ټولو ورځو نه د عرفې او د اختر ورځ افضله ده۔ او د جُمعې ورځ په باره کښې داسے وئیل شویدی (ان من افضل ایامکم یوم الجمعة فیه خلق آدم......) (صحیح سنن النسائي ١/١٩٧) رقم (١٣٠١) نو دلته من تبعیضي دے یعني د جُمعې ورځې هم د غوره ورځو نه ده۔ نۀ دا چه دا د ټولو ورځو نه افضله ده۔

۳- قول ثالث محاکمه ده، علامه حافظ ابن القیمؒ او حافظ عراقيؒ دا راجح کړیده چه د دواړو خبرو هیڅ تعارض نشته ځکه چه د کال په ورځو کښې د عرفې ورځ د ټولو نه افضل

ده او د هفتې په ورځو کښې د جُمعې ورځ افضل ده او که د جمعې او عرفې ورځ دواړه په يو ورځ جمعه شي نو بيا به مطلقاً دا ورځ په ټولو ورځو غوره وي۔ اګرکه علامه عراقیؒ دا تصريح هم کړيده چه حديث د افضليت د جُمعې ډير صحيح دے۔ وهو الحق لکه روستو رواياتو کښې راځي۔

٢- بعض وائي : يوم النحر د اُضحيه او هدي په وجه افضل ده او يوم الجمعه د خطبې او ساعة الاجابة وغيره په وجه افضل ده۔

او ددے ټول اختلاف نه مونږ ته دا فائده حاصليږي چه دا ټولې ورځې بهترے دي، کار پکښې پکار دے۔

## دويمه مسئله : د جُمعې خصوصيات :

د جُمعې په خصوصياتو امام سيوطیؒ کتاب ليکلے دے (اللمعة في خصائص الجمعة) چه په هغې کښې ئې يوسل يو خصوصيات جمع کړيدي او علامه ابن القيمؒ په زاد المعاد کښې تقريباً درے ديرش ذکر کړيدي۔ او ابويوسف محمد زايدؒ په (المتعه في خواص يوم الجمعه) کښې درے ديرش په بيل انداز ذکر کړيدي او دلته په مشکوٰة کښې تقريباً (١٥) دي۔ چه هغه دا دي : ١-غسل کول۔ ٢-خوشبو لګول۔ ٣- پاکې يا نوے جامے اَغوستل۔ ٤- مانځه ته وختي تلل۔ ٥- د جُمعې د ورځې د سحر مونځ غوره دے۔

٦- پدے ورځ جنت پيدا شويدے۔ ٧- آدم عليه السلام جنت ته داخل شويدے۔

٨- د جنت نه راوتے دے۔ ٩- پدے ورځ به قيامت قائميږي۔

١٠- د جُمعې په ورځ چه مومن مړ شي نو د قبر عذاب پرے نهٔ وي۔

١١- پدے کښې يو ساعت د اجابت دے۔ ١٢- پدے ورځ د درود وئيلو زيات فضيلت راغلے دے۔ ١٣- د جمعې ورځ ته روښانه وئيلے شويده۔ ١٤- د جُمعې شپے ته ليلة اَغر وئيلے شويده۔ ١٥- د جمعې په ورځ د جِمَاع فضيلت راغلے دے۔

بيا حافظ ابن القيمؒ صاحب دلته بعض کمزورے مسئلے ذکر کړيدي چه د جُمعې په ورځ مړي ملاقاتونه کوي او خوراکونه کوي وغيره وغيره چه په هغې باندے هيڅ اثارة من علم نشته۔ اعراض ترے ضروري دے۔

اُدْخِلَ الْجَنَّةَ : دا دليل دے چه آدم عليه السلام په جنت کښې نه دے پيدا شوے بلکه بهر پيدا شويدے او بيا ورته داخل شويدے۔ بعض وائي : جنت ته داخلول او خارجول دواړه په يو ورځ کښې شويدي۔ او دا احتمال هم شته چه د جمعې په ورځ پيدا شوے وي او بيا د بلے جمعې پورے حصار شوے وي او بيا په هغې کښې داخل شوے وي او دغه شان راتلو کښې هم واخله۔

بیا د آدم راوتـل او د قیامت راتلل ځنګه سبب د فضیلت د جُمعې ګرځی حال دا چه دا خو په ظاهر کښې یو قسم د خفګان او شدت سبب دے۔ او دا ځنګه نعمت شمارلے شویدے ؟ نو وجه دا ده چه د آدم راوتلو کښې ډیر حکمتونه وو، د هغه د جنت نه راوتل په زمکه باندے د هغـه پـه اولادو کـښې د انبیـاء، رسـل او اولیـاؤ د پیـدائـش سبب اُوګرځیدو او د هغوی د زنـدګیـانو نه د بے شماره حسناتو د ظهور سبب جوړ شو۔ الله بندګانو ته اُوپیژندلے شو۔ او د قیامت راتلل سبب د جنت د داخلیدو دے، ځکه که قیامت رانهٔ شی نو بیا به نیک عملو ته د هغوی د عملونو عظیمه بدله د کوم ځائے نه حاصله شی؟، لهذا د جُمعې ورځ د ایمان والو دپاره سبب د حاصلولو د نعمتونو د الله ده۔

٤ - وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : اِنَّ فِي الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيْهَا خَيْرًا اِلَّا أَعْطَاهُ اِيَّاهُ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَزَادَ مُسْلِمٌ: قَالَ:«وَهِيَ سَاعَةٌ خَفِيْفَةٌ». وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا، قَالَ: «اِنَّ فِي الْـجُـمُعَةِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ قَائِمٌ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا اِلَّا أَعْطَاهُ اِيَّاهُ».

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «د جُمعې په ورځ کښې یو داسے وخت دے چه د هغې سره یو بنده مسلمان نهٔ موافق کیږی چه د الله نه په کښې څهٔ خیر اُوغواړی مګر الله به ئے ضرور ورکوی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ) امام مسلمؒ دا الفاظ زیات کړیدی : فرمائی : «او دا معمولی شان وخت دے»، او یو روایت د بخاری او مسلمؒ کښې دی : نبی ﷺ اُوفرمایل : « په جُمـعـه کـښې یو داسے وخت دے چه د هغې سره یو مسلمان نهٔ موافق کیږی چه په مانځه ولاړ وی او د الله نه څهٔ خیر غواړی نو الله به ئے ضرور ورکړی»۔

تشریح : لَسَاعَةً : دا ساعت الله د بندګانو نه پټ ساتلے دے، وجه دا ده چه بندګان د الله په هر وخت کښې بندګی اُوکړی او ددے په تالاش کښې مصروف شی۔ لکه د لیلة القدر شپه ئے پټـه ساتلے ده، یا اسم اعـظـم، او پـه هره شپـه کـښې یو وخت دے چه ضرور پکښې دعاء قبلیږی۔ هغهٔ ئے پټ ساتلے دے۔

## د یوم الجمعة ساعة الاجابة کوم یو دے ؟

بیا ددے ساعت په تعیین کښې علماؤ درے څلویښت اقوال ذکر کړیدی چه فتح الباری، شرح مسلم او زاد المعاد وغیره کښې ذکر شویدی۔ او علامه عراقیؒ په طرح التثریب کښې (۲۱) اقوال ذکر کړیدی لیکن کله چه څومره اقوال زیاتیږی نو هغه خفی کیږی او دا

اقـوال پدے وجه ډیر شویدی چه روایات پدے باره کښ ډیر زیات راغلی دی، بعض صحیح دی او بعض ضعیف دی او بعض مرفوع او بعض موقوف۔

لـکـه اجـمـالًا داسـے دی : ۱-د جُمعے په ورځ د صبا د اذان وخت۔ ۲-د فجر د طلوع نه تر طلوع الشمس پورے وقت۔ ۳-د عصر وخت نه تر غروب کیدو وخت پورے۔

٤- د خطبے نه بعد تر د امام د تکبیر تحریمه وئیلو پورے وقت۔

٥- د نمر ختلو نه فوراً روستو ساعت۔ ٦- د نمر خاته وخت۔

۷-د ورځے آخری درے ګینتے۔ ۸-د زوال د شروع کیدونه د نیمائی لاس سوری راتلو پورے وقت۔ ۹- د زوال د شروع کیدونه یو لاس سوری تلو پورے وقت۔

۱۰- عین د زوال وخت۔ ۱۱-د جمعے د مانځه دپاره د مؤذن د اذان د وئیلو وخت۔

۱۲-د زوال د شروع کیدو نه د جمعے په مانځه کښ د داخلیدو پورے وقت۔

۱۳-د زوال د شروع کیدو نه تر د امام د مانځه نه د فارغیدو پورے وقت۔

۱٤-د زوال نه تر غروب پورے وقت۔

۱۵-د امام په منبر باندے د کیناستو نه تر مانځه شروع کیدو پورے۔ ۱٦-خطبے دپاره د امام په منبر باندے کیناستلو او د مانځه د اداکولو ترمینځ وخت۔

۱۷- د اذان نـه تـر مـانـځـه اداکـولو پورے وخت۔۱۸-د خرید وفروخت د حرامیدو نه تر حلالیدو ترمینځ وخت۔ یعنی د اذان نه تر مانځه ختمیدو پورے ۱۹- اذان ته نژدے وخت۔

۲۰-د امام د خطبے شروع کولو نه تر ختمولو پورے وقت۔ ۲۱-د دواړو خطبو ترمینځ د امام کیناستلو وخت۔ ۲۲-د خطبے د فراغت نه روستو د امام د منبر نه د راکوزیدو وخت۔

۲۳-د تکبیر تحریمه د شروع کیدو نه تر مانځه اختتام پورے۔

۲٤- د مازیګر مانځه نه بعد تر غروب الشمس پورے وقت۔ ۲۵- د مازیګر نه روستو د ورځے آخری ساعت۔ ۲٦- بالکل د نمر ډوبیدو وخت۔

مګر حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښ دوه اقوال راجح ګرځولی یو هغه چه روستو په حدیث د ابو موسی الاشعری کښ راغلے دے چه دا د امام په منبر باندے د کیناستو نه واخله تر د مانځه اختتام پورے وخت دے۔ او دویم حدیث د ابو هریرةؓ چه روستو فصل ثانی کښ راځی چه عبد الله بن سلام فرمائی : دا د جُمعے د مازیګر نه روستو ساعت دے۔ علامه محب الطبریؒ فرمائی : پدے کښ ډیر اصح د احادیثو نه حدیث د ابو موسیٰ دے او اشهر الاقوال پکښ قول د عبد الله بن سلام دے۔ انتهیٰ۔ فتح الباری (۲/٤۲۲) (نیل الاوطار (۳/۲۹٦) طرح التثریب (٤/۱۳۰) المرعاة (٤/٤۲۵) وتحفة الاحوذی (۲/۵۰٤)

بیا حافظ وائی : باقی اقوال یا ددے دواړو سره موافق کیدے شی یا د یو سره او یا ضعیف الاسناد دی یا موقوف دی چه قائل ئے اجتهاد ته استناد کړیدے بغیر د توقیف نه۔ او ددے دواړو سره حدیث د ابو سعید معارض نهٔ ګرځی چه دا ساعت د نبی ﷺ نه هیر شویدے ځکه احتمال شته چه دے دواړو د نبی ﷺ نه ددے وخت تعیین مخکښ د نسیان نه اوریدلے وی، لکه دیته بیهقیؒ وغیره اشاره کړیده۔ بیا سلفو پدے کښ اختلاف کړیدے چه په دغه دواړو قولینو کښ کوم یو ډیر راجح دے؟۔

١- نو امام مسلمؒ حدیث د ابو موسیٰ ته ترجیح ورکړیده او پدے باندے قول کړیدے یو جماعت چه هغوی کښ بیهقیؒ، ابن العربیؒ او القرطبیؒ دے۔

امام قرطبیؒ فرمائی : دا حدیث نص دے په موضع د خلاف کښ نو غیر ته به التفات نشی کیدے، امام نوویؒ فرمائی : هو الصحیح بل الصواب) (الخلاصة) او دیته ترجیح پدے وجه هم شته چه دا مرفوع او صریح حدیث دے او بل دا په احد الصحیحین کښ دے۔

٢- او نورو اهل علمو د عبد الله بن سلام قول ته ترجیح ورکړیده امام ترمذیؒ د امام احمدؒ نه نقل کوی چه اکثر احادیث پدے باره کښ راغلی دی۔ او سعید بن منصور باسناد صحیح د عبد الرحمن بن ابی سلمۃؒ نه نقل کړیدی چه څه صحابه کرام راجمع شو نو د ساعة الجمعة تذکره ئے اُوکړه بیا جدا شو نو د دوی اختلاف پدے کښ نهٔ وو چه دا آخری ساعت دے د ورځے د جمعے نه۔ او دا قول ډیر امامانو راجح کړیدے لکه احمدؒ، اسحاقؒ، او دا علامه ابن قیمؒ راجح کړیدے په زاد المعاد (١٠٧/١) کښ۔

لیکن دے باندے دا اشکال کیږی چه د غیر الصحیحین حدیث څنګه په حدیث د احد الصحیحین باندے راجح کړے شی او حال دا چه دا د اصول الحدیث خلاف دہ۔ ددے جواب دا دے چه دا په هغه صورت کښ دے چه کله د احد الصحیحینو په حدیث باندے حفاظ علماؤ څه انتقاد نهٔ وی کړے او دلته په حدیث د مسلم باندے بعض حفاظو دا انتقاد کړیدے چه بعض ئے موقوف ګرځوی لکه دارقطنی وغیره او بعض ئے مرفوع، او شك نشته چه هغه حدیث چه یقینی مرفوع وی راجح دے په هغه چه اختلافی مرفوع وی۔ او علامه شوکانیؒ فرمائی : ددے دپاره څلور مرجحات دی۔

او بعض علماؤ د دواړو حدیثونو ترمینځ داسے تطبیق کړیدے چه ساعة الاجابة بدلیږی رابدلیږی نو په یوه جمعه کښ د امام د ناستے نه تر مانځه ختمیدو پورے وی او او په بله جمعه کښ په آخر د ورځ کښ وی۔ ابن عبد البرؒ وائی : پدے دواړو وختونو کښ مناسب دہ چه دعاء اُوکړے شی۔ حافظ فرمائی : دا ډیره غوره جمع او تطبیق دے۔

علامه ابن القيم رحمه الله فرمائي : د دواړو حديثونو ترمينځ هيڅ تعارض او منافات نشته ځکه چه ساعة الاجابة اګر که د مازيګر مانځه نه پس آخري وخت د جمعې دے مګر د مانځه وخت ساعة د اجابت کيدل هم ددے نه ډير اولیٰ او غوره دی لکه څنګه چه (مسجد اسس على التقوى) مسجد قباء دے ليکن مسجد نبوی ددے نه ډير اولیٰ دے۔ (اعلام الموقعين ٢٨٦/٤)

زاد المعاد کښې فرمائي: دا وخت د اِجابت منحصر دے په يو ددے دواړو وختونو کښې او يو د بل معارض نۀ دے ځکه دا احتمال شته چه نبی ﷺ په يو وخت کښې يو خودلے وی او په بل وخت کښې بل خودلے وی لهذا په دواړو کښې اجتهاد په دعاء کښې پکار دے۔ او ددے خبرے تجويز د امام احمدؒ نه هم نقل دے۔ لهذا اصل وخت د مازيګر نه روستو دے چه نۀ مخکښې کيږی او نۀ روستو کيږی او د مانځه وخت د مانځه تابع دے۔ مخکښې کيدے او روستو کيدے شی۔ (زاد المعاد ٣٧٥/١ ونيل الاوطار ٣٠٠/٣)

قَائِمٌ يُصَلِّي : ددے نه مراد په مانځه اُودريدل او د مانځه په انتظار کښې کيناستل دواړه مراد دی لکه روستو حديث د عبد الله بن سلام کښې به دغه معنیٰ راشي۔

---

٥- وَعَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى، قَالَ: سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ فِيْ شَأْنِ سَاعَةِ الْجُمُعَةِ: «هِيَ مَا بَيْنَ أَنْ يَّجْلِسَ الْإِمَامُ إِلٰى أَنْ تُقْضَى الصَّلَاةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او ابوبرده بن ابی موسیٰ ﷺ فرمائي: ما د خپل والد نه اوريدلی چه فرمايل ئے : ما د رسول الله ﷺ نه اَوريدلی دی چه د جُمعے ( په ورځ د دعاء د قبوليت) وخت په باره کښې ئے فرمايل : « دا وخت د امام د ناستے نه تر مانځه ادا کيدو پورے درمياني وخت دے»۔ (مسلم)

ابی برده دده نوم عامر يا حارث دے د اوساط التابعين نه ثقه تابعی دے په سنه (١٠٤ هـ) کښې وفات دے، د اتيا کالو نه اوړيدلے وو۔

تشريح : مَا بَيْنَ أَنْ يَّجْلِسَ : مطلب د حديث دا دے چه د ساعت الاجابت پدے وخت کښې هم ډير امکان شته او دا مطلب نۀ دے چه همدا وخت دے او بل وخت نۀ دے، ولے که داسے شي نو بيا خو متعين شو او مُبهم نۀ شو۔ نو کيدے شي چه دا وخت وی او کيدے شي چه د مازيګر آخري وخت وی۔

عوف بن مالك ﷺ فرمائي : (انی لارجو ان تکون ساعة الاجابة فی احدی الساعات

الثلاث اذا اذن المؤذن ومادام الامام على المنبر وعند الاقامة) (دا د اذان، او د امام د ناستې او د ماښځه وخت دے)۔ (طبراني- تنوير الحوالك ١٣٠/١ للسيوطي)

بیا ددے ساعت د موندلو طریقه دا ده چه په اوله جمعه کښې به د سحر مانځه نه پس تر نمر خاته پورے کینې او په بله جمعه کښې به د نمرخاته نه تر لسو بجو پورے کینې او په دریمه جمعه کښې به د لسو نه تر مانځه پورے کینې او بیا د مانځه نه تر مازیګر پورے الخ نو پدے طریقه به دا وخت په یو څو جُمعو کښې رالاندے کړے شی۔

## الفصل الثاني

٦- عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: خَرَجْتُ اِلَى الطُّوْرِ، فَلَقِيْتُ كَعْبَ الْاَحْبَارِ، فَجَلَسْتُ مَعَهُ، فَحَدَّثَنِيْ عَنِ التَّوْرَاةِ، وَحَدَّثْتُهُ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَكَانَ فِيْمَا حَدَّثْتُهُ اَنْ قُلْتُ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيْهِ أُهْبِطَ، وَفِيْهِ تِيْبَ عَلَيْهِ، وَفِيْهِ مَاتَ، وَفِيْهِ تَقُوْمُ السَّاعَةُ، وَمَا مِنْ دَابَّةٍ اِلَّا وَهِيَ مُصِيْخَةٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِنْ حِيْنِ تُصْبِحُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، شَفَقًا مِنَ السَّاعَةِ، اِلَّا الْجِنُّ وَالْاِنْسُ. وَفِيْهِ سَاعَةٌ لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللهَ شَيْئًا اِلَّا أَعْطَاهُ اِيَّاهُ». قَالَ كَعْبٌ: ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ؟ فَقُلْتُ: بَلْ فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ. فَقَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ، فَقَالَ صَدَقَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ. قَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ: لَقِيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ سَلَامٍ، فَحَدَّثْتُهُ بِمَجْلِسِيْ مَعَ كَعْبِ الْاَحْبَارِ وَمَا حَدَّثْتُهُ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، فَقُلْتُ لَهُ: قَالَ كَعْبٌ: ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ؟ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: كَذَبَ كَعْبٌ. فَقُلْتُ لَهُ: ثُمَّ قَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ، فَقَالَ: بَلْ هِيَ فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: صَدَقَ كَعْبٌ. ثُمَّ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: قَدْ عَلِمْتُ أَيَّةَ سَاعَةٍ هِيَ؟ قَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِيْ بِهَا وَلَا تَضِنَّ عَلَيَّ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ. قَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: وَكَيْفَ تَكُوْنُ آخِرَ سَاعَةٍ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّيْ فِيْهَا؟ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ: أَلَمْ يَقُلْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ، فَهُوَ فِيْ صَلَاةٍ حَتّٰى يُصَلِّيَ؟» قَالَ أَبُوْهُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ: بَلٰى. قَالَ: فَهُوَ ذٰلِكَ. رَوَاهُ مَالِكٌ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوٰى أَحْمَدُ اِلٰى قَوْلِهٖ: صَدَقَ كَعْبٌ.

---

ترجمه : ابو هريره ﷺ فرمائي : زهٔ (يوه ورځ) کُوهِ طرف ته روان شوم او هلته مے د کعب

الاحبار (رحمه الله) سره ملاقات اُوکړو د هغهٔ سره کيناستم نو هغهٔ راته د تورات نه څهٔ خبرې بيان کړې او ما ورته د رسول الله ﷺ احاديث بيان کړل، په هغهٔ خبرو کښې چه ما هغهٔ ته بيان کړل يوه دا وه چه ما اُووئيل: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «غوره هغهٔ ورځ چه په هغې کښې نمر راخيژي د جُمعې ورځ ده، پدې کښې آدم ﷺ پيدا شوې دې، او پدې کښې (د جنت نه زمکې ته) راکوز شوې دې، او پدې کښې په هغهٔ باندې توبه ويستلې شوې ده (توبه ئې قبوله شوې ده) او پدې ورځ باندې وفات شوې دې، او د جُمعې په ورځ به قيامت قائميږي، او داسې څهٔ زندهٔ سَر (حيوانات، چارپايان) نشته مگر هغهٔ د صبا کيدو نه تر نمر ختلو پورې د جُمعې ورځې ته غوږ ايخې وي (منتظر وي يعنې چارپايانو ته هم دا معلومه وي چه د جُمعې په ورځ به قيامت راځي) پدې وجه د قيامت نه ويريږي سوا د جنات او انسانانو نه (چه دوي ددې انتظار نه غافل دي) او د جُمعې په ورځ يو ساعت دې چه د هغې سره مسلمان بنده نهٔ مخامخ کيږي چه مونځ کوي او د الله نه (د دنيا يا د آخرت) څهٔ شې غواړي مگر الله ئې هغهٔ ته ورکوي». کعب احبارؒ اُوفرمايل: دا ورځ (چه پدې کښې ساعت د قبوليت وي) دا په کال کښې يوه ورځ وي، ما اُووئيل: نهٔ بلکه دا په هرهٔ جُمعه کښې وي، نو کعبؒ (ددې خبرې د تصديق دپاره) تورات اُولوستلو، او (دې نه بعد ئې) اُوفرمايل: چه رسول الله ﷺ رشتيا وئيلي دي. ابو هريره ﷺ فرمائي: بيا زهٔ د عبد الله بن سلام سره ملاؤ شوم، هغهٔ ته مې د کعب الاحبار سره د کيناستلو تذکره اُوکړه او هغهٔ خبره مې ورته ذکر کړه کومه چه ما کعبؒ ته د جُمعې په باره کښې بيان کړې وه نو ما ورته اُووئيل: کعبؒ اووئيل: دا په هر کال کښې يوه ورځ وي. عبد الله بن سلام اُوفرمايل: کعب غلط وئيلي دي. ما اُووئيل: بيا کعبؒ تورات اُولوستلو او وې فرمايل: (د رسول الله ﷺ وينا رشتيا ده) چه دا په هره جُمعه کښې ده، نو عبد الله بن سلام اُوفرمايل: کعبؒ دا صحيح اُووئيل. بيا عبد الله بن سلام اُوفرمايل: ما ته يقيني معلومه ده چه دا کومه ورځ ده، ابو هريره ﷺ اُوفرمايل: ما عرض اُوکړو: (بيا خو) ما ته ئې اُوښايه او بخل نه کار مهٔ اخله، نو عبد الله بن سلام اُوفرمايل: دا د جُمعې په ورځ آخري ساعت دې، ابو هريرهؓ اُوفرمايل: ما عرض اُوکړو: دا به څنګه د جُمعې د ورځې په آخر کښې وي حال دا چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «ددې ساعت سره يو بنده مسلمان نهٔ مخامخ کيږي چه مونځ کوي پدې کښې». (او د ورځې په آخر کښې خو مونځ مکروه دې) عبد الله بن سلام اُوفرمايل: آيا رسول الله ﷺ دا نهٔ دي فرمايلي: «څوک چه په يو ځائې کښې د مانځه په انتظار کښې کيني نو دا په مانځه کښې (حساب) دې، تر دې چه مونځ اُوکړي». ابو هريره ﷺ فرمائي: ما اُووئيل: آؤ (ولې نهٔ) عبد

الله بن سلام أُوفرمايل : د مانځه نه مراد د مانځه انتظار دے۔ (او د ورځے په آخر کښ د مانځه په انتظار کيناستل منع نهٔ دی په هغهٔ وخت کښ کهٔ څوك دعاء غواړی نو ضرور قبليږی)۔ (مالك، ابوداودؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ) او امام احمدؒ (دا روايت) ددے قول پورے نقل کړيدے: "صدق کعب" (کعب رشتيا وئيلی دی)۔

**تشريح : خَرَجْتُ اِلَى الطُّوْرِ** : ابو هريره ﷺ طور ته تلے وو او ابوبصره الغفاری ﷺ منع کړے وو چه ته څه له تلے ؟ آيا تا د نبی ﷺ نه ندی اَوريدلی چه په غير د درے جماعتونو نه نورو ځايونو ته سفر کول (په نيت د عبادت) باندے ناروا دی لکه دا مخکښ تير شويدی۔

**تعارف د کعب الاحبار** : يو تابعی عالم دے او تاريخ ئے په کتاب العلم کښ تير شويدے۔ (٦٣٠/١) حديث رقم (٦١) نوم ئے کعب بن ماتع وو، يهودی عالم وو، بيا ئے اسلام راوړو، او تورات باندے ډير ښه پوهيدو، صحابه کرامؓ به ترے تپوسونه هم کول لکه مخکښ کتاب العلم کښ تير شوی وو عمر ترے تپوس کړے وو (من ارباب العلم) باب رؤية الله کښ به راشی چه ابن عباسؓ ترے د مسئلے د تپوس کړے وو او عثمان به ترے هم تپوسونه کول۔ (رضی الله عنهم)

او عمرؓ ترے تپوس اُوکړو تقوی څه ته وائی؟ نو هغه ورته بيان اُوکړو۔ او بخاری کښ راځی معاويه ﷺ فرمائی : (كُنَّا نَبْلُوْ عَلَيْهِ الْكَذِبَ) معنیٰ دا ده چه دهٔ به قصے بيانولے نو په قصو کښ به ئے متضادے خبرے راتلے (لکه څنګه چه قصے همدغه شان وی) نو په هغے کښ به دروغ هم راتلل او دا مطلب نهٔ دے چه دا دروغجن وو۔

**فَحَدَّثَنِي عَنِ التَّوْرَاةِ**: مخکښ کتاب العلم کښ مونږ وئيلی وو چه پس د وفات د نبی ﷺ نه د تورات لوستل يا د هغے کتل (مطالعه) جائز دی، دلته ابو هريرهؓ په کعب الاحبارؒ رد نهٔ کوی چه تهٔ ما ته ولے د تورات خبرے بيانوے؟ ځکه اُوس هغه محذور نهٔ لازميږی کوم چه د نبی ﷺ په زمانه کښ لازميدو، او که تورات څوك پدے نيت ګوری چه بصيرت او تصديق ئے د الله په کتاب (قرآن) باندے زيات شی او د دواړو تطبيق اُوشی نو دا ناروا نهٔ ده (ليستيقن الذين اوتوا الكتاب ويزداد الذين آمنوا ايماناً)۔ اُوس هم حديثو کښ ډيرے داسے خبرے راځی چه هغه بعينه په تورات کښ هم وی او رسول الله ﷺ هغه ندے لوستلے نو دا په حقانيت د نبی ﷺ باندے دليل دے۔

**وَفِيْهِ مَاتَ**: موت د آدم ﷺ هم نعمت دے ځکه چه جنت ته اُورسيدو۔

**مِنْ دَابَّةٍ**: حيوانانو له هم الله دا شعور ورکړيدے چه پدے ورځ به قيامت راځی نو ځکه هغوی پدے ورځ په سحر کښ پريشانه وی۔

فِيْ كُلِّ سَنَةٍ : يعنى كعبؒ د ابو هريرةؓ خبره رد كړه چه دا ساعت په هره جمعه كښې نۀ دے بلكه په كال كښې په يوه جُمعه كښې راځى۔

نو ابو هريرةؓ ورته اُوفرمايل : چه ستا خبره خطاء ده بلكه دا په هره جمعه كښې دے۔ نو كعبؒ تورات لوستلو ته رجوع اُوكړه نو په هغے كښې ئے بعينهٖ د نبى ﷺ د حديث په شان خبره اُوموندله۔نو بيا ئے د ابو هريره تصديق اُوكړو۔

كَذَبَ كَعْبٌ : عبد الله بن سلام سمدست په كعب باندے رد اُوكړو چه دا خطاء شويدے (كذب دلته په معنى د خطائى دے) نو دا دليل دے چه په لوئى عالم به هم رد كولے شى چه كله ئے خبره د كتاب او سنت خلاف وه۔او كله ئے چه خبره حقه وى نو بيا به ئے تائيد كولے شى لكه روستو عبد الله بن سلام د هغه د حقے خبرے تائيد اُوكړو۔ زمونږ د آشخاصو سره كار نشته بلكه د حق سره مو كار دے۔

وَهُوَ يُصَلِّيْ فِيْهَا : د ابو هريرةؓ د خبرے مطلب دا دے چه دا ساعت خو آخرى ساعت د جُمعے نشى كيدے ځكه چه پدے وخت كښې خو مونځ نۀ كيږى، مكروه وخت دے، او نبى ﷺ خو مونځ ذكر كړيدے۔ نو عبد الله بن سلام ورته تاويل كوى او دواړه خبرے ثابتوى۔

يَنْتَظِرُ الصَّلاَةَ: ابو هريره ؓ ظاهرى الفاظ اخستى دى، او عبد الله بن سلام ورته تاويل كوى چه نبى ﷺ فرمائيلى دى څوك چه د مانځه په انتظار كښې ناست وى هغه هم په مانځه كښې دے او د مانځه حكم لرى لهذا د غروب نه مخكښې چه څوك ناست وى اگركه په دغه وخت كښې مونځ نۀ كيږى ليكن دا داسے دے لكه په مانځه كښې چه وى نو دواړه خبرے صحيح شوے۔

وَلاَ تَضِنَّ : په كسره د ضاد او تشديد د نون د فتح يفتح نه دے۔ بخل كولو ته وائى۔

حديث دليل دے چه فقاهت انسان ته په احاديثو سره حاصليږى ځكه چه عبد الله بن سلام هم احاديث پيش كړل او ابو هريرةؓ هم او بيا عبد الله بل حديث پيش كړو نو د ابو هريره ذهن سم دواړه واخستو۔ او دليل دے په فقاهت د ابو هريره رضى الله عنه هم ځكه چه ابو هريرةؓ هم استدلالى نظر لرى، په حديث سره ئے د عبد الله په خبره معارضه اُوكړه، نو دا خبره د بعض مولبانو صحيح نۀ ده چه ابو هريره فقيه نۀ دے۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : اخرجه مالك فى الموطأ (١٦) واحمد (٤٨٦/٢) وابوداود (١٠٤٦) والترمذى (٤٩١) والنسائى (١١٣/٣، ١١٥) وابن حبان (١٩١/٤ رقم ٧٦١- الاحسان)

---

٧- وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«اِلْتَمِسُوا السَّاعَةَ الَّتِيْ تُرْجٰى فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ

بَعْدَ الْعَصْرِ اِلٰی غَيْبُوْبَةِ الشَّمْسِ». رَوَاهُ التِرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د جُمعې په ورځ هغهٔ ساعت چه په هغې (کښې د دعاء د قبوليت) اُميد کيدې شي، د مازيگر نه بعد تر نمر غائبيدو پورې طلب (تلاش) کرئ!». (ترمذيّ)

پدې حديث کښې تصريح راغله چه دا ساعة الاجابة د زمايگر نه روستو آخري وخت دې. بيا مصنفؒ ددې ساعت په تعيين کښې صرف دوه رواياتونه راوړل پدې کښې اشاره ده چه ددۀ په نيز باندې دا دواړه اقوال قوي دي او باقي ورته ضعيف ښکاره شويدي ځکه ئې هغه رانهٔ وړل.

درجة الحديث : اسناده ضعيف و بسند آخر صحيح: اخرجه الترمذی (٤٨٩) وقال حديث غريب ومحمد بن ابی حميد يضعف من قبل حفظه آه، لكن الحديث لم يتفرد به كما اشار اليه الترمذی بقوله : وفی الباب عن انس من غير هذا الوجه وفی الباب عن جابر رواه ابوداود (١٠٤٨) والنسائی (٩٩/٣) والحاكم (٢٧٩/١) وقال صحيح على شرط مسلم ووافقه الذهبی.

---

٨ - وَعَنْ أَوْسِ بْنِ اَوْسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«اِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيْهِ قُبِضَ، وَفِيْهِ النَّفْخَةُ، وَفِيْهِ الصَّعْقَةُ، فَأَكْثِرُوْا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيْهِ، فَاِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوْضَةٌ عَلَيَّ». قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ اَرِمْتَ ؟ قَالَ: يَقُوْلُوْنَ بَلِيْتَ. قَالَ: «اِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْاَرْضِ أَجْسَادَ الْاَنْبِيَاءِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيْرِ.

---

ترجمه: او اَوس بن اَوس ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د جُمعې ورځ ستاسو د بهترينو ورځو نه ده، (ځکه) پدې کښې آدم (ﷺ) پيدا شوې دې، او پدې کښې وفات شوې دې، او پدې کښې به (اَولنئ) شپيلئ وي، (چه د هغې په آواز سره به قيامت قائميږي) او پدې کښې به (د خلقو) بيهوشي وي، نو پدې ورځ په ما باندې زيات درود وايئ، ځکه چه ستاسو درود ما ته پيش کولې شي، صحابه کرامو عرض اُوکړو يا رسول الله ! : زمونږ درود به تاته څنګه پيش کړې شي او حال دا چه تهٔ (خو) به زره زره شوې ئې (يعني ستا بدن به خاورې شوې وي) راوي وائي : د صحابه کرامو د «اَرِمْتَ» لفظ نه مراد

(بَلِيتَ) لفظ دے (یعنی ستا بدن به زوړ شوے وی)، رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «الله تعالیٰ په زمکه باندے حرام کړیدی چه د اَنبیاؤ بدنونه اُوخوری»۔ (ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ، دارمیؒ، بیهقیؒ فی الدعوات الکبیر)

تعارف د اوس بن اوس ؓ : اَوس بن اوس : ثقفی صحابی دے په دمشق کښ اُوسیدلے دے او هلته بیا وفات شوے هم دے، دوه حدیثونه ئے اُمت ته رانقل کړیدی یو په باره د روژو کښ دے او بل د جُمعے په باره کښ۔

تشریح : وَقَدْ اَرِمْتَ : د ضرب یضرب نه دے او د سَمِعَ نه هم جائز دے (اَرِمْتَ) په کسره د راء سره۔ اصل کښ اَرْمَمْتَ ته وو، (اے صرت رمیماً) (ته به ذرۂ ذرۂ شوے ئے) نو یو میم د تخفیف د وجه نه حذف شو لکه ظَلِلْتَ کښ ظَلْتَ او اَحْسَسْتَ کښ اَحَسْتَ وئیلے شی۔ معنیٰ ئے ده زړیدل او د زمکے خوراك کیدل۔ یعنی ته به زمکے خوړلے ئے۔

او حاصل مطلب ئے دا دے چه ته به وفات شوے ئے نو زمونږ درود به تا ته څنګه پیش کولے شی۔او مړی خو اَوریدل نشی کولے۔

بعض وائی : دا صیغه د غائب ده یعنی (اَرِمْتْ) ضمیر پکښ عظام ته راجع دے۔ یعنی ستا هډوکی به زاړه شوی وی۔ بعض وائی : اَرَمَ په معنی د فَنِیَ (ختمیدو) سره دے۔

یَقُوْلُوْنَ بَلِیْتَ. : یعنی صحابه کرام د (اَرِمْتَ) مَعنیٰ په (بَلِیْتَ) سره کوی۔

اَجْسَادَ الْاَنْبِیَاءِ : یعنی اَنبیاء په قبرونو کښ په برزخی ژوند سره ژوندی دی چه هغه د دنیا د ژوند په شان ژوند نهٔ دے بلکه ډیر قوی او کامل دے، د شهیدانو نه هم زیات قوی دے۔ او کرامت او معجزه ئے دا ده چه د هغوی بدن هم الله نهٔ خاورے کوی بلکه روغ پراته وی۔

حدیث دلیل دے چه هرکله د جُمعے ورځ ډیره غوره ورځ ده نو پدے ورځ درود ډیر وئیل پکار دی او دا په نبیﷺ باندے پیش کولے شی، د هغهٔ روح دے باندے خوشحالیږی۔

النفخه نه مراد اوله شپیلیٔ ده چه پدے سره به د قیامت ابتداء کیږی، او د صعقه (چغے) نه مراد هم اوله شپیلیٔ ده لیکن دا ئے دویم صفت دے لکه قرآن کریم کښ دی : (ونفخ فی الصور فصعق من فی السموات ومن فی الارض الا من شاء الله)۔

نو دا تکرار پکښ باعتبار الوصفین شویدے۔ یعنی پدے ورځ به پدے شپیلیٔ سره خلقو باندے بے هوشی هم راځی۔

علی القاریؒ فرمائی : د نفخه نه دویمه شپیلیٔ مراد ده او د صعقه نه اوله مراد ده او اولے ته صَعْقه ځکه اُووئیلے شوه چه دا صعقه (چغه، بیهوشی) به مرتب کیږی په اوله شپیلیٔ باندے۔

بعض وائی ددے نه د موسی علیه السلام صعقه (بیهوشی) مراد ده چه هغه هم د جُمعې په ورځ وه۔ لیکن قول د قاریؒ صحیح دے۔

فائده : نبی او نور انبیاء علیهم الصلاة والسلام وفات دی لکه دا حدیث پرے دلیل دے، نو د دنیوی حیاة الانبیاء عقیده غلطه ده کما مر من هذا الکتاب (۲۱۶/۱)

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۸/٤) وابوداود (۱۰٤۷) والنسائی (۹۱/۳-۹۲) وابن ماجه (۱۰۸۵) والدارمی (۳٦۹/۱) والحاکم (۲۷۸/۱) والبیهقی فی الشعب (۲۷٦۸) وقال الحاکم اسناده صحیح علی شرط البخاری ووافقه الذهبی۔

---

۹ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اَلْيَوْمُ الْمَوْعُوْدُ يَوْمُ الْقِيَامَةِ، وَالْيَوْمُ الْمَشْهُوْدُ يَوْمُ عَرَفَةَ وَالشَّاهِدُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، وَمَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَلَا غَرَبَتْ عَلٰى يَوْمٍ أَفْضَلَ مِنْهُ، فِيْهِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُؤْمِنٌ يَدْعُو اللهَ بِخَيْرٍ اِلَّا اسْتَجَابَ اللهُ لَهٗ، وَلَا يَسْتَعِيْذُ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا اَعَاذَهٗ مِنْهُ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَا يُعْرَفُ اِلَّا مِنْ حَدِيْثِ مُوْسَى بْنِ عُبَيْدَةَ وَهُوَ يُضَعَّفُ.

---

ترجمه : او ابو هریره رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « الیوم الموعود، د قیامت ورځ ده، او "الیوم المشهود" د عرفې ورځ ده، او "شاهد" د جُمعې ورځ ده، او په هیڅ یوه داسې ورځ باندې نمر نهٔ دے راختلے او نهٔ پریوتے دے چه هغهٔ د جمعې ورځې نه غوره وی، (ځکه) پدے (جُمعه) کښې یو ساعت دے چه د هغې سره یو بنده مومن نهٔ موافق کیږی چه د الله نه (پدے کښې) د یو خیر دعاء اُوغواړی مګر الله به ورله ضرور دعاء قبلوی، او د یو شی نه پناه نهٔ غواړی مګر الله به د هغې نه ورله پناه ورکوی»۔ (احمدؒ، ترمذیؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث غریب دے او دا روایت صرف د حدیث د موسی بن عبیده نه پیژندلے شی او هغهٔ (په روایت کښې) ضعیف شمارلے شی۔

تشریح : یعنی قرآن کریم کښې چه (الیوم الموعود) ذکر ده نو هغې نه مراد د قیامت ورځ ده چه وعده ئے شویده۔ یوم عرفه ته ئے مشهود ځکه اُووئیله چه خلق پدے ورځ عرفات ته ځی او هلته حاضریږی نو هغه مشهود شوه (هغې ته حاضری اُوشوه) او د جُمعې ورځې ته ئے (شاهد) اُووئیله ځکه چه خلق په خپلو ځایونو کښې وی او دا ورځ پرے راځی۔

دلته ساعة الاجابت ډیر مبهم شویدے او مخکنو حدیثونو کښې ئے څه نا څه تعیین شویدے۔او پدے کښې مونږ ته ترغیب دے چه دومره بهترین وخت درله الله درکړیدے نو

پدے کښې سوالونه اُوکړئ او پناهي اُوغواړئ۔

درجة الحديث : الحديث صحيح : اخرجه احمد (٢٩٨/٢- ٢٩٩) والترمذى (٣٣٣٩) وموسى بن عبيدة ضعيف جداً مترجم فى التهذيب والتاريخ الكبير للبخارى (٢٩١/١/٤) والصغير (١٧٢-١٧٣) وابن ابى حاتم (١٥١/٤) فقال البخارى منكر الحديث وقال ابوحاتم : منكر الحديث۔ ولكن الشيخ احمد شاكر صحح الحديث فى المسند (٧٩٦٠) وقال ان الحديث لم يذكره الهيثمى من وجه آخر عن ابى هريرة وهذا الوجه الآخر لم يروه احمد فى المسند وصححه الالبانى فى صحيح الترمذى (٢٦٥٩) وحسنه فى الجامع الصغير راجع السلسلة الصحيحة (١٥٠٢) ۔

## الفصل الثالث

١٠ – عَنْ اَبِيْ لُبَابَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُنْذِرِ، قَالَ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «اِنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ سَيِّدُ الْاَيَّامِ وَاَعْظَمُهَا عِنْدَ اللهِ، وَهُوَ اَعْظَمُ عِنْدَ اللهِ مِنْ يَوْمِ الْاَضْحٰى وَيَوْمِ الْفِطْرِ، فِيْهِ خَمْسُ خِلَالٍ: خَلَقَ اللهُ فِيْهِ آدَمَ، وَاَهْبَطَ اللهُ فِيْهِ آدَمَ اِلَى الْاَرْضِ، وَفِيْهِ تَوَفَّى اللهُ آدَمَ، وَفِيْهِ سَاعَةٌ لَا يَسْأَلُ الْعَبْدُ فِيْهَا شَيْئًا اِلَّا اَعْطَاهُ، مَا لَمْ يَسْأَلْ حَرَامًا، وَفِيْهِ تَقُوْمُ السَّاعَةُ، مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا اَرْضٍ وَلَا رِيَاحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ اِلَّا هُوَ مُشْفِقٌ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : ابولبابه بن عبد المنذر ﷺ فرمائي : نبي ﷺ فرمايلي دي : «بيشکه د جُمعے ورځ د ټولو ورځو سرداره ده، او د الله په نزد د ټولو ورځو نه ډيره عظمت والا ده، او دا ورځ د الله په نزد يوم الاضحیٰ او يوم الفطر نه (هم) ډيره عظمت والا ده، پدے کښې پنځه خصلتونه دي : (اول) پدے کښې الله آدم (عليه السلام) پيدا کړيدے، او پدے کښې الله آدم زمکے ته راکوز کړيدے، او پدے کښې الله آدم وفات کړيدے، او پدے کښې يو داسے ساعت دے چه په هغے کښې يو بنده د څۀ شي سوال نۀ کوي مګر الله ئې ضرور ورکوي، ترڅو ئې چه د حرامو سوال ئې نۀ وي کړے، او پدے کښې به قيامت قائميږي، هيڅ مقرّب ملائک، آسمان، زمکه، هواګانے، غرونه او دريابونه نشته مګر دا (ټول) د جُمعے ورځے نه يريږي» (پدے وجه چه پدے کښې قيامت قائميږي او پته نۀ لګي چه کوم وخت به راځي) (ابن ماجه)

تشريح : دا دليل دے چه د جمعے ورځ مطلقاً په ټولو ورځو غوره ده اګرکه د عرفے او يوم النحر وي په هغوي هم غوره ده۔ او ددے ورځے ډير هيبت دے چه غير ذي روح څيزونو ته هم الله ددے خبر ورکړيدے چه پدے ورځ به قيامت راځي۔

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه ابن ماجه (١٠٨٤) واحمد (٤٣٠/٣) قال المنذری فی الترغیب (٤٩٠/١) فی اسناده عبد الله بن محمد بن عقیل وهو ممن احتج به احمد وغیره وحسنه الالبانی فی صحیح الجامع (٢٢٧٦) وفی صحیح الترغیب (٦٩٥)

---

١١ – وَرَوٰى أَحْمَدُ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ: اَنَّ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ اَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ: اَخْبِرْنَا عَنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مَاذَا فِيْهِ مِنَ الْخَيْرِ؟ قَالَ:«فِيْهِ خَمْسُ خِلَالٍ» وَسَاقَ اِلٰى آخِرِ الْحَدِيْثِ.

---

ترجمه : او امام احمدؒ د سعد بن معاذ ﷺ نه روایت نقل کړیدے چه د انصارو نه یو سړے نبی ﷺ خواته راغلو عرض ئے اُوکړو: د جُمعے ورځے متعلق مونږ ته بیان کړه چه پدے کښې څه خوبیانے دی ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : « چه په دے ورځ کښې پنځه خصلتونه دی »، او (مذکوره) حدیث ئے آخر پورے ذکر کړو۔

تشریح : د مشکاة په بعضو نسخو کښې سعد بن معاذ ذکر دے او په بعضو کښې سعید بن معاذ دے او دا واړه د لیکونکو دا خطائی ده ځکه چه دا روایت په مرویاتو د سعد بن معاذ کښې نشته بلکه دا په مرویاتو د سعد بن عباده رئیس الخزرج کښې دے۔ او د سعید بن معاذ په نوم څوك راوی نشته۔

درجة الحديث : اسناده حسن : اخرجه احمد (٢٨٤/٥) والبزار فی مسنده (٢٩٤/١ رقم ٦١٥) وقال الهیثمی فی المجمع (١٦٤/٢) فیه عبد الله بن محمد بن عقیل وفیه کلام وقد وثقه وبقیة رجاله ثقات۔

---

١٢ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قِيْلَ لِلنَّبِيِّ ﷺ: لِأَيِّ شَيْءٍ سُمِّيَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ؟ قَالَ: «لِأَنَّ فِيْهَا طُبِعَتْ طِيْنَةُ اَبِيْكَ آدَمَ، وَفِيْهَا الصَّعْقَةُ وَالْبَعْثَةُ وَفِيْهَا الْبَطْشَةُ، وَفِيْ آخِرِ ثَلَاثِ سَاعَاتٍ مِنْهَا سَاعَةٌ مَنْ دَعَا اللهَ فِيْهَا اسْتُجِيْبَ لَهٗ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : نبی ﷺ ته اُوئیلے شو چه جُمعے ورځې ته په څۀ وجه (د جمعے) نوم کیخودے شوے دے؟ ویے فرمایل : « پدے وجه چه پدے کښې ستا د پلار آدم (علیه السلام) خټه پیدا شوے ده، او پدے کښې به صعقه (بیهوشی – شپیلۍ د قیامت) او (د قبرونو نه د دوباره ژوند دپاره) راپورته کیدل وی، او پدے کښې به بطشه (سخت رانیول) وی، او ددے په آخری درے وختونو کښې یو وخت دے (یعنی د جُمعے آخری ساعت) چه چا

په هغې کښې د الله نه دعاء اُوکړه، دهغهٔ دپاره به قبوله شي»۔ (احمدٌ)

تشریح : مطلب د سوال دا دے چه جُمعه کښې خو معنیٰ د راجمع کیدلو ده نو دے کوم کارونو راجمع کړیدی؟ او څه خوبیانې پکښې دي۔

صعقه نه مراد اوله شپیلۍ ده او د بعثت نه مراد دویمه شپیلۍ ده چه په هغې سره به خلق راپورته کولے شي۔ او د بطشه نه مراد هغه جټکه وي چه په هغې کښې به د ټولو کائناتو په یو جرق رانیول وي۔

پدے روایت کښې هم دا بیان راغلو چه ساعت الاجابة په آخری درے ساعتونو کښې دریم ساعت دے، کوم چه غروب ته نزدے دے۔

درجة الحدیث : اسناده ضعیف : اخرجه احمد (۳۱۱/۲) وفیه علتان الفرج بن فضالة ضعیف وکذلك علی بن ابی طلحة لم یسمع من ابی هریرة کما اخبر الحافظ ابن حجر فی الفتح (۳٤٦/۲) بخلاف ما ذکره الهیثمی فی المجمع (۱٦٤/۲) بقوله علی هذا الحدیث مع حدیث آخر اسناده صحیح رجالهما رجال الصحیح فلیس بجید حیث ان الفرج بن فضالة ضعیف فکیف یکون من رجال الصحیح. وضعفه الالبانی.

---

۱۳ – وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «أَكْثِرُوا الصَّلَاةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَاِنَّهٗ مَشْهُوْدٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ، وَاِنَّ اَحَدًا لَنْ يُصَلِّيَ عَلَيَّ اِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلَاتُهٗ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهَا». قَالَ: قُلْتُ: وَبَعْدَ الْمَوْتِ؟ قَالَ: «اِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْاَرْضِ اَنْ تَاْكُلَ اَجْسَادَ الْاَنْبِيَاءِ، فَنَبِيُّ اللهِ حَيٌّ يُرْزَقُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او ابودرداء ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «د جُمعې په ورځ په ما باندے درود زیات وایئ، ځکه د جُمعې ورځ مشهود (یعنې حاضر شوے) ده، پدے ورځ ملائك حاضریږي، او هرڅوك چه پدے ورځ په ما باندے درود اُووائي، ما ته پیش کولے شي تردے چه هغهٔ ددے نه فارغیږي» ۔ ابودرداء وائي : ما عرض اُوکړو چه آیا د مرګ نه روستو (هم تاسو ته درود پیش کیږي؟) وے فرمایل : «الله تعالیٰ په زمکه باندے حرام کړې دي چه د انبیاؤ بدنونه اُوخوري، (بلکه) د الله نبي ژوندے وي (په برزخي ژوند سره) چه خوراکونه ورکولے شي»۔ (ابن ماجهٌ)

تشریح : وَبَعْدَ الْمَوْتِ؟ : مطلب د سوال دا دے چه پس د مرګ نه خو به ستاسو بدن مُبارك خاورے شوے وي نو څنګه به ستاسو حضور ته درود پیش کړے شي ؟ نو نبي ﷺ

اُوفرمایل : په زمکه باندے حرام دی چه د انبیاؤ بدنونه خاورے کړی بلکه د الله نبی په قبر کښې په برزخی ژوند سره ژوندے وی او د جنت نه ورته رزقونه او خوراکونه ورکولے شی او هر چه د دنیا په اعتبار سره دے نو وفات دے د دنیا سره ئے هیڅ تعلق نشته۔انك میت وانهم میتون۔ الله ورته میت (مړ) وئیلے دے۔ لکه ددے خبرو تحقیق مخکښې جلدونو کښې تفصیلا ذکر شوے دے۔

درجة الحدیث : اسناده صحیح : اخرجه ابن ماجه (١٦٣٧) والحدیث رجاله ثقات الا انه فیه زید بن ایمن لم یوثقه غیر ابن حبان ولم یرو عنه غیر سعید بن ابی هلال وترجمه الحافظ بقوله : مقبول" لکنه فی عداد المجهولین وزاد البخاری فذکر فیه علة اخریٰ وهی ان روایة زید عن عبادة بن السنی مرسلة آه راجع تهذیب التهذیب ولکن الحدیث یشهد له حدیث (٨) اوس بن اوس المتقدم۔

١٤ – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوْ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ إِلَّا وَقَاهُ اللّٰهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ.

ترجمه : او عبد الله بن عمرو ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «نشته یو مسلمان چه د جُمعے په ورځ یا د جُمعے په شپه وفات شی مګر الله به ئے د قبر د فتنے (عذاب) نه بچ ساتی»۔ (احمدؒ، ترمذیؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث غریب دے او سند ئے متصل نۀ دے۔

تشریح : دا روایت ثابت دے او په دے کښې عظیم فضیلت دے د بنده دپاره چه مؤمن وی او د جُمعے په ورځ یا د جُمعے په شپه مړ شی نو د قبر د عذاب نه به محفوظ وی خو دا فضیلت ګوره د مؤمن دپاره دے، نۀ د مشرك كافر دپاره، كه مشرك او كافر د عرفے په ورځ او د جُمعے په ورځ هم وفات شی، هُم د هغه دپاره د قبر عذاب نۀ معاف کیدل شته او نه آسانیدل، او کوم روایات چه بعض مقلدینو لکه احسن الفتاوی والا ذکر کړیدی چه د جُمعے په ورځ په کفار او مشرکانو باندے عذابونه آسانیږی نو د هغے هیڅ حواله نشته او هسے خبره ده۔ او وائی دا ابونعیم النسفی په خپل کتاب کښې ذکر کړیدی۔ حال دا چه دا خو څه د حدیثو کتاب نۀ دے۔ او نۀ د دغه خبرو څه صحیح ثبوت شته۔

درجة الحدیث : اسناده حسن : اخرجه احمد (١٦٩/٢) والترمذی ورجاله موثقون الا انه منقطع ربیعة بن سیف لم یسمع من عبد الله بن عمرو کما ذکر الترمذی لکن رواه الطبرانی موصولاً کما فی الفیض" وله طریق اخریٰ فی المسند (١٧٦/٢–٢٢٠) وبه یتحسن الاسناد

وانظر تحفة الاحوذی)۔

۱۵ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: اَنَّهُ قَرَأَ: ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ الآية، وَعِنْدَهُ يَهُوْدِيٌّ. فَقَالَ: لَوْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ عَلَيْنَا لَاتَّخَذْنَاهَا عِيْدًا. فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَاِنَّهَا نَزَلَتْ فِيْ يَوْمِ عِيْدَيْنِ، فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، وَيَوْمِ عَرَفَةَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

---

ترجمه: او ابن عباس ﷺ نه روایت دے چه هغهٔ دا آیت تلاوت کړو: «الیوم اکملت لکم ودینکم" الآیة، او د هغهٔ په خوا کښې یو یهودی وو، وے وئیل: کهٔ دا آیت په مونږ نازل شوے وے نو مونږ به ددے آیت نه (او د هغهٔ ورځے نه) اختر جوړ کړے وے۔ نو ابن عباس ﷺ اُوفرمایل: (خبره شهٔ) دا آیت د دوه اخترونو په ورځ نازل شوے دے، چه د جُمعے او عرفے ورځ ود"۔ (ترمذیؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی: دا حدیث حسن غریب دے۔

تشریح: بخاری کښې راځی چه دا سوال بعینهٖ یو یهودی په عمر فاروق باندے کړے وو، مقصد ددے یهودی دا وو چه صحابه کرامؓ په خپل دین کښې بدعات پیدا کړی او صحیح دین گډوډ شی یا ئے دغه مقصد نهٔ وو خو هسے ورانے راښکاره کول ئے مقصد وو۔ او خپل غلط خواهش ئے راښکاره کړو۔ لیکن ابن عباسؓ او عمر فاروق ورته ډیر مزیدار جواب ورکړو چه اسلام کښې بل اختر پیدا کولو ته هیڅ ضرورت نشته او دا آیت په دوه اخترونو کښې نازل دے چه یو د جُمعے ورځ وه او بل د عرفے ورځ وه نو دین کښې مونږ بدعات نهٔ پیدا کوو۔ لهذا عُرسونه او عید میلاد النبی وغیره پیدا کول سُو چه بدعات دی۔

دا حدیث قوی دلیل دے په رد د بدعاتو کښې چه کوم شی له الله خومره مرتبه ورکړی وی نو د هغې نه به پکښې د ځان نه زیادت نهٔ کوے، او د ځان نه به وختونو او ځیزونو ته فضیلتونه نشی ورکولے ورنه بیا به بدعت جوړ شی۔

نو قبر، خانقاه، غارونو ته به د ځان نه شریف نشی وئیلے۔

بیا عید اختر ته وائی لیکن په عرف کښې هر د خوشحالۍ ورځے ته عید وئیلے شی۔

درجة الحدیث: اسناده صحیح: اخرجه الترمذی) وقال الالبانی فی تعلیق المشکاة (صحیح)

---

۱۶ – وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا دَخَلَ رَجَبُ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ رَجَبَ وَشَعْبَانَ وَبَلِّغْنَا رَمَضَانَ». قَالَ: وَكَانَ يَقُوْلُ: «لَيْلَةُ الْجُمُعَةِ لَيْلَةٌ اَغَرُّ، وَيَوْمُ الْجُمُعَةِ يَوْمٌ اَزْهَرُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيْرِ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه کله رجب داخل شو نو داسې به ئې فرمايل : « اللهم بارك الخ" (اے الله ! په رجب او شعبان کښې مونږ له برکت واچوے او رمضان ته مو (په خير سره) ورسوے » انسؓ وائي : رسول الله ﷺ به فرمايل : « د جُمعې شپه روښانه (ښائسته) شپه ده، او د جُمعې ورځ پرقيدونکې ورځ ده»۔ (بيهقیؒ)

تشريح : ددې نه د نبي ﷺ د رمضان او د هغې د برکات او عباداتو سره د شوق اندازه کيږي چه د رمضان د راتلو دپاره به ئې د مخکښې نه دعا طلب کوله، ځکه د نبي ﷺ د سترګو يخوالے د الله په عبادت کښې وو۔

لَيْلَةٌ اَغَرُّ : مطلب دا چه کله به د جُمعې شپه وه نو نبي ﷺ به فرمايل : "هذه ليلة اغر" دا سپينه شرافت والا شپه ده۔ او د جُمعې ورځ باره کښې به ئې وئيل : "هذا يوم ازهر" دا د چمك والا ورځ ده۔ چه دا دلالت کوي په فضيلت ددې ورځ او ددې شپې۔ دا يا نورانيت يا ذاتي دے يا د عبادت په وجه دے کوم چه په دے کښې واقع کيږي۔

درجة الحديث : اسناده ضعيف: اخرجه البيهقي في الدعوات الكبير وكذلك في الشعب وتفرد به زياد النميري وعنه زائدة بن ابي الرقاد وقال البخاري زائدة عن زياد منكر الحديث وجهله جماعة ولكن قال البزار : لا بأس به وانما نكتب من حديثه ما لم نجد عند غيره كذا في التهذيب وفيه ايضاً زياد وهو ضعيف ۔ ومن طريقه رواه ابن عساكر في تاريخه (٢٣٢/١١)

---

انتهى المجلد الخامس من الحق الصريح

بحمد الله وكرمه ويتلوه المجلد السادس من باب وجوب الجمعة – ان شاء الله تعالىٰ – والحمد لله اَولاً وآخراً ظاهراً وباطناً وسبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك

وكتبه ابوزهير سيف الله البشاوري وصلى الله على نبينا محمد وآله وصحبه وسلم

(١٤٣٠/ آخر جمادى الاولىٰ الهجرية – الموافق : ٢١/٥/٢٠٠٩)



# فهرست د الحق الصریح شرح مشکوة المصابیح (۵) جلد



www.deenulislam.net

د تالیف او طباعت تمام حقوق محفوظ دی

د کتاب نوم ———— الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح پښتو
د مؤلف نوم ———— الشیخ العلامه ابو محمد امین الله البشاوری حفظه الله
جمعه وترتیب ———— ابو زهیر سیف الله
تعداد ———— (۱۱۰۰) نسخې
سنه طباعت ———— اول محرم/۱۴۳۱ هـ موافق ۲/۱۲/۲۰۱۰ء
فن ———— الحدیث
اخراج ———— ابو سلمان حضرت محمد حفظه الله
ناشر ———— مکتبه محمدیه گنج پیښور

مکتبه مُحمّدیه

بیرون گنج گیټ پهندو روډ منگل مارکیټ پیښور
زیر انتظام: ولی الله موبائل نمبر: 03018828402

ملاویدو پتې:

- مکتبة الکتاب والسنة نیو سلطان آباد کراچی 03002615407
- ایوب اسلامی مکتبه عقب قصه خوانی پیښور
- معراج کتب خانه محله جنگی قصه خوانی پیښور
- نوروز کتب خانه صوابی اډه
- مکتبه محمدیه تالاشی چوك جلال آباد
- توحید وسنت پلورنځی اسحاق زئی مارکیټ جلال آباد
- مسلم کتاب پلورنځی اسحاق زئی مارکیټ جلال آباد
- همدرد پلورنځی اسحاق زئی مارکیټ جلال آباد